# مناسک الملا علی القاری

## پښتو

شرح اللباب المناسك للعلامة السندي

مع حاشية ارشاد الساري

ويليه

كتاب ادعية الحج والعمرة وما يتعلق بهما

مترجم

خادم التفسير والحديث

مولانا محمد جمعه مظهري

ناشران محمد ابراهيم وخليل الله جان

نقشبندي کتب خانه

لنبکرگاه بازار افغانستان

قال ﷺ الحجة المبرورة ليس لها جزاء الا الجنة. نسائی ج ۲ ص ۲



# مناسک الملا علی القاری

شرح اللباب المناسک للعلامة السندی
مع حاشية ارشاد الساری

ويليه

كتاب ادعية الحج والعمرة وما يتعلق بهما

مترجم


خادم التفسير والحديث مولانا محمد جمعه مظهری
نقشبندی قادری عفی عنه الباری



ناشران محمد ابراهيم وخليل الله جان
نقشبندي كتب خانه لنبكرگاه بازار تر بناروالی. لاندي

متن............................. علامة سندی رحمة الله تعالی علیه
شارح........................ ملا علی القاری رح المتوفی سنه ۱۰۱۴
محشی................................. ارشاد الساری
پښتوژباړه.......................... مولانا محمد جمعه مظهری
نظر الثانی....................... الحاج ملا اسماعیل شریعت یار
کاتب.......................................... محمد شفیق رحماني
شمیر ......................................... ۱۰۰۰ ټوکه
ادرس..... نقشبندي کتب خانه د لښکرګاه بازار تر ښاروالی لاندي
بیه................................................ اته سوه افغانی
کاتب د تماس نیولو شمېره......... ۰۰۹۲-۳۲۱ ۸۰۱۷۴۳۸



کمپوز. میګاسافټ کمپیوټر
خبرتیا. د هر ډول معیاري پښتو عربي دري او انګریزي کتابت او خپل کمپیوټر ته د پښتو وېنډوز او یولږ نورو پروګرامونو د ورا چولو لپاره زموږ د اداري نوم په یاد لرئ.
میګاسافټ کمپیوټر

Mob. +۰۰۹۲ ۳۲۱, ۲۷۷۵۱۳۵
Mob. +۰۰۹۲ ۳۲۱, ۸۰۱۷۴۳۸

# فهرست

د کتاب پای

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

## تمهيد او باعث د ترجمې

حامدا و مصليا و مسلما اما بعد قال رسول الله ﷺ اذ مات الانسان انقطع عمله الا من ثلاث صدقة جارية او علم ينتفع او ولد صالح يدعو له رواه مسلم تفسير مظهری ج۹ ص۱۲۷.

قوله ﷺ من سلک طريقا يلتمس فيه علما سهل الله له طريقا الى الجنة الحديث ابن ماجه ص۲۰.

ګرانو مسلمانانو وروڼو څرنګه چې د دين خدمت يو لويه سخا بلکې قلمي جهاد دی او رسول الله ﷺ د مسلم په حديث کې فرمايلي دي چې انسان مړ سي عمل يې قطع سي نه د درو کسانو څخه يو خيرات يې تر مرګ بعد چليږي مثلاً څاه پر يوه لاره وکاږي يا مسجد جوړ کړي او يا نفعه رسوونکی علم ورڅخه پاته سي چې د ده تر مرګ بعد خلق نفع ورياندي اخلی لو يا د ده څخه صالح اولاد پاته سي بيا و ده ته دعاګانی کوي او په بل حديث کې فرمايي چې څوک د علم لاره وشړي د جنت لاره ورته اسانه کيږي نو هم دا وجه ده چې زموږ په دين او علاوه د مذهب کتابونه تر شمار وتلي دي چې پر هر مضمون علماؤ کتابونه او رسالې ليکلي دي او فتاولوي خو يوه لويه ذخيره ده څنګه چې زموږ په عصر کې خلق و دې درجې ته راکښته سوه چې اکثره خلق په عربي نه پوهيږي نو لهذا د هر ژبې جيد علماء لوس د خپلې ژبې دپاره د دين کتابونه ليکي نو په هم دغه اميد زما يو مخلص وورور چې ظاهري او باطني علوم ورسره دي ملا محمد ابراهيم اخوند پر ما زور ولګوی چې د ملا علي قاري رحمه الله مناسک په پښتو ژبه کې ترجمه کړه او حال دا وو چې ما لويه دوره حديث او ترجمه د قرآن کريم او بعضی د فنونو کتابو درسول هيڅ فراغت مي نه درلود اوقات مصروف وه او د نوموړي صاحب خبره مي هم نه سوای غورځولای نو د لوی خدای جل جلاله په توفيق سره مي د لوی اختر په اوله ورځ شروع په وکړه سنه ۱۴۲۶ هـ ق مطابق سنه ۱۳۸۴ ش او د ربيع الاول په شپږمه ورځ سنه ۱۴۲۷ هـ ق مطابق سنه ۱۳۸۵ هـ ش پوره سو.

د نوموړی قاري محمد ابراهيم خبري زما توجه هم راوګرځوله ځکه ما چې تلاش وکړ

قرينه وه چي د ملاعلي قاري رحمه الله مناسک به د دنيا څخه ورک سي ولي چي اوس د حج دپاره خلق رسالې ګوري او حال دا چي هغه رسالې د حج پوره مسئلې نه سي ځايولای او د ملا علي قاري مناسک په ټوله دنيا کي بل نظير نه درلود څلور سوه او څوارلس کاله مخکي سابقه لري د ده بل مثل نه دی جوړ سوی زه خو وايم چي دا مناسک د حاجي دپاره مکې مکرمې ته د ځانه سره وړل لازمي کار دی ځکه داسي يو شی بې نه دي پرې ايښی چي د دنيا يو علامه وواېي چي ارمان دا شی هم پکښې وای علاوه دا ده چي د ملا علي قاري قدر د نړۍ علماء لري يو ازي پر مشکٰوة يو ولس ټوکه شرحه لري نو ما مولوی محمد جمعه دا اميد هم وکی چي ګوندي د ملا علي قاري رحمه الله په خادمانو کي به راسم د ده مبارک د مناسک په ژباړه کي که اوس يو ه خطا سوې وي نو د مسلمانانو ورونو څخه هيله لرم چي عفوه راته وکړي او اصلاح بې وکړي ولي چي بنده عاجز دی.

تنبيه

لږ پوهنه او توصيه د مترجم قبوله کړئ چي د کتاب په کتو کي به در ته اساني وي اول په عربي کي د علامة سندي رحمه الله متن دی تر دغه وروسته بيا د متن ترجمه او د ملا علي القاري رحمه الله د شرحي پښتو عبارت دی چي د ارشاد الساري حاشيه ما د شرحي په قطار کي ليکلې ده دپاره د دې چي پر بې علمه سړي او خوانده باندي د عبارت ربط او سلسله ګډوډه نه سي علاوه دا ده چي د ارشاد الساري پر نوم سرييره ما عرضي خط کش کړی دی چي سړی بې اسانه پيدا کولای سي غټ زړی دا درکوم چي د کتاب لوی لوی بيانونه ما په يوه کوچني او لنډ مضمون کي د اسانۍ دپاره سره راغونډ کړي دي.

اللهم صل على سيدنا محمد واله و عتد بعد (كل معلوم لک) و ماتوفيقی الا بالله العلی العظيم فی البدايه و النهاية و السلام على من اتبع الهدى.

خادم الحديث محمد جمعه مظهري نقشبندي قادري عفی عنه الباري

ولايت هلمند ولسوالي مارجه



الحمدلله ذی الجلال و الاکرام و الفضل و الطول و المنن العظام الذی هدانا للاسلام و اسبغ علینا جزیل نعمه و الطائه الجسام و کرم الادمیین و فظهم علی غیرهم من الانام و دعاهم بر افته و رحمته الی دار السلام و اکرمهم بما شرع لهم من حج بیته الحرام و یسیر ذلک علی تکرر الدهور و الاعوام فرض حجه علی من استطاع الیه سبیلا من امته افضل الرسل الکرام، حمده سبحانه و تعالی ان شرفنا بجوار هذا البیت المعظم و اشکره علی ما تفضل و انعم و اشهد ان لا اله الا الله وحده لاشریک له اقرارا بوحدانیته و اذعانا لجلاله و عظمته وحمدیته و اشهد ان سیدنا محمدا عبده و رسوله المصطفٰی من خلیقته و المختار من بریته و زاده فضلا و شرفاً لدیه.

امابعد ضعیف او محتاج بنده حسین زوی د محمد، سعید عبدالغنی المکی الحنفی الله تعالی دي مغفرت او رحم پر وکړي داسي وايي چي حج د افضل العباداتو او طاعاتو څخه دی لهذا نو مهم د کارو څخه یو دا کار وو چي د حج احکام او اقسام او مسائل او فرایض او واجبات او سنن او مستحبات او هغه افعال چي حاجي لره يې کول مباح یا ممنوع یا مکروه دی دا ټوله په یو خوندور او ښه مضمون سره ولیکل سي اګرچي علماؤ رحمهم الله وو ډېر زيات تصنيفات په دې باب کي کړي دي غټ او کوچني ليکن تر ټولو په زړه پوری او کامل مناسک د حج د علامة السندي رحمه الله دی چي شرح يې علامة المحقیقین الشیخ ملا علی القاري رحمه الله کړې ده حق تعالی دي جنت ماوی ورنصیب کړي دغه شرح د ملاعلي قاري رحمه الله د حج هغه مهمات او نکات او فوائد او مسائل را جمع کړي دي چي بل مثل د جهان په تصنیفاتو کي نه لري فلهذا و هر حاجي لره ضروري ده چي دا مناسک د ملا علي القاري زده کړي او یاد دي يې کړي او یا د حج په دوران کي دي د ځان سره وګرځوي ځکه دا روښانه څراغ دی د حج د هر مشکلي او سختي مسئلې همدا رنګه د عمومي مسئلو لره.

وجه دا ده چي امام عمر بن عبدالعزیز رحمه الله متوفی سنه ۱۰۱ ه فرمایلي دي چي بې له علمه چي سړی نیک عمل کوي تر اصلاح يې فاسدات ډېر وي لکه چي نورو علماوو

همدا داسي ويناوي كړي دي چي هر هغه نيک اعمال چي په اندامو سره ادا كيږي كه شرطونه پاته سوه نو دا عملونه د شيطانانو دپاره د خندا کولو ذريعه گرځي همدا وجه ده چي اکثره عوام د بيت الله شريفي ځخه راسي حج يې خراب سوى وي ځكه يا خو يې احرام صحت نه وي پيدا كړى او يا يو فرض په كښي پاته سوى وي فلهذا د حاجي دپاره د حج د احكامو علم ضروري دى، سعيد عبدالغني المكي الحنفي وايي چي اول ما د دغه كتاب د ليكلو دپاره استخاره وكړه او بل مي دا حديث مخ ته كښېښول چي نبي ﷺ فرمايلي دي چي ابن آدم مړ سي نو نيک اعمال يې هم قطع سي ليكن د دريو كسانو ځخه نه قطع كيږي اول صدقه جاريه دويم علم نافع دريم نيک اولاد چي دعاوي ورته كوي، رواه مسلم وغيره.

او بل دا كتاب چي ما نوم د (ارشاد الساري) پر اينبي دى دا مي د ډيرو معتمدو كتابو ځخه را نقل كړى دى ردمحتار و تقرير الرافعى، الطحطاوي في حواشي الدر المختار، ضياء الابصار، الحباب وغيره.

## مقدمه د حاجي په ادابو کي

اول پر حاجي واجب د خپل نيت اصلاح ده چي د رياء او سمعه او غرور ځخه د نفس لو شهرت ځخه او د خلقو د مدحي ځخه چي فلانى خو عابد دى حج ته ځي د دغه ټولو ځخه خپل نيت داسي اصلاح كي چي يوازي د الله تعالى رضا يې مدينظر وي و بس مگر كه بل نيت يې وو او يا يې ورگډ كړ د ثواب پر ځاى يې عذاب نصيب سو العياذ بالله لهذا نو حاجي ته مناسب دا ده چي حج ته روان سى ځان دى داسي فرض كړي چي زه خو د دنيا ځخه وه وتلمه دويمه وجيبه د حاجي دا ده چي د ټولو گناهو ځخه به توبه د نصوح كاږي هغه داسي ده كه زنا يا شراب خوري ورځخه سوې وي نو پښېماني به پر كوي خوند به يې د زړه يوازي توبه كار نه كوي ترڅو چي قضاء يې را نه وړي او برسيره پر دغه مغفرت و نه غواړي او پښيماني و نه كړي او كه يې حقوق العباد پايماله كړي وه د يو چا مال يې په غصب يا غلا سره خوړلى وو هغه به وركوي او هغه سړى يا د هغه وارثانو ته كه مړ وو او يا يې د نامعلوم شخص خوړلى وي پيا دي و يو فقير ته وركړي په داسي نيت سره چي ياالله دا مال چي ما و دغه فقير ته وركړ دا و تا ته تسليم سو ته يې و اصلي مالک ته ثوابونه ورسوه لكه دا مسئله چي قاضيخان ذكر كړې ده او د ابو يوسف رحمه الله مذهب هم دى فتوى هم پر دغه ده.

## فصل د حاجي په لوازمو كي

پر حاجي واجب ده چي د ځان او د خپل اولاد دپاره به حلاله نفقه برابوري د ده تر تگ او راتگ پوري ځكه حج د قبول مقام ته نه رسيږي چي نفقه يې حرامه وي اگر چي فرض د

حج کولو ورځخه ساقط سو معنا دا سوه چي د قیامت په ورځ به عذاب نه وي ورته لیکن د حاجیانو په ټولی کي به داخل نه سي امام غزالي رحمه الله فرمایلي دي که چیري د یو کس د حج روپۍ حرامي وي او یا شبهه په کښي وي نو داسي شخص دي د خپلي نفقې دپاره حلالي روپۍ پیدا کړي او که قادر نه وو یا خو دي دونه پیدا کړي چي د احرام ځخه شروع بیا د حج ځخه د حلال تر ورځي پۍ کفایت وکړي او که پر دغه هم قادر نه وو بیا دي کوشش د عرفي د ورځي د حلال رزق وکړي اوکه پر دغه هم نه وو قادر نو په زړه کي دي بېره د الله تعالی ځخه وکړي امید د رحمت ورلره سته.

که چیري یو کس حج ته تلی مال یې حرام یا یې شبهه په کښي درلوده نو طریقه د حل یې دا ده چي د بل سړي ځخه دي روپۍ پور کړي او حج دي په وکړي تر حج وروسته دي هغه ته پور بیرته ورکړي.

## فصل په بیان کي د نفلي حج دی چي اجازه د پلار او مور غواړي

که چیري د سړي مور او پلار خدمت ته اړتیا ولري دواړه یا یو په کښي او اجازه و خپل اولاد ته د نفلي حج کولو نه ورکوي بیا دغه اولاد لره تګ نسته که ولاړی عمل یې مکروه دی علاوه دا ده چي نیکه ګان او اناګاني هم په درجه کي د والدینو دي که یې مور او پلار مړه وه.

که چیري سړی لغړ زنی او بې ږیری وو او یا لاره د خوف وه نو پلار کولای سي چي زوی د کوره د وتلو ځخه منع کړي لیکن که فرضي حج ته تلی مضمرات کتاب لیکلي دي چي غوره دا ده چي حج ته ولاړ سي او بله مسئله دا ده که د ده د حج روپۍ د پور وي بیا هم ده لره مکروه دی ترڅو چي هغه مدیون ورته اجازه ور نه کړي دا په هغه صورت کي چي حلال مال و نه لري او یا یې نور مال حرام وي علاوه دا ده که په دغه پور کي د ده بل سړی ضامن سوی وو بیا د دواړو ځخه اجازه ضروري ده.

حاجي لره مناسب دا دی چي تر روانیدو مخکي خپل قرضونه اداء کړي امانتونه او د خواست شیان و خپلو مالکانو ته وسپاري او بل د ځان د طرفه ځخه وصیت نامه ولیکي چي د فلاني سړي پر ما یا زما پر بل سړي دونه مقدار روپۍ دي او بیا دا وصیت نامه د امین سړي په لاس ورکړي.

## فصل د حاجي دپاره مستحب کارونه

حاجي لره مستحب کار دا دی د سفر د مناسباتو په باب د نیکانو خلقو سره مشوره وکړي او بل د استخاري لمونځ او دعا وکړي او د سفر د لمانځه طریقه او د لاري د تللو او

دول د حج او افعال د حج دا ټول مسئلې زده کړي او د ځانه سره داسي د حج مناسک یوسي چي د حج په دوران کی ورته پوره معلومات ورکوي.

مستحب دا دی چي زړه به د تجارت د تصور څخه پاک ساتي اګر که ورته محتاج هم وي خو مقصود به يې نه ګرځوي بلکې د یو ضمني او طبعي عمل په توګه به يې متصور کوي او بل ورلره مناسب دا ده چي اول به د یو نیک عالم یا صالح او نیکو کاره پرهیزناکه ملګري کوشش کوي مستحب دا دی اول خو دي د پنجشنبې ورځ د وتلو دپاره وټاکي که نه سوه برابره بیا به د دوشنبې په ورځ روانیږي لیکن د ورځي اول به وي لازمه حاجي لره دا ده چي د خپلو قریبانو او دوستانو وطن دارانو کلیوالو څخه رخصت واخلي او دعاوي ورڅخه وغواړي هر چا ته باید ورسي او بل لس شیان دي د ځانه سره ساتي لکه ۱: هینداره، ۲: ږمونځ، ۳: ستن، ۴: د سنت غنچي، ۵: مسواک، ٦: د ګنډولو دپاره سپنسی، ۷: چاقو، ۸: د نامه لاندي وینښتانو د خریلو دپاره ماشین او چاړه، ۹: لکړه، ۱۰: رانجه

دا ټول بیان د ارشاد الساري دی چي د مناسک ملا علي القاري حاشیه ده.



الحمدلله الذی اوضح المحجة باوضح الحجة و اوجب ارکان الاسلام من الصلاة و الزکاة و الصیام و الحجة و افضل الصلوات و اکمل التسلیمات علی من بین مسالکنا و عین مناسکنا لئلا تقع فی اللجة و علی اله الکرام و اصحابه الفخام و اتباعه العظام المنورین للملة علی الامة حذرامن الدجیة و الظلمة اما بعد فیقول الملتجی الخ تر حمد او ثناء او درود وروستو بعد ملا علي القاري بن سلطان محمد القاري چي د ده په شان کي ارشاد الساري په حاشيه کي ليکلي دي چي ملا علي القاري د خپلي زمانې علامه وو جامع د علوم النقليه او عقليه وو دی يو مشهور محقق د جمهورو علماوو څخه وو د ده ډېر نور تصنيفات هم سته لکه مرقات شرح د مشکوة يولس جلده ده شرح الشفاء، شرح الشمائل، شرح النخبة، شرح الجزريه وغيره ابو الحسنات مولانا عبدالحی اللکنوي رحمه الله وايي چي ما د ده مبارک ټوله تصنيفات مطالعه کړي دي مولانا سعيد صاحب وايي ما يې صرف رسالې څلويښت ۴۰ دانې ليدلي دي د ده مبارک وفات په مکه مکرمه کي سنه ۱۰۱۴ يو زر او څوارلسم هجري کال کي سوی دی او په جنت معلی کي ښخ سوی دی د ده د مرګ خبره چي مصر ته ورسېدله په جامع الازهر کي څلور زره کسانو د ده غايبانه د جنازې لمونځ وکړی.

ليکن ياد به ساتئ ملاعلي القاري په اصل کي د هرات دی تاريخ قبله صفحه ۳۰ ملاعلي القاري رحمه الله وايي هرکله چي ما د علامة السندي مناسک وليدی نو مي په زړه کي دا وويل چي دا خو د زمانې د يو شيخ کتاب دی راسه يوه شرح پر جوړه کړه چي د دغه متن ټوله غرايب معاني او مشکلات واضح کړي لهٰذا نو دا شرح چي مي وليکله نوم مي المسلک المتقسط فی المنسک المتوسط پر کښېښودی.

فائده: اوس خو اول د ارشاد الساري محشي بيان تېر سو بيا ور پسې د ملا علي القاري رحمه الله حمد او درود او د ده ترجمه بيان سوه باقي به د مصنف علامه سندي د کتاب او متن بسم الله او حمد شروع کېږي خو پام به کوئ چي متن په عربي کي ليکل کېږي او شرح د ملا علي القاري رحمه الله او حاشيه د مولانا سعيد عبدالغني رحمه الله په پښتو کي ليکل کېږي وجه يې دا ده چي دلته درې کتابونه دي يو يې متن بل يې شرحه دريمه حاشيه ده چي پر مطالعه کونکي بيا پوشيده نه سي والسلام بقلم محمد جمعه د سې شنبې شپه ۸:۵۰ بجې مياشت د ذي القعده ۲۷ سنه ۱۴۲۶ هـ مطابق سنه ۱۳۸۴ د جدي ۶.



الحمدلله اکمل الحمد علی ما هدانا للاسلام و خصنا بوجوب حج بیته الحرام و افضل الصلاة و السلام علی رسوله سید الانام الذی اوضح لناسبل السلام و علمنا المناسک و سائر الاحکام و علی اله و صحبه الکرام.

متن

ملا علي القاري رحمه الله د بسم الله او حمد د نحوي تحقيق څخه د ماتن پر دغه لفظ شرحه کړې ده چي حج ولي زموږ دپاره خاص دی او حال دا دی چي ابراهيم عليه السلام چي د کعبې شريفې د ابادۍ څخه فارغه سو الله تعالی ورته وفرمايل:

ان الله کتب علیکم الحج الی البیت العتیق فاجیبوا ربکم.

معنا: ته ورته ناري کړه چي الله تعالی د بيت الله حج پر تاسي واجب کړی دئ نو د خپل رب د امر تابع سئ ورته راسئ او د اجيبو صيغه د امر ده امر دپاره د وجوب دی دا خو سوال سو پر مصنف ملاعلي القاري جواب داسي ور کړی دی چي حج د سورة ال عمران په ۹۷ آيت سره فرض سوی دی:

ولله علی الناس حج البیت

او دا په نهم کال د هجرت نازل سوی دی ظاهره دا ده چي دا آيات شمول نه کوي پخوانيو خلکو ته او که چيري پر عموم خلقو واجب وای او د ابراهيم عليه اسلام د زمانې څخه بيا خو به د رسول الله ﷺ د ظهور سره فرض وای علاوه لا دا چي پخوانۍ شرعه زموږ دپاره ده ترڅو چي دليل د نسخ يې راغلی نه وي او خصوصا بيا زموږ پيغمبر ﷺ چي د ابراهيم عليه السلام په متابعت سره مامور هم وو ليکن امکان لري چي پر انبياوو بغير د دوی د امتو څخه پر واجب وو لکه د ابن اسحاق په قول کي راغلي دي چي الله تعالی چي هر پيغمبر تر ابراهيم عليه السلام بعد رالېږلی حج پر واجب وو او کوم چي تر ابراهيم عليه السلام څخه مخکي وه لکه ادم عليه السلام او ملائکي وغيره هلته واجب نه وو، شرح ملا علي القاري.

تنبيه: ارشاد الساري په خپله حاشيه کي ليکلي دي چي حج په نهم کال فرض سو او حضرت ابوبکر رض حج وکړ نو بيا ولي رسول الله ﷺ په لسم کال حج کړی دی درمختار يې دا جواب کړی دی چي نبي عليه السلام د تبليغ د تکميل په عذر لسم کال ته پريښود او بل نبي

مبارک ته علم وو چي تر کاله به ژوندی یمه او یا وجه دا وه چي د حج د فرضیت آیات نازل سوه د حج کولو زمانه تېره سوې وه څکه د نهم کال آخره وه چي نازل سو او کوم علماء چي وايي په شپږم یا اوم یا اتم کال فرض سوی دی او دا آیت دلیل ګرځوي:

و اتموا الحج و العمر لله. بقره ۱۹۶ أية

په دغه آیت کي ابتداء د فرضیت د حج نسته بلکه داتمام دپاره امر دی چي شروع په وکړي فرق یې عیان دی، او بله دا خبره چي رسول الله ﷺ څو حجونه کړي دي ابن حزم وایي چي په شمېر یې الله تعالی خبر دی لکه ارشاد الساري په حواله د ترمذي د حضرت جابر رض په روایت کي تر هجرت مخکي دوه حج او ابن ماجه په روایت د حضرت ابن عباس رض دري حجونه ذکر کړي دي او بعد تر هجرت یې صرف د حجة الوداع حج کړی دی او کوم چي عمرې دي هغه څلور دي چي ټولي د میاني په میاشتو کي یې کړي دي:

۱: عمره د حدیبې.

۲: د عام قابل.

۳: د جعراني څخه.

۴: څلورمه د حج سره کذا فی البخاري و مسلم.

بیان فضیلت الکعبة

اما بعد فهذا لباب المناسک و عباب المسالک لخصة من کتابي جمع المناسک عونا للسالک و تسهیلا للناسک سائلا من فضل المالک ان ینفع به کل ام لذلک

متن، ترجمه تر حمد او صلاة بعد دا متن خلاصه د مسئلو د حج ده او معظم معرفت دی د حاجي دپاره او دا کتاب د خپل بل کتاب منسک کبیر څخه را خلص کړی دی چي کومک سي دپاره د عاجزه حاجي دپاره او اسانه لاره سي د عابد حاجي دپاره او سوال کوم چي دا کتاب نفع منده سي د هر قصد کونکي دپاره، ملا علي القاري تر دغه متن لاندي د کعبې شریفي بې نظیر فضیلت بیان کړی دی هغه دا دی چي د احادیثو او اثارو څخه چي احبارو علماوو تحقیق کړی دی چي تر هر څه مخکي معنا تر انسانانو او حیواناتو او نباتاتو او جماداتو او اماکن علویه او سفلویه وو او تر لیل او نهار مخکي چي عرش او اوبه الله پیدا کړل د مجاهد په روایت الله تعالی دوه زره کاله مخکي اوبو ته وکتل پر هوا یې تجلي راغله نو اوبه په حرکت او څپو کي راغلي دود ورڅخه پورته سو الله تعالی آسمان ورڅخه پیدا کړ او پر اوبو سرېره ټوټې پیدا سوې په زیاتیدو یې شروع وکړه یوه کوبکه څلانده په کښېي وه په مابین کي یې د هغه څخه الله تعالی کعبه پیدا کړه او په ام القرآء سره نوم ناکه سوه لکه په قرآن کي الله فرمایلي دي:

لتنذر ام القرٰی. الانعام ۹۲ أية
معنا ته د قريو د مور باشندګان و ېروه د عذاب څخه.
نور ټوله اطراف يې مځکه سوه بيا به دې مځکي حرکتونه کول الله تعالی غټ غټ غرونه په حيث د ميخو پر پيدا کړه اول غر په کښي جبل ابی قبيس دی همداسي مشهوره ده چي و دې غره ته ام الجبال غر وايي د حرم لمرخاته دی چي ۴۲۰ متره جګ دی جبل نور ۷۵۹ متره جګ دی د حرم څخه ۴ کيلوميتره ليري دی غار حرا بيا دوه ميله ليري دی بيا حق تعالی پر دغه قبی د کعبې بناء واقع کړه لکه چي په قرآن شريف کي فرمايي:
ان اول بيت وضع للناس للذی ببکة. ال عمران ۹۶ أية
معنا دا اوله عبادت خانه وه چي د طاعت دپاره جوړه سوه په روايت کي راغلي دي چي تر ادم عليه السلام مخکي دلته بناء وه بيا پورته سوه چي په نامه سره الضراح ورته ويل کېده چي قاموس او الصحاح يې معنا په قصر عالي سره کوي څکه دا هم د مځکي څخه ليري او پورته سوله بيا مشهوره په آسمانو کي په بيت المعمور سره سوه چي محاذي د کعبې شريفي دی هره ورځ ملايکي اويا زره طوافونه پر کوي بيا د قيامت تر ورځي و دغه ملايکو ته نوبت نه رسيږي حضرت آدم عليه السلام چي و مځکي ته راکښته سو الله تعالی د بيت الله شريف په طواف سره امر کړئ بيا په طوفان نوح کي پورته سوه آسمان څلورم ته ملايکو به طواف پر کول چونکه بقعه شريفه وه صرف بناء يې پورته سوې وه لهذا بيا ابراهيم عليه السلام جوړه کړه بيا ورانه سوه جرهم قبيلې جوړه کړه يمنيانو چي د حضرت اسماعيل عليه السلام خُسرګني ده بيا عمالقه وو د مصر او شام خلقو جوړه کړه بيا تر بعثت د حضرت محمد ﷺ مخکي قريشو جوړه کړه چي د رسول الله ﷺ عمر مبارک ۳۵ کاله وو ده به هم دبري ورسره راوړلې په آخر کي د حجر اسود په اېښودولو کي د څلورو قومو د مشرانو اختلاف د جنګ ښه واخيسته لکه ۱: عتبه بن ربيعه، ۲: ابوذمعه بن الاسود، ۳: العاص بن وائل، ۴: ابو حذيفة بن المغيرة.
آخري فيصله دا وسوه چي سبا سهار چي هر شخص اول پر باب السلام را داخل سو هغه به دا کار کوي د رب العالمين په توفيق سره اول حضرت محمد ﷺ راغلی نو ټوله خوشاله سوه چي دا کار به محمد امين ﷺ ترسره کوي رسول الله ﷺ پټو هوار کړئ حجراسود يې پر کښېښود بيا يې څلورو مشرانو ته وويل چي د پټو کونجان ونيسئ ده مبارک يې ملين ونيو بيا يې حجر اسود پر خپل ځای کښېښود بيا کعبه شريفه عبدالله بن الزبير رض جوړه کړه د خپل خلافت په دوران کي ده ته هغه حديث رسېدلی وو چي رسول الله ﷺ و حضرت بي بي عائشې رض ته وويل که ستا قوم د جاهليت زمانې ته قريب نه وای ما به

خانه کعبه پر ابراهیمي طریقه جوړه کړې وای چې حطیم شریف په کښې ګډ سوی وای. کما فی البخاري ج۱ ص

نو عبدالله بن الزبیررض همدغسي جوړه کړه څرنګه چې د رسول الله ﷺ تمنا وه غربي او شرقي دروازې یې خلاصي کړې او چار چوبونه یې د مځکي سره سم کړه د اسانی دپاره چې سړی ور داخلیږي بیا چې حجاج واکمن سو بیرته یې پر قریشي طریقه جوړه کړه غربي دروازه یې بنده کړه حطیم یې خارج کړی خلاصه مطلب دا سو چې اووه واره جوړه سوې ده موافق د اوو اسمانو اوو مځکو او شوطونه هم اووه پر کیږي.

د پام وړ فائده: قریشو خانه کعبه د ابراهیم علیه السلام پر نقشه نه سوای جوړولای لهذا یې شپږ ګزه او یوه لویشت برخه چې حطیم ورته وایي د کعبې څخه یې جدا پرېښوده چې تر اوسه پوري دغسي پاته ده په ابراهیمي ودانۍ کې د کعبې دروازه د مځکي سره برابره وه قریشو یو قد آدم لوړه کړه ابراهیم علیه السلام یې سر نه وو پوښلی قریشو په ښو لرګو وپوښې د ابراهیمي ودانۍ جګوالی نهه ۹ ګزه وو چې ۱۳ فټه ٦ انچه یا ۴ میټره ۱۱ سانتۍ کیږي خو قریشو ۱۸ ګزه کړه چې ۳۷ فټه یا نهه ۹ میټره ۲۸ سانتۍ کیږي د ابراهیمي ودانۍ مستطیل شکل او اوږده وه خو قریشو چې حطیم ورڅخه جلا کړ مربع شکل سوه مځکي یې ناوه نه درلودله قریشو ناوه د حطیم پر طرف ورکړه قریشو دننه د ټنګښت دپاره ٦ شپږ ستونه ورکړه په دیوالو کې یې یو قطار ډبرې بل قطار د لرګو تختې ورکړې شپاړس د ډبرو او ۱۵ پنځلس د لرګو قطارونه چې جمله یې ۳۱ یودیرش کیږي. د قبلې تاریخ ص۱۲۹

## د کعبې د دیوالو ډبرې

د کعبې شریفې دباندې دیوالو او بام ډبرې په داسې شمېر سره دي:

| | |
|---|---|
| د دروازې دخوا څخه د لمرخاته طرف ته | ۴۱۹ ډبرې |
| د مغرب طرف ته دیوال | ۴۴۹ ډبرې |
| د یماني رکن او حجر اسود په دیوال کې | ۴۲۸ ډبرې |
| د حطیم دخوا په دیوال کې | ۳۱ ډبرې |
| چې ټولې ډبرې یې | ۱٦۱۴ ډبرې کیږي. |

## د کعبې جګوالی اوږدوالی او بر

د مځکي څخه جګواله یې پنځلس میټره دی د لمرخاته خوا چې دروازه هم په کښې ده اوږدواله یې یولس میټره او ۵۸ سانتۍ دی د لمر لوېدو طرف ته یولس میټره او ۹۳ سانتۍ د شمال یا حجر اسماعیل د طرفه یولس میټره او دوه ویشت ۲۲ سانتۍ د جنوب د یماني رکن او حجر اسود طرف لس میټره او ۱۳ سانتۍ د مځکي څخه د حجر اسود

لوړوالی یو نیم متر دی د مخکي څخه د کعبې نس دوه میتره لوړ دی د کعبې د دروازې جګوالی دوه میتره دی. تاریخ قبله ص۲۸۵

## د ابراهیمي ودانۍ شکل په لاندي ډول دی
## د حج فضیلت او فرضیت

۱: و اذن فی الناس بالحج یاتوک رجالا و علی ضامر یاتین من کل فج عمیق الی ان قال او لیطوفوا بالبیت العتیق. الحج ۲۷

۲: قوله ﷺ یایها الناس قد فرض علیکم الحج فحجوا فقال رجل آکل عام یارسول الله فسکت حتی قالها ثلاثا فقال لو قلت نعم لوجبت ولما استطعتم. مسلم ج و زاد فی روایة الحج مرة فمن زاد فتطوع.

۳: وعنه ﷺ من حج لله فلم یرفث و لم یفسق رجع کیوم ولدته امه. بخاري ج۱ ص۲۰٦ و مسلم ج۱ ص۴۳٦

۴: الحج المبرور لیس له جزاء الا الجنة. بخاري ج۱ باب الحج

۵: وعنه الحجاج و العمار و فدالله ان دعوه اجابهم و ان استغفروه غفرلهم. ابن ماجه کتاب الحج

٦: وعنه ﷺ من خرج حاجا او معتمرا او غازیا ثم مات فی طریقه کتب الله له اجر الغازی و الحاج و المعتمر. رواه البیهقی.

ژباړه (۱): اجازه ورکه خلقو لره چي و حج ته راځي پیاده او سپاره د لیري ځایو څخه پر ډنګرو اوښانو او طواف دي پر پخواني بیتي کوي.

(۲): رسول الله ﷺ فرمایي اې انسانانو په تحقیق سره پر تاسي حج فرض دی نو حجونه وکړئ یو کس پوښتنه وکړه چي هر کال د سکوت څخه بعد رسول الله ﷺ جواب ورکړی که چیري ستا د دري پیرو سوال ته ما هو ویلي وای نو به هر کال فرض وای بیا به تاسي طاقت نه درلودای په بل روایت کي داسي زیاته سوې ده چي حج په عمر کي یو فرض دی که څوک یې زیات کوي هغه نفلي دی.

(۳): د رسول الله ﷺ څخه روایت دی چي څوک حج وکړي عبث کار او فسق و نه کړي د ګناه څخه داسي پاکیږي لکه چي د موره څخه اوله ورځ پیدا سوی وو.

(۴): رسول الله ﷺ فرمایي د حج مقبول ثواب جنت دی.

(۵): رسول الله ﷺ فرمایي حاجیان او عمره کونکي د خدای لښکر دی که دعا وکړي هغه قبلیږي او که مغفرت وغواړي مغفرت ورته کیږي.

(٦): نبي ﷺ فرمایي څوک چي د حج یا عمرې یا غزا په لاره کي مړ سو د ده

ثواب د حاجي او عمره کونکي او غازي دی.
فائده: محترمو مسلمانانو دا خو يو څو حديثونه دلته وليکل سوه ليکن د حج په فضيلتو کي مستقل کتابونه تحرير سوي دي علاوه دا ده چي رسول الله ﷺ فرمايي چي حاجي د کوره څخه ووزي پر هر گام يې يوه نيکي ليکل کيږي او يوه گناه يې رژيږي. رواه ابن حبان و عبدالرزاق.
په بل روايت کي فرمايي ترڅو چي کورته نه وي راغلی د حاجي هره دعا قبليږي. رواه ابن الجوزي
په بل روايت کي فرمايي جهاد د بوډا او کوچني او ضعيف او ښځي حج او عمره ده.رواه نسائي
او عليه السلام دعا کړې ده چي يا الله بخښنه وکړې حاجي او هغه چا ته چي حاجي ورته دعا کوي. رواه البيهقي
په بل حديث کي فرمايي تاسي حج او عمره پرله پسې کوئ ځکه دا د سړي فقيري ليري کوي او گناهونه داسي رژوي لکه د آهنگر د بټۍ اور چي د اوسپني څخه زنگ پاکوي او غټه خبره دا ده چي پنځم رکن د اسلام حج دی.

## د حج د نه کولو عذابونه

۱: قال ﷺ من ملک زاد او راحلة تبلغه الی بيت الله الحرام و لم يحج فلا عليه ان يموت يهوديا او نصرانيا. ترمذي ج۱
۲: قال ﷺ ان الله يقول ان عبدا صححت له جسمه و وسعت عليه فی المعيشة تمضی عليه خمسة اعوام لا يفد الی لمحروم. رواه ابن حبان و بن ابی شيبه
ژباړه (۱): نبي ﷺ فرمايي څوک چي دونه دنيا پيدا کړي چي و بيت الله ته سپور تلای سي او حج و نه کړي نو بيا ده ته اختيار دی د قيامت په ورځ که د يهودو په ډله کي يا د نصاراوو په ډله کي را پورته کيږي.
(۲): رسول الله ﷺ فرمايي چي الله تعالی داسي وايي چي ما و خپل يو بنده ته صحت د بدن او ډېروالی د مال ورکړی وي او بيا لاهم پنځه کاله تير سي او فديه و نه کړي (حج ته ولاړ نه سي) نو دا شخص د لوی ثواب څخه محروم دی.
فائده: محترمو حق تعالی په قرآن کي فرمايلي دي:
ولله علی الناس حج البيت من استطاع اليه سبيلا و من کفر فان الله غنی عن العالمين. ال عمران ۹۷
حق تعالی جل جلاله د حج کار په دغه آيت کي دونه مضبوط کړی دی ځکه څو

تاکیدونه په کښې راغلي دي اول جمله خبريه ده د تاکيد دپاره دويمه اسميه ده او بل علی دپاره د وجوب دی او بل يې حکم عام ذکر کړی دی وروسته يې تخصيص کړی دی او بل يې ترک د حج ته کفر ويلي دي لو بل استغناء دلالت پر عذاب کوي نو اوس د آيت ژباړه واوره، حج د الله د جانبه څخه پر خلقو فرض دی که طاقت د بيت الله د لاري د مصرف ولري او که څوک کافر سو په نه کولو د حج سره بيا نو الله بې نياز ذات دی د هيڅ چا و حج ته ضرورت نه لري.

## د حج د وجوب اووه ۷ شرطونه

الحج فرض مرة با الاجماع على كل من استجمعت فيه الشرائط و هى انواع النوع الاول شرائط الوجوب الاول منها الاسلام فلا يجب على الكافر و لا يصح منه ادائه بنفسه ولامن مسلم له ولو بامره و لو احرم مسلم ثم ارتد بطل احرامه و لو حج ثم ارتد فعليه الاعادة حتما بعد الاسلام و لو اسلم بعد الاحرام كافر او مرتد ان جدد الاحرام له صح عن الفرض و الا فلا. متن

ملا علي القاري وايي حج فرض دی چي شرائط يې پوره وي د پام وړ خبره دا ده چي وجوب يې فوري دی په اجماع د ټولو علماوو لکه ارشاد الساري چي په حاشيه کي د قاضي خان فتاوى او کافي په حواله د امام اعظم رحمه الله او د ابو يوسف رحمه الله اصح روايت ذکر کړی دی اختلاف چي د علماوو دی هغه په ګناهګاري کي د هغه چا دی چي ځنډ په کښې کوي بغير د عذر څخه تر خپل وخت او بل د حج معنا په لغت کي مخصوص قصد ته ويل کيږي شرعي معنا يې امام ابن الهمام ذکر کړې ده چي حج هغو خاصو افعالو ته د حج ويل کيږي چي طوافونه او د عرفات درېدل په خپل وخت کي احرام بنده په نيت سره د حج مخکي د احرام سره.

او کوم چي ماتن د حج په فرضيت کي يوازي اجماع ذکر کړې ده د دې معنا دا نه ده چي قرآني آيت يا حديث پر فرضيت نسته دا د اجماع و قوت ته اشاره ده چي دا هم قوي دليل دی کفايت کوي که داسي نه وي د قرآن د آل عمران د سورة ۹۷ آيت تېر سو همدا رنګه ډېر حديثونه.

او شرائط د حج څلور قسمه دی د وجوب شرائط، د ادا شرائط، د صحت الاداء شرائط د وقوع عن الفرض شرائط، انشاالله تعالى چي ټول به سره د خپلو اقسامو او احکامو بيان سي اولين دلته د وجوب شرائط بيانيږي اوس يې پيژندل د معنا په کار ده دا شرائطو چي توله په هر شخص کي موجود سي نو حج پر فرض دی ليکن که په دغه اوو کي يو شرط کم سو بيا حج پر ده نسته او نه وصيت يا د بل چا نيابت پر سته هغه اووه شرطونه دا دي:

۱: اول شرط يې اسلام دی نو پر کافر نشته ظاهره ده که ظاهري يا باطني يا حربي يا ذمي يا منافق کافر وي نه د ده او نه د ده پر ځای بل مسلمان حج کولای سي اگر که کافر ورته ووايي ځکه دی مستحق د ثواب نه بلکې د عذاب دی او دی خو اهل عبادت هم نه دی نه د فرضي او نه د نفلي علاوه دا که حج وکړي وروسته مسلمان سي داهم اعتبار نه لري او که مسلمان احرام وتړی وروسته مرتد سو احرام يې باطل دی او که مسلمان تر حج وروسته مرتد سو بيا بل حج پر فرض دی که يې طاقت پيدا کړ او که بيرته مسلمان سو ځکه د خپل د عمر فرض هم باطل دی اوس د ده اسلام داسي دی لکه نوی چي مسلمان سوی وي لهذا هغه تېر سوي لمونځونه هم ورباندي نشته معنا قضايي ځکه په قرآن کي الله تعالی فرمايي:

۱: و من کفر بالايمان فقد حبط عمله. المائده ۵

۲: و من يرتدد منکم عن دينه فيمت وهو کافر فاولئک حبطت اعمالهم فی الدنيا و الاخرة. بقرة ۲۱۷

ژباړه: ۱: څوک چي کافر سو نو ټوله نيک اعمال يې خراب سوه.

۲: څوک چي د دين څخه واوښتی (مرتد سو) او مړ سو کافر نو د ده ټوله اعمال خراب سوه په دنيا او آخرت کی معنا همېشه يې ځای دوږخ دی ليکن که بيرته مسلمان سو بيا يې دويم نيک عمل اعتبار لري ده لره يې ثواب دی.

الثانی العلم بکون الحج فرضا لمن فی دار الحرب و کذا لو تحول الی دار الاسلام لا لمن فی دارنا و لو لم ينشأ علی الاسلام. متن

ژباړه: دويم د جوب د شرطو څخه د حج هغه چالره چي په کفري ملک کي پيدا سوی او غټ سوی وي د حج د فرض کيدو علم دی اگر که يو عادل کس خبر ورکړی همدا رنگه خبر غواړي هغه شخص چي دار الاسلام ته مسلمان راسي ليکن که په دار الاسلام کي کافر مسلمان سي خبر ضروري نه دی ځکه دی معذور نه بلل کيږي که يې علم نه وو دا د ده تقصير دی که چيري يو کس په دار الحرب کي اسلام راوړي شتمن هم وو ډېر کلونه پس دار الاسلام ته راغلی او خبر سو چي پر ده حج کېدی په دومره مال سره اوس يې نه درلودی حج ورباندي نشته.

۳: الثالث البلوغ فلا يجب علی الصبی فلو حج فهو نفل.

متن ترجمه او شرحه: دريم شرط د وجوب او د وقوع د فرضِ حج دپاره نه د جواز او صحت دپاره د شخص بلوغ شرط دی لهذا پر کوچني نه دی واجب اگر چي ښه او بد حلال لو حرام پېژني ځکه ارشاد الساري په حاشيه کي ليکي چي عبادات د کوچني څخه ساقط دي

ځکه چي مکلف نه دی رسول الله ﷺ فرمايي قلم د درو کسانو څخه پورته دی يو بيده چي بيداره سوی نه وي دويم مريض چي جوړ سوی نه وي دريم کوچنی چي بالغ سوی نه وي.

او که چيري کوچنی پخپله يا يې ولي احرام ور وتړی بيا يې حج نفلي دی نه فرضي او که يې احرام وتړی بالغ سو اوس که يې احرام خلاص کی نوی يې کړی حج يې فرضي دی او که يې خلاص نه کړ حج يې نفلي د احرام خلاصول ځکه ورته جواز لري چي د ده شروع لازمونکي نه ده او که مريي د مريي توب په حالت کي احرام وتړی او بيا آزاد سي حُر وګرځي د ده شروع لازمي ده احرام به نه خلاصوي جواز نه لري.

ارشاد الساري د کوچني د احرام خلاصولو په شان کي يو سوال دفع کړی دی هغه دا چي سړی د کوچنيوالی په حال کي اودس وکړي وروسته بالغ سي په دغه اوداسه يې لمونځ روا دی حال دا چي اودس د لمانځه دپاره شرط دی نو احرام هم د حج دپاره شرط دی پر منزله د اوداسه د لمانځه دپاره فلهذا د احرام خلاصول دي هم نه کوي نو جواب ده داسي کړی دی چي احرام خو داسي شرط دی چي د حج د فرضي رکن سره مشابه دی وجه اتصال دی چي پرله پسي يې کار روان دی.

۴: الرابع العقل فلا يلزم المجنون و المعتوه فلو حج فهو نفل و ان افاق قبل الوقوف فجدد الاحرام سقط عنه الفرض و الا فلا ولو حج ثم جن بقي فرضا فلو افاق لا يقضی ولو احرم صحيح ثم جن فادی المناسک ثم افاق بعد سنين يجزئه عن الفرض.

متن ترجمه او شرحه: څلورم شرط د وجوب د حج او د وقوع څخه د فرض عقل دی نو پر لېوني او معتوه چي دا هم يو قسم د لېونتوب دی حج نه دی پر لازم د معتوه او لېوني فرق شمني داسي کړی ده چي معتوه هغه ته وايي چي خبري ګډوډي کوي تدبير يې فاسدوي ليکن داسي وهل او ښکنځل نه کوي لکه لېونی لهذا که حج وکړي نفلي ګرځي او که لېونتوب تر عرفات مخکي ورڅخه پورته سو او احرام يې هم نوی وکړی بيا يې حج فرضي سو.

ارشاد الساري په حاشيه کي ليکلي دي نو فرض ورڅخه ساقط سو او که پرسد نه سو يا تر عرفات پس پرسد سو بياهم د فرض څخه نه دريږي بل حج به کوي او که عاقل سړی احرام وتړی نيت يې وکړی او بيا لېونی سو مناسک د حج يې پوره کړه بيا که پرسد سو د حج قضاء يې نسته پر ده لو بل کوم اختلاف چي د بدائع او ابن امير الحاج واقع دی د لېوني او کوچني د حج په باره کي د دوارو توفيق داسي کيږي بدائع چي يې جائز نه بولي هغه داسي کسان چي هيڅ د نيت قابليت و نه لري لکه کم عقله کوچنی او د ابن امير مراد هغه څوک دی چي بعض ادراکات کولای سي.

۵: الخامس الحرية فلا حج على مملوک فان حج و لو باذن المولى فهو نفل لايسقط به الفرض.

متن ترجمه او شرحه: د حج د وجوب د شرطو څخه حريت دی عامه خبره ده که د ذاته څخه حر وو او مريي وو ازاد يې کړی حر سو حج يې پر جواز علاوه فرض ګرځي نو اوس معلومه سوه چي د مريي توب پر يو قسم هم حج نسته که مکاتب يا مدبر هم وي او د خپل بادار په اجازه سره حج وکړي حج يې فرضي نه بلکه نفلي ګرځي ځکه دی مالک د مال نه دی پر واجب هم نه دی.

٦: السادس الاستطاعة وهی ملک الزاد و التمکن من الراحلة بملک او اجارة فی حق الافاقی و الزاد فقط فی حق المکی ان قدر علی المشی و الافکا الافاقی و الفقير الافاقی اذا وصل الی ميقات فهو کالمکی و نصاب الوجوب ملک مال يبلغه الی مکة ذاهبا و جائيا راکبا فی جميع السفر لا ماشيا بنفقة متوسطة فاضلا عن مسکنه و خادمه و فرسه و سلاحه و الات حرفه وثيابه و اثاثه و نفقة من عليه نفقته و کسوته و قضاء ديونه واصدقة نسائه و لو مؤجلة الی حين عوده و لا يشترط نفقة لما بعد ايابه و من له مال يبلغه ولا مسکن له و لا خادم فليس له صرفه اليه ان حضر الوقت بخلاف من له مسکن يسکنه لا يلزمه بيعه.

متن ترجمه او شرحه: شپږم شرط د وجوب نه د جواز او د وقوع د فرض نو مطلب دا سو که فقير په تکلف سره حج وکړي فرض يې پر ځای سو د استطاعت معنا دا ده چي دونه مال ولري چي د ده د تګ او راتګ کفايت کوي او بل قدرت د سپاري پر ببولو ولري لکه آس يا اوښ د خره ببول حج ته مکروه دی ځکه چي د لوی مزله طاقت نه لري عامه خبره ده که د سپرتيا حيوان د ده وي او که په کرايه وي خو دا حکم د ليري مخلقو دی چي په اصطلاح ورته افاقي وايي کوم چي مکي ته نژدې وي د هغو دپاره ضروري يوازي د خوارک سامان شرط دی نه راحله که يې طاقت د پښو د تګ درلودی ليکن که يې طاقت نه وو بيا د ده حکم د افاقي دي.

لوس که افاقي فقير ورسيدی تر ميقات ځايه بيا د ده حکم د مکي دي صرف توښه غواړي نه راحله که د پښو پر تګ قادر وو نو د ده حج فرضي دی نه نفلي ليکن که يې د نفلي نيت وکړی بل پر فرض دی او که يې نيت مطلق وو د فرضو څخه دريږي، د حج د وجوب د مال مقدار دونه دی چي تګ او راتګ دپاره يې بسيږي په ټوله لار کي چي سپور به هم ځي نه داسي چي پر وسائل به په لمبر سپريږي نفقه ميانه حاله معتبره ده ځکه په قران کي الله تعالي فرمايي:

والذين اذا انفقوا لم يسرفوا و لم يقتروا و کان بين ذلک قواما. فرقان ٦٧

دغه مصرف د حاجي به زيات وي د ده تر سکونت ځای او د ده تر خدمتګزاره که يې ضروت ورته درلودی او تر آس د سپاري که ورته محتاج وو اګر که کله کله وي او يا هغه شی چي د سپرتيا کار ورڅخه اخيستل کېږي لکه په اوسنی زمانه کي موټرګاډي او بل د جهاد سلاح که يې اهل وو د جهاد او بل هغه اسباب چي دی د خپل اولاد نفقه په برابروي او هغه کالي چي اغوندي يې او هغه سامان د کور لکه فرش او لوښي او بل دا چي د سکونت ځای که خراب سي ترميم يې کولای سي او نفقه ولري دونه چي پر ده يې نفقه لازم وي کفايت يې د ده تر راتګه کوي لکه زوجه او صغير بچيان يا بالغاني لوني يا فقيران ذوي الارحام او پور ورباندي نه وي او مهر د ښځي هم نه وي اګر که مهر تلواري غوښتل نه غواړي دلته دونه مال او نفقه ضروري ده چي د ده تر راتګه پوري کفايت وکړي اګرچي را ورسيږي بس په دغه ورځ هم نفقه خلاصه سي.

ارشاد الساري ليکي چي بعضي خلق د حج څخه چي راسي هغه تحفې هم په نظر کي لري نو دا هم عذر بولي چي زما روپۍ خو دونه کفايت نه کوي نو دا د حج د فوتېدو عذر نه دی که مړ سو ګنهګاره دی ځکه دا شرعي ضرورت نه دی.

که پر سړي د حج وقت راغی دونه روپۍ يې درلودلې چي د تګ او راتګ کار په کېدې ليکن د سکونت ځای خادم نور داسي شيان يې نه درلودل اوس که دا روپۍ په کښني مصرف کي حج ته نه پاتېدی نو لازمه دا ده چي حج ته به ځي د حج وخت د کوچني اختر څخه د لوی اختر تر ورځي پوري دی.

و ان کان له مسکن فاضل او عبد او متاع او کتب او ثياب او ارض او کرم او حوانيت او نحو ذلک مما لا يحتاج اليها يجب بيعها ان کان به وفاء بالحج و ان کان له منزل واسع يکفيه بعضه او منزل دونه او عبد نفيس فليس عليه بيعه و الاقتصار بالدون و اذ کان عنده طعام سنة لا يلزمه الحج و ان کان او اکثر منه يلزمه ولا تثبت الاستطاعة ببذل الغير مالا او طاعة ملکا او طاعة او اباحة فان قبل المال وجب ولو امتنع الباذل بعد احرام المبذول له يجب علی البذل و المعتبر فی حق کل ما يليق بحاله من شق محمل او رأس زاملة او محارة او رحل کذا فی الزاد من خبز و جبن او لحم و طبيخ لاختلاف الناس ضعفا و قوة و من کان داخل المواقيت فهو کالمکي فی عدم اشتراط الراحلة و قيل بل من کان دون مدة السفر فمن کان من مکة علی ثلاثة ايام فصاعدا فهو کالافاقی فی حق الراحلة و هو اختيار جماعة.

متن ترجمه او شرحه: که يو شخص داسي کورونه او سرايونه زيات درلودل چي په کرايه او يا په امانتاً يې چا ته ورکړي وه او يا يې سامان او کتابونه درلودل چي ضرورت يې

تولو يا و بعضو ته نه درلود لکه دشريعت کتابونه ليکن د ادبو يا نحوي يا رياضي داسي کتابونه يې درلودل تاتار خانيه وايي په دغه کتابو سره حج پر لازميږي اگر که ورته محتاج هم وي په خلاف د شرعي د کتابو څخه او که کالي يا مځکه يا د انگورو باغونه يا دکانونه يا مثل د دغه شيانو لکه اوبنان يا غوايي وغيره چي عوايد يې د ده تر ضرورت زيات وه حج پر لازم دی خرڅوي به يې که يې په قيمت حج کيدی اوس معلومه سوه چي و داسي شخص ته د زکات اخيستل هم جواز نه لري که يې د نصاب برابر مال روپۍ جوړولې اگر که کال نه وي پر تېر سوی لهذا اضحيه او صدقه الفطر هم پر لازم سو او نفقه د فقير قريب هم پر لازم ده.

او که يو کس غټ سرای درلود چي يو څه د ده بسېدی نور د ده تر حاجت زيات وو او يا دا سرای لوړ قيمت درلودی بل سرای کم قيمته وو ليکن تنگ وو او يا يې يو داسي قيمتي مريی درلود چي د حج روپۍ يې جوړولې او بل دونه قدر مريي هم کيدی چي د ده خدمت يې کړي وای نو پر دغه سړي د لوړ قيمته سرای يا پراخه سرای يا د قيمتي مريي خرڅول واجب خو نه دی ليکن که يې خرڅ کړي او د گذارې قدر د کار کولو شي په رانيسي په هغه باقي حج وکړي بيا خو غوره کار دی.

که يو سړی د يو کال نفقه جمع کړي د حج دپاره يې خرڅول لازم نه دی ليکن که تر دغه يوه کال نفقې د پرېدل خرڅول يې لازمي کار دی که حج په کېدی.

که چيري يو کس ته بل سړي آس او نفقه او خدمتگزاره د لاري د شل سړي دپاره ورکړي په ملکيت سره يا اماناً يې ورکړ لکه خادم او د سپرتيا شی که پر دغه سړي احسان درنېدی الخزانة کتاب وايي اگر که اولاد هم وي بيا نه پر لازميږي حج او که اجنبي سړي دا تبرع کوله اصح قول دا دی چي نه پر لازميږي اگرچي ظاهره خو داسي ده چي د اجنبي سړي احسان تر قريب دروند دی علاوه دا چي د اولاد په شان کي روايت د ابن ماجه داسي راغلی دی:

انت و مالک لابيک.

په روايت کي فرمايي خوندور مال چي تاسي خوراک ورڅخه کوی د خپل لاس کسب دی او اولاد هم ستاسي کسب دی.

ارشاد الساري ليکي کوم شرطونه چي د حج د وجوب دي پر ده يې حصول نه دی لازم چي في الحال وجود نه لري لکه بحر الرائق چي ليکلي دي په حواله د حباب او بل دا چي د بل سړي په مال سره د حج دا شپږم شرط د وجوب چي استطاعت دی نه راځي ترڅو چي پخپله يې پيدا نه کړي دا مذهب د احنافو دی امام شافعي رحمه الله يې واجب بولي نو ملاعلي القاري رحمه الله وايي په شرح کي د ماتن که يې چيري مال د بل چا څخه قبول کی بيا په اجماع سره حج پر واجب دی او که پيښه داسي وسوه چي ناداره احرام د حج وتړی د هغه مال

ورکونکي په وعده سره بیا به جبراً د هغه څخه مصرف اخیستل کیږي کذا فی المحیط اګرچي دا مسئله مختلف فیه خو ده څکه قبول تر قبض مخکي ملکیت نه راولي لکه امام مالک رحمه الله چي یې ملک ثابتوي لیکن حقیقت داسي دی چي احرام د ده په امر وتړل سو نو امر لازم وګرځیدی چي پوره کیږي به اګر چي مال د ده په لاس کي دی او هبه قبض غواړي مګر دا مال په حکم کي د مستهلک دی د خالق او مخلوق حق تعلق ورپسي ونیوی.

ارشاد الساري په حاشیه کي بنه تفصیل کړی خلص مطلب یې دا دی چي وعدې دوه قسمه دي یوه مجرد ده چي لزوم نه راولي مګر په یوه صورت کي لکه یو کس یو شی د اصلي قیمت څخه ګران ورکړي بیا وعده ورسره وکړي چي هغه زیاتي تاوان درکوم او بله وعده داسي ده چي په شرط پسې تعلق لري لکه یو کس بل شخص ته وواییي دا غوبۍ پر ملاصاحب خرڅ که که ده روپۍ در نه کړي زه یې درکوم نو که رانیونکي نه ورکولې پر هغه شخص لازمیږي ورکړه د ثمن بنا پر هغه وعدې پوره بیان شرح مجله لیکلی دی.

ملاعلي القاري لیکي چي معتبر د هر شخص خپل حال دی شرعاً او عُرفاً د سپرتیا او توبنې په شان کي که یوازي د ځان سره اوبه بیاییي یا د کجاوې یو طرف کرایه کوي د خوراک دپاره ډوډۍ خوري یا غوبنې ورسره خوري یا بل داسي شی وجه دا ده چي انسانان په طبائعو او ضعف او قوت کي مختلف دي څکه بعضي کسان داسي سته چي درې ورځي کمزوره خوراک وکړي مریضیږي کما قال ابن الهمام او یو کس تر میقات ځای هاخوا ته یا د میقات سره وو حکم د ده د مکي سړي دي معنا که پر تګ د پښو قادر وو بیا راحلة ورلره شرط نه ده څي به که یې توښه درلودل ملا علي القاري دلته په خپل مفصل بیان کي مختلف اقوال لیکي لیکن اصلي فاصل د مکې او افاقي چي راحله په کښي ضروري ده د درو ورځو مزل معتبر دی که د درو ورځو مزل وو راحله شرط ده که نه وو شرط نه ده لکه بحر الرائق او صاحب الینابع وغیره هم دغسي فرق کړی دی او دا مذاهب د غټو اکابرو احنافو دی.

السابع الوقت و هو اشهر الحج او وقت خروج اهل بلده ان کان یخرجون قبلها فان ملک قبل الوقت فله صرفه حیث شآء و لا حج علیه و ان ملکه فیه فلیس له صرفه الی غیر الحج فلو صرفه لم یسقط الوجوب عنه و لو اسلم کافر او بلغ صبی او افاق مجنون او عتق عبد قبل الوقت فخافوا الموت و هو موسرون قیل لیس علیهم الایصاء بالحج و قیل یجب فان لوصوا به فعلی الاول لایصح و علی الثانی یصح و الخلاف مبنی علی ان الوقت شرط الوجوب او الادا..

متن ترجمه او شرحه: اووم ۷ د وجوب د شرائطو څخه د حج وخت دی د حج وخت دوې میاشتي اولس شپې دی لکه د کوچني اختر او میانۍ میاشتي اولس اولي شپې د لوی

اختر د میاشتي څخه لکه په قرآن کي چي الله تعالی فرمایلي دي:
الحج اشهر معلومات فمن فرض فیهن الحج. بقره ۱۹۷
او یا وخت هغه هم معتبر دی چي هر ملک او وطن عادت لري ځان ته د وتلو د حج دپاره مخکي د حج تر میاشتو معنا دا سوه چي دغسي عرفي ته تلل اګر که تر میاشتو د حج مخکي وي لاهم د حج د وجوب په شرطو کي داخل دی نو مطلب دا دی که یو شخص تر دغه وخت مخکي او یا د ده د ښار د خلقو چي ځانونه یې و حج کولو او روانېدو ته تیار کړي د ډېر مال مالک سو کولای سي چي خپل مال د خپل خواهش مطابق مصرف کي عامه خبره ده که سرای یا دوکان یا خادم په رانیسي او که ښځه په کوي او که په دغه وخت کي چي د حج میاشتي دي او یا د ده د ښار خلق روانېدل حج ته مالک د روپیو سو بیا نو جواز نه لري چي دا روپۍ په بل شي کي مصرف کړي او که یې مصرف کړې حج نه ورڅخه ساقطیږي لکه دا مسئله چي بدائع کړې ده د ابن الهمام دغسي عبارت دی حاصل د مطلب دا دی چي پر هغه مذهب چي حج کول فوري فرض بولي ګناهګاره دی او پر هغه مذهب لکه د امام محمد رحمه الله مذهب چي فوري یې فرض نه بولي لکه امام اعظم رحمه الله او اوبو یوسف رحمه الله بیا نه دی ګناهګاره لیکن حیله د اسقاط یې مکروه ده د امام محمد رحمه الله پر مذهب هم چي تر وخت دمخه په بل شي کي روپۍ مصرف کړي ترڅو حج پر فرض نه سي.
که د یوه ښار خلق د حج تر وخت مخکي روانېدل مثلاً په روژه یا شعبان کي نو د دوی په حق کي دغه وخت د حج دی او د جوب وخت یې همدغه دی لکه د لمانځه وخت چي پر داخل سي او کوم چي د قرآن آیات مخکي تېر سوه چي د حج میاشتي د کوچني اختر او میاني او لس شپې د لوی اختر دي دا نسبت و هغه کسانو ته چي د مکې یا شاوخوا د مکې وي او بل دپاره د آګاهي دی چي احرام د حاجي مخکي تر دغه وخت چي فضیلت منده دی واقع نه سي لکه داسي چي مقتضي د قواعدو حنفیه وو ده چي احرام شرط بولي په خلاف د شافعي رحمه الله هغه یې رکن بولي لهذا نو تر وخت مخکي دی احرام یې جائز نه بولي لکه باقي افعال د حج که کافر یا مرتد مسلمانان سوه یا کوچنی بالغ سو یا لېونی پرسد سو او یا مریي آزاد سو د حج تر وخت مخکي او بیره یې دا وه چي مړه به سو څو د حج وخت راځي او مال یې هم دونه درلودی چي حج په کېدی دلته د علماوو اختلاف دی یو قول دا دی چي وصیت به کوي چي بل د ده پر ځای حج وکي ځکه چي شرط د وجوب خو مال دی هغه لري وخت که نه دی داخل پروا نه لري ځکه وخت شرط د اداء دی او دویم قول دا دی چي پر ده وصیت نه دی لازم لیکن یاد ساتئ که یې وصیت یو چا پر ځای کی حج یې صحت لري د اخلاف بنا پر دغه دی چي وخت شرط د وجوب او که شرط د اداء دی او دواړه روایته د امام

اعظم رحمه الله او ابو يوسف از زفر رحمه الله دى ابن الهمام صاحب د فتح القدير دا قول راجح بللى دى چي وخت شرط د وجوب دى د ده د قول تائيد قاضي خان کړى دى په دې عبارت سره که کوچنى بالغ سو د وفات کېدو په وخت کي يې وصيت وکړى چي زما په مال سره دي فلانى زما پر ځاى فرضي حج وکړي دا وصيت د ده زموږ پر مذهب جائز دى او حج دي وکړي د ده پر ځاى او دا جواز منافي نه دى د دې خبري سره چي وخت خو شرط د وجوب دى پر مشهور قول باندى.

فائده: ګرانه وروره د حج د وجوب شرطونه دلته پوره اووه ٧ داني وه حکم د دغه شرطو دا دى که دغه اووه ٧ شرطونه ټول په يو شخص کي موجود سوه حج پر فرض دى او که ټوله يا يو شرط نه وو په کښي موجود بيا نه حج پر ده سته نه وصيت پر واجبيږي او نه نائب غولږي لوس به لاندي شرائط د اداء بيان سي انشاءالله تعالى و من الله التوفيق فى البداية و النهاية، محمد جمعه حقير العباد

## د حج د اداء شرطونه پنځه دي

النوع الثاني شرائط الاداء الاول منها سلامة البدن عن الامراض و العلل فقيل الصحيح انه من النوع الاول و قيل الصحيح انه من الثاني فعلي الاول لايجب على الاعمى و المقعد و المفلوج و الزمن ومقطوع الرجلين و المعضوب و على الثاني يجب ثم قيل و يجب عليهم بانفسهم و قيل فى اموالهم و هو المختار عند جماعة فتبين ان للحسن روايتين و الخلاف الاستطاعة و هو معذور اما ان وجدها و هو صحيح ثم طرأ عليه العذر فالاتفاق على الوجوب عليه فيجب عليه الاحجاج.

متن و بعده ترجمه و شرحه: د حج د څلورو قسمه شرطو څخه دا دويم قسم شروع کيږي و دې شرطو ته شرائط د اداء وايي د دې شرطو حکم دا دى که چيري دا شرطونه او هغه مخکي د وجوب شرطونه ټوله په شخص کي موجود سوه نو حج بنفسه پر ده واجب دى دې ته وجوب الاداء وايي او که چيري مخکي اووه سره شرطونه په کښي موجود وه ليکن د دغه شرطو څخه يو په کښي موجود نه وو بيا د حج اداء بنفسهِ پر ده نسته بلکه وصيت به کوي چي د ده په روپو سره حج وکړي بل شخص د پام وړ خبره دا ده چي دا شرطونه ټول چي دي اختلاف د علماوو په کښي نسته ليکن مخکي د وجوب په شرطو الى د وخت څخه ماسوا ټوله اتفاقي دي.

اوس د دغه شرطو د اداء اقسام پنځه دي:

١: اول شرط د اداء د شرطو څخه جوړوالى د بدن دى اوس په دغه شرط کي د اداء چي صحت د بدن دى غټ اختلاف دى صاحب د بحر الرائق او نهاية وايي چي دا د وجوب

شرط دی او صحیح مذهب هم دغه دی او دویم مذهب ذا دی چې دا شرط د اداء دی قاضي خان په الجامع کې او زیاتو مشائخو او فتح القدیر والا ابن الهمام دغه مذهب مختاره کړی دی نو اول مذهب چې د وجوب شرط یې بولي مطلب دا دی چې پر ړانده سړي او شل سړي او فلج وهلي سړي او پر هغه شخص چې پښې یې پرې وي دواړې یا یوه یا یې دواړه لاسونه پرې وي او بل پر مریض چې مرض یې اوږد وي او د مرض په حال کې وي او یا دا چې شیخ کبیر وي چې ځان پر دابه نه سي ټینګولای مګر په زیات تکلیف سره په دغه مسئله کې د امام اعظم رحمه الله ځخه دوه روایته سوي دي د ابن الهمام مشهور مذهب د امام صاحب ځخه داسي روایت کړی دی چې پر دغه کسانو حج نسته بحر الرائق دغه روایت ته ظاهر الروایت ویلي دي او بل روایت حسن رحمه الله د امام صاحب ځخه نقل کړي دي چې پر دغه کسانو حج سته که یې مال درلود د حج او د دوی د خدمتګارانو چې د حج مناسک په ادا کې دا روایت هم ظاهر الروایت ابن الهمام او بحر بللی دی مصنف علامه سندي هم دغه خوښ کړی دی.

او پر دویم مذهب چې سلامتیا د بدن د شرائطو ځخه د اداء بلل سوې ده نو پر دغه کسانو واجب ده چې یا به خپله حج کوي یا به بل سړی پر خپل ځای استوي یا به وصیت کوي اوس دلته دوه قوله دي اول دا دی چې دا کسان به پخپله حج کوي لیکن دلته خو تکلیف ښکاره دی او دویم قول دا دی چې یا بل سړی به پر خپل ځای ولیږي یا به وصیت وکي د یوه جماعت علماوو دا قول مختاره کړی دی او دا مبسوط د امام صاحب ځخه نقل کړی دی او په بدائع کې هم داسي قول دی چې پر ړانده حج فی نفسه نسته که یې مال درلودی اګرچه دونه هم لري چې خدمتګزاره لا د ځان سره بیولای سي بلکې پر ده واجب دا دی چې بل ځوک په خپل مال واستوي چې حج د ده دپاره وکي دا مذهب د امام اعظم رحمه الله او ابو یوسف رحمه الله او محمد رحمه الله دی ابن الهمام اوجه قول ورته ویلی دی او تحفة الفقهاء او ملک العلماء صاحب د بدائع هم دا مذهب مختاره کړی دی او د حسن رحمه الله یو روایت هم دغه دی دا تیر اختلاف په هغه اشخاصو کې دی چې په دغه حال کې د معذوریت د حج د کولو برابر مال پیدا کې د پوهې خبره دا ده چې یو شخص د صحت او سلامتیا په حال کې مال پیدا کې هیڅ عذر هم نه لري او ور ځخه وځنډیږي وروسته دا عذورنه ورته پیښ سي دلته په اتفاق سره د ټولو علماوو او روایاتو پر ده حج فرض دی په عذر ور ځخه نه ساقطیږي لهذا پر ده واجب ده چې بل شخص به په خپلو روپو سره حج ته لیږي فی الحاله یا به وصیت کوي، والله اعلم واتم.

الثانی امن الطریق للنفس و المال فمن خاف من ظالم او عدوا و سبع او غرق او غیر ذلک لم یلزمه اداء الحج و العبرة بالغالب برا او بحرا فان کان الغالب السلامة یجب و الا فلا

و يعتبر وجود الامن وقت خروج اهل بلده لا ما قبله و بعده.

متن و بعده ترجمه و شرحه: دويم د شرطو څخه د اداء پر اصح قول امن د لاري دي پر ځان او مال باندي دلته هم اختلاف دی ابن شجاع د امام صاحب څخه روايت کړی دی چي امن د لاري شرط د وجوب دی او بل روايت چي ارشاد الساري شخص د بصرې او قاضي د بغداد حنفي مذهبه متورع او عالم ابو حازم متوفي سنه ۲۹۲ ياد کړی دی ملا علي القاري وايي چي امن د لاري شرط د اداء دی ډېر احناف هم پر دغه قول دي لکه صاحب د بدائع او مجمع او کرماني او صاحب د هدايې وغيرهم که څوک د ظالم يا دښمن يا درندګانو او يا غرق او بل مانع څخه بېرېدل حج نه پر ده او نه د ده په مال کي لازمېږي خو اعتبار غالب ته دی په امن د لاري وغيره کي که پر وچه لاره ځي او که په درياب کي که غالبه سلامتيا وه پر واجب دی پر نفس د ده او که غالب قتل او هلاک وو بيا نه دی واجب ابو الليث وايي پر دغه قول فتوا ده:

و عليه الفتوا.

قنيه وايي وعليه الاعتماد، معنا پر دغه قول اعتماد او فتوا ده.

مطلب دا دی چي پر ده حج نسته بل څوک به ليږي يا به وصيت کوي معتبر وخت د امن د هغه وخته څخه شروع کيږي چي حاجيان روانيږي او بيا را رسيږي تر کوره پوري تر دغه زماني مخکي يا وروسته زماني امن اعتبار نه لري لکه داسي عبارت چي فتح القدير والاذکر کړی دی اوس په ضروري خبره ځان پوه که کرماني وايي که يو څوک بيت الله شريفي ته نه سو تلای مگر يو څو روپۍ بې په رشوت کي ورکړي وای او يا بې د يو ظالم نفقه يا مثل د دې ورکړی وای نو زموږ بعضي احنافو دا هم عذر بللی دی حج نه پر واجبيږي حتی چي دوی فرمايلي دي چي و ظالمانو ته روپۍ ورکول گناه ده او حاجي لره جواز لري چي پر مکس او خفارة ورسي مخکي تر هغه راوګرځي چي روپۍ بې لا نه وي ورڅخه اخيستي، مکس ظالم ته وايي چي د خرڅونکو څخه روپۍ اخلي او خفاره هغه عسکرو ته ويل کيږي د دولت چي امنيت راولي قنية او مجتبی او وبری وايي هغه چا لره چي قادر وي پر حج ليکن ظالم روپۍ ورڅخه غواړي جواز ورته لري چي راوګرځي او غير د وبري څخه نور بيا داسي ويلي دي چي حج پر واجب دی اگر که ظالمان روپۍ ورڅخه غواړي صاحب القنيه او المجتبی وايي عليه الاعتماد او په منهاج کي وايي و عليه الفتوىٰ ابن الهمام وايي ګناه پر اخيستونکي ده نه پر ورکونکي نو خپل فرض به د ګناهګاره د معصيت په وجه نه پرېږدي په داسي صورت کي بيا دونه مال چي د سرې څخه ظالمان غواړي دا هم په استطاعت کي راځي.

۳: الثالث عدم الحبس و المنع و الخوف من السلطان.

متن و بعده ترجمه و شرحه: دریم شرط د اداء پر صحیح قول د ابن الهمام دا دی چې د باچا دخوا څخه به منع نه وي په ژبه سره یا حبس په فعل سره یا بیره ورڅخه معنا دا سوه که د مملکت باچا منع وکړه چې د خپل ملک څخه به حج ته نه ځي بیا د حاجي دپاره دا عذر دی د حج اداء نه ده پر واجب که د ده سلطنت پر شرعي شرائطو برابر وو او که نه وو برابر بیا د ده څخه خلع په کار ده مستحق به د امارت ځان ته پیدا کوي که فساد نه ډېرېدی وجه دا ده چې باچا امر وکي چې حج ته مه ځئ شاید چې خلق حج ته ولاړ سي بیا فتنه جوړه سي دښمن پر دغه ملک حمله او یا یې بل ملک نه پرېږدي جنګ جوړېږي.

۴: الرابع المحرم الامین و الزوج للمراة اذا کانت علی مسافة السفر من مکة و لا یجبر المحرم و لا الزوج علی الخروج معها و لا یجب علیها ان تتزوج بها و هل یجب علیها نفقة المحرم او الزوج و الخنثی کالانثی.

متن و بعده ترجمه و شرحه: څلورم شرط د اداء خصوصي په حق کي د ښځو دی هغه داسي محرم دی چې امین به وي معنا عاقل بالغ او ابدي نکاح به یې ورسره حرامه وي عامه خبره ده که د قرابت د لاري وي که د رضاعت د لاري وي او که د خوسرګنۍ د لاري وي او یا په زنا سره یې ابدي نکاح حرامه وي مثلاً د زناکاري ښځي مور د دغه زناکاره خوابنې ده ابدي یې نکاح ورسره حرامه ده لیکن صاحب د هدایة په باب الکراهت کي جواز ورکړی مګر قدوري منع کړی او دغه زمونږ دپاره د تهمت څخه لیري او احوطه په دین کي مسئله ده خاص بیا په نن زمانه کي بلکي امام شافعي رحمه الله خو یې خوابنې بولي هم نه د ښځي دپاره محرم که حر وي که مریی مسلمان وي که کتابي کافر وي چې نکاح د محارمو سره حرامه بولي داسي نه لکه آتش پرسته چې د مور سره نکاح روا بولي مینځه که مکاتبه وي که مدبره وي یا ام الولده بې له محرمه زمونږ په زمانه کي سفر نه سي کولای د ښځي مریی او مجبوب چې اوبه یې وچي سوي وي هم محرم نه دی د صالحاتو ښځو سره هم تلل جواز نه لري عامه خبره ده که ښځه ځوانه وي یا سپین سرې که د درو ورځو لاره وه تر مکې مکرمې پوري لیکن د امام اعظم رحمه الله او ابو یوسف رحمه الله څخه روایت دی چې د یوې ورځي سفر لا ښځي ته مکروه دی بې له محرمه نو مناسب د فتوا دپاره دغه قول دی خصوصاً زمونږ په زمانه کي اګرچي داسي هم راغلي دي چې کم تر درو ورځو ښځه سفر کولای سي که په عده کي نه وه مګر ارشاد الساري په حاشیه کي په حواله د فتح القدیر د بخاري او مسلم حدیثونه را اخیستي دي په مرفوع حدیث کي په روایت د ابو هریرة رض کي فرمایي ښځه سفر نه سي کولای دوې ورځي چې محرم نه وي ورسره یا زوج په بل روایت کي راغلي دي

چي جواز نه لري هغه ښځي ته چي ايمان پر الله او ورځي د آخرت لري چي يوه ورځ او شپه بې له محرمه سفر وکي په لفظ د مسلم کي يوه شپه راغلې ده په بل لفظ کي يوه ورځ راغلې ده په لفظ د ابو داود کي بريد راغلی دی طبراني په معجم کي درې ميله ذکر کړي دي يو چا و ده ته وويل چي خلق درې ورځي يادوي ده ورته وويل په جواب کي هغه وهمي خبره ده علامة المنذري وايي چي احتمال لري چي ﷺ دا اقوال په مختلفو حالاتو کي د سوال موافق کړي وي خلص مطلب دا سو چي ښځه بې له محرمه د کوره څخه نه سي وتلای بغير د محرم څخه د يوي ورځي د سفر دپاره.

که حج ته محرم يا زوج نه تلی اجبار نسته ورباندي او که محرم و نه لري بيا پر ښځه دا نه ده لازمه چي د حج دپاره به مېړه کوي كذا فی البدائع و قاضيخان وغيرهما ليکن ابن شجاع د امام صاحب څخه روايت کړی دی که ښځي محرم نه درلودی بيا واجب دا ده چي مېړه وکي و حج ته ولاړه سي که غني وه اوس که ښځه حج ته تلل آيا د محرم نفقه او مصرف پر دې دی که پر هغه شخص نو دلته اختلاف دی توفيق بې داسي سوی دی که محرم خپله نفقه پر ښځي کنيښنودل پر ښځه لازمه ده په اجماع سره او که بغير د شرطه ورسره ولاړی بيا پر ښځه د ده نفقه نسته باقي خبره دا ده چي محرم د ښځي دپاره شرط د اداء او که شرط د وجوب دی قاضيخان وايي شرط د اداء دی او بدائع وايي شرط د وجوب دی ليکن مصنف علامه سندي شرط د اداء ګرځولی دی راجح همدغه قول دی ځکه ارشاد الساري په حاشيه کي ليکلي دي چي دا قول د ډېرو مشائخو دی.

ومن الله التوفيق فی البدايه و النهاية.

د خنثي (نرښځي) دپاره هغه شرائط دی لکه د ښځي که خنثي مشکل وي احتياط هم دغه دی.

۵: الخامس عدم العدة فلو كانت معتدة عند خروج اهل بلدها لايجب عليها ثم لتعلم ان شرائط هذا النوع كلها مختلف فيها فصحح بعضهم انها شرائط الوجوب وصحح اخرون انها شرائط الاداء و منهم من فرق فجعل بعضها من القسم الاول و بعضها من القسم الثاني و ثمرة الخلاف تظهر فی الوصية اذا شارف الموت قبل حصول هذه الشرائط فمن جعلها شرائط الوجوب لا يوجب عليه الوصية بالاحجاج و من جعلها شرائط الاداء يوجب عليه الوصية به.

متن و بعده ترجمه و شرح ملا علي القاري: پنځم شرط د شرطو څخه د اداء او د قبل پر مذهب د شرطو څخه د وجوب په حق د ښځو کي عدم د عدي دي معنا ښځه به په عده کي نه وي که حج ته تلله علامه خبره ده که د طلاق بائن يا د رجعي طلاق عده وي يا د

وفات د زوج یا د فسخي د نکاح څخه که چیري د دغه ښار خلق و حج ته روانېدله پر دغه ښځي حج نه واجبېږي ارشاد الساري لیکلي دي که چیري دا ښځه هم د عدې په وخت کي ورسره ولاړه حج يې جائز دی لیکن گناهگاره ده.

انتهى كما في المجمع لابن فرشته د دې حکم څخه معلومېږي چي دا شرط د وجوب دی او ابن امير الحاج وايي دا شرط د اداء دی او ظاهره په حکم د قضاء کي دغه ده.

که چیري یو کس ښځه په سفر روانه کړه وروسته يې طلاقه کړه نو دا مسئله ډېره درازي غواړي هغه په المنسک الکبير کېده او ارشاد الساري دلته هغه عبارت را نقل کړی دی په حاشیه کی چي خُلص مطلب يې دا دی چي زوج لره فضیلت منده خبره دا ده چي دغه ښځي ته رجوع وکي که طلاق رجعي وو او که طلاق بائن وو چي نوې نکاح غواړي یا يې مېړه مړ وو نو بیا ښځي ته په کار ده چي بیرته و خپل کور ته راوگرځي که يې د درو ورځو د سفر لاره نه وه وهلې راگرځېدل يې واجب دی او که و مکې ته نژدې سوې وه بیا دي مکې ته ولاړه سي او که د کور خوا لاره او د مکې لاره دواړې په مصافه کي برابري وي بیا ورته اختیار دی چي مکې ته ځي او که کور ته راگرځي عامه خبره ده ښار وي که دښت محرم ورسره وي که نه لیکن غوره ورته راگرځېدل دي الخ.

پوه سه طالبه چي د دغه نوعي چي دا پنځه شرطونه لري بعضي علماء وایي چي دا د وجوب شرطونه دي بعضي علماء وایي دا پنځه سره د اداء شرطونه دي لکه بعضي نورو علماوو چي تفصیل په کښي کړی دی وایي یو څه په کښي د وجوب یو څه په کښي د اداء شرطونه دي نو فائده د اختلاف داسي راوزي څوک چي يې د وجوب شرطونه بولي نو که سړی قریب الموت وو وصیت پر لازم دی چي د ده پر ځای به حج کوي او هغه څوک چي ورته شرائط د اداء وایي نو بیا وصیت پر قریب الموت نه لازمېږي، والسلام على من اتبع الهدی.

بزرگي به عقل است نه به مال
توان گري به مال است نه به سال

## و حاجي ته علمي وصیت نامه

ثم اعلم انه قیل یشترط ایضاً ان یکون الحاج متمکنا من اداء المكتوبات على وجه المفروض ... الخ.

ژباړه: اوس پوه سه چي د حاجي دپاره دا هم شرط دی چي خپل فرضي لمونځونه به پر خپل لازمي طریقه سره اداء کوي ارشاد الساري وايي چي مصنف په الکبير کي لیکلي دي چي د حاجي تگ به پر خپل عادتي طریقه وي معنا دا ده چي حج ته به په داسي وخت کي

روانيږي چي مكې ته پر خپل عادتي تگ رسېدلای سي او كه چيري نه رسېدی پر عادتي تگ تر حد زيات مزل ته يې ضرورت وو بيا نو حج نه دی پر واجب كذا فی الحباب نو د حاجي دپاره لازمه دا ده چي خپل لمونځونه پر صحيح طريقه ځكه وكي ولي چي حج هم فرض او لمونځ هم فرض دی د حكمت تقاضا دا نه ده چي يو فرض كوه هغه بل پرېږده او بله دا ضروري ده چي غور وكي دې علمي مسئلې ته كه چيري يو كس و عرفات ته د اختر په شپه كي په داسي وخت كي ورسېدی چي كه فرض لمونځ وكي د عرفات وخت ورځخه تېرېږي ځكه د عرفات وخت د نهم د سهاره ځخه د اختر د ورځي تر سپېډو پوري دی او كه پر عرفات ودرېږي فرض لمونځ ورځخه تېرېږي نو بعضي علماء وايي خپل فرض لمونځ دي وكي حج ورځخه پاته سو بل كال دي حج وكي او دا مسئله ظاهره ده ارشاد الساري په حاشيه كي ليكلي دي په حواله د عفيف او حباب چي لمونځ فرض عين دی وخت يې تنگ دی او متعين دی ځنډول يې گناه ده او د عرفات درېدل كه فرض د حج دی ليكن وخت يې پراخه تر عمر دی اداء يې ممكن ده په سبب د عذر سره ځنډول يې گناه نه ده.

انتهی. بل قيل والا ويلي دي په يو كمزوري قول كي چي عرفات ته دي ولاړ سي ځكه په پاته كېدو د عرفات ډېر تكليف جوړيږي او د ماخوستن د لمانځه قضاء كېدای سي او بل د اول قول تائيد را روان دی بيان كوي ابن الحاج المالكي وايي كه يو كس يو لمونځ قضاء كی د حج كولو په وجه نو دا حج جواز نه لري په اجماع سره د علماوو، زموږ احنافو علماوو ليكلي دي كه بالغ سړی پوهيږي چي حج ته ولاړ سمه زما ځخه يو فرض لمونځ قضاء كيږي او حج ته ولاړی حج يې ساقط سو انتهی.

حضرت مولانا ابو القاسم الحكيم رحمه الله حنفي وايي كه په نن زمانه كي يو كس غزا ته ولاړی او يو لمونځ ورځخه قضاء سو نو پر ده لازمه ده چي سل غزاوي به كوي د هغه يوه لمانځه د كفارې دپاره چي قضاء سوی دی وجه دا ده كه چيري د لمانځه قضاء وای نو صلاة خوف به نه كېدای ځكه په دغه لمانځه كي داسي كارونه كيږي چي په نورو لمونځو كي لمونځ فاسدوي د امن په وخت كي.

او كوم چي د رسول الله ﷺ ځخه د خندق په غزا كي لمونځونه پاته سوي دي نو يې وفرمايل چي موږ يې د صلاة الوسطی ځخه مشغول كړو الله دی د كفارو كورونه د اوره ډك كي. مجمع الزوائد ج۱، ص۳۰۹

ابو الوراق چي د بيت الله د حج په اراده ووتی يو مزل يې تگ كړی وو چي ناري يې كړې د خپلو ملگرو ته چي ما بيرته وگرځوی د خپل كور ته زما ځخه په يوه مزل گاه كي اووه سوه ۷۰۰ كبيره گناهونه وسوه نو يې بيرته كور ته راوستی ملا علي القاري رحمه الله ته د

ډېر تلاش څخه بعد هغه حديث په لاس ورغی چي ﷺ فرمايي څوک چي اداء د لمانځه پرېږدي په جماعت سره نو ګوا کې ده اووه سوه ګناهونه وکړه او په بل حديث کي راغلي دي چي لمونځ قضاء کي هم يې دغه جرم دی انتهی ذمه واري د حديثو ناقل ته سپارل سوې ده هيڅ شک نسته چي د لمانځه ځنډول غټه ګناه ده.

## فصل په بيان د هغه عذرو چي د حج وجوب ساقطوي

فمنها الصبا و الرق و الجنون و العته و الموت و الكفر و فی عدم امن الطريق و سلامة البدن و المحرم و الحبس و اخذ الخفارة و المكس اختلاف و لا يسقط بهلاک المال و فوت القدرة اتفاقا.

متن و بعده ترجمه و شرحه

د حج د اداء په موانعو کي يو کوچنيوالی دی بل مريی توب بل لېونتوب همېشني او بل معتوه کېدل او بل د حج تر وخت مخکي موت او بې امني د لاري او عدم صحت او د ښځي دپاره په محرم کي د باچا په منع کي او په اجوره کي د امن په لاري کي او د ظالم چي روپۍ اخلي په دې کي اختلاف دی چي آيا دا شرطونه د اداء دي که د وجوب دي او بل وجوب د حج په هلاک سره د مال او قوة نه ساقطيږي په اتفاق سره زمونږ د علماوو يا به پخپله حج کوي يا به بل څوک استوي يا به وصيت کوي، ومن الله التوفيق.

## د حج د وصيت د اداء شرطونه

النوع الثالث شرائط الاداء وهی الاسلام و الاحرام و الزمان و المكان و التميز و العقل و مباشرة الافعال الالعذر و عدم الجماع و الاداء من عام الاحرام فلا يصح من كافر و لا بلا احرام و لا يجوز افعاله نحو الطواف و السعی قبل شهره و لا الوقوف قبل يوم عرفة و لا بعد الا لضرورة الاشتباه و لايصح طواف الزيارة قبل يوم النحر و يصح بعده و المكان المسجد و عرفات و مزدلفة و منی و الحرم فلا يصح شیء من افعاله فی غير ما اختص به ولا يصح حج من جامع قبل الوقوف باحرام الفائت فی الثانية و اما غير المميز فلاتصح منه المباشرة و كذا الجنون و تصح من وليهما و قيل تصح من المجنون.

متن و بعد و ترجمه

دريمه نوعه شرطونه د صحت د اداء دي دا نهه ۹ شرطونه دي معنا دا سوه که چيري دا شرطونه سرېئ پر ځای کړه حج يې صحيح دی او که يې پر ځای نه کړه بيا يې حج صحت نه پيدا کوي بيا به بل صحيح حج کوي لکه اودس چي د لمانځه دپاره شرط دی که څوک اودس و نه کړي لمونځ يې صحت نه لري، اول شرط اسلام دی دويم احرام دی دريم زمانه د حج ده چي دوې مياشتي او لس شپې د لوی اختر دي ځکه په دغه وخت کي طواف قدوم او

سعي د صفا او مروا ځلورم مکان دی او درېدل پر عرفات او رمي (ويشتل) د شيطانانو سر خريل يا لندول ذبحه د قرباني وغيره اداء کيږي پنځم تميز کول د افعالو د حج اگرچي نيابة هم د غير مميز څخه حج صحت لري شپږم عقل دی ليکن د غير عاقل څخه هم بعضي شيان نيابة کېدای سي اووم ۷ کول د حج د افعالو دی په خپله لکه فرائض او واجبات نه په بل چا سره نيابة مگر که عذر وو په بعضي افعالو کي.

ارشاد الساري هغه بعضي افعال دا ښولي دي چي د ده رفيق بې سده سي د احرام په وخت کي نو دی به د رفيق احرام ورتړي او که يو څوک سخت مريض سو شيطانان دي بل څوک پر ځای د ده وولي او که کوچنی يا لېونی ورسره وو بيا ولي نيابةً د دوی پر ځای نيت د طواف کولای سي حباب وغيره، اتم۸ شرط دا دی چي احرام يې وتړی بيا د عرفات درېدو مخکي د خپلي زوجې د وطيو څخه بند دی، نهم ۹ شرط اداء کول د حج دی په هغه احرام چي اوس يې ورته تړلی وي بل کال ته به دا احرام نه ځنډوي نو پر دغه شرطو لاندي مسائل تفريع کيږي معنا د کافر حج نفلي او فرضي صحت نه لري او نه بې له احرامه صحت لري او نه هم افعال د حج تر خپل وخت دمخه صحت.لري لکه طواف القدوم او سعيه د حج صرف احرام جواز قدري لري مگر هغه هم مکروه دی او درېدل پر عرفات تر خپل ټاکلي وخت نه دمخه او نه وروسته صحت لري چي شروع د نهم د زوال څخه بيا د اختر د سهار تر سپېدو پوري ده چي اټکلي اتلس ساعته کيږي تقريباً او طواف زيارت او طواف رخصت د اختر تر ورځي دمخه صحت نه لري ليکن تر اختره وروسته بيا صحت لري ليکن د امام اعظم رحمه الله پر مذهب د اختر په ورځو کي طواف زيارت اداء کول واجب دی او امکان د طواف مسجد دی اگر که پر بام وي او عرفات د درېدو ځای او مزدلفة د جمعې او شپې تېر او درېدو ځای دی او منی د ځلورويشتو ځايونه د شيطانانو د ويشتلو ځايونه دي حرم د ذبحي نو هيڅ فعل د افعالو څخه د حج که فرض يا واجب يا سنت وي بغير د هغه خاصو ځايو څخه بل ځای کېدای نه سي د هغه چا حج صحت نه لري چي د عرفات تر درېدو مخکي د خپلي زوجې سره وطي وکي اگرچي دغه حج به هم پوره کوي په دغه احرام سره په را روان کال کي حج نه سي کولای بيا به بل احرام پر کال تړي عمره به کوي حج به کوي هغه غير مميز کوچنی چي کوم شيان يې نيت غواړي لکه احرام او طواف هغه ولي ورته کوي او کوم چي نيت نه غواړي لکه د عرفات درېدل هغه دَی هم کولای سي همداسي حکم د لېوني دی اگرچي قيل جواز ورکړي لېوني ته.

## دوقوع عن الحج فرض شرطونه

النوع الرابع شرائط وقوع الحج عن الفرض الاسلام و بقائه الى الموت و العقل و

الحریة و البلوغ و الاداء بنفسه ان قدر و عدم نیته النفل و الافساد و عدم النیة عن الغیر فلا یقع حج الکافر عن الفرض اذا اسلم و لا المسلم اذا ارتد بعد الحج و ان تاب و لا المجنون و الصبی و العبد و ان افاق و بلغ و عتق بعده و لا باداء الغیر قبل العذر و لا بنیة النفل او عن الغیر و مع الفساد فهُوَ لا لو حجو ولو بعد الاستطاعة لا یسقط عنهم الفرض و یجب علیهم ثانیا اذا استطاعوا و اما الفقیر و من بمعناه اذا حج سقط عنه الفرض ان نواٰه او اطلق النیة حتی لو استغنٰی بعد ذلک لایجب علیه ثانیا.

متن و بعده ترجمه و شرحه

څلورم قسم شرطونه هغه دي كه دا پوره كړي سړى نو حج فرضي ګرځي كه پوره نه سي بيا نفلي ګرځي اول شرط د صحت د وقوع عن الفرض اسلام دى په نهه ۹ شرطو كي او اسلام د نفلي حج د صحت دپاره هم شرط دى ځكه كافر اهل د عبادت نه دى او بل پر اسلام پاته كېدل دى ځكه كه مرتد سي بيا يې ټوله اعمال خرابيږي پاته كېدل به يې تر مرګه وي دويم شرط عقل دى كه د احرام په وخت كي عقلمند وو نيت او تلبيه يې وويل بيا لېوني سو طواف زيارت ته ېېرته پرسد سو حج يې فرضي دى ليكن كه يې طواف زيارت په سد كي نه وكړى بل چا په وكړى حج يې نفلي دي لكه د اول احرام څخه چي لېوني وي ولي يې نيت كوى د ده د نيت او طوافو- دريم او څلورم شرطونه حُريت او بلوغ دى ځكه د مريي او كوچني حج نفلي دى كه يې حج وكړى.

پنځم شرط اداء د فرضو ده په خپله كه قادر وو معنا جوړ وو او كه بل سړى امر كړي هغه د ده پر ځاى حج وكړي جواز نه لري او كه مانع موجود سو دوام يې وكړى تر مرګه پوري لكه مثلاً په ابدي حبس محكوم بيا نو د ده پر ځاى بل څوك حج كولاى سي يا مثلا دغسي ابدي مريضي پر راغله او كه يو كس يې سده سو قدرت يې پر اداء نه درلودى ليكن رفيقانو يې احرام ور وتړى پر عرفات يې ودروى بيا يې فرضي حج صحيح دى لكه د ړانده يا شل يا فلج وهلي چي حج يې صحت لري فرضي.

شپږم شرط دا دى چي نيت به د فرضي حج وي كه يې د نفلي نيت وكړى غني وي كه فقير حج يې نفلي دى اګرچي امام شافعي رحمه الله نيت د نفلي هم د فرضي پر ځاى دروي او كه يې نيت مطلق وو بياهم حج يې فرضي دى اووم ۷ شرط دا دى چي نيت به د بل چا دپاره نه وي د حج كولو ځكه بيا حج د هغه غير دپاره ګرځي ۸ شرط دا دى چي د كافر حج د كفر په حال كي صحت نه لري نه فرضي او نه نفلي كه مسلمان سو بيا به بل حج كوي او د مسلمان حج هم د كافر دپاره نه صحيح كيږي كه تر حج بعد مسلمان سو اګر كه توبه ګاره سي صحت نه لري كه د يو مريض پر ځاى بل سړى حج وكي بيا د مريض مرض ورک سو

صحت یابه سو بل حج به کوي هغه څوک چي حج وکي لیکن تر عرفات مخکي وطي وکړي فرضي حج یې و نه سو دا فاسد سو که فقیر سړی یا داسي شخص چي مال یې درلود لیکن ظالمانو ورڅخه اخیستی وو مطلق یا د فرضي حج نیت یې وکړی حج یې فرضي ګرځي اګر که بیا مال پیدا هم کړي بل وربانديي نسته.

## فصل په وجوب کي د وصیت د حج دی

وهو کل من قدر علی شرائط الوجوب و لم یحج فعلیه الایصاء به سواء قدر علی شرائط الاداء ام لا اما اذا قدر علی شرائط الاداء دون الوجوب فلا یجب الایصاء علیه.

متن و بعده ترجمه و شرحه

د حج د وجوب شرطونه که په یو چا کي موجود سوه او پخپله یې حج و نه کړی لازم پر ده وصیت دی عامه خبره ده که د ده په ژوند کي په ده کي شرائط د اداء وه او که نه وه خو د مرګ بعد به بل سړی د ده د وصیت مطابق حج کوي هرقسم چي ورته فرمایلي وه او که یې مطلق ورته ویلي وه بیا به حج افراد کوي او که د وجوب شرطونه په سړي کي وه لیکن د اداء شرطونه نه وه په کښېي بیا نو تر مرګ دمخه لا د ده پر ځای بل سړی حج کولای سي یا به وصیت کوي او که د اداء شرائط په کښي وه لیکن د وجوب دا نه وه وصیت وربانديي نسته.

## فصل که څلور سره قسمه شرائط موجود سوه

اذا وجدت الشروط فالوجوب علی الفور فیقدمه خائف العزوبت علی التزوج ویأثم الموخر عن سنة الامکان و لو لم یحج حتی افتقر تقرر فی ذمته و لا یسقط عنه بالفقر سواء هلک المال او استهلکه وله ان ستقرض للحج و قیل یلزمه و ان وجد مالا وعلیه حج و زکاة یحج به قیل الا ان یکون المال من جنس ما یجب فیه الزکاة فیصرف الیها وله ان یحج وعلیه دین لا وفاء له و ان کان فی ماله وفاء بالدین یقضی الدین.

متن و بعده ترجمه و شرحه

که چیري په یو شخص کي د وجوب او اداء شرطونه موجود سوه نو پر اصح مذهب زموږ د احنافو حج پر واجب دی لکه د ابویوسف رحمه الله او یو روایت د امام اعظم رحمه الله څخه هم دغه دی چي فوري معنا په دغه کال حج پر واجب دی قاضیخان او صاحب د کافي عبارت هم دغسي دي د امام مالک رحمه الله مشهور او امام احمد اظهر او د مازني شافعي مذهبونه هم دا دي چي فوري به حج کوي که یو شخص روپۍ درلودلې حج په کېدی او نکاح یې هم نه وه کړې د زوجې مهر هم کېدی لیکن دواړه نه په کېدل او د زنا څخه هم بېره وه لا به حج مخکي کوي پر نکاح باندي ځکه، د حج په ځنډولو سره ګناهګاره کېږي او دا طریقه د امام الهدی ابی المنصور الماتریدي ده په هر امر کي چي مطلق وي حمل کوي دی

پر تلواري کړو باندي ليکن عملاً نه اعتقاداً پر طريقه د تعين معنا اعتقاد به د دواړو لري فوري او د تراخي ځکه چي عقيده د الله د اِرادي سره اړه لري امام شافعي رحمه الله او امام محمد رحمه الله حمل کړي امر پر تراخي باندي چي يو روايت د امام اعظم رحمه الله امام مالک رحمه الله او امام احمد رحمه الله هم دی فائده یې دا سوه چي تر مرگ دمخه حج وکړي گناه نسته پرده ليکن که مړ سو او حج يې و نه کړی گناهگاره دی.

ارشاد الساري په حاشيه کي د امام محمد رحمه الله دليل د تراخي دا ذکر کړی دی چي حج په نهم کال فرض سو نبي عليه السلام ابوبکر صديق رضي الله عنه حج ته ولېږی مبارک عليه السلام پاته سو نو معلومه سوه چي فوري واجب نه دی امام اعظم رحمه الله او ابو يوسف رحمه الله وايي احتياط په تعين کي دا دی چي په اول کال به حج کوي ځکه د حج وخت معين دی په کال کي او مرگ هم څه نادر نه دی نو ځنډ يې و بل کال ته تعريض و فوت کېدو ته دی نو داسي عمل جواز نه لري او کوم چي عليه السلام په لسم کال کړی دی يوه وجه يې دا ده چي نبي عليه السلام د تبليغ د تکميل په کار کي مشغول وو او بل مبارک ته د خپل ژوند معلومات وو چي ترکاله به زه ژوندی يمه او ټول خلق به هم د حج افعال ووينې حواله البحر الرائق.

او په بله حاشيه کي يې په حواله د علامة ابن النجيم فی بحره قمر د خلاف داسي ذکر کړي ده که چا حج و ځنډوی د امام اعظم رحمه الله پر مذهب چي صحيح همدغه دی چي دا سړی فاسق او شاهدي يې د قبول وړ نه ده او محمد رحمه الله وايي فاسق نه گرځي ځکه ځنډول اگرچي صغيره گناه ده مکروه تحريمي دی که کلونه ډېر پر تېر سوه مگر په ځنډ د يو کال فاسق نه گرځي او که مړ سو حج يې و نه کړی په اتفاق سره گناهگاره دی که يو سړي طاقه د حج درلودی او حاجيان هم روانېدل او دی پاته سو بل کال ته فقير سو قدرت يې نه درلود نه پياده او نه د سپرتيا حج پر ثابت دی نه ورڅخه ساقطيږي عامه خبره ده که مال د ده قصد سره هلاک سي که بې له قصده هلاک سي داسي حکم د هغه چا هم دی چي سترگ يې جوړي وي حج پر فرض سي وړ نه کړي چي ړوند سو يا بله مريضي پر راغله حج ورڅخه ساقطيږي ليکن داسي فقير ته د حج دپاره قرض روا دی چي توکل د قرض د ادا وکړي امام محمد رحمه الله وايي که د قرض تر اداء مخکي مړ سو اميد سته چي الله تعالی مواخذه ورڅخه و نه کړي او گناهگاره هم نه سي او بل قيل والا وايي چي قرض به نه کوي او دا د ابو يوسف رحمه الله څخه روايت هم دی ضعف يې ظاهره دی ليکن دليل يې دا ويلی دی چي تحمل د حقوق العباد دروند دی تر تحمل د حقوق الله ارشاد الساري په حاشيه کي جواب ورکړی دی چي مواخذه د بنده د حق هلته کيږي چي د غير شرعي کار دپاره يې ورڅخه واخلي او که يې د شرعي حاجت دپاره واخلي او نيت يې هم د اداء وي او قبل الاداء

مړ سو مواخذه نه ورسره کیږي ځکه صاحب الحق ته الله عوض ورکوي، حباب والسلام علی من اتبع الهدی.

که سړي مال پیدا کړی وو حج وربانديي فرض سوی وو او بل زکاة هم پر پاته وو په دغه مال به حج کوي اگرچي ظاهره خو دا ده چي په زکاة کي يې ورکړي ځکه د ده پر ذمه اول لازم سوی دی لیکن علماوو دا حکم ځکه کړی دی چي حج به په کوي زکاة زجراً پر ذمه د ده به پاته وي بل قول د قیل داسي وايي مال ته به وګوري که د هغه مال د جنس څخه وو چي زکاة وربانديي دی نو په زکاة کې دي ورکړي او که د هغه جنسه څخه نه وو حج دي په وکړي او بياهم که دغه مال د زکاة د جنسه څخه وي هم خو د ده لاس ته د حج کولو په زمانه کي په لاس ورغلی بیا دي حج په وکړي او که زمانه د حج نه وه په زکاة کي دي ورکړي او سړي لره جواز لري چي پور ورباندي وي حج وکړي اگرچي نور مال دونه و نه لري چي پور په اداء کړي او څوک يې د حج څخه هم منع کولای نه سي که يې مفلسوالی ثابت سو او که د اداء کولو د پور مقدار مبلغ يې درلودی بیا به اولاً پور اداء کوي بیا به حج ته ځي که پور عاجل وو خو اداء يې پر واجب ده کوم قول چي د فضیلت په الکبیر کي دی هغه محمول پر هغه پور دی چي اوس يې غوښتنه پوروړی نه کوي موٴجل وي.

## باب فرائض الحج

فرائض عام دي و ارکانو او شرطو وغیرهما لکه اخلاص ته هم شمول کوي دلته په دغه باب کي پنځه فصله راځي اول د فرائضو د حج دویم د واجباتو دریم د سنتو څلورم د مستحباتو پنځم د مکروهاتو.

## فصل په فرضو د حج کي دی

النية و التبلية او ما يقوم مقامها و هذا هو الاحرام و الوقوف بعرفة و اكثر طواف الزيارة و نيته قيل و ابتدا وه من الحجر الاسود و الترتيب بين الفرائض و اداء كل فرض فى وقته ومكانه و الحق بها ترك الجماع قبل الوقوف و حكم الفرائض انه لا يصح الحج الابها و لو ترک واحدا منها لا يجبر بدم و لايخرج من الاحرام بالكلية مابقى عليه شئ منها.

متن و بعد ترجمة و شرحه

د حج د فرائضو څخه نیت دی په زړه سره د خولي وینا يې بهتري لري او تلبیه ده یا هغه شی چي قائم مقام د تلبیې ګرځي لکه ذکر یا تقلید د بدني سره د روانېدو د ځانه سره اوس احرام سو نیت تلبیه او احرام د حج دپاره شرط دی من وجه ځکه چي تر وخت دمخه يې کول جواز لري او په بله وجه رکن د حج دی دلیل يې دا دی چي کوچنی احرام وتړي ورروسته بالغ سي که احرام نوی کړي فرضي حج يې په کیږي او که يې خلاص نه کړي نوی احرام و نه

تړي حج بې نفلي دی بل دلیل د احرام د رکنیت دا چې شرط نیت ضروري نه غواړي لکه اوس چې شرط دی د لمانځه دپاره او په احرام کي نیت ضروري دی او بل فرض د حج دریدل دي پر عرفات اگر که یو گړی وي خو په خپل وخت کي او بل فرض د طواف زیارت اکثره شوطونه دي په خپل محل کي او دا دواړه د حج ارکان دي ارشاد الساري په خپله حاشیه کي وقوف د عرفات ډېر قوي رکن ثابت کړی دی په دغه دلیل سره چې تر عرفات مخکي وطي حج فاسدوي او تر طواف زیارت مخکي یې نه فاسدوي او بل عرفات د احرام په کامل حال کي اداء کیږي او د طواف زیارت په وخت کي به من وجه په احرام کي وي ...الخ.

بل فرض د حج نیت د طواف دی اگرچي مطلق وي او دا د شروطو څخه د صحت د طواف دی ځکه تبعي فرض بلل سوی دی یو چا ویلي دي چې شروع د طواف د حجر اسود څخه فرض ده بعضو سنت گڼلې ده لیکن معتمده دا ده چې دا د واجباتو څخه دی ځکه نبي ﷺ همېشه توب پر کړی دی او د فرضیت قطعي دلیل نه لري بل ترتیب کول تر مابین د فرائضو لکه اول احرام بیا درېدل پر عرفات بیا طواف زیارت او بل اداء د هر فرض او رکن ده په خپل وخت کي د عرفات د درېدو وخت د زوال څخه بعد بیا د اختر د سهار تر سپېدو پوري دی او طواف زیارت د اختر د ورځي څخه بیا د عمر تر آخره پوري دی او بل به هر رکن په خپل مکان کي اداء کوي عرفات د درېدو ځای دی مسجد الحرام د طواف ځای دی تر درېدو د عرفات مخکي وطي نه کول هم ملحق د فرضو دی حکم دفرضو دا دی چي حج بغیر د فرضو د اداء څخه نه صحیح کیږي اگر که یو فرض ورڅخه پاته سي جبیره یې په دم نه کیږي لکه د واجبو جبیره چې په کیږي او د احرامه څخه هم نه وځي ترڅو چې یو فرض پر پاته وي که عرفات ورڅخه پاته سو نو عمره دې وکړي ځان دې حلال کړي.

## فصل په بیان د واجباتو د حج کي دی مکي او آفاقي لره

الاحرام من المیقات، السعی بین المروتین. والبدایة بالصفا، والمشی فیه و استدامة الوقوف بعرفة الی الغروب لمن وقف نهارا. و وقوف جزء من اللیل، و متابعة الامام فی الافاضة، والوقوف بمزدلفة، وتاخیر الصلاتین ای العشاین الیها. و رمی الجمار، وکون رمی الاول قبل الحلق، وعدم تاخیر رمی کل یوم الی ثانیة، قیل و الترتیب بین کل من الرمی و الحلق و بین الطواف و هو خلاف المشهور، والحلق او التقصیر، وکونه فی ایام النحر و فی الحرم، وطواف الزیارة فی ایام النحر و ما زاد علی اکثره و لو فی غیر ایام النحر، و الطواف من وراء الحطیم قیل و ابتدائه من الحجر الاسود، والطهارة فی الطواف، والتیامن فیه و ستر العورة، وطهارة قدر ما یستربه عورته من ثوبه، والمشی فیه و رکعتا الطواف و هذه الواجبات العامة.

متن و بعد شرحه

د حج د واجباتو څخه احرام تړل دی د میقات څخه مخکې تر میقات د جواز پر ځای فضیلت لري لیکن تر میقات ور تېرېدل بې له احرامه جواز نه لري ارشاد الساري لیکلي دي چې میقات د افاقي خلقو دپاره هغه پنځه ځایه دي او میقات خلقو ته میقات د احرام زمین حل دی د مکې دپاره حرم شریف دی او په بله حاشیه کې د هغه فضیلت چې تر میقات مخکې یې لري دا شرط ورسره دی چې د هغه شیانو څخه به ځان ساتي چې ممنوع دي لکه ابن مسعود ﷺ د شام څخه احرام وتړی او ابن عمر ﷺ د بیت المقدس څخه احرام وتړی او بل واجب د صفا او مروا تر مابین تګ راتګ دی چې سعیه ورته وایي.

ارشاد الساري په خپله حاشیه د وجوب دلیل بیان کړی دی چې نبي ﷺ وفرمایل سعیه کوئ الله درباندې لازم ګرځولې ده او بل د سعي اووه سره طوافه واجب دي او بعضې کسانو فرض بللي دي لیکن زموږ دلیل د وجوب د قرآن کریم دا آیت دی:

ان الصفا و المروة من شعائر الله الی قوله فلا جناح علیه ان یطوف بهما و من تطوع خیرا فان الله شاکر علیم. بقره ۱۵۸

او بل د ابن مسعود ﷺ په قرات کې فلاجناح ان لا یطوف بهما راغلی او دا قراءت خو هم تر حدیث کم نه دی او بلکه په روایت د بي بي عائشې ﷺ کې ورته سنت ویلي سوي دي د حضرت ابن مسعود ﷺ د قراءت ترجمه داسې ده که څوک د صفا او مروا طواف و نه کړي ګناه نسته وربانډې.

او بل واجب د سعي شروع کول د صفا څخه دی بدائع او وجیز وغیره دغه خبره راجح بللې ده او بل تګ کول په سعیه او طواف کې واجب دی او بل چې عرفات ته ورسي نو تر غروبه د لمر انتظار کول دي په ورځ کې او درېدل یو جز د شپې د حصې څخه واجب دی او بل متابعت د امام دي په راکښته کېدو کې د عرفات څخه او که امام ځنډ کوی بیا ورته جواز لري چې راکښته سي او که دی د عذر په وجه تر امام وځنډېدی پروا نه لري.

بل واجب پر مزدلفې درېدل دي اګر که یو ګړی وي تر سهار بعد د وجوب دلیل ارشاد الساري د سودة ﷺ روایت ذکر کړی دی چې دې د نبي ﷺ څخه اجازه په شپه کې د کښته کېدو د مزدلفې څخه وغوښتل او اجازه یې ورکړه متفق علیه شوافع چې د رکنیت دلیل دا آیات بولي:

فاذا افضتم من عرفات فاذکروا الله عند المشعر الحرام. بقره ۱۹۸

موږ ورته وایو چې واجب ده د ایات څخه مراد ذکر دی په اجماع سره بل واجب د مانښام او ماخوستن لمونځ دی په مزدلفه کې د ماخوستن په وخت یوځای ادا کول بل واجب

ويشتل د درو څلو د شيطانانو دي په درو ورځو کي او بل د جمره عقبی ويشتل دي په اوله ورځ تر سر خريلو دمخه او بل ويشتل د هري ورځي دي په هغه ورځي کي و بلي ورځي ته يې پرېښول گناه ده بل د رمي او حلق تر مابين ترتيب واجب دی د حلق او طواف ترتيب سنت دی د رمي او طواف ترتيب سنت دی واجب نه دی د قيل مذهب خلاف المشهور دی سر خريل يا د سر څلورمه لنډول دي په خپل وخت کي فلا يرد ما يرد.

د سر خريل يا لنډول به په ورځو کي د اختر وي دننه په حرم کي اگر که په معنا کي نه وي اکثره د طواف زيارت به په ورځو د اختر کي وي او طواف به د حطيم تر شا کوي قيل وايي چي واجب ده شروع د طواف د حجر اسود څخه ليکن زموږ پر مذهب شروع د حجر اسود څخه سنت ده بل ځان پاکول دي معنا اودس کول دي د طواف دپاره بل د راسته طرف څخه شروع د طواف ده اگرچي بعضي وايي سنت ده بل ستر د عورت دی اگرچي په خپل ذات کي خو فرض دی ليکن د طواف د صحت دپاره واجب دی او بل پاکي د دونه قدري جامې ده چي عورت پټوي و فيه خلافٌ = او تگ په کښي کولای سي پوه سه چي کوم شيان تر طواف زيارت وروسته دي په ورځو کي د اختر دا ټوله د واجباتو څخه د طواف دي نه د حج خصوصا بل واجب دوه رکعته لمونځ د طواف دی په دې کي دا خبره سته چي دا واجب نه د طواف دی نه د حج دا لمونځ مستقل واجب دی ارشاد الساري يې د وجوب دليل ذکر کړی دی د جابر ﷺ په حديث کي راغلي دي نبي ﷺ و مقام ابراهيم ته ورغلی دا آيات يې ووايه:

واتخذوا من مقام ابراهيم مصلی. بقره ۱۲۵

نو امر په کښي دپاره د وجوب دي ځکه يې اول دا آيت تلاوت کړی او بل مواظبت د نبي ﷺ دی تر دغه ځايه دا ټوله واجبات عامه دي معنا دا سوه چي حاجي که د مکې وي که د بل ليري ځای دا واجبات به کوي باقي اوس هغه واجبات به بيان سي چي هغه به خاص افاقيان کوي نه مکي سړی.

## واجبات خاصه د افاقي دپاره

واما الخاصة فطواف القدوم للافاقي و رمي القارن و المتمتع قبل الذبح و الهدی عليهما و ذبحهما قبل الحلق و فی ايام النهر قيل و طواف القدوم و يلحق بالجملة ترک محظورات الاحرام فصار المجموع خمسة و ثلاثين و اجبا و حکم الواجبات لزوم الجزاء بترک واحد منها و جواز الحج سواء ترکه عمدا او سهوا ليکن العامد آثم و يستثنی من هذالکلی ترک رکعتي الطواف و ترک الحلق لعذر و البيتوتة بمزدلفة عند موجبه و ترک تاخير المغرب الی العشاء و ترک الواجب بعذر و قال فی البدائع ان الواجبات کلها ترکها

لعذر لا شئ علیه و مما مرحوا بثبوت العذر فیه ترک المشی فی الطواف و السعی لمرض و ترک السعی لعذر و تاخیر طواف الزیارة عن ایامه لحیض او نفاس و ترک الوقوف بمزدلفة لخوف الزحمة و الضعف و اما ارتکاب محضور لعذر فلیس بمسقط للجزاء.

متن و بعده ترجمه و شرحه

لوس هغه واجبات د حج ذکر کيږي چي اهل د مکې مکرمې لره نسته صرف پر هغه کسانو دي دا واجبات چي تر ميقات ځايو خارج وي لکه مثلاً افغانستان نو اول واجب پر دوی طواف رخصت دی مخکي تر روانېدو د مکې څخه دليل د وجوب ارشاد الساري ليکلي دي ابن عباس ﷺ روايت کوي چي حج به اداء سو نو هر يو به پر خپله لاره تلی نبي ﷺ وغ پر وکړ چي هيڅوک به نه ځي ترڅو چي يې اخري رخصت د بيت الله څخه اخيستی نه وي مګر حيض لرونکي ښځي ته جواز سته متفق عليه.

امام مالک رحمه الله او په يوه قول د شافعي رحمه الله کي سنت دی نه واجب دوی وايي که واجب وای د اهل مکې او حيضي څخه ولي ساقط کېدی موږ جواب د قياس مقابل کي په حديث کي ورکړی او بل اهل د مکې خو هلته ګزاره کوي رخصت کيږي نه ورڅخه چي پر دوی هم واجب سي انتهي.

او بل واجب ويشتل د ځلو دی قارن او متمتع حاجي لره د قرباني تر ذبحي مخکي او بل پر دوی هديه او ذبحه تر سر خريلو دمخه ده دا واجبات زموږ د امام صاحب پر مذهب دي لو بل به ذبحه په حرم کي وي او د اختر په ورځو کي به وي قيل وايي چي طواف قدوم واجب دی او په خزانة المفتين کي وايي چي طواف قدوم پر اصح قول واجب دی ليکن جمهور علماء وايي چي سنت دی خو مؤکد سنت دی په واجباتو پوري ملحق پرهېښوول د ممنوعاتو دی چي د احرام سره جواز نه لري حرام وي يا مکروه تحريمي وي لکه ابن الهمام چي تحقيق کړی دی په کښې، نو مجموعه واجبات چي د محرماتو منع هم په کښې داخل سي پنځه دېرش واجبات کيږي حکم د واجباتو د پرهېښولو لازمول د دم دی چي يو واجب ورڅخه پاته سي او حج يې صحت لري اګر که واجب قصداً يا سهواً يا په هېره ورڅخه پاته سي ليکن په قصداً پرېښول يې ګناه ده صرف د دغه واجباتو څخه چي دوه رکعته لمونځ واجب د طواف دی او دا مستقل عبادت دی لهذا په پاته کولو يې دم نه لازميږي، بحر عميق.

لو که عذر وو معنا دا يا چاره نه وه يا بل څوک د سر خرېلو نه وو نو سر يې و نه خريل دم نه پر لازميږي که يې د عذر په وجه پوره شپه په مزدلفه کي تېره نه کړه او يا يې د مابنام لمونځ و ماخوستن ته و نه ځنډوی او يا بل واجب د حج په سبب د شرعي عذر ورڅخه

پاته سو لکه په بدائع کي چي وايي تر ولې واجبات او يا بعضي که د شرعي عذر په خاطر ورځخه پاته سي دم نه پر لازميږي لهذا که يو څوک پر پښو طواف او سعي د صفا او مروا د مريضی او بوډاولی يا د ګوډوالی په وجه و نه کړي يا سعي ته د ده ملګري تللي وي دی ورځخه پاته سوی وي باک نسته او که د ډېروالي څخه د خلقو ځان کاږي دا عذر نه دی او که طواف زيارت د ښځي څخه د حيض يا د نفاس په وجه يا د بند او يا د مرض په وجه چي حامل نه کړي پيدا ورځخه وځنډيږي باک نسته د حيض لرونکي ښځي څخه چي طواف صدر پاته سي پروا نه لري او که شپه په مزدلفه کي تېره نه کړي په دغه شپه منا ته ولاړ سي ښځه يا شيخ د ضعف او تکليف په وجه جواز لري دم نسته او کوم کارونه چي حرام يا مکروه دي که د سري څخه وسي جزاء يې سته.

## فصل په بيان د سنتو د حج دي

طواف القدوم للافاقي المفرد بالحج والقارن وابتداء من الحجر الاسود و خطبة الامام في ثلاثة مواضع و الخروج من مكه الى عرفة يوم التروية و البيتوتة بمنى ليلة عرفة و الدفع منه الى عرفة بعد طلوع الشمس و الغسل بعرفة والبيتوتة بمزدلفة والدفع منها الى منى قبل طلوع الشمس و البيتوتة بمنى ليالى ايامه و النزول بابطح و هذه هى المؤكدة و هى اكثر مما ذكر كما سياتى انشاء الله تعالى و حكم السنن الاسائة بتركها و عدم لزوم شي.

متن و بعده شرحه مع الترجمة

پر صحيح مذهب طواف القدوم سنت دی خو افاقي لره نه مکي لره ارشاد الساري ليکلي که مکي سړي د حج تر مياشتو مخکي د مکې څخه ووتی بيا د حج دپاره راغلی بيا طواف قدوم ورلره سته انتهي، طواف قدوم پر حاجي مفرد او حاجي قارن سنت دی نه پر عمره کونکي او حاجي متمتع باندي ځکه متمتع حاجي خو اول عمره وکړي بيا ځان حلال کړي نو دی داسي سو لکه د مکې سړی د حج دپاره او کوم چي قارن دی هغه خو ځان د عمرې وروسته نه حلالوي نو دی به اول عمره وکړي او د صفا او مروا سعيه به وکړي بيا به طواف قدوم وکړي بيا به حج وکړي د طواف د سنتو څخه پر اصح قول شروع د طواف ده د حجر اسود څخه په درې ځايو کي د امام خطبې ويل سنت دي اوله خطبه په مکه کي د اووم په ورځ دويمه پر عرفات د نهمه په ورځ دريمه په منٰى کي د يولسم په ورځ او وتل د مکې څخه د اتم په ورځ عرفات لره چي پنځه لمونځونه په منى کي پوره سي نو د مکې څخه به تر لمرخاته بعد روانيږي بيا به تر لمر راختو پوري په منٰى کي وي او شپه تېرول د عرفې په منا کي او که اکثره شپه يې تېره کړه بيا د يو ضرورت په وجه ولاړ پروا نه لري او يا د ضرورت او حادثې په وجه يې شپه په مکې يا عرفات کي وکړه هم پروا نه لري او بېرته تګ د منا څخه

و عرفات ته تر لمرخاته بعد د عرفې د ورځې او غسل کول بل سنت شپه تېرول دي په مزدلفه کې او بیا تر لمرخاته دمخه تلل دي و منا ته او په منا کې شپې تېرول دي دپاره د جمرو د ویشتلو او کښېنته کېدل دي د ابطح سره اگر که لږ زمانه وي دغه سنت چې نهه ۹ داني دي دا مؤکد سنت دي نور هم سته چې د حج په ابوابو کې به راسي او په الصغیر کتاب کې ۱۹ ذکر سوي دي ارشاد الساري لیکلي دي چې هغه نور چې ذکر کېږي وروسته هغه اصلا د حج سنت نه دي بلکې د احرام یا د طواف یا سعي سنتونه دي.

د سنتو مؤکدو حکم دا دی که یې قصداً پرېښول گناهگاره دی لیکن دم نه پر لازمېږي او پر کولو یې ثواب دی لیکن تر واجبو لږ دي لکه د واجبو ثواب چې تر فرضو لږ دی، ومن الله التوفیق فی البدایة و النهایة و ما بینهما.

## فصل د حج په مستحباتو کې دی

وهی اکثر من ان تحصر ولنذکر نبذا منها افضل الحج الحج و الثج و الغسل لدخول مکة و المزدلفة و النزول بقرب جبل الرحمت و الجمع بین صلاتین بعرفة و الاکثار من الدعاء و الوقوف خلف الامام و بقربه و الوقوف بالمشعر الحرام و اداء الصلاة به و رمی جمرة العقبة فی فوره فی یوم الاول و طواف الزیارة یوم النحر و المواظبة علی الاعمال و حکمها حصول الاجر بالاتیان و فواته بالترک.

متن و بعده ترجمه و شرحه

مستحبات د حج تر شمېر ډېر دي لیکن دلته یو څو داني ذکر کېږي بهترین هغه حج دی نر لره چې تلبیه په زوره ووايي د ښځې آواز عورة بلکه فتنة ده او بل مستحب د هدیې وینه بهېول معنا توبول دي او بل غسل کول د مکې د داخلېدو دپاره افاقي لره ارشاد الساري لیکلي دي دا سنت غسل شمول کوي د طواف زیارت دپاره د اختر په ورځ کې او نورو مناسکو لره غسل کول لهذا د افاقي قید ضرورت نه وو او غسل کول د مزدلفې دپاره او ختل جبل الرحمة ته که ضرر نه وو یا گناه نه وه ورته هم بدعت او ناروا دی لیکن مستحب عمل ورته نژدې درېدل دي چې د ښځو څخه به هم نگاه سي بل مستحب د ماپښین او مازیگر لمونځ په خپلو شرطو کې د ماپښین په وخت کې پر عرفات کول دي چې په اصطلاح ورته جمعه تقدیمه وايي او بل مستحب ډېروالی په دعا او تلبیه کې دی پر عرفات باندي او بل د دعاء په وخت کې ځای دی، د امام شا ته یا ورته نژدې درېدل دي او بل مستحب پر مشعر الحرام د اختر په سهار درېدل دی او په تیاره کې د سهار لمونځ په مشعر الحرام کې کول دي تر لمرخاته بعد جمره عقبه ویشتل دي او طواف زیارت د اختر په ورځ کول او همېشه توب کول دی پر اذکارو په متکرره اوقاتو کې حکم د مستحباتو د کولو اجر

او ثواب دی لیکن تر سنتو کم تر نفلو زیات او پرېښودل یې سرې د اجر کامل څخه محرومه کوي لیکن ګناه ورلره نسته نو اوس مستحب هم د سنتو څخه جدا سول ځکه د هغو په پاته کېدو کي څه ملامتیا سته دلته نسته. والله اعلم و علمه اتم.

## فصل فی مکروهات الحج

وهی کثیرة منها خطبة الامام بعرفة قبل الزوال و تاخیر الوقوف بعد الجمع بین الصلاتین و تقدیم الدفع من عرفة علی الامام و تاخیر عنه و الرمی بحصی الجمار و المسجد و بحجر کبیر و الاقتصار علی حلق الربع عند التحلل و المبیت بمکة لیلة عرفة و بغیر منی ایام الرمی قیل و الوقوف بعرفة و محسر و قیل لا یصح بهما و ترک کل واجب و سنة مؤکدة و حکمها دخول النقص فی العمل و خوف العقاب وعدم الجزاء فیما عدا الواجب و اما محرماته و مفسده و مباحاته فستاتی بعد.

متن و بعده ترجمه و شرحه

د عبارت شرحه ملا علي القاري داسي کړې ده چي د حج مکروهات ډېر دي لیکن بعضي په کنبي دا دي چي امام د عرفات د نهم د ورځي خطبه تر زوال مخکي ووایي سنت طریقه یې د ویلو تر زوال بعد ده او بل مکروه عمل ځنډ کول دي چي د عرفات مقام ته و نه رسیږي د مسجد نمرى تر دواړه لمونځو د ماپښین او مازیګر بعد بل مکروه کار د عرفات څخه په راکښته کېدو کي تر امام دمخه کېدل او یا ورڅخه ځنډېدل دي کراهت پر هغه مذهب چي متابعت واجب بولي تحریمي دی او چي سنت یې بولي بیا تنزیهي دی او بل مکروه عمل ویشتل د جمراتو دی په هغه ویشتل سوو ډبرو ځکه چي د مقبول سوي حج ډبري ملائکي وړي دا پاته سوي ډبري د غیر مقبول حج دي او یا د ډبرو اخیستل د مسجد څخه ځکه په دې کي سپکوالی د مسجد راځي او په غټو ډبرو ویشتل مکروه دی ځکه سنت ویشتل په مقدار د خرما د منډکي دی او بل مکروه څلورمه حصه د سر خریل یا لنډول دي چي ځان حلالوي د حج یا عمرې څخه بلکې ابن الهمام لیکلي دي چي د احرام څخه وتل تر هغه صحت نه لري ترڅو چي ټوله سر و نه خریي او دا مذهب د مالک رحمه الله هم دی علاوه دا ده چي داسي خریل د حج څخه ماسوا لا جواز نه لري او بعضي خلق د کوچنیانو سر یو څه وخریي باقي یې پرېږدي د کراهت ګناه یې پر ولي او مشر ده.

او بل مکروه د حج د عرفې شپه په مکه کي تېرول دي او یا د جمراتو د ویشتولو شپې د منٰی څخه بل ځای تېرول دي قیل وایي مکروه دی درېدل په هغه شېله عرنه کي چي د حرم او عرفات تر مابین ده محسر هم ورته وایي د منٰی او مزدلفې ترمابین ده بل قیل وایي دا دواړه درېدل صحت نه لري صحیح دغه قول دی او بل د واجب پرېښول مکروه تحریمي

دی د سنت مؤکد حکم پر ېښودل مکروه تنزیهي دی حکم د مکروهاتو دا دی چي واقع سي په
ثواب کي نقصان راولي او بل د سنتو عتاب ورلره سته که واجب پاته سوه عذاب ورلره
سته لیکن د یادولو خبره دا ده چي مکروه عمل دم نه لازموي لکه ترک د واجب چي دم
لازموي باقي محرمات د احرام او مکروهات او اداب او مفسد عمل لکه وطي تر عرفات
مخکي او مباحات دا ټوله به هر یو په خپل ځای کي درته راسي، والسلام علی اتبع الهدی.

## باب المواقیت

هی نوعان زمانی و مکانی فاالاول شوال و ذو القعدة و عشرة ایام من ذی الحجة و
من احکامها صحت افعال الحج فیها و منها عدم صحت شئ من افعاله الواجبة قبلها سوی
الاحرام فلو احرم به وطاف و سعی له فی شوال یقع سعیه عن سعی الحج و لو فعل ذلک فی
رمضان لم یجز و منها اشتراط وقوع الوقوف فیها فلو اشتبه علیهم یوم عرفة فوقفوا فاذا
هو یوم النحر جاز و لو ظهر انه یوم الحادی عشر لم یجز و منها اشتراط وجود اکثر افعال
العمرة فیها لصحة التمتع و کذا القران و منها لو احرم یوم النحر بحج و سعی له ثم حج
بذلک الاحرام من قابل یصح سعیه و منها لو احرم یوم النحر بعمرة و اتی بافعالها فی یوم
النحر و ان کان تکره العمرة فی ایام النحر.

ترجمه: میقات دوه قسمه دي ۱: یو زماني ۲: بل مکاني هغه اول چي زماني دی د
کوچني اختر میاشت د میاني میاشت د لوی اختر لس شپې زمونږ پر مذهب ارشاد الساري
زمونږ د مذهب دلیل ذکر کړی دی چي د عبدالله بن مسعود ﷺ او ابن عمر ﷺ او ابن الزبیر
ﷺ او شعبي نخعي ضحاک د دغو ټولو څخه روایتونه دي او بل الله تعالی یوم الحج
الاکبر ورته ویلي څوک وایي عرفه ورڅخه مراد ده او څوک وایي د اختر ورځ ورڅخه مراد
ده نو مشکله به دا وي چي نوم یې د یوم الحج وي او د میاشتي څخه نه ده او بل د حج یو
لوی رکن په کښې ادا کیږي. حباب.

اوس که سوال وارد سي چي د لوی اختر لسو ورځو ته نو ولي میاشت ویل سوې ده
په قرآن کي:

الحج اشهر معلومات.

اشهر خو جمعه د شهر دی کوم افراد د جمعي دري وي اوس خو دلته دري میاشتي
نه پوره کیږي همدغه وجه ده چي امام مالک رحمه‌الله د لوی اختر ټوله میاشت د حج د اداء
بولي الجواب د شافعي رحمه‌الله مذهب چي د لوی اختر د میاشتي څخه نهه ۹ شپې یا دوي
هغه مخکي تر دغه سوال وسو د ارشاد الساري په حواله. او د امام مالک رحمه‌الله جواب ملا
علي القاري رحمه‌الله داسي کړی دی چي بعض د میاشتي ته جمهورو علماوو هم میاشت

ويلي ده اقامة للبعض مقام الكل او بل دا خو هيڅ پوښېده نه ده چي فوق تر يوه ته هم جمعه ويل سوي ده اوس حکم د دغه مياني زماني څښتني دی.

الجواب: حکم د دغه اويا شپو دا دی چي د حج افعال په کښي کېدای سي لکه سعيه د حج وغيره او بل تر دغه دوو مياشتو او لسو شپو مخکي بغير د احرام څخه اګر که مکروه هم دی بل د حج فعل که واجب وي که سنت يا مستحب نه سي اداء کېدای بلکه امام شافعي رحمه الله احرام ته رکن ويلي دي هغه هم مخکي تر دغه مياشتو جواز نه ورکوي ليکن زموږ پر مذهب من وجه ورته شرط ويل سوي دي لهذا که څوک احرام وتړي د حج دپاره اګر که تر وخت مخکي وي او طواف قدوم يې اکثره شوطونه او سعيه يې د کوچني اختر په مياشت کي وکړه نو دا سعيه او اکثره د طواف قدوم د حج په سنتو کي يا په واجبو کي دريږي پر اختلاف د مذهبينو او دا کارونه د روژې په مياشت کي وکړي جواز نه لري عندنا.

سوال که اکثره طواف په روژه کي وکړي لږ يې په مياشت د کوچني اختر کي وکړي؟ جواب جواز نه لري.

سوال که د کوچني اختر په مياشت کي سعيه پر طواف قدوم دمخه وکړي څه حکم لري؟ جواب جواز نه لري، بل حکم د زماني ميقات دا دی چي د عرفات درېدل په نهم کي شرط دی.

سوال که د عرفات د درېدو ورځ پوښېده سوه پر خلقو خو ګماني يوه ورځ پر ودرېدل ليکن چي معلومات وسو هغه د اختر ورځ وه آيا حج صحت پيدا کوي؟ جواب حج صحيح دی بلاغباره او که معلومه سوه چي د مياشتي يولسمه ورځ ده بيا جواز نه لري بل حکم د دغه مياشتو د حج دا دی چي د حاجي متمتع او حاجي قارن د عمرې اکثره افعال صحت په کښي لري.

سوال که يو شخص د لوی اختر په ورځ احرام وتړی طواف يې وکړی سعيه يې وکړه ليکن په دغه احرام يې دا بل کال حج وکړی صحت لري او که يه؟ جواب حج يې صحت څکه لري د ده احرام طواف سعيه په خپل وخت کي ترل سوي او اداء سوي دي.

سوال که يو شخص د لوی اختر په ورځ د عمرې دپاره احرام وتړی او عمره يې ادا کړه په دغه ورځ کي بيا يې بل احرام د حج دپاره وتړی او حج يې بل کال وکړی د تمتع آيا دا طريقه مسنون ده؟ جواب دا دی چي په ظاهره خو دی لکه مکي سړي تمتع د ده دپاره مسنون نه ده او بل قيل هم دا حکم کړی دی چي اصلاً دا حج د تمتع نه دی څکه د تمتع دپاره شرط دا دی چي عمره او حج به په يوه کال کي وي پر قول د اکثره علماوو کذا ذکره في الکبير، د زماني ميقات بل حکم دا دی چي د متمتع او قارن حاجي هغه درې روژې چي

قرباني نه سي كولاى آخري ورځ د روژې به يې د عرفې وي دا روژې به تر اختر دمخه وي وروسته صحت نه لري او بل حكم د زماني ميقات دا دى چي د مكې سړي لره په دغه ورځو كي عمره مكروه ده كه يې حج پر كال كوى ځكه چي حج تمتع او قِران مكي لره ممنع دى نه افاقي لره او بل عمره خو په ټوله كال كي جواز لري بغير د پنځو ورځو ځخه چي د عرفې د ورځي ځخه شروع بيا د تشريق تر آخري ورځي پوري يو قيل ويلي چي مكي لره عمره مكروه ده ليكن د دغه وجه نه ده معلومه.

والثاني المكاني وهو يختلف باختلاف الناس وهم في حق المواقيت اصناف ثلاثة (١) اهل الآفاق (٢) اهل الحل (٣) اهل الحرم.

متن و بعده شرحه مع ترجمة

د ميقات په دوو اقسامو كي دويم مكاني دى دا ميقات د خلقو په اعتبار سره مختلف كيږي اقسام يې دري دي ١: يو افاقي خلق دي چي تر ميقات ځايو خارج وي حقيقة يا د مكې ځخه يو شخص ولاړ سي تر ميقاتو خارج سي د حج تمتع يا قِران كولو دپاره نو دا افاقي سو حكماً ٢دويم قسم هغه اشخاص دي چي اهل الحل ورته وايي چي د حرم ځخه خارج وي او په ميقات ځايو كي دننه وي ٣: دريم قسم د مكې خلق وغيره دى چي اهل الحرم ورته وايي نو د دغه دري سره اقسامو ميقات ځايو د احكامو دپاره په ترتيب سره فصلونه ذكر كيږي، ومن الله التوفيق.

## فصل د اول صنف ميقاتونه

مواقيت الصنف الاول وهم كل من كان منزله خارج المواقيت فميقات اهل المدينة ذو الحليفة و لاهل مصر و الشام و المغرب من طريق تبوک الجحفة فمن احرم من رابغ فقد احرم قبلها و قيل الاحوط ان يحرم من رابغ او قبله لعدم التيقن بمكان الجحفة و لاهل نجد اليمن و نجد الحجاز و نجد تهامة قرن و لباقي اهل اليمن و تهامة يلملم و لاهل العراق و سائر اهل المشرق ذات العرق و الافضل ان يحرم من العقيق وهى قبل ذات عرق بمرحلة أو مرحلتين وهن لهن و لمن اتى عليهن من غير اهلهن و حلمها وجوب الاحرام منها لاحد النسكين و تحريم تاخيره عنها لمن اراد دخول مكة او الحرام او ان كان لقصد التجارة او غيرها و لم ير نسكا و لزوم الدم بالتاخير و وجوب احد النسكين و اعيان هذه ليست بشرط بل الواجب عينها او حذوها فمن سلک غير الميقات بر ا او بحرا اجتهد و احرم اذا حاذى ميقاتا منها و من حذو الا بعد اولى و ان لم يعلم المحاذاة فعلى مرحلتين من مكة و لو ترک وقته و احرم من اخر سقط عنه الدم و المدني ان جاوز وقته غير محرم الى الجحفة كره و فاقا و فى لزوم الدم خلاف و صحح سقوطه.

متن و بعده ترجمه و شرحه

د اول صنف چي افاقيان دي دا هغه کسان دي چي کورونه يې د ميقاتو څخه خارج وي او يا د مکې څخه ورغلي وي نو د اهل مديني او هغه څوک چي پر دغه لاره ځي ذو الحليفة ده پر دغه ځاى ځاهان وه چي عوامو به ابار علي ﷺ ورته ويل ارشاد الساري په حاشيه کي د دې د مديني څخه د ليري والى په باره کي يو څو اقوال نقل کړي دي څلور ميله يا شپږ ميله يا اووه مله يا يو ميل يا دوه ميله منطقه د مديني څخه ليري ده دلته په خوا مسجد وو په نامه د مسجد الشجره بيا خراب سو په سنه ۱۲۸۸ کال کي جوړ سو سيد نور الدين علي السهودي په خپل تاريخ کي ليکلي دي چي د نبي ﷺ د مسجد نبوي د باب السلام څخه د مسجد الشجرة د دروازې تر چارچوبه اندازه وکړه ۱۹۷۳۲ نولس زره اووه سوه دو دېرش ذراعه د لاس وه ارشاد الساري والا وايي چي دا خو تر پنځه ميله څکه کم دى چي ميل خو د اوسپني په گزه څلور زره گزه دى کوم چي اوس مستعمل دى والله اعلم، ابن عابدين.

د اهل مصر او شام او مغرب والو چي تبوک يې لاره ده د شام او مديني تر مابين ميقات جحفة ده چي رابغ ته نژدې ده دا يوه شيله ده د حرمينو تر مابين واقع د بحر ته نژدې ده نو څوک چي د رابغ څخه احرام وتړي جواز لري وجه دا ده تر حجفې د مکې څخه ليرې ده ليکن قيل وايي چي احوطه دا ده چي د رابغ څخه احرام وتړي يا مخکي وجه دا ده چي حجفة چي بل نوم يې مهيعه دى دا ځاى ته بنوعبيل راغله چي د عاديانو څخه وه بيا عماليقه وو د مديني څخه وايستل بيا سېل پر راغى تولو يې د بيخه څخه وغورځول ورک يې کړ همدغه وجه ده چي حجفة ورته وايي اوس يې ځاى نه دى معلوم که نې د مکې څخه دوه دېرش ميله ليري ده د اهل نجد اليمن او نجد الحجاز و نجد تهامة ميقات قرن دى دا د طائف سره يوه قرية ده قرن بن رومان بن ناجية بن مراد د دغه قريې نيکه وو ارشاد الساري وايي دلته يو بنوى گيردى غر دى چي پر عرفات جگ دى د دغه قريې ډېر بنه کښتونه او باغونه دي چي ميوې يې و مکې ته هم راځي.

باقي اهل اليمن او تهامه د دوى ميقات يلملم دى دا هم غر دى دوې مرحلې معنا دوې مزل گاوي د مکې څخه ليري دى د اهل العراق معنا د بصرې او کوفې او د باقي مغرب د خلقو ميقات ذات عرق دى ليکن احتياطاً افضله دا ده چي عقيق څخه احرام وتړي چي دوې يا يوه مزلگاه تر ذات عرق ليري دى ارشاد الساري په حاشيه کي د عقيق څخه د احرام د فضيلت وجه دا ويلې ده چي په يقين سره ميقات ثابت دى او بل دا چي عرق اوس خراب سوى دى کما في هداية المناسک مځکه يې تروه ده شى نه شين کوي د مکې څخه دوې

مزلګه لیري دی پر لاره د طائف اوس د اوبو سیل وړباندي راځي نه پېژندل کیږي ملا علي القاري وايي دا میقات ځایونه د دغه مذکوره خلقو او د هغه چا دپاره چي پر دغه میقاتو راسي د احرام ځایونه دي ارشاد الساري د دغه میقاتو د ثبوت حواله بخاري، مسلم، ابو داود ته کړې ده.

## د میقاتو حکم

د میقاتو حکم دا دی چي د عمرې یا حج دپاره د دغه ځایو څخه احرام واجب دی په اجماع سره لو تر دغه مخکې هم جواز لري بې له خلافه او تر دغه میقاتو تېرېدل بې له احرامه حرام دی که اراده د حج یا عمرې لري بلکې زموږ پر مذهب پر هغه چا هم واجب دی چي و مکې شریفې ته او حرم ته د داخلېدو اراده لري یا د تجارت دپاره ورځي او هیڅ د حج یا عمرې قصد هم نه لري او که تر میقات بې له احرامه تېر سو دم پر لازمیږي د احرام دپاره دا ځایونه دي معین بلکې د دوی برابر ځایونه چي وي هم احرام ورڅخه صحت لري او که پر داسي لارو یا دریابو تلل چي میقاتونه نه معلومېدل په خپل اجتهاد به د هغه لیري میقات اندازه لګوي احرام به تړي او که د هغه میقات د برابرۍ څخه احرام وتړي چي و مکې ته ډېر نژدې وي هم جواز لري پر څلورو مذاهبو باندي او که داسي ښېښه سوه چي هیڅ محاذات نه ورته معلومېدی بیا دې داسي طریقه وکړي چي د مکې څخه دوې مرحلې لیري معنا دوې مزل ګاوې دې لیري احرام وتړي لکه جده.

ارشاد الساري لیکلي دي چي جده د مکې څخه دوې یا درې مرحلې لیري ده په شرعي مرحلو سره او وجه یې همدا ده چي دوې مرحلې میانه مسافه ده مګر احتیاط دا دی چي مسافه یې ډېره وي کذا فی شرح نظم الکنز . ملا علي القاري وايي که یو سړی پر میقات راغلی تېر سو و هغه میقات ته چي و مکې ته نژدې وو دم وړباندي نسته لیکن افضله هغه لیري میقات دی.

د مدینې او یا هغه شخص چي د دوی پر لاره راځي که د خپل میقات ذي الحلفې څخه تېر سو بې له احرامه د حجفې څخه احرام وتړی پر مذهب د ټولو احنافو داسي عمل مکروه دی په دم لازمولو کې یې د علماوو اختلاف دی مګر صحیح قول دا دی چي دم نسته وړباندي ځکه واجب خو مطلق میقات دی نه معین او بل دا که د یو چا په لاره کې دوه میقاتونه وه ده لره اختیار دی چي د هر یوه څخه احرام تړي لیکن افضله هغه لېرې دی د جمهورو پر مذهب چي د خلاف څخه وتلی دی مګر بعضي وايي لکه ابن امیر الحاج چي په نن زمانه کې هغه نژدې میقات غوره ځکه دی چي د مکروه اعمالو څخه پاک وي ځکه د لیري میقات څخه احرام تړل احتمال د ممنوع عمل سته والله اعلم، بدائع لیکلي دي که تر

اول میقات تېر سو و هغه نژدې ته جواز لري مګر مستحب د اول ځخه احرام تړل دي همدغه روایت امام صاحب ځخه دی بغېر د اهل مدینه وو ځخه ځکه که اهل مدینه تر ذی الحلفې تېر سوه و حجفې ته باک نسته لیکن چي اول میقات ته ورسي باید د مکې احترام وساتي لو دا زما خوښ قول دی.

او بل هغه قول چي افضله احرام د هغه اقرب ځخه دی هغه بنا په دې نظر دی چي اهل د زمانې په فساد کي ګیر دي ګنهونه زیات دي او کوم چي بعضي سلفو ویلي دي د کامل حج طریقه دا ده چي د خپل کوره ځخه احرام وتړي دا قول مقید دی په هغه چا پوري چي ځان ساتنه د محرماتو او ممنوعاتو ځخه کولای سي او کوم قول چي د امام اعظم صاحب دی چي اهل مدینه دي د ذوالحلیفې ځخه نه تېرېږي بلکې په بل قول کي یې فرمایلي دي چي دم پر لازمېږي وجه یې دا ده چي د دوی میقات خو پر لسان د شارع متعین سوی دی اوس د ده مبارک د اقوالو توفیق هم راغلی.

## فصل په بیان د دویم قسم میقات

دویم قسم هغه کسان دي چي کورونه یې په نفس میقات یا داخل په میقات کي وي تر حرمه پوري نو د دوی دپاره میقات الحل دی معنا دا چي حرم ته نا رسېده چي هر ځای یې احرام وتړي جواز لري د حج او عمرې دپاره لیکن و حرم ته بې له احرامه د حج او عمرې دپاره نه سي داخلېدلای بلکه احرام د داخلېدو دپاره په زمین حل کي واجب دی مناسب دا ده چي علم د طحطاوي پر قول راولي چي حنفي مذهبه عالم دی هغه ویلي دي چي اهل د میقات په حکم کي د افاقي دی سعید ابن جبیر وایي حج نسته د هغه چا چي د میقات ځخه احرام و نه تړي د ده د قول ځخه ظاهرېږي چي دا رکن دی لیکن جمهور علماء وایي واجب دی جبیره یې په دم کېږي د سعید ابن جبیر د قول توجیهه دا ده چي حج یې کامل نه دی.

## فصل فی الصنف الثالث

وهم من کان منزله في الحرم فمقاته الحرم للحج و الحل للعمرة و کذلک کل من دخل الحرم من غیر اهله و ان لم ینو الاقامة به کالمفرد بالعمرة و المتمتع و الحلال من اهل الحل اذا دخله الامن دخله تار کافیه فیجب علیه العود الیه.

متن و بعده شرحه و ترجمة

دریم قسم هغه کسان دي چي کورونه یې داخل په حرم شریف کي وي لکه د مکې او منا خلق نو د دوی میقات د حج دپاره یا خپل کور دی مګر د مسجد ځخه افضله دی او د عمرې دپاره چونکه سفر په کار دی چي في الجملة ځه تکلیف راسي ثواب به ډېر سي لهذا د حرم ځخه به وزي و زمین حل ته باره به د عمرې دپاره احرام تړي اوس د مکې دپاره د تنعیم

څخه د عمرې احرام فضیلت لري زموږ مذهب او د شافعي رحمه الله پر مذهب د جعرانې څخه احرام د عمرې فضیلت لري د ده د مذهب دلیل د نبي ﷺ فعل دی چې هغه مبارک د جعرانې څخه احرام وتړی او زموږ د مذهب دلیل قوي څکه دی چې نبي ﷺ په خپل قول کې په احرام د تنعیم څخه امر کړی دی د اهل حرم د خلقو په حکم کې هر هغه څوک دي چې بغیر د خپل کور والاوو څخه حرم ته تللي وي اګرچې د اقامت نیت یې نه وي کړی لکه یوازې عمره کول یا تمتع حاجي چې د خارج څخه راغلی وي او یا لکه هغه شخص چې د حرم د بنادي څخه راغلی وي خو حلال وي او که چیري یو شخص حرم ته را داخل سو د زمین حل څخه یې احرام و نه تړی بېرته به ځي زمین حل ته احرام به تړي راځي به دا عمل پر واجب دی که ولاړی نه دم پر لازمیږي سوال آیا که ولاړ نه سي ګناه ورلره سته؟ جواب که معذور نه وو ګناهګاره دی لیکن بل دم وربانديي نسته، والله اعلم و علمه اتم.

## فصل په بیان د تغیر کې د میقات دی

و قد یتغیر المیقات بتغیر الحال فیکون میقات الافاقي الحرم و المکي الحل او الافاق و الضابط فیه ان من وصل الی مکان صارحکمه حکم أهله فلو خرج المکي الی الافاق او الحل لحاجة فهو وقته للحج او العمرة الا اذا قصد ترک وقته عمدا و الافاقي او الحلي اذا دخل مکة او الحرم فهو وقته للحج و الحل للعمرة الا اذا اقصد ترک وقته بان دخل لاجل الاحرام لاغیر.

متن و بعده ترجمة و شرحه

کله کله میقاتونه تغیر خوري په اعتبارد تغیر د حال د سړي سره لکه یو کس یا په حرم یا خارج یا تر ماېین وي نو د افاقي میقات کله حرم وي کله زمین حل وي لکه د مکي میقات چې کله حرم وي کله خارج د حرم څخه وي پر طریقه د اختلاف د احوالو قانون د دغه حکم داسې دی چې هر څوک و هر مکان ته ورغلی د هغه مکان حکم اخلي که پر قصد شرعي ورغلی وو او که صرف تر میقات تېر سو پر غیر شرعي طریقه باندې بې له احرامه او حرم ته داخل سو او یا مکي سړی حل ته ووتی د حج د احرام دپاره بیا د دوی احکام نه بدلیږي که مکي سړی و خارج ته د حرم ووتی د یو حاجت دپاره نو بیا د ده میقات د حج یا عمرې په طریقه د حج افراد که میاشتې د حج وي او که د حج تر میاشتو مخکې وتلی وو بیا نو د قِران یا تمتع حج کول هم ورته جواز لري او که خارج ته ووتی بل کار یې نه وو صرف یې غرض دا وو چې میقات بدل کړمه عمداً بیا یې میقات نه بدلیږي او که افاقي یا حلي حرم ته داخل سو بیا نو د ده میقات حرم دی د حج دپاره او حل دی د عمرې دپاره او که حرم ته داخل سو دا یې غرض وو چې میقات بدل کړمه د احرام دپاره بیاهم د ده میقات نه بدلیږي بیرته به ځي د

خپل اصلي ميقات ځخه به احرام تړي. والله اعلم.

## فصل په بيان د هغه کس چي بې له احرامه تر ميقات تېر سي

من جاوز وقته غير محرم ثم احرم اولا فعليه العود الى وقت و ان لم يعد فعليه دم فلو احرم افاقي داخل الوقت و اهل الحرم من الحل للحج و من الحرم للعمرة او اهل الحل من الحرم فعليهم العود الى وقت و ان لم يعود وا فعليهم الدم فان عاد قبل شروعه في طواف او وقوف سقط ان لبي منه و ان عاد بعد شروعه کان استلم الحجر او وقف بعرفة لا يسقط و العود الى ميقاته افضل و ليس بشرط بل اليه غيره سواء. في سقوط الدم و من جاوز وقته يقصد مکانا فی الحل ثم بداله ان يدخل مکة فله ان يدخلها بغير احرام و من دخل مکة بغير احرام فعليه احد النسکين فان عاد الى ميقات من عامه فاحرم ای اداء او قضاء سقط به ما لزمه بالدخول من النسک و دم المجاوزة و ان لم ينوی عما لزمه و ان لم يعد الى وقت ولم يسقط الدم ولو لم يحرم من عامه لم يسقط الا ان ينوي عما لزمه بالدخول بغير احرام و لو دخلها مرارا فعليه لکل دخول نسک حج او عمرة فان احرم من عامة بفرض لو نذر فهو عن الاخير منها و عليه قضاء البقية و ان لم يحرم من عامه فکما مر و لو جاوزه کافر فاسلم اوصبی فبلغ او مجنون فافاق ثم احرم من حيث هو ولو فی مکة اجزاه ولادم عليه و العبد اذا جاوز ثم عتق فعليه دم و کذا لو لم يعتق و يوديه بعد العتق.

متن و بعده ترجمة و شرحه

ملا علي القاري صاحب بيان او شرحه د هغه کس په باره کي کوي چي د خپل ميقات ځخه بې له احرامه تېر سي ځه حکم لري ورته متوجه سه ځوک چي بې له احرامه تر حدود د ميقات تېر سي اوس که احرام وتړي او که يې و نه تړي بيرته به ګرځي و خپل ميقات ته احرام به د خپل ميقات ځخه تړي باره به حرم ته راځي او که بل ميقات ته نژدې وو که د هغه نژدې ميقات ځخه احرام وتړي هغه باک نه لري مګر غوره خبره دا ده چي و هغه خپل ليري ميقات ته ولاړ سي چي د علماوو د اختلاف خبره ووځي ارشاد الساري په حاشيه کي د حباب په حواله ليکلي دي که يې عذر درلود يا د دښمن ځخه بېره وه يا غله وه پر لاره تنها تلای نه سو يا وخت تنګ وو بيا دي د دغه ځايه احرام وتړي دم خو پر لازم دی ليکن ګناهګاره نه دی، دا ملا اخون و نحوه فی الحباب.

که و خپل ميقات ته را ونه ګرځېدی بيا دم پر لازم دی د ده د تېرېدو په وجه سره چي بې له احرامه تر ميقات تېر سو که اٰفاقي تر خپل ميقات دننه او يا اهل د حرم سړي راووتل د زمين حل ځخه د حج دپاره يې احرام وتړی او د حرم ځخه يې د عمرې دپاره احرام وتړی او يا زمين والا د حرم ځخه احرام وتړی بنا بر عکس د هغه چي شريعت ورته ميقات ګرځولی وو

پر دوی لازمه ده چي هرڅوک وګرځي او د خپل اصلي میقات څخه احرام وتړي معنا د شرعي میقات څخه فائده به یې داسي چي حرمت او کفاره به ورڅخه ساقط سي او که و میقات شرعي ته و نه ګرځي تاوان یې دا دی چي یو خو به دم پر لازم سي بل به ګناهګاره سي.

که چیري هغه څوک چي بې له احرامه تر میقات تېر سوی وو بیرته میقات ته وګرځېدی مخکي تر دې چي طواف قدوم او عمره یې لا نه وه کړې یا پر عرفات نه وو درېدلی بیا یې د میقات څخه احرام وتړی تلبیه یې وویل دم ورڅخه ساقط سو او که چیري یو شخص تر میقاتو تېر سو بې له احرامه شروع یې د عمرې یا طواف قدوم وکړه حجر اسود یې مسحه کړی او یا یې نیت وکړی ورڅخه او یا پر عرفات ودرېدی دم پر لازم دی او بیرته ګرځېدل شرعي میقات ته غوره کار دی فائده یې دا ده چي یو به د خلاف څخه ووځي او بل به یې ثواب ډېر سي ځکه ثواب په مقدار د تکلیف دی په دغه صورت کي چي و میقات ته ولاړ سي هم دم نه ورڅخه ساقطېږي.

که چیري یو کس تر میقات ځای تېر سو لیکن د ده قصد او نیت په زمین حل کي یوځای وو لکه باغ د بني عامر یا جده یا حدة ته یې په قصد کي نېولې وه چي فلاني شی په کنبي رانیسمه او د میقات څخه یې قصد د حرم هم نه وو کړی او پر حرم هم تېر نه سو کله چي خپل د مقصد ځای ته ورسېدی وروسته یې اراده وکړه چي حرم یا مکې ته ولاړ سم نو ده لره جواز لري چي حرم ته بې له احرامه داخل سي دا یوه حیله ده چي فقهاوو ذکر کړې ده د حرم د داخلېدو دپاره بې له احرامه خو لازمي خبره ده چي اولین او قصدي نیت به د ده دا نه وي چي زه و حرم ته ځمه کله چي تر میقات تېرېږي بلکه اولین قصد به د تجارت یا بل څه وي د زمین څخه که بیا ضمني نیت ورسره پیدا سو د حرم یا مکې پروا نه لري لکه د مدني سړي چي جدې ته په قصد د تجارت راسي چي د خپل کار څخه فارغه سو بیا و مکې ته ولاړ سي یا مثلاً د افغانستان یا پاکستان یا هند یو شخص دا قصد وکړي چي زه د جدې څخه تجارتي مال راوړم چي په جده کي د خپل کار څخه فارغه سو وروسته مکې ته ولاړې بې له احرامه څه باک نه لري او که اصلي قصد یې حج وو مګر ضمني او تبعي نیت ورسره پیدا سو چي د جدې څخه به تجارتي مال راوړم نو تر میقات ځای بې له احرامه تېر سو بیا که بیرته میقات ته را و نه ګرځېدی دم پر لازمېږي ځکه ده د حرم سپکاوی وکړ.

فائده: ارشاد الساري په خپله حاشیه کي ډېر لوی مفصل بیان را اخیستی دی د مبسوط او بحر الرائق حباب او رد محتار او تقریر الرافعي بدائع کافي او لباب څخه چي د تولو کتابو خلص مطلب فوق شارح ذکر کي او د ارشاد الساري غرض هم د شارح ملا علي

القاري رحمه‌الله د عبارت مظبوتيت او تائيد دي په عباراتو سره د فقهاوو. والسلام على من اتبع الهدى.

که چيري يو افاقي سړی و مکي يا حرم ته بې له احرامه داخل سو نو پر ده حج يا عمره لازم ده او يا بيرته به د ميقات شرعي څخه احرام تړي او يا دم پر لازم دی او که په دغه کال و ميقات ته ولاړی احرام بې د وقتي يا قضايي حج يا نذري حج يا د عمرې دپاره وتړی او تلبيه بې وويل د احرام دپاره د ميقات څخه نو دم ورڅخه ساقط سو د هغه مخکي افعالو او مجاوزت تر ميقات او که نيت و نه کړي په احرام کي د دې چي زما څخه هغه بې له احرامه د تلو و مکې ته بې حرمتي سوې ده چي هغه راوګرځوم چي د بيت الله عزت پر ځای سي هم پروا نه لري هغه احرام کفايت کوي او که بيرته و ميقات ته هم نه ولاړی او احرام بې وتړی دم پر لازم سو اوس که چيري په دغه کال د حج يا عمرې احرام بې په نيت د دې د ميقات څخه وتړل چي هغه مخکينی جبيره د نقصان ورکي بيا پروا نه لري که چيري يو شخص ډېر پلا تکراراً بې له احرامه و مکې ته داخل سي د هري پلا د حج يا د عمرې د دخول دپاره به دم پر لازميږي او که دغه سړی په اخير د کال کي د ميقات څخه احرام و نه تړي تېر سو او بيا دم هم ادا کي دغه دم د هري پلا پر ځای نه دريږي بلکې دا د اخيري پلا جزا ده د هغه تېر سوو د هر يوه دپاره جلا جلا دم پر لازم دی اوس به بې قضاء کول (معنا کېدل غواړي) او که پر کال هم حج و نه کړي هم به د تېرو کړو دمونه کوي.

که چيري کافر تر ميقات تېر سو اسلام بې راوړی کوچنی تېر سو وروسته بالغ سو ليونی چي تېر سو پرسد سو نو هر يو به د هغه ځای څخه چي بدلون په کښي راغلی احرام وتړي اګر که په مکې کي وي جواز لري دم ورباندي ځکه نسته چي دوی د ميقات په وخت کي مکلف نه وه او د دغه ځای ګوا کې اوسېدونکي دي او که مريی بې له احرامه تېر سو او يا يې موجب د کفارې فعل وکړی او بالغ وو وروسته بادار آزاد کړی دم پر لازم دی او که يې اوس آزاد نه کړی هر وخت چي آزاد سو دم پر لازم دی. ومن الله التوفيق.

## باب الاحرام

شرائط صحته الاسلام و النية و الذكر او تقليد البدنة و تعيين النسك ليس بشرط فصح منه او بما احرم به الغير و شرط بقاء صحته الجماع و شرط بقائه ان لا يدخله على جنسه قبل اتمام الاول و كذا على خلاف جنسه في صورتاني و واجباته ١: كونه من الميقات، ٢: وصونه عن المحضورات.

و سته كونه ١: في اشهر الحج، ٢: و من ميقات بلده، ٣: والغسل او الوضوء، ۴: ولبس ازار و رداء، ۵: و التطيب، ٦: و اداء الركعتين الا في وقت الكراهة، ٧: وتعيين

التلبية، ٨: و تكرارها، ٩: و رفع الصوت بها.

و مستحباته ١: ازالة التفث قبل الغسل كقلم الاظفار و حلق العانة، ٢: ونيت الغسل للاحرام، ٣: ولبس ثوبين جديدين او غسلين، ۴: والنعلين، ۵: والنية باللسان، ٦: ونيته بعد الصلاة بلا فصل جالسا، ٧: وسوق الهدى، ٨: و تقليده، ٩: و تقديم الاحرام على وقته المكاني ان ملک نفسه.

متن و بعده ترجمة و شرحه

شيخ ملا علي القاري د متن شرحه داسي كړې ده د احرام معنا ځان داخلول دي په حرمت كي پر ځان باندي چي تر احرام دمخه ورته حلال وه حرمت يې په نيت او تلبيې سره كيږي.

## شرطونه د احرام

د احرام د صحت دپاره يو څو شرطونه كه دغه په يو شخص كي وه نو احرام يې صحيح دی كه نه وه په كښې بيا يې احرام صحت نه لري هغه شرطونه دا دي:

١: اول اسلام دی چي احرام تړونكی به مسلمان وي د كافر احرام صحت نه لري.

٢: دويم شرط تلبيه يا د دې قائم مقام دی لكه ذكر.

٣: تقليد د هدی دی فكر به كوي چي په احرام كي هلته داخليږي چي نيت او تلبيه دي دواړه وكړه او بل په نيت كي تعين د فعل شرط ندی بلكې چي مطلق د نسک نيت وكړي هم كفايت كوي او بل په زړه كي نيت د حج يا عمرې يا قِران يا تمتع وكړي صحت لري كه داسي نيت وكړي چي زما نيت هغسي دی لكه فلاني چي يې نيت كړی دی كما في حديث علي ﷺ اخرجه الصحيحين ، د احرام د باقي پاته كېدو دپاره چي صحيح پاته سي تر احرام مخكي د خپلي محللي سره وطي وكړي ځكه په حج كي تر عرفات مخكي او داخل په عمره كي وطي فساد د حج او عمرې راولي اگرچي ملا علي القاريٚ و دغه عبارت د متن ته مسامحه ويلي دي ځكه شرط خو فرض دی مقدم پر ركن بيا كه دا شرط تر اخره پوري موجود وي لكه اودس او نيت د لمانځه دپاره او شرط د بقاء د احرام چي ورځخه مات نهسي دا دی چي يو احرام د عمرې دپاره وتړي بل دي دستي د بلي عمرې دپاره يا د يو حج دپاره احرام وتړي بيا دستي د بل حج دپاره احرام تړل جواز نه لري تر څو چي يې د اول احرام عمره يا حج نه وي كړی همدا رنگه جواز نه لري چي د عمرې دپاره احرام وتړي او بيا متصل د حج احرام وړيسې وتړي يا بالعكس دا په خاصو صورتو كي چي انشاءالله تعالى بيا به يې په باب اضافة احد النسكين الى الاخر كي سره د احكامو راسي ضرور به يا هغه مطالعه كوئ، و من الله التوفيق.

# د احرام واجبات او سنتونه

د احرام واجبات دا دي چي احرام به د خپل شرعي ميقات څخه تړي او بيا به يې ساتنه کوي د ممنوعاتو څخه او که ورڅخه واجب خراب سو جبيره به يې په دم يا کفارې کوي او سنتونه د احرام د حج دپاره دا دي چي په خپلو مياشتو کي به وي نه مخکي ځکه تر وخت مخکي احرام تړل مکروه دی زموږ پر مذهب د شافعي رحمه الله پر مذهب جواز نه لري او سنت د احرام دا دی چي د خپل ښار د ميقات څخه به احرام تړي اگرچي د ميقات څخه احرام تړل واجب دی دلته مراد د دغه ښار خصوصي ميقات مراد دی اگرچي جواز د بل ميقات څخه لري او سنت د احرام غسل کول يا اودس کول دي د لمانځه دپاره چونکه دا غسل د نظافت دپاره دی لهذا حيضه او نفاسه ښځه هم غسل کولای سي بلکه لازمي به غسل کوي که اوبه نه وي ليري وي تيمم جواز لري بې اودسه سړی کولای سي چي د احرام د لمانځه دپاره تيمم ووهي بل سنت ازار معنا لنگ تړل د نامه څخه شروع کيږي او پټو تړل چي پر اوږو راگرځول کيږي خو پام کوه اضطباع چي راسته اوږه لڅول غواړي دا هلته چي طواف شروع کيږي تر پايه د طواف او بل سنت د احرام خوشبوي استعمالول دي پر بدن او کالو عامه خبره ده چي دا خوشبوي دوام کوي تر احرام بعد او که يې نه کوي اگرچي په دوامي خوشبوي کي اختلاف دی مگر ارشاد الساري د امام اعظم رحمه الله او ابو يوسف رحمه الله مذهب مشهور نقل کړيدی چي جواز لري صرف محمد رحمه الله په خپل دويم قول کي ورته مکروه ويلي دي هغه مشک او غالبه قسم خوشبويي ياده کړې ده او د امام صاحب او ابو يوسف رحمه الله د قول څخه هغه خوشبويي مراد ده چي رنگ نه لري تکمله فتاوی قاضي خان، او مبسوط دا قول د امام صاحب غوره بللی دی او که چيري يې خوشبويه جامه چي رنگ واخلي پرېوله باره يې احرام ورڅخه وتړی طرابلسي وايي دا غوره طريقه ده.

ملاعلي القاري وايي سنت د احرام دوه رکعته لمونځ دی که وخت مکروه نه وو او بل تعين د تلبيې دی چي کمی به نه په کښي کوي زياتوب په کښي جواز لري بلکي خوښ او غوره عمل دی او بل د تلبيې تکرار دی چي دري واره به يې مکرر وايي او بل په لوړ آواز ويل دي د تلبيې چي هره ډبره او لوټه او درخته بيا درباندي شاهدي ووايي ليکن ښځه به يې په داسي آواز سره وايي چي يوازي يې دا واوري نه بل څوک.

او مستحبات د احرام د ځانه څخه خيري ليري کول دي مخکي تر غسل نوکان لنډول او تخرگونه خريل دي او د نامه لاندي خريل دي او د احرام دپاره د غسل نيت کول او اغوستل د دوو جامو سپينو نوي يا پرېول سوي او نعلين په پښه کول دي اگر چي نور هم جواز لري چي بجلکي نه پټوي او نيت کول په ژبه ويل دي اگرچي شرط د زړه نيت دی او ک

يې نيت د زړه کړی وو ليکن په ژبه يې بل څه ووېل بيا د خولې وينا اعتبار نه لري او نيت به
تر لمانځه بعد متصل په ناسته کوي معنا دا چې ولاړ سوی يا سپور سوی نه وي او بل د
ځان سره سوق الهدی معنا بيول د اوښ يا غويې دی او بل د هديې تقليد معنا نښاني کول
دی چې يو شی ور په غاړه کړي او بل چې روانيږي الله اکبر لا اله الا الله والله اکبر الله اکبر
ولله الحمد ويل دي او بل که يې پر ځان باور درلودل احرام به تر ميقات مخکې تړي.

## فصل هغه اعمال چې په احرام کې حرام دي

و هي كثيرة وسيأتي بعضها و منها تاخير الاحرام عن الميقات و ترك الواجبات و
ارتكاب المحظورات و الانتفاع بها و اما مفسده فالجماع قبل الوقوف و مبطله الردة لا
الجنون و لاغماء و مانعه عن المضى فى موجبه فوت الوقوف او الحصر و رافعه الرفض و
من مكروهاته تقديمه على وقته الزماني مطلقا و على المكاني ان لم يملك نفسه و الاحرام
بلاغسل او وضوء و احرام القارن بالحج قبل العمرة و الجمع بين النسكين المتحدين مطلقا
و بين المختلفين للمكي.

متن و بعده ترجمة و شرحه

هغه شيان چې په احرام کې حرام دي ډېر دي او را روان دي ليکن دلته د يو څو بيان
کيږي يو د حرامو څخه د احرام ځنډول د احرام دی تر خپل ميقات ځکه احرام د ميقات څخه
واجب دی او بل حرام کار پرېښول د واجبو اعمالو دی او بل حرام کول د ناجائزه کارو دی په
حالت د احرام کې او بل ناروا په احرام کې پر حرامو خوند اخيستل دی اگر که يې دی نه کوي
په زوره يا خطاء يا په ناپوهی کې وکړي نو بيا دا فائده لري چې گناه پر ده نسته او
فاسدونکی د حج د زوجې سره وطي کول دي تر عرفات مخکې په حج کې او تر طواف
مخکې په عمره کې او باطلونکی د حج د احرام بنده مرتد کېدل دی ليونتوب او بې سده
کېدل چې تر احرام بعد پېښه سي حج ته نقصان نه رسوي او مانع د احرام نه درېدل پر
عرفات باندې په حج کې او يا د دښمن وغيره پر احرام بنده بنديز لگول دي په دغه دواړو
صورتو کې احرام پای ته پوره نه رسيږي په حج يا عمره کې او احرام په خلاصولو سره
ماتيږي مکروهات د احرام تر خپل وخت مخکې احرام تړل دي مطلقا که په ځان باور د نگاه
کولو لري او که نه او د مکاني ميقات په باره کې مکروه دا دي چې مخکې تر ميقات هغه
څوک احرام وتړي چې په ځان د نگاه کولو باور نه لري او بل مکروه احرام بې له غسله تړل
دي حتی و حيضې او نفاسي ښځې لره هم مکروه دی او اودس کول هغه چا لره چې لمونځ په
کوي او بل مکروه عمل پرېښول د سنتو اعمالو دی او بل مکروه عمل حاجي قارن لره احرام
د حج پر احرام د عمرې ځکه د ده دپاره سنت اول د عمرې احرام تړل دي حتی په نيت کې هم

او بل مکروه عمل دوه احرامه یوځای کول د دو حجو یا دوو عمرو دپاره افاقي وغیره لره بلاخلاف د قِران او تمتع دپاره احرام مکي سړي لره خلافا للشافعي رحمه الله. ومن الله التوفیق.

## فصل حکم الاحرام

حکم الاحرام لزوم المضی وعدم امکان الخروج منه الا بعمل النسک الذی احرم به و ان افسده الا فی الفوات فبعمل العمرة و الاحصار فذبح الهدی و الجمع النسکین فبنية الرفض مع ترک الاعمال في صور و بالشروع في الاعمال في اخرى و لو بلانيته الرفض في صور و وجوب القضاء اذا خرج بغير فعل ما احرم به او بفعله فاسدا قيل الا في المظنون اذا حصر و شرط الخروج منه الحلق او التقصير في وقته الا اذا تعذر فيسقط بلا شی الا فی الرفض کما مرو تحلیل زوجته و مملوکه بفعل محظور فانه یخرج منه بلاحلق.

متن و بعده ترجمة و شرحه

ملا علي القاري رحمه الله ليکلي چي احرام صحت پيدا کړي نو حکم يې تمام ته رسول دی او د احرام څخه تر هغو نه وزي ترڅو چي هغه عمل پوره نه کړي چي دده احرام ورته تړلی دی لکه حج يا عمره اگر که دواړه نفلي وي او د ده احرام نه ماتيږي ترڅو چي ټوله افعال د حج پوره نه کړي مگر په يوه حال کي چي حج ورڅخه فوت سي په نه درېدلو پر عرفات باندي د عمرې په پوره کولو سره د احرامه څخه وزي او که د حج يا عمرې څخه دښمن يا بل چا احرام بنده منع کړی بيا د احرامه څخه هلته وزي چي په حرم کي د ده هديه حلاله سي او که جمع والی د دوو نسکينو وکړي په نيت د ماتوالی د احرام او په نه کولو د اعمالو مفروضه وو سره او يا په بل عمل کي شروع وکړي اگر چي نيت يې د احرام د ماتولو نه وي لکه چي تفصيل به يې راسي او بل حکم د احرام دا دی چي قضاء واجب ده که د احرام څخه په بل فعل ووتی مثلاً د حج څخه بند سو يا ورڅخه فوت سو يا د ده په فعل فاسد سو لکه وطي تر عرفات مخکي قيل ويلي نسته قضاء پر هغه چا چي احرام وتړي په دې گمان سره چي پر ده واجب دی ليکن دښمن يې ورڅخه منع او بند کړي بيا د دغه قضاء نه ده پر واجب او که منع نه سو بيا دغه قضاء پر واجب ده ليکن اول چي قضاء نسته ورباندي خو اصل اداء يې نه وه پر واجب او منع هم سو ورڅخه او دا حکم خاص پر احصار دی شرط د وتلو د احرام څخه د عمرې يا حج سر خرېل يا لنډول دی په مقدار د څلورمي حصې د سر د وېښتانو په خپل وخت کي په اعتبار د صحت په حج کي تر لمرخاته مخکي د سپېدو سره او د عمرې څخه بيا وتل چي اکثره شوطونه يې وکړه او په اعتبار د وجوب سره د حج څخه د وتلو وخت د شيطان تر ويشتلو بعد او په عمره کي تر سعي بعد او په اعتبار د جواز سره

وخت د وتلو يې باقي عمر : ده دى او که چيري د سر خريلو کار نه جوړيدى چاره نه وه يا سرى نه وو يا مريضي موجود وه بيا د احرامه څخه وتلاى سي بغير د وجوب څخه د دم يا خيرات او که په سر کي علت وو نو يا څه زخمي وو خريل يې واجب دى آيا مستحب طريقه دا ده چي دغسي چاره پر تېره کړي او يا يې يو داسي عمل وکړي چي احرام په مات سو يا يې د خپلي زوجې يا مينځي سره وطي وکړي بياهم د احرام څخه وزي بې له سر خريلو يا لنډولو سره بلکې په دغه ناروا عمل د احرام څخه ووتى.

## فصل په حق د مکانو کي دى

الاحرام في حق الا ما کن على وجوه الواجب من اى ميقات کان و السنة من ميقات بلده و الافضل من دويرة اهله و الفاضل کل ما قدمه على وقته و الحرام تاخيره عن الوقت و المکروه تجاوز وقته الى ادنى منه و يصح في الکل فلا يشترط لصحته مکان و زمان و کذا الا يشترط هيئته فلو احرم لا بسا المخيط او مجامعا انعقد في الاولى صحيحا و في الثاني فاسدا.

متن و بعده شرحه

احرام په حق د ځايو کي د خلقو پر مختلفو احکامو مشتمل دى اول خو احرام د هر ميقاته څخه چي وي که د ده د ښار وي يا د بل ښار واجب دى دويم د خپل اصلي ميقات مقرره څخه احرام تړل سنت عمل دى چي د امت څخه تکليف ليري سي دريم فضيلت منده احرام تړل د خپله کوره څخه دى ځکه فضيلت لري چي دلته چابکي راځي و طاعت ته لکه په قرآن کي هم الله تعالى فرمايلي دي:

واتموا الحج و العمرة لله. البقرة ۱۹۶

څلورم نيک احرام هغه دى چي د کوره څخه وتړل سي (تر ميقات دمخه) ليکن په شرط د دې چي د حج مياشتي داخلي وي پنځم قسم احرام ناجائزه دى چي تر معين ميقات تېر سي بې له احرامه شپږم قسم مکروه دى چي تر ليري و هغه نژدې ميقات ته ور تيريږي که يې په لاره کي دوه ميقاته وه او په خپل ځان هم باوري وو چي د اول څخه د ځان ساتنه کولاى سمه او که په ځان باوري نه وو بيا د دويم څخه ورته فضيلت لري احرام په دغه شپږو صورتو کي صحت لري که موافق وي که مخالف صرف د هغه احرام چي د حرام په نامه دى په دغه کي واجب دم دى د احرام د تړلو دپاره د صحت په اعتبار سره شرط مکان يا زمانه خاص نه ده زموږ پر مذهب تر وخت دمخه هم صحت لري ليکن مکروه دى او د شافعي رحمه الله پر مذهب رکن دى تر وخت دمخه جواز نه لري او بل د احرام د صحت دپاره يو قسم ځان جوړول يا يو قسم حال راوستل شرط نه دى که يې احرام وتړى ګنډلي جامه يې

واغوستله یوه ورځ پر ټېره سوه دم پر لازمېږي او که پوره ورځ نه وه خیرات به کوي او که يې تر احرام بعد وطي وکړه احرام خو وسو لیکن فاسد سو نو د ده کړه به دا وي د دغه احرام عمل به پوره کوي لکه هغه حاجي چې حج فاسد کړي بیا به قضاء راوړي پر بل کال ..الخ.

## فصل په اقسامو کي د احرام دی

وجوه الاحرام اربعة ١: قران. ٢: و تمتع. ٣: و افراد بحجة. ٤: او عمرة، و افضلها الاول ثم الثاني ثم الثالث ثم الرابع و هذه الوجوه هي المشروعة الا و لان للافاقي و الاخير ان مطلقا و اما المنهي عنها فالجمع بين الحجتين و العمرتين و ادخال العمرة عل الحج مطلقا و ادخال الحج على العمرة للمكي خاصة و كذا القران و التمتع له و اما تفسير الوجوه الاربعة فان الافراد الاحرام بالحج فمفرد و ان افرد بالعمرة فاما في اشهر الحرم او قبلها الا انه اوقع اكثر اشواط طوافها فيها اولا الثاني مفرد بالعمرة و الاول ايضا كذلک ان لم يحل من عامه او حل و الم باهله الماما محيحا او لم يلم بينهما او الم الماما فاسدا فمتمتع ان سلم الفساد و الا فان افسد عمرته فمفرد بالحل او حجه فبالعمرة و ان لم يفرد الاحرام بواحد منهما بل احرم بهما معا او ادخل احرام الحل على احرام العمرة قبل ان يطوف للعمرة اربعة اشواط فقارن شرعا ان اوقع اكثر طواف العمرة في الاشهر و الا فلغة فيلزمه دمه في الشرعي لا غيره و ان ادخل احرام العمرة على الحل قبل ان يطوف للقدوم و لو شوطا فقارن مسيءٌ او بعد ما طاف له و لو شوطا فايضا مسيءٌ الا انه اكثر اسائة من الاول.

متن و بعده شرحه

علامة شيخ ملا علي القاري شرحه کوي چي اقسام د احرام نسبت و عامو او خاصو ته څلور قسمه دی ١: اول قِران چي حج او عمره سره جمع کيږي ٢: دويم تمتع چي اول عمره کيږي بيا ځان حلال کړي د عمرې څخه بيا خپل جائزه افعال کوي د حج دپاره بيا بل احرام وتړي په شرط د دې چي هديه اوبش يا غويې يې د ځان سره نه وي بېولی، ٣: دريم قسم احرام د حج افراد دی معنا يوازي حج بغير د عمرې څخه که چيري بعد تر حج عمره وکړي او يا يې د حج تر مياشتو مخکي عمره کړې وه پروا نه لري، ٤: څلورم قسم احرام د عمرې دی عامه خبره ده که يې مخکي حج کړی وي يا يې وروسته کوي ليکن د حج په مياشتو کي نه وي او يا ګرسره حج و نه کړي او يا بغير د حجه يوازي عمره وکړي او يا يې تر وخت دمخه وکړي ليکن په ټولو کي بهترين احرام د قِران دی او دا د جمهورو سلفو او د پرو خلفو علماوو مختاره مذهب دی بيا دويم فضيلت د تمتع دی ليکن امام احمد بن حنبل رحمه الله د تمتع احرام افضله بولي بيا دريم لمبر فضيلت د حج افراد احرام دی ليکن د امام مالک او شافعي رحمه الله پر مذهب دا تر ټولو فضيلت منده دی څلورم مقام د عمرې د احرام

دا څلور سره قسمونه زموږ په شریعت کي مشروع دي ليکن په جواز کي يې تفصيل دی نسبت و ځايو او مکانو ته همدا وجه ده چي قِران او تمتع مشروعيت لري او جائز دي و افاقيانو ته ، او حج افراد او عمره مطلق خلقو ته که افاقي وي يا مکي جواز ورته لري او بل د تمتع او قران د خصوصيت وجه په قرآن کي راغلې ده يوازي د دوی دپاره:

ذٰلک لمن لم یکن اهله حاضری المسجد الحرام.

دا تمتع او هغه چي معنا د دې کي دی لکه قِران دا خاص د هغه چا دپاره دي چي اهل او خاندان يې د مسجد الحرام سره حاضر نه وي نو دا دواړه قسمه تر افاقي پوري خاص سوه.

## د منهی عنها احرام اقسام

د انواعو څخه د احرام چي متصور کيږي ۱: يو قسم هغه منهی احرام دي چي يو احرام د درو ۳ حجو دپاره يوځای وتړي او يا يو نه وي خلاص سوی بل وربسې وتړي داسي احرام منع دی.

۲: دويم قسم د منهی احرامو څخه د دوو عمرو احرام يوځای تړل دي چي دا قسم حرام دی بلکي ماتول يې واجب دی بل دم پر واجب دی او دا حکم د دواړو قسمو دی کوم چي اوس تېر سوه.

۳: دريم قسم د منهی احرامو څخه دا دي چي د ميقات څخه اول د حج احرام وتړي بيا د عمرې دا وربسې متصل وتړي دا مطلقاً مکي او افاقي لره منع دی ليکن د افاقي دپاره نهي تنزيهي دی او د مکي دپاره تحريمي دی او پر دغسي عمل دم لازم دی مولانا الشمني رحمه الله وايي که اول د ميقات څخه د حج بيا د عمرې احرام وتړي مخکي تر دې چي د حج دپاره يې طواف نه وي کړی دا حج قِران دی او دا قول د شافعي رحمه الله هم دی چي دی يې په دليل کي د نبي عليه السلام حجة الوداع وړاندي کوي احناف جواب ورکوي چي نبي عليه السلام د داسي منهي کړو څخه پاک او منزه دی علاوه دا ده چي نبي عليه السلام د عمرې او حج نيت يو ځای کړی دی او يا يې اول د عمرې نيت وکړی بيا يې د حج نيت وکړی، والله أعلم.

۴: څلورم قسم د منهي احرامو څخه دا دی چي د مکې سړی اول د عمرې بيا د حج احرام وتړي دا صحت لري او حاجي قارن دی ليکن گناهگاره دی او دم پر واجب دی د جبيرې نه د شکريې او بل مکي لره منهي احرام د قِران دی چي جمعه د حج او عمرې وکړي يوځای او يا اول احرام د عمرې وتړي بيا متصل د حج دپاره او بل تمتع و مکي لره منهي عنه ده چي د حج په مياشتو کي اول عمره پوره کړي بيا حج وربسې وکړي دا درې سره قسمه و مکي لره خاص جواز نه لري دليل يې تېر سوی دی.

اوس تفسير د هغه څلورو اقسامو درته کيږي که يې د حج دپاره يوازي احرام وتړی حاجي مفرد دی او که د عمرې دپاره وتړی بل شی يې ورګډ نه کړی عمره ده او که يې د حج په مياشتو کي د عمرې احرام وتړی يا تر دغه مياشتو دمخه ليکن اکثره شوطونه يې هم د حج په مياشتو کي وکړه دا هم مفرد بالعمره دی معنا يوازي عمره سوه که چيري مکي سړی احرام د عمرې او حج وتړي او ځان يې په مابين کي حلال نه کړی تر کاله پوري او يا يې حلال کړ او خپل کور يې سره د اهله د مکي څخه افاقي مقام ته بوتلل د ده پر صحيح طريقه وه يا پر فاسد طريقه وه د ده حج تمتع دی مسنون خو شرط دا دی چي خپله عمره او حج يې د فساده څخه ساتلی وای او په يو کي فساد راغلی وو مثلاً په عمره کي مفرد حاجي دی که په حج کي راغلی وو عمره ده نه حج. او که چيري يې د عمرې احرام وتړی څلور شوطونه يې پوره نه کړه چي زمين حل ته نقل سو بيا يې د حج احرام وربسې راوړی نو دی حاجي قارن دی شرعاً ګناهګاره دی او که نه دا هلته چي د عمرې لږ شوطونه د حج په مياشتو کي او د عمرې شوطونه د حج تر مياشتو دمخه وه بيا نو شرعي قارن نه دی بلکې د لغت په معنا سره قارن سو نو پر ده دم لازميږي دم د قران شکرا يا جبرا، الی اخره.

## فصل پر سنت او مستحب طريقې احرام تړل

اذا اراد ان يحرم ای بحج او عمرة او بهما يستحب ان يقص شاربه و يقلم اظفاره و ينتف او يحلق ابطيه و يحلق عانته و يجامع ان كان معه اهله و يتجرد عن لبس المخيط و يغتسل بسدر او نحوه ينويه للاحرام او يتوضأ و الغسل افضل و الوضوء يقوم مقامه فی حق اقامة السنة لا الفضيلة و يستاک و يسرح راسه عقيب الغسل و هذا الغسل او الوضوء يستحب للحائض و النفساء و الصبی و لايقوم التيمم مقامه عند العجز عن الماء و لو اغتسل ثم احدث ثم توضأ و احرم لم ينل فضل الغسل و قيل ينال و لو احرم بلاغسل و وضوء جاز و يكره و يستحب ان يتطيب او يدهن بما لايبقي اثره افضل و يستحب ان يكون بالمسک و اذهاب جرمه بماء الورد و نحوه و الاولی ان لا يتطيب ثيابه.

متن و بعده ترجمه و شرحه

شيخ ملا علي القاري وايي چي احرام لره خپل کيفيت او سنت او مستحبه او فضيلت منده طريقه سته که اراده حاجي وکړه د حج يا عمرې يا د دواړو نو ده لره مستحب ده چي بريتونه لنډ کړي يو دپاره د نظافت او بل چي ډېره زمانه پاته سي اوږدېږي د سر ذکر يې و نه کړی ځکه چي مستحب خو د سر د وېښتانو پرېښول دي د احرام د وتلو په وخت کي يې د خريلو ثواب ډېر وي ځکه نبي ﷺ او اصاحبو کرامو سرونه بل وخت نه خرېل مګر پس د احرام د خلاصولو څخه چي د حج څخه به فارغه سوه سرونه به يې وخريل کوم چي

عوام د مکې اول تر احرام سرونه خريي هغو له اعتبار نسته د لاسو او پښو نوکان به اخلي د تخرګو وېښتان به خريي ليکن کښل يې غوره دی تر نامه لاندي وېښتان به خريي مقصود نظافت دی په هره طريقه چي ايسته کيږي او د خپل اهل سره که يې ماينه يا مينځه ورسره وه وطي به ورسره وکړي چي د ستر ګو مرتيا ورته حاصله سي ګنډلي کالي به کاږي غسل به په ګل سدر يا د دې مثل لکه اوس صابون يا شامپو کوي او د غسل نيت به د احرام دپاره کوي چي اجر تام ترلاسه کړي که يې نيت و نه کړی هم ثواب لري يا د مطلق غسل نيت وکړي يا د جنابت غسل ورسره ضم کړي يا به اودس کوي ځکه مالا يدرک کله لا يترک کله، ليکن غسل افضل دی ځکه سنت مؤکد دی اودس هم پر ځای د غسل دريږي په سنت کي نه په فضيلت کي ځکه غسل مؤکد سنت دی په دغه عبارت کي اشاره راغله چي تيمم قائم مقام د غسل نه سي کېدلای مطلقاً مګر د لمانځه دپاره کېدای سي چي تيمم ووهي مسواک به په اول د طهارت کي وهي د سر وېښتان به ږمونځوي تر غوړولو مخکي همدغسي حکم د ږيری دی پس تر غسل حائضه او نفاسه او کوچنی به هم غسل کوي که يې غسل وکړی بيا يې اودس مات کړی بيا د لمانځه دپاره اودس وکړي سنت نه پرځای کيږي ځکه غسل د سنتو څخه د احرام دی ځکه که د لمانځه وخت نه وي بيا به هم غسل کوي دا ظاهره مسئله ده.

که يو کس احرام بې له غسله او اداسه وتړی يا يې لمونځ وکړی هم جواز لري ځکه غسل اودس لو لمونځ د شرائطو او واجباتو څخه د احرام نه دي ليکن پرېښول د سنتو بې له عذره مکروه عمل دی خوشبويي او وېښتان غوړول مستحب کار دی خو داسي خوشبويي به نه لګوي چي اثر يې پاته سي داسي خوشبويي لګول چي اثر يې پاته نه سي ځکه فضيلت لري چي د علماوو د اختلاف څخه خبره ووزي مستحب داسي عطر لګول دي چي رنګ نه لري غوره دا ده چي پر کالو يې و نه لګوي ځکه چي اثر يې پاتيږي.

## فصل خوندور احرام د کومو رنګو دی

ثم يتجرد عن الملبوس المحرم على المحرم و يلبس من احسن ثيابه ثوبين جديدين او غسلين ابيضين غير مخيطين ازار و رداء و يجوز في ثوب واحد و اكثر من ثوبين و في اسودين او قطع خرق مخيطة و الافضل ان لايكون فيهما خياطة.

متن و بعده ترجمة و شرح ملا علي القاري

حاجي به اولاً ځان د ګنډلو او په معصفر رنګينه ممنوع کالو څخه لغړوي باره به ښه جامې اغوندي ځکه الله تعالى فرمايلي دي:

خذوا زينتكم عند كل مسجد. اعراف ۳۱

ستر په بنو کالو پټوی د هر عبادت دپاره.

نو دوې جامې به اغوندي چي دا د میت د کفن سره مشابهت لري او افضله هم دي نوي به وي یا به پرېولي وي او سپیني به وي دا ښه رنګ دی لکه د کفن دپاره چي مقرر سوی دی نبي ﷺ فرمایي تاسي سپین کالي اغوندئ حکه دا پاک او خوندور دي او خپلو مړو ته هم دغسي سپین کفن ورکوئ. ارشاد الساري وايي د دغه اخراج ابن ماجه في سنن ٣٥٦٧ –او ابن کثیر ج٣، ص٤٢ –او سیوطي في الدر المنثور ج٣. ص٧٩ کي کړی دی او دا کالي به ګنډلي نه وي دا بیان د فضیلت دی که نه ګنډلي کالي هم جواز لري په یو طریقه سره یو به لنګ وي چي عورت په پټ کړي بل به پټو وي چي وږي په پټي کړي ځکه چي لمونځ مکروه دی که یې وږي دواړې یا یوه لڅه وه کوم چي پټو تر راسته تیځرګ لاندي کوي پر چپه یې را اړوي او راسته وږه لڅوي چي دې ته اضطباع وایي دا په طواف کي نه بل ځای کوم چي عوامو تول عمر راسته اوږه لڅه کړې وي هغه یو بې اصله وهمي کار دی د ضرورت په وجه د احرام دپاره چي عورت پټ کړي یوه جامه هم جواز لري زیات تر دویم هم جواز لري چي پر یوه لنګ بل ووهي یا پر یوه پټو بل راوګرځوي یا یې سره بدلوي په تورو یا شنو جامو کي هم جواز لري او په هغه ټوټو کي چي سره ګنډل سوي وي د لنګ یا پټو دپاره هم جواز لري لیکن فضیلت هغه جامې لري چي هیڅ د ګنډلو شی نه وي په کښې، ومن الله التوفیق.

## فصل ثم یصلی رکعتین بعد اللبس و التطیب

و یستحب ان کان بالمیقات مسجد ان یصلهما فیه و لو احرم بغیر صلاة جاز و کره و لا یصلي في وقت مکروه و تجزیء المکتوبة عنها و اذا سلم فا لافضل ان یحرم و هو مستقبل القبلة في مکانه فیقول بلسانه مطابقا لجنانه اللهم اني ارید الحج فیسره لی و تقبله منی نویت الحج و احرمت به ثم یلبي لبیک اللهم لبیک لبیک لا شریک لک لبیک ان الحمد و النعمة لک و الملک لا شریک لک و یصلی علی النبي اجلا لالکبیریاء الله و عظمته ثم یدعو بما شاء و یستحب ان یذکر في اهلاله و ما احرم به من حج او عمرة او قران فیقول لبیک بحجة و ان اراد العمرة او القران یذکرهما في الدعاء و النیت و في القران یذکر العمرة علی الحج و ان کان احرامه عن الغیر فلینوی عنه ثم ان شاء قال لبیک عن فلان و انشاء اکتفی بالنیة.

متن باقي شرح ملا علي القاري

حاجي چي احرامونه وتړل خوشبویې یې ولګول نو به دوه رکعته لمونځ وکړي نیت د سنتو د احرام کوي چي فضیلت د سنتو تر لاسه کړي اګرچي مطلق نیت هم جواز لري په

دغه دوو رکعتو کي تر الحمدلله بعد به په يو کي قل يايها الکفرون سورت په بل کي به قل هو الله احد سورت وايي فايده يې دا ده چي په دې سورتو کي برائت د شرک څخه دی او بل بيان د توحيد په کښي دی او دا بيان افضل دی او بل حديث په کښې وارد دی په حواله د ابن ماجه په الظهيريه کي راغلي دي چي ډېر علماء تر قل يايها الکفرون بعد ربنا لا تزغ قلوبنا (آل عمران ۸) هم وايي او تر قل هو الله احد بعد ربنا اتنا من لدنک رحمة (کهف ۱۰) او مستحب دا دی که په ميقات کي مسجد وو چي لمونځ په هغه کي ادا کړي دپاره د ګټلو د زيات برکت د مکان ماثور او که بې له لمانځه احرام وتړي هم احرام يې جواز لري نه د ده فعل ځکه سنت ورڅخه پاته سو همدا وجه ده چي ورته مکروه ويل سوي دي او که وخت د لمانځه نه وو مکروه وو بيا به لمونځ نه کوي ځکه په حديث کي راغلي دي چي تاسي لمونځ په وخت مکروه کي مه کوئ فرضي وي که نفلي دشافعي رحمه الله څخه ماسوا د ټولو علماوو اتفاق پر دغه دی شوافعو جواز لمانځه ته ور کړی دی فرضي لمونځ هم پر ځای د دغه لمانځه دريږي دا د متن مسئله ده ملا علي القاري وايي د احرام لمونځ پر تحية المسجد قياس کول قياس مع الفارق دی ځکه دا مستقل لمونځ دی لکه د استخارې لمونځ وغيرها نو فرض يې پر ځای نه دريږي او کوم چي د تحية المسجد لمونځ يا د شکر الوضوء لمونځ دا مستقل لمونځ نه دی لکه دا تحقيق چي الحجة الفتاوی کړی دی او د الکبير د مصنف قول چي فرض د احرام د لمانځه پر ځای دريږي غير صحيح دی ليکن ارشاد الساري په حاشيه کي د ملا علي القاري رحمه الله جواب کړی دی چي د ده قول د عامو کتابو څخه د مذهب مخالف دی ځکه هغو جواز ورکړی دی په بحر الرائق کي وايي فرض لمونځ کفايت د احرام د لمانځه داسي کوي لکه تحية المسجد لمونځ اه حباب. والله اعلم و علمه اتم.

چي د لمانځه سلام يې وګرځوی فضيلت منده دا ده چي دستي به احرام شروع وکړي په دغه ناسته کي مخامخ قبلې ته پر دغه ځای مستحب دا ده چي په خوله هم هغه څه ووايي چي په زړه کي يې نيت لري چي اې خدايه زه د فرضي حج اراده لرمه که يې مخکي حج نه وو کړی مطلق نيت به ځکه نه کوي چي د علماوو په کښي اختلاف دی او که سړی فقير وو هم به د فرضي حج نيت کوي ځکه چي ميقات ته ورسيږي خو پر فرض کيږي نو اوس که د نفلي نيت وکړي خو حج يې نفلي ګرځي د آينده دپاره يې پر غاړه فرضي پاته سو لو دا دعاء به کوي چي د دې حج اسباب راته اسانه کړې او توفيق د اعمالو صالحو راکړې او مي لازم کړی پرهيز د محرماتو څخه خالص ستا د رضاء دپاره کومه وروسته به تلبيه ووايي هغه دا ده:

لبیک اللهم لبیک لبیک لا شریک لک لبیک ان الحمد و النعمة لک و الملک لا شریک لک۔

ژباړه: په خدمت ولاړ یمه ستا دروازې ته یو وار بیا وروسته تر بل وار او ستا بلنه قبلوم یو وار بیا بعد تر بل وار په خدمت ولاړ یم یو وار بیا بعد تر بل وار تا لره هیڅ شریک نشته په خدمت پس له بل خدمته بیا ولاړ یمه ستا دروازې لره غتې او لوی ثناء او صفتونه تا لره دي نه بل چا لره ځکه بل مستحق یې نشته او نعمتونه ټوله ستا د جانبه راکول کیږي باچهي یوازې تا لره ده تا لره بل شریک نشته.

مستحب طریقه د وینا یې دا ده چې یو وار آواز پورته کوي بیا بل وار یې کښته کوي بیا به درود ووایي معنا اللهم صل ... الخ تر پایه به دا وایي دا د الله رب العالمین د اظهار د لویي او عظمت دپاره بیا به هغه دعاوي کوي چې کومه دعاء یې خوښه وه لیکن منقولې دعاګانې دغه دي چې درته بیان به سي که دې شوق درلودی و من الله التوفیق:

اللهم انی اسلک رضاک و الجنة و اعوذ بک من غضبک و النار.

ژباړه: اې پروردګاره زه سوال کوم ستا څخه د رضا ستا او د جنت او پناه غواړمه د قهره څخه ستا او د اور څخه د دوږخ.

بله مستحب دعا دا ده:

اللهم احرم لک شعری و بشری و دمی من النساء و الطیب و کل شئ حرمته علی المحرم ابتغی بذلک وجهک الکریم.

ژباړه: اې پروردګاره ما احرام تړلی ستا د رضا دپاره وېښتانو او پوست او وینې او بندبدل د ښځو څخه زما او هر هغه شي څخه چې احرام بنده تا بند کړی هغه ما پر خپل ځان حرام کړي دي په دغه کړو خپل ستا د ذات کریم رضا طلبوم.

د کنز په شرحې کي وایي چې بعضي علماوو دا دعا مستحب بللې ده تر تلبیې بعد:

اللهم اعنی علی فرض الحج و تقبله منی و اجعلنی من وفدک الذین رضیت عنهم و ارتضیت وقبلت اللهم قد احرم لک شعری و بشری و لحمی و دمی و عظامی.

ژباړه: یا الله زه قصد د فرض حج لرم راڅخه قبول یې کړې او ما د هغه ډلې څخه وګرځوه چې ته ورڅخه راضي یې او تا خپله رضاء ورکړې وي او د ده کړه دي قبول کړي وي یا الله زما وېښتانو د بدن د پوست غوښې وینې او هډوکو ستا د رضاء دپاره احرام تړلی دی.

حاجي لره مستحب طریقه دا ده چې یو ځل تلبیه په لوړ آواز ووایي بیا یې په ماینن

کي ذکر وکړي بيا تلبيه ووايي دا به پس له احرامه څخه وايي او بل د احرام څلور قسمه دي چي درته تېر سوه هر يو خپله طريقه د تلبيې لري که احرام يوازي د حج وو داسي به وايي:

لبيک بحجة.

او که يوازي د عمرې احرام يې وتړی په تلبيه کي به داسي وايي:

لبيک بعمرة.

او که حج قِران وو د عمرې او حج دواړو تلبيه به داسي وايي:

لبيک بعمرة و حجة.

نو اصلي طريقه د وينا د عمرې دپاره د نيت او دعاء دا ده:

اللهم انی اريد العمرة فيسرها لی و تقبلها منی نويت العمرة و اخرمت بها لله تعالی لبيک بعمرة.

ژباړه: يا الله زه اراده د عمرې لرمه راته اسانه يې کړې او راڅخه قبول يې کړې او نيت مي دی د عمرې احرام مي د عمرې ستا د رضاء دپاره تړلی دی او په خدمت پس له بل خدمته د عمرې ولاړ يم.

داخو د عمرې دپاره دعاء او نيت سو او د حج دپاره به داسي وايي که حاجي مفرد وو:

اللهم انی اريد الحج فيسره لی و تقبله منی نويت الحج و احرمت به لله تعالی لبيک بحج.

او که حاجي قارن وو بيا به داسي دعا او نيت کوي:

اللهم انی اريد العمرة و الحج فيسرهما لی و تقبلهما منی نويت العمرة و الحج و احرمت بهما لله تعالی لبيک بعمرة و حج.

ژباړه د ټولو هغه ده چي د عمرې تر دعاء او نيت لاندي تېره سوه صرف فرق په بعضو الفاظو کي راځي يوځای عمره بل ځای حج بل ځای عمره او حج ذکر کيږي.

فايده: که يې د بل چا دپاره حج فرضي يا نفلي کوی بيا به داسي نيت او تلبيه وايي:

نويت عن فلان و لبيک عن فلان.

معنا زما د فلاني دپاره نيت د حج فرضي يا نفلي کوم او په خدمت ولاړ يم ستا د رضا دپاره د فلاني د طرفه مګر که د هغه بل شخص چي دی يې پر ځای حج يا عمره کوي صرف په زړه کي نيت وکړی پر ژبه يې ياد نه کړي او په دعاء کي يې ياد نه کړي پروا نه لري همدارنګه په تلبيه کي.

## فصل په نيت کي شرط د زړه نيت دی

فينوی بقلبه ما يحرم به من حج او عمرة او قران او نسک من غير تعين و ذکره باللسان مع ذلک افضل و ليس بشرط و لو نوی بقلبه و لم يتکلم بلسانه صح و ان جری علی

لسانه خلاف ما نوی بقلبه فالعبرة بما نوی لا بما جری فلو لبی بحجة و نوی بقلبه العمرة او لبی بعمر و نوی بقلبه الحج او لبی بهما جمیعا و نوی احدهما او لبی باحدهما و نوی کلیهما فالعبرة بما نوی.

متن و بعد شرح ملا علي القاري

په نيت کي د ژبي نيت لره په اجماع د علماوو اعتبار نسته اگرچي بعضو لا ورته بدعت ويلي دي ليکن مستحسنه او مستحبه طريقه څکه ده چي زړه ښه بيداره او حاضر سي د ژبي په نيت سره نيت به په زړه کي کوي که حج وي که عمره يا دواړه يا بل د حج فعل وي لکه د طواف يا بل داسي فعل مگر په ژبه يې هم وينا بهتره ده چي دواړه سره جمع سي هرکله چي تا وپېژندل چي اعتبار د زړه نيت لري نو که نيت مثلاً د عمرې وکړي او په خوله سره حج ياد کړي يا يې د يوه نيت په کښي وو په ژبه دواړه ياد کړي نو اعتبار د زړه نيت لره دی د خولې غلطي ته اعتبار نسته او دغسي حکم د تلبيې هم دی که په زړه يو قسم د حج يا عمرې دپاره تلبيه ونيسي پر ژبه بله ووايي اعتبار د زړه تلبيه لري نه د ژبي تلبيه اگرچي فرض ده وينا يې په ژبه سره ليکن هغه مطلق تلبيه ده نه معينه تلبيه.

## فصل په ژبه وينا د تلبيې شرط دی

و شرط التلبية ان تكون باللسان فلو ذكرها بقلبه له يعتد بها و الاخرس يلزمه تحريک لسانه و قيل لا بل يستحب و كل ذكر يقصد به تعظيم الله سبحانه يقوم مقام التلبيه كالتهليل و التسبيح و التمحيد و التكبير و غير ذلک و لو قال اللهم يجزئه و قيل لا و يجوز الذكر بالعربية و الفارسية و غيرهما باى لسان كان و التلبية مرة فرض و تكرارها سنة و عند تغير الحله لات مستحب مؤكد و الاكثار مطلقا مندوب و يستحب ان يكرر التلبية في كل مرة ثلاثا و ان ياتى بها ولو رد السلام في خلالها جاز و يكره لغيره ان يسلم عليه و لا ينبغي ان يخل بشئ من التلبية المسنونة فان زاد عليها فحسن و يستحب اكثارها قائما و قاعدا راكبا و نازلا واقفا و سائرا طاهرا و محدثا جنبا و حائضا و عند تغير الاحوال و الا زمان و كلما علا شرفا او هبط واديا و عند اقبال الليل و النهار و بالاسحار و بعد الصلوات فرضا و نفلا و عند كل ركوب و نزول و لقاء بعضهم بعضا و اذا استيقظ من النوم او استعطف راحلته و اذا كانوا جماعة لا يمشى احد على تلبية الاخر بل كل انسان يلبي بنفسه دون ان يمشى على صورة غيره و يستحب ان يرفع بها صوته الا ان يكون في مصر او امرأة و يلبي في مسجد مكة و منى و عرفات لا في الطواف و سعي العمرة و يقوم تقليد الهدى مقام التلبية هو ان يربط في عنق بدنة او بقرة واجب او نفل قطعة نعل او مزادة او لحاف شجرة او نحوه و يسوقها و يتوجه معها ناويا للاحرام فيصير بذلک محرما لكن

الافضل ان يقدم التلبيه على التقليد لئلا يصير محرما بالتقليد لان السنة ان يكون الشروع بالتلبية و لايقوم الاشعار مقام التلبية بل هو مكروه عند خوف السراية و الا فحسن في الابل و الابل تقلد و تجلل و تشعر و البقر لا تشعر و الغنم لا يفعل بها بشئ من ذلك و لو اشترک سبعة في بدنة فقلدها احدهم بامرهم صاروا محرمين ان سارو معها و بغير امرهم صاروهو محرما و لو بعث بالهدى ثم توجه فان كان هدى قران او متعة في اشهر الحج صار ان سار ناويا محرما بالتوجه و ان لم يكن لهما او لهما في غير اشهره لا يصير محرما حتى يلحقها و يسوقها.

متن و بعده شرح شيخ ملا علي القاري رحمه الله

د تلبيه په ژبه ويل شرط دی او که په زړه کي يې هم ويل ډېره ښه خبره ده ليکن د ژبي وينا بې له د زړه د ياد څخه بې اعتباره تماميږي او پر ګنګ سړي ښورول د شونډانو لازم دي که قادر وو او محمد رحمه الله خو شرط بللی دی شونډان ښورول د ګنګ مګر قيل والا وايي چي پر ګنګ شونډان ښورول لازم نه دي.

په محيط کي د ګنګ د شونډانو ښورول مستحب دی همدا رنګه د متن په عبارت کي ورته مستحب ويل سوي دي او د نورو د کلامو څخه شرط بلل سوی دی په حق د لمانځه د قراءت کي نو دا اختلاف سو حکم يې څنګه راوزي جواب دا دی چي اصح مذهب دا دی چي په لمانځه کي نه دی پر لازم علاوه دا چي قراءت د لمانځه فرض قطعي متفق عليه دی، سوال آيا ذکر يا تسبيح د تلبيې پر ځای درېږي؟ جواب کلمه د لا اله الا الله محمد رسول الله، ذکر الله اکبر – الحمدلله ويل – اللهم ويل وغيره بلکې هره ثناء چي د الله تعالى تعظيم په کښي راځي جواز لري او د تلبيې ځای نيسي اګرچي دعاء هم ورسره ګډه وي.

سوال آيا بغير د عربي څخه په بله ژبه ذکر او تلبيه جواز لري؟ الجواب ذکر او تلبيه په عربي، پښتو، فارسي، ترکي، اوردو بلکې جمهور علماء وايي چي عربي يې زده وي لاهم په بله ژبه جواز ورته لري ځکه باب د حج واسع دی د لمانځه په رنګه تنګي نسته په کښې، سوال تلبيه ويل څو واره فرض ده؟ الجواب يو وار ويل فرض دی د شروع په وخت کي نه بل وخت، سوال سنت طريقه د تلبيې کومه ده؟ الجواب په اول مجلس کي او په نورو مجلسو کي چي ذکر يې وسي او په تغير د حالاتو کي لکه سهار، مابنام، ماښپښين، د اوطاقه څخه وتل او اوطاق ته داخليدل، ولاړه، ناسته، تلل، درېدل، د خلقو سره د ملاقات په وختو کي د جلا کېدو په وخت کي، د تکليف په وخت کي، د وسعت په وخت د تلبيې تکرارول سنت عمل او کار دی، سوال د تلبيې مستحب مؤکد چي تر مطلق مستحب مقام بالا لري کومه زمانه ده؟ الجواب دلته قيد د وخت نسته په هر حال کي ډېره وينا يې مؤکد

مستحب ده. سوال تلبیه چي سرېي شروع کړي څو واره تکرار یې مستحب دی؟ الجواب چي شروع یې په وکړه درې واره تکرار یې مستحب دی. سوال که سړي تلبیه ویله بل سلام ورته واچاوه څه کول ورته په کار دی؟ الجواب تلبیه ویونکي لره دوارې خواوي جواز لري که جواب ورکوي او که یې نه ورکوي مګر ښه کار دا دی چي تلبیه خلاصه کړي وعلیکم وايي. سوال آیا پر هغه شخص چي تلبیه وايي په زوره سلام ورته کول څه حکم لري؟ الجواب مناسب نه ده چي تر مسنونه طریقې کمی په کښې کوي او زیاتوالی یې په امر کي مستحسن بلکې مستحب دی چي پر هغه تېر سوي تلبیې دا کلمې ور زیاتي کړي:

لبیک و سعدیک و الخیر کله بیدیک و الرغباء الیک اله الخلق لبیک بحجة حقا تعبدا ورقا لبیک ان العیش عیش الاخرة (و نحو ذلک).

ژباړه: په خدمت پس تر بل خدمت د یار پس تر بلي یاری درته ولاړ یم ټوله خیر ستا سره دی رغبت زموږ و تا ته دی ته خالق د ټولو مخلوقاتو یې په حق دلیل ثابته ده ستا بندګان او مریان یو په خدمت درته ولاړ یو پس له بل خدمت څخه او ښه ژوند د آخرت دی.

فایده: هغه دعاګاني چي په روایاتو کي د حدیثو راغلي دي وینا یې مستحب ده او نوري د ځانه جوړي سوي دعاګاني کول جواز لري او حسن په کښې سته.

سوال اول وار تلبیه چا ویلي ده په عالم ارواح کي او بل د قیامت په ورځ یې اول څوک وايي؟ الجوابين په عالم ارواح کي هم نبي ﷺ ویلي ده چي د سرو مېړانو په شکل کي انسانان په میثاق کي پیدا سوه هم نبي ﷺ اولین لفظ په جواب کي (بلی) ویلي دي دویم جواب د قیامت په ورځ هم اولین لبیک نبي ﷺ وايي ځکه دلیل دا دی بزار د بیهقي څخه دا حدیث را ایستلی دی د حذیفة رضی الله عنه څخه روایت دی چي د قیامت پر میدان الله تعالی مخلوقات را جمع کړي هیڅ شخص خبره نه سي کولای نو اولین آواز به و نبي ﷺ ته وسي مبارک ﷺ به ووايي:

لبیک و سعدیک و الخیر في یدیک و المهدي من هدیت و عبدک بین یدیک بک و الیک لا منجاء منک الا الیک تبارکت و تعالیت سبحانک رب البیت. (اخرجه الی کم في المستدرک ۲، ۳۶۳- و الهیثمي في مجمع الزوائد ج۱۰ ص۳۷۷- وابن شیبه في المصنف ج۱ ص۲۳۲- و الزبیدي في اتحاف السادة المتقین ج۴ ص۳۳۷ و ص۳۳۱ - و ابن حجر في المطالب العالیة شمېره ۴۶۴۴۵- والدار قطني في السنن ج۱ ص۲۹۸- و البیهقي في الاسماء و الصفات ص۳۲۱).

ژباړه: په خدمت او په یاري ولاړ یم یو وار بیا بل وار خیر ستا سره دی هدایت یافته وو ته تا هدایت کړي دی بنده ستا په حضور کي دی ستا په قدرت سره او تا ته مي فناء در

وړي ده بله فناء نه لرو ستا برکت ډېر دی او لويي تا لره ده او پاکي تا لره ده اې ربه د بيت الله.

نو نبي ﷺ به په دغه وخت کي شفاعت شروع کړي لکه په قرآن کي چي الله تعالى فرمايلي دي ژر به رب ستا تا را پورته کړي و مقام محمود ته.

آيت دا دي ترجمه يې پورته تېره سوه:

عسى ان يبعثک ربک مقاما محمودا. اسراء ۷۹

سوال سړی چي پر کوم حال وي تلبيه ويل ورته مستحب دی او ډېره وينا يې په کوم حال کي کوي؟ الجواب دلته څه قيد نسته مستحب وينا په ولاړه ناسته پورته په تللو کي پياده سپور راکښته کېدونکي درېدونکي په اوداسه بې اوداسه په جنابت حائضه نفاسه د حال د تغير په حالاتو کي لکه باد باران راختل د لمر لوېدل د لمر وغيره احوالو کي صرف د حاجت انساني په حال کي نه ويل کيږي او بل چي تغير د مکان راسي وينا يې مستحب ده که لوړ ځای خيژي يا ورڅخه راکښته کيږي د شپې په راتگ سره د ورځي په رڼا سره د پېشلمي په وخت کي تر هر فرض او وتر او نفلي لمانځه او سنتو لمونځو بلکې تر قضايي لمانځه بعد په وخت د ملاقات کي په وخت د بيداري کي د خوبه څخه په وخت د قصد کولو د خوب په وخت د را گرځولو د سپاري د وسائل په دغه ټوله مختلفو احوالو کي د تلبيې وينا مستحب ده.

فايده سنيه: که دوه يا ډېر کسان سره يو ځای سوه هر سړی به پر خپله طريقه تلبيه وايي داسي نه چي يو د هغه بل د خولې تلبيه وايي او پر هغه هم تلبيه پوشيده يا غلطه کړي او بله مسئله دا زده که نن زمانې ته مه گوره ملا علي القاري ليکلي دي چي مستحب طريقه د قرآن د وينا دا ده چي په اجتماع کي به يو قرآن وايي هغه باقي کسان به يې سمعه کوي نه داسي لکه مصريان يا شاميان چي سره جمع سي نو ټوله په هيئت اجتماعي د قرآن تلاوتونه کوي علاوه دا ده چي د قرآن تلاوت مستحب دی سمعه يې واجب ده نو د واجب درجه ظاهره ده چي زياته ده:

و اذا قرء القران فاستمعوا و انصتوا لعلکم ترحمون.

دا د قران فيصله ده.

سوال: تلبيه به سړی په څونه لوړ آواز سره وايي؟

الجواب: مستحب طريقه دا ده چي څونه آواز پورته کيږي کوشش به په کښې کوي ځکه چي هر سړی د ده تلبيه واوري بيا د قيامت په ورځ به شاهدي پر وايي ليکن د فکر وړ و بل چا ته ضرر ورسوي چي څيغې نه وي چي د ده آواز ودريږي ځان ته ضرر ورسوي او يا و رسوي چي پر هغه باندي تلبيه ورکه کړي په حديث کي راغي چي نبي

ﷺ صحابه کرام ولیدل چي آوازونه يې تر خپل حد تېر کړه نو بې ورته وفرمايل پر خپلو ځانو رحم وکړئ میانه روي وکړئ تاسي خو داسي ذات ته ناري نه وهی چي نه اوري یا لیری دی درڅخه بلکې هغه ذات قريب او اورېدونکی دی. ابن كثير في البداية و النهاية ج۴ ص۳۱۳

خلص مطلب د جواب دا سو چي په آواز کي به سرې میانه توب کوي.

سوال: که سرې په ښار کي وو تلبیه به څنګه وایي او یا ښځه حاجیه وه دا به په خپل ټولو اوقاتو کي تلبیه څنګه وایي؟

الجواب: په ښار کي د تلبيې وينا په کښته آواز سره په کار ده چي د ریاء څخه ساتنه وسي او د ښځي دپاره هم مستحب طريقه دا ده چي محض دا يې اوري بل څوک يې نه اوري.

سوال: په مسجد کي د مکې او په مسجد کي د منا یا پر منا یا پر عرفات او پر مزدلفې د تلبیې څه حکم دی؟

الجواب: په دغه ځايو کي چونکي خلق زيات دي په تلبيه کي به آواز کښته کوي.

سوال: د طواف او د سعي په وخت کي د تلبیې څه حکم دی؟

الجواب: د طواف په دوران کي به همدا رنګه د سعي د عمرې په دوران کي به تلبیه نه وايي او بل د حج په دوران کي د دعاګانو ماثوره ووثواب زيات دی.

سوال: تلبیه خو جواب ورکول دي د هغه داعي او آواز کونکی، آیا دا داعي څوک وو؟

الجواب: دلته درې قوله دي په يو کي الله تعالی يادوي په بل کي نبي ﷺ په دريم کي ابراهيم ﷺ او مصنف د الكبير كتاب دا دريم ظاهر بللی دی لیکن شيخ ملا علي القاري وايي دلته د روحان جواب مراد دی هيڅ شک نسته چي دغه دلته مراد دی که داسي نه وي نبي ﷺ ته خو د آواز امر سوی دی په قرآن کي:

و اذن فی الناس بالحج. الحج ۲۷

ژباړه: ناري کړه و خلقو ته چي و حج ته راځئ.

او په حجة الوداع کي هم نبي ﷺ و خلقو ته د حج د کولو آواز وکړ او هيڅ شک نسته چي په حقيقت خو داعي الله رب العالمين دی او صواب هم دا ده چي د تلبیې جواب والله لره دی ځکه د تلبیې څخه پخپله هم دا معلومیږي.

سوال: د تلبیې پر ځای کوم شی دریږي؟

الجواب: تقلید د هدیې.

سوال: هدية څه ته ويل کيږي؟
الجواب: هديه اوښ يا غويي يا پسه د ځان سره و حج ته د حلالولو دپاره بيول دي.
سوال: تقليد د هديې څه ته ويل کيږي؟
الجواب: د تقليد معنا دا ده چې د اوښ يا د غويي په غاړه د نشاني کولو دپاره يو شی وځړوي عامه خبره ده که واجب وي لکه د قِران او تمتع يا نذر يا کفاره او يا نفلي وي ځکه و هر حاجي لره هديه سنت ده که يې قدرت درلودی نبي عليه السلام په حجة الوداع کې سل اوښان هديه کړه چې په دغو کې درې شپيته ٦٣ اوښان ده مبارک په خپل لاس حلال کړي دي په شمېر سره د ده مبارک د عمر د کلونو. باقي اوښان حضرت علي رضي الله عنه حلال کړه د مبارک عليه السلام په امر سره.
سوال: حاجي چې د ځانه سره هديه بيايي طريقه يې څنګه ده؟
الجواب: حاجي به هديه تر احرام دمخه کې نيت د خپل حج دي وکړي مستحب دا ده چې مخامخ کعبې ته دي روان سي الله اکبر دي ووايي باره دي هديه روانه او دا کلمې دي ووايي:
الله اکبر لا اله الا الله والله اکبر و لله الحمد.
کله چې حاجي دا طريقه وکړه دی احرام بنده سو اګر که يې تلبيه نه وي ويلې ځکه چې نيت او روانول دْ هديې پر ځای د تلبيې دريږي.
فايده: فضيلت منده طريقه دا ده چې اول تلبيه ووايي بيا د خپلې هديې په غاړه يو شی وځړوي وجه دا ده چې شروع په دواړو راسي او تقليد پر تلبيې دمخه نه سي ځکه دمخه کېدل د تلبيې پر تقليد سنت دی.
سوال: آيا اشعار د بدني چې په نېزه د اوښ بوک ووهي ويني سي دپاره د نشاني دا د تلبيې پر ځای دريږي؟
الجواب: د امام اعظم رحمه الله پر مذهب دا عمل مکروه بولي اګر که نور ضرر نه وي په کښې او که ضرر ورسره موجود وو بيا د ټوله علماوو پر قول مکروه کار دی.
سوال: که يو څو کسان او يا کم په يوه اوښ يا غويي کې سره شريکان سوه ليکن يو کس هدی يه نښاني کړه څه حکم لري؟
الجواب: که چيري دغه کس د هغه نورو په اجازه يې تقليد (معنا نِښاني يې کړه) او ټوله ورسره روان سوه نو ټوله احرام بنده سوه او که ورسره ولاړه نه يا يې و هغه يوه ته امر نه وو کړی هديه يې دْ قِران وي که د تمتع او مياشتې هم د حج وي نو په دغه صورتو کې هغه شخص چې تقليد (معنا هديه يې نښاني کړې) هغه احرام بنده سو که نيت يې وو نه دا

باقي شريکان.

سوال: قارن يا متمتع که د حج تر مياشتو دمخه لا خپلي هديې استولي وې بيا څه حکم لري؟

الجواب: دغه دوه قسمه حاجيان هلته محرمان ګرځي چي هرکله د خپلو هديو سره يوځاى سوه او ورپسې سول.

د شيخ ملا علي القاري حامل د عبارت

د بدني معنا هديه د درېدلو پر ځاى د تلبيې يو څو شرطونه اول نيت دى چي بيان يې تېر سو دويم په خپله مخامخ ورپسې کېدل په هديه پسې درېيم که يې مخکي استولي وه ځان ور رسول بيا يې شړل.

مسئله که يو شخص خپله هديه نبناني کړه او بو يې نه تله پخپله او يا يې بوتله مخامخ قبلې ته نه سو پر مشهور مذهب احرام بنده نه دی.

مسئله که يو شخص نبناني کړه خپله هديه او وا يې ستول مخامخ نه سو ورسره بيا وروسته مخامخ سو اراده يې د حج وه نو که چيري هديه د متعي او قِران نه وه تر هغه وخته مُحرم نه ګرځي ترڅو چي ورسره يوځاى نه سي او که يو ځاى سو او وې شړل نو دی احرام بنده سو ليکن اللحوق شرط په اتفاق سره دی ليکن د هديې خپله ورپسې تلل وروسته تر يوځاى کېدو اختلافي مسئله ده شمس الائمة سرخسي په مبسوط کي د صحابه کرامو دري اقوال نقل کړي دي چي مورِ اوس په هغه يقيني قول عمل کوو هغه دا دی که حاجي و خپل هديې ته ورسېدی او بيا يې پخپله وشړل ورپسې سو نو دی احرام بنده دی او پر دغه مسئله د ټولو صحابه کرامو اتفاق هم راغلی او کوم چي هديه نفلي يا د نذر يا جزاء ده تر هغه يې احرام صحت نه لري ترڅو چي يې ګير نه کړي او خپله ورپسې نه سي.

## فصل د بيت الله د زيارت نيت کول يا يې صرف د احرام نيت وکړی صحت لري

و من نوي الاحرام من غير تعين حجة او عمرة صح و لزمه و له ان يجعله لا يهما شاء قبل ان يشرع في الاعمال احدهما فان لم يعين حتى طاف و لو شوطا کان احرامه للعمرة او وقف بعرفة فللحجة و ان لم ينو و لو احصر قبل الافعال او فاته الوقوف او جامع تعين للعمرة و لو احرم مبهما ثم احرم ثانيا بحجة فالاول للعمرة او بعمرة فا الاول للحجة و ان لم ينو بالثاني شيئًا فهو قارن و لو احرم بما احرم به غيره فهو مبهم فيلزمه حجة او عمرة و ان فات تعين للعمرة و کذا لو احصر.

متن و بعده شرح ملا علي القاري

که حاجي د احرام نیت د ځان دپاره وکړی بغیر د تعین کولو څخه د حج یا د عمرې یا د دواړو احرام او نیت مبهم یې صحت لري ارشاد الساري یې اصل بیان کړی دی حضرت علي ﷺ چې د یمن څخه راغلی ویل زما نیت د احرام داسې دی لکه د نبي ﷺ نو جواز هم نبي ﷺ ورکړی، فتح القدیر، حباب.

احرام چې صحت پیدا کړي نو پر لازم هم سو نو بیا د ده خوښه ده چې د حج دپاره یې ګرځوي یا د عمرې دپاره خو دا هلته چې شروع یې په یوه نه وي کړې که نیت معین کړي او طواف یې شروع کړی نو احرام د عمرې سو او متعین سو او که تر طواف مخکې پر عرفات ودرېدی بیا حج متعین سو په دواړو صورتو کې اګرچې ده نیت ته تعین نه وي ورکړی لا متعین سوی دی اوس که چیرې دغسې شخص چې تعین د نیت یې نه دی کړی دښمن د بیت الله څخه را وګرځوی دا یو صورت او یا یې تر عرفات مخکې وطي وکړي دا دویم صورت یا د عرفات درېدل ورڅخه پاته سوه دا دریم صورت په اول صورت کې به د عمرې قضاء راوړي په دویم صورت کې به دغه عمره هم سر ته رسوي خو بله به قضایي کوي په دریم صورت کې به خپله عمره وکړي ځان به حلال کړي او که چیرې یې احرام مبهم وکړی بیا یې بل احرام د حج وتړی اول متعین سو د عمرې دپاره او که اول احرام مبهم وو دویم یې د عمرې وتړی قارن دی که یو شخص وویل زما نیت د احرام داسې دی لکه د فلاني نو دا نیت هم مبهم دی لازم پر ده حج یا عمره ده اوس د بیت الله څخه دښمن بند کړي یا د عرفات درېدل ورڅخه پاته سوه یا یې تر عرفات دمخه وطي وکړي عمره یې متعین حکم یې لږ دمخه تېر سو.

## فصل د مطلق حج احرام بلاتعینه

ولو احرم ولم ینو فرضا و لا تطوعا فهو فرض و لو نوی عن الغیر او النذر او النفل کان عما نوی و ان لم یحج للفرض و لو نوی للمنذور و النفل معا قیل فهو نفل و قیل نذر و لو نوی فرضا و نفلا فهو فرض و لو نوی نصف نسک او حجا لا یطوف له و لایقف فعلیه نسک او حج کامل و لو احرم علی ظن انه علیه لزمه المضی و ان افسده فقصاؤه و ان احصر فقیل لا یلزمه القضاء و قیل یلزمه وصححه في الغایة.

متن وبعده ملا علي القاري

که یو کس احرام وتړي نیت یې نه د فرض او نه د نفلو وو حج یې فرضي دی ځکه د مطلق نیت کامل مرادیږي او که حج پر فرض وو خو استحسانا په اتفاق د علماوو پر ظاهر مذهب د ده حج فرضي دی اګر که قیل وایي نفلي دی که یې شروع کړې وه او فرض هم پر ده بیا یې احرام وتړی حج یې نفلي دی او که یې نیت د بل چا د حج وکړی یا یې د نذري حج

نیت وکړی یا یې د نفلي حج نیت وي نو د دہ حج هغه دی چي هر نیت یې وو په دغه د رو کي اګرچي دہ هم فرضي حج نه وي کړی صحیح معتمد او منقول صرحی د امام اعظم رحمه الله او ابو یوسف رحمه الله څخه چي فرضي حج د نفلي حج په نیت سره نه فرضي کیږي اګرچي امام شافعي رحمه الله قیاس کړی دی پر روژې چي د رمضان په ورځ چي د نفلي نیت وکړي هم لا د فرضي څخه دغه روژه شمېرل کیږي ابو یوسف رحمه الله هم په یو روایت کي ورسره موافق دی لیکن موږ جواب ورکوو چي دا قیاس مع الفارق دی رمضان خو معیار د فرضي روژې دی روژه په مقدر د ورځي ده بله نه پکښې ځاییږي راسه د لمانځه وخت ته تر فرضو مخکي هر څونه نفلونه ځاییږي او حج خو هم په عمر کي یوځل فرض دی وخت یې پر زیات دی لهذا پر لمانځه قیاس موافق راځي که چا نیت د نذر او نفلي نیت یوځای وکړي د محمد رحمه الله پر مذهب نفلي دی د ابو یوسف رحمه الله پر مذهب نذري دی د محمد رحمه الله مذهب اظهر احوط مذهب دی لیکن د ابو یوسف رحمه الله مذهب اوسع دی د ابو یوسف رحمه الله مذهب را روانه مسئله تینګوي هغه دا ده که چا نیت د فرضي او نفلي حج وکړی حج یې فرضي دی عند محمد رحمه الله و کذا عند ابو یوسف رحمه الله علی الاصح کما في البحر لکن في الکافي و لو نوی حجة الاسلام و التطوع. که چا نیت د حجة الاسلام او نفلي وکړی دلته په اتفاق سره د دہ حج فرضي سو د ابو یوسف رحمه الله دلیل دا دی چي نیت د نفلي لغوه دی ځکه دلته حاجت نسته ورته او محمد رحمه الله وایي چي دوه جهته راغله دواړه باطل نو اصلي نیت نفلي لره پاته سو که یو چا د نیم حج نیت وکړی او یا د پوره حج مګر طواف زیارت یا پر عرفات و نه دریدی پر دہ لازم کامل حج ځکه دی چي حج تجزیه نه قبلوي لو د نیت مبهم مسئله تېره سوې ده که یو سړی د نذري حج نیت په دې ګمان وکړي چي پر ده نذر معنا فرض دی لیکن په واقع کي نه وو پر باندي باره ورته معلومه سوه نو که دہ احرام تړلی وو شروع یې کړې وه پر لازم دی او که یې فاسد کړی قضاء پر لازمه ده او که دښمن ورڅخه بند کړی پر یو مذهب قضاء نه لازمیږي پر بل مذهب چي صحت یې الغایة کتاب کړی دی قضاء یې پر لازمه ده، والله اعلم.

## فصل احرام یې وتړی باره یې هېر سو

احرم بشیٔ ثم نسیه لزمه حج و عمرة یقدم افعلها علیه و لو احصر یحل بهدی واحد و یقضی حجة و عمرة ان شاء جمع بینها او فرق و ان جامع فعلیه المضی فیهما و قضاؤ هما و عبارة بعضهم و ان احرم بنسک واحد معین فنسیه او شک فیه قبل الافعال تحري و ان لم یقع تحریه علی شیٔ لزمه ان یقرن بلا هدی و لو اهل بشیٔین فنسیهما لزمه القران و دمه فلو احصر بعث بهدیین و علیه قضاء حجة و عمرتین.

متن و بعده شرح ملا علي القاري
که چیري یو حاجي احرام وتړی معین اول وار لکه حج یا عمره او قِران وروسته یې هېر سوه چي : څه شي احرام ما تړلی وو یوېږ خوا ته یې گمان غلبه نه کوله پر ده حج او عمره دواړه لازم دي احتیاطا او یا افضل پر لازم دی چي کامل حج دی لهذا عمره به تر حج دمخه کوي لکه قِران او هدیه د قِران نه ده پر لازمه دپاره د اسانی په وجه د ده د هیري څکه لزوم یو نوعه د مواخذې او بل به یو څه فرق د هیري او یاد هم راسي في الجملة نو د دواړو حکم یو نه گرځي او که د حج څخه منع سو خان به په یوه هدیه حلالوي چي دم د حلالولو د مطلق فعل د حج دی که یې قضا راوړه د دواړو دا به راوړي دپاره د احتیاط که یې جمع کول د قِران کولو یا یې تنها تنها کول د تمتع حج د ده رضا ده او که ده عمره نه وه پوره کړې وطي وکړي پر دواړو به تېرېدل کوي څکه دواړه فاسده سوه په وطو او پرده دوه پسونه لازم دي دم د قِران ورڅخه ساقط سو کما تقدم او که یې د عمرې او حج دواړو طوافونه وکړه لیکن تر عرفات دمخه یې وطي وکړه یو دم د فساد د حج پر لازم سو دویم که وطي یې د عمرې په مابین کي وکړه نو پر ده یوازي قضاء د حج ده او دم د قِران ورڅخه ساقط سو.. الخ
د بعضو عبارت مثل د دې تېر عبارت دی صرف په تقدم او تاخیر کي فرق لري.

## فصل د بې سده مغمي علیه احرام

من اغمی علیه او نام فنوي و لبي عنه رفیقه او غیره بامره او لاًصح و یصیر محرما و لا یشترط تجریده عن لبس المخیط و یجزیه عن حجة الاسلام ان ارتکب محظورا لزمه موجبه لا الفریق و لو افاق او استیقظ لزمه مباشرة الافعال و ان لم یفق فقیل لایجب ان یشهدوا به المشاهد کالطواف و الوقوف بل مباشرة الرفقة تجزیه و قیل یجب حمله في الطواف و الوقوف لا في الرمي و نحوه و لو اغمی علیه بعد الاحرام فحمله متعین وفاتا.

متن و بعده شرح ملا علي القاري رحمه الله
که یو شخص اراده د حجة الاسلام معنا د فرض حج وکړه او روان سو مخ پر بیت الله شریفي باندي ناڅاپه تر احرام دمخه بې سده سو او یا مریض سو بیده وو او دغه بېسده یا بیده وه بل چا ته امر کړی وي او که یې نه وي کړی نو د دوی رفیق او ملگري یا بل یوه د ده پر ځای نیت وکړی د حج او تلبیه یې وویله د بېسده او بیده دپاره احرام او تلبیه صحت لري او بېسده لو بیده احرام بنده وگرځېدی د ده د رفیق په احرام او تلبیه سره د ده پر ځای او بل قول دا هم سوی دی چي د رفیق تلبیه او احرام د ده دپاره کفایت کوي څکه چي بېسده او بیده خو مخکي نیت کړی وو ارشاد الساري په حاشیه کي د لبوني په شان کي چي په دغه حال کي پر رلسي داسي لیکلي دي چي د ده ملگري یې احرام او تلبیه ووایي او طواف هم د

ده پر ځای وکړي او دوی بې پر عرفات ودروي نو صاحب النهر او کلام الفتح نقل د منقي شخه هغه د محمد رحمة الله عليه څخه نقل کړي دي چي حج بې صحيح دی د فرض حج څخه دريږي.

سوال: داسي ملگری چي پخپله هم احرام او تلبيه وايي نو د بېسده يا بېده يا لېوني پر ځای بې څنگه ووايي؟

الجواب: جواب خو دا دی چي د ده خوښه ده که خپل نيت د احرام او که د ملگري نيت دمخه کوي او داسي به وايي:

اللهم انه يريد الحج او اريد الحج له فيسره و تقبله منه.

ژباړه: يا الله فلانی خو اراده د حج لري او يا زه د ده دپاره د حج نيت کوم دا حج اسانه او د ده څخه بې قبول کړې.

او د بل پر ځای تلبيه ويل د دې طريقه او تلبيه مخکي تېره سوه.

سوال: آيا د بېسده يا بيده څخه به هغه گنډلي کالي کاږي؟

الجواب: د بېسده يا بيده د احرام د صحت دپاره دا شرط نه دی چي گنډلي کالي ورڅخه وکاږي ځکه دا د باب څخه د حرام کاری بلل کيږي.

سوال: آيا په داسي صورت کي چي د بېسده احرام بل وتړي او تلبيه بې بل ووايي نو هر کله چي پرسد سو د ده فرض حج اداء سوی دی؟

الجواب: د ده حج فرضي حجة الاسلام وسو دغه بې کفايت کوي هيڅ اختلاف په کښي نسته.

سوال: که بېسده يا بيده يا لېونی په داسي حال کي چي د ده پر ځای د ده ملگري نيت کړی دی او تلبيه بې ويلې ده اوس که دغه اشخاصو يو داسي ممنوع عمل وکړی چي په احرام کي حرام وو جزاء او دم بې پر ده او که پر رفيق د ده کيږي؟

الجواب: دم وي که خيرات دا د دغه اشخاصو په مال کي دی نه د دوی پر رفيق ځکه د رفيق احرام خو د خپله ځانه څخه اصلاً نه دی ليکن د دوی دپاره خو نايب دی لکه ولي چي د کوچني دپاره احرام وتړي نو د ولي احرام و هغه کوچني ته نقل کيږي گوا کې هغه کوچني په خپله نيت د احرام وکړی او تلبيه بې وويله لهذا که چيري د احرام په حالت کي حرام کار وکړي دم او جزاء د کوچني پر مال کيږي.

سوال: که بېسده يا بيده تر احرام مخکي و خپل رفيق ته ويلي وه که پر ما داسي حال راالی احرام را وتړه آيا جواز لري چي رفيق داسي وکړي؟

الجواب: که بې امر ورته کړی وو بې له خلافه جواز لري ارشاد الساري په حاشيه

کي د دغه جواب دليل اجماع د علماوو ذکر کړې ده او بل يې دا دليل ويلی چي نيابت د عجز په حال کي چي پخوا لا امر ورته سوی وي بلا خلافه جواز لري.

سوال: که بېسده امر نه وو ورته کړی او رفيق احرام او تلبيه وکړه څه حکم لري؟

الجواب: د امام اعظم رحمه الله څخه يو د نه جواز قول لکه د ابو يوسف او محمد رحمهما الله نقل سوي دي او بل د جواز چي د روايېنت حکم لري نقل سوی دی ابن الهمام د جواز قول غوره گڼلی دی او ملا علي القاري وايي دا قول ځکه ظاهره دی چي عقد د وروړگلوی قائم دی حق تعالی په قرآن کي فرمايلي دي:

انما المؤمنون اخوة. الحجرات ۱۰

او بل په حديث کي نبي عليه السلام وايي مسلمان د بل مسلمان ورور دی.

سوال: تر احرام بعد چي بېسده يا پرسد سي او يا بېده راويښ سي څه عمل به کوي احرام خو د ده رفيق ورته تړلی دی تلبيه هغه ويلې ده؟

الجواب: پر دوی هغه باقي افعال د حج لازم دي.

سوال: که بېسده او يا بېده مريض د حج تر خلاصولو پوري پر حال نه سو نو د ده پر رفيقانو څه کول واجب دی؟

الجواب: دلته د مصنف څخه دوه قوله د قيل ذکر کړي دي اول دا چي پر رفيقانو د بېسده حاضرول عرفات يا په ده طواف کول واجب نه دی بلکې د رفيق نيابت د دوی په حق کي صحيح دی صاحب د مبسوط هم دغه قول اصح بللی دی او مختاره د يو جماعت خلقو هم دی او بل د قيل قول مصنف رحمه الله دا نقل کړي دي چي پر ملگري يې واجب ده چي پرخپله شا يا د بل پر شا به په بېسده طواف زيارت کوي سره د نيته په اول طواف کي او عرفات ته به يې هم ورولي اگر که لږ گړی وي دا خو ارکان د حج پوره سو باقي واجبات يې رفيق نيابة کولای سي دغه قول ته ميلان قاضيخان صاحب د بدائع او صاحب د عنايې ورته اولی ويلي دي او شمس الائمة السرخسي هم ميلان دغه قول ته کړی دی.

سوال: که سړی احرام وتړي د ځان دپاره باره بېسده سو نو پر رفيقانو يې څه لزوم سته؟

الجواب: دلته نو پر رفيقانو لازمي وړل طواف زيارت او عرفات ته دی په اتفاق سره د علماوو خو نيت د طواف د ده دپاره شرط دی.

## فصل بيان د احرام د کوچني

ينعقد احرام الصبي و يصح اداؤه بنفسه و لا يصح من غيره الاداء و لا الاحرام بل يصحان من وليه له فيحرم عنه من كان اقرب اليه فلو اجتمع والد و اخ يحرم له الوالد و

ينبغي لوليه ان يجنبه محظورات الاحرام و ان ارتكب لا شئ عليه و لا علي وليه وكل ما قدر الصبي عليه بنفسه لاتجوز فيه النيابة عنه و الا جاز الا ركعتي الطواف و لو افسد نسكه او ترک شيئا منه لا جزاء عليه و لا قضاء. و لو بلغ في احرامه فان جدده للفرض قبل الوقوف سقط عنه والا فهو نفل و المجنون كالصبي الغير المميز الا انه اذا جن بعد الاحرام يلزمه الجزاء و يصح منه الاداء.

متن و بعد شرح ملا علي القاري

هغه کوچنی که نر یا ښځه وي چي هوښيار وي تميز لري د نفلي حج دپاره نه فرضي ځکه پر ده فرض حج نسته په اجماع سره د علماوو نو د داسي کوچني د حج ادا، کول په خپله معنا چي ټوله افعال د حج به کوي صحت لري.

سوال: آيا داسي مميز کوچنی د ځان د طرفه بل څوک نه سي نايب کولای؟

الجواب: د ده پر ځای نه بغير د ده د امره څخه او نه د ده په امر سره د بل چا حج د ده دپاره نيابتاً صحت نه لري ځکه د نيابت کول د ضرورت پر بناء کيږي د دغه کوچني نائب ته ضرورت نسته.

سوال: که کوچنی غير مميز وو بيا د ده د احرام او اداء څه حکم دی ځکه بدائع فتاوی ليکلي دي چي د ده اداء د حج صحت نه لري؟

الجواب: د غير مميز کوچني پر ځای نيابتاً د ده د ولي احرام او اداء صحت لري خو ياد ساته چي هغه ولي او قريب غوره دی چي و ده ته په قرابت کي نژدې وي مثلاً د ده پلار او ورور دواړه وه احرام به ورته پلار تړي علاوه دا ده چي دلته د جواز مسئله خو د دواړو صحت لري مگر پلار پکښي غوره او اولی دی.

سوال: بعضي علماء وايي چي د کوچني احرام گرسره نه منعقد کيږي نه فرضي او نه نفلي او د امام اعظم رحمه الله په يوه قول کي هم راغلي دي چي صحت نه لري؟

الجواب: د علماوو د مختلفو اقوالو لکه صاحب د شرح المجمع وغيره چي نه منعقد کيږي هدايه وايي نفلي صحت لري توفيق يې دا دی چي ټوله علماء د کوچني نفلي حج صحيح بولي ليکن داسي نفلي نه دی لکه د بالغ دا چي په شروع سره پر لازميږي او يا په يو ممنوع عمل کفاره پر لازميږي او د امام صاحب د قول هم دغه معنا ده علاوه دا ده چي د کوچني لمونځ روژه اعتکاف حج دا ټوله بې له خلافه څخه جواز لري.

سوال: د ټوله اماماڼو اربعه وو اتفاق دی چي د کوچني پر عبادت ثواب سته که مميز وي او که نه ليکن اختلاف په دې کېدی چي ثواب يې ده لره دی که يې والدينو لره او که دواړو لره؟

الجواب: په دې کي خو شک نسته چي والدينو لره د تعليم او لاربنولو او تسبب چي اسباب ورته برابر وي والدينو لره بې ثواب دی او کوچنی خو فاعل د نېکۍ دی ضرور به اجر ګټي او د حديثو څخه هم دا څرګنديږي لکه د انس بن مالک ﷺ په روايت کي راغلي دي د جملې څخه د هغه چي تر مرګ بعد بې و سرېږي ته ثواب رسيږي هغه اولاد دی چي عالم وي نو والدينو لره بې د ده د علم پوره ثواب دی بغېر د دې چي د عالم په ثواب کي به نقصان راسي بلکې د عالم ثواب هم پوره ورکول کيږي.

سوال: که کوچني د احرام په حالاتو کي غېر شرعي عمل وکړی دم پر لازم دی او که نه پر ده يا د ده پر ولي چي هغه بې نيابت کوي؟

الجواب: نه پر کوچني لازميږي اګر که بعد البلوغ وي او نه پر ولي لازميږي او که د ولي څخه يو ناجائزه عمل وسي دم د ده پر احرام لازميږي نه پر هغه چي دی د کوچني نيابت کوي علاوه دا ده چي ولي لره مناسب دا ده چي کوچنی د ممنوعه اعمالو څخه نګاه وساتي.

سوال: که کوچنی په خپله اعمال د حج کولای سوه آيا ولي د ده نيابت کولای سي؟

الجواب: د ولي نيابت دلته د داسي کوچني دپاره جواز نه لري علاوه دا ده که کوچني قدرت پخپله نه درلودی که مميز وي که غير مميز بيا بې نيابت جواز لري ليکن د طواف لمونځ بې پر ځای نه سي کولای لکه يو کس چي د بل پر ځای لمونځ او روژه نه سي کولای زموږ پر مذهب او بل به مميز کوچني ولي د ځان سره پر طواف کولو باعث وي همدا رنګه پر عرفات او باقي واجبات او د طواف لمونځ به هم مميز کوچنی کوي.

سوال: که کوچني د حج ټول يا بعضي ارکان يا واجبات پرېښول څه حکم لري؟

الجواب: کوچنی خو مکلف نه دی شروع بې لازمي نه ده لهذا پر ده نه قضاء سته د حج نه جزاء سته د ترک د واجب.

سوال: که کوچنی تر احرام بعد بلوغ ته ورسېدی د دغه حج نفلي دی که فرضي ګرځېدای سي؟

الجواب: که احرام نوی نه کړي نو حج بې نفلي دی او که بې تر عرفات دمخه نوی احرام فرضي وتړی بيا بې حج فرضي دی اګرچي قياس وايي چي احرام خو شرط دی لکه اودس د لمانځه دپاره لوس که کوچني اودس وکړي باره بالغ سي په دغه لوداسه د ده لمونځ جواز لري نو دلته دي هم د کوچني حج فرض وګرځي موږ د دې جواب مخکي کړی دی چي دا قياس صحت څکه نه لري اودس صرف شرط دی او احرام که شرط دی خو مشابه د رکن سره دی لهذا نوی کېده غوړي.

ارشاد الساري د کوچني د احرام پر نوي کېدو بعد البلوغ حاشيه مفصله کړې ده چي

موږ يې دلته خلص مطلب ذکر کوو هغه داسي چي ملا علي القاري د شرحي څخه خو دا معلوميږي چي پر عرفات ولاړ وي اوبلوغ ته ورسيږي او احرام نوی کړي بيرته عرفات ته راسي لا د ده څخه فرض ساقط سو په حديث کي هم نبي ﷺ فرمايلي دي چي هرڅوک پر عرفات لږ ګړی په ورځ يا شپه کي ودريږي حج يې پوره دی او زموږ په زمانه کي په دغه مسئله کي اختلاف سته بعضي علماء وايي چي پرعرفات کوچنی بلوغ ته ورسيږي حج يې نفلي وګرځيدی بيا نه سي کولای چي بل احرام د فرضي حج دپاره وتړي لکه دا قول د سروجي او قاضي او ابوطيب شافعي او شيخ سندي په منسک الکبير کي او قاضي محمد زاده مکي او علامه طاهر سنبل کذا في الهدايه وغيرها . مفهوم يې مخکي تېر سو او بعضي علماء وايي چي نوی کېدل يې جواز لري اګر که پر عرفات کوچنی احرام بنده درېدلی وي لکه عبارت د المبتغي چي په صراحةً يې دغسي ليکلي دي يا ملا علي القاري دلته په شرحه کي يا امام سرخسي په مبسوط کي او شيخ مکي علاء حسن العجمي. خلص مطلب دا دی د دغه حاشيې چي د ټولو توفيق داسي دی که د عرفات وخت باقي وو او کوچنی احرام بنده وو بالغ سو بل احرام يې وتړی جواز لري حج يې فرضي ګرځي او خصوصي بيا دا مسئله د اٰفاقيانو دپاره چي د بيت اله د حج په لاره کي ورته ډېر تکليفونه دي او المبتغي کتاب هم داسي فتوا کړې ده که کوچنی احرام وتړي باره بالغ سو يا لېونی وتړي وروسته پرسد سو يا کافر وتړی بيا مسلمان سو او وخت هم باقي وو که يې احرام نوی کړ بيا نو د دوی حج فرضي حجة الاسلام وګرځېدی، والله اعلم و علم اتم.

## فصل بيان د ښځي د احرام

هي فيه کالرجل الا ان لها ان تلبس المخيط غير المصبوغ و الخفين و القفازين و تخطي راْسها و لا ترفع صوتها بالتلبية و لا ترمل و لا تضطبع و لا تسعي بين الملين و لا تحلق راْسها و لا تستلم الحجر عند المزاحمة و لا تصعد الصفا کذلک و لا تصلي عند المقام کذلک و لا يلزمها دم لترک الصدر و تاخير طواف الزيارة عن وقته لعذر الحيض والنفاس و الخنثی کالانثی فيه.

متن وبعده ملا علي القاري

ښځه په حق د احکامو د احرام کي داسي ده لکه نر چي څنګه د احرام احکام پر څای کوي يوازي په ١٢ مسئلو کي ورڅخه مخالف ده:

١: ښځه ګنډلي کالي اغوستلای سي پر نر حرام دي خو په زعفرانو به رنګ سوي نه وي که وي بيا يې پرېولل پر لازم دی يا په بل خوشبويه شي سره داسي به يې پرېولي چي بوی يې ختم سي.

۲: ښځه به موزې په پښه کوي.
۳: ښځه دسکلې په لاسو کولای سي.
۴: ښځه به خپل سر پټوي او د مخ د پټولو طریقه پر مستحب عمل دا ده چي یو نازک ټوکر به د سر دخوا پر راوځړوي چي د مخ څخه لرې ازاده وي بلکې بعضو دا عمل واجب بللی دی.
۵: ښځه به په تلبیه ویلو کي آواز نه پورته کوي خصوصاً چي نامحرمه کسان موجود وي.
٦: ښځه به په طواف کي وړې نه ښوروي.
۷: ښځه به داسي احرام نه تړي چي راسته اوږه لڅه کړي او بل به د صفا او مروا تر مابین د هغه خلو د علامو تر مابین توپ نه وهي لکه نران چي تېز رفتار دلته کوي.
۸: ښځه به سر نه خریي ځکه د دې په حق کي د سر خریل داسي بد رنګي ده لکه د نر د ږیري خریل بلکې ښځه به یې لنډوي.
۹: ښځه به د خلقو په ازدحام کي حجر اسود نه مسحه کوي.
۱۰: ښځه به په ازدحام کي وصفا ته نه خېژي.
۱۱: ښځه به د خلقو په مابین او ازدحام کي د مقام ابراهیم سره نژدې لمونځ نه کوي لیري به په حرام کي داخل لمونځ کوي.
۱۲: که طواف رخصت ورڅخه پاته سو او یا طواف زیارت د اختر تر ورځو ورڅخه وځنډېدی د حیض یا نفاس په عذر سره دم نه پر لازمېږي لیکن ارشاد الساري لیکلي چي وخت اول دونه پیدا کړي او ورڅخه وځنډېږي باره حیض ورته راسي بیا دم پر لازم دی د نرښځي مشکل چي نر او ښځه یې نه وي معلوم مثال د ښځي دی احتیاطاً لیکن د احرام د کالو هیئت یې مشکل دی ارشاد الساري په حاشیه کي لیکلي دي هلته یې کار مشکل دی چي بلوغ ته رسېدلی وي ابو یوسف رحمه الله وایي په دې باب ما ته معلومات نسته که نر وي خو ګنډلي کالي ورته جواز نه لري او که ښځه وي بیا نه اغوستل مکروه دی امام محمد رحمه الله وایي د ښځي لباس به کوي شی نسته پر باندي قوام الدین رحمه الله وایي چي د محمد رحمه الله پر مذهب به عمل ښه وي لیکن مناسب وجوب د دم دی پرباندي احتیاطاً ځکه احتمال لري چي نر به وي اګر که محمد رحمه الله وایي شی ورباندي نسته، والله اعلم و علم اتم.

## فصل په احرام کي د مریي او مینځي

ینعقد احرام المملوک باذن سیده و بغیر اذنه للنفل و للمولي ان یحلله ان احرم بلا اذن و کره بعد و ان ارتکب محظورا في احرامه لزمه جزاؤهٔ فان کان صوما ففي الحال و الا

فبعد العتق و لو عتق في الاحرام لا يمكن فسخه بخلاف الصبي اذا بلغ فيمضي فيه و لا يسقط به الفرض.

ژباړه: د مريي احرام په اجماع د علماوو صحت لري نو وئي كه بنځه خو په اجازه د مالک د ده او بې له اجازې هم صحت لري ليكن د ده حج نفلي دی نه فرضي په دواړه حاله كې كه بادار اجازه نه وه وركړې بادار لره جواز لري چي د احرامه څخه يې وباسي او كه يې اجازه وركړې وه بيا يې هم د احرامه ايستلای سي خو دا كار مكروه څكه دی چي د وعدې څخه مخالفت دی ليكن ابو يوسف رحمه الله وايي چي جواز بادار لره نسته چي مريي د احرامه څخه باسي څكه بادار خپل حق په اجازه وركولو سره باطل كړ نو مريي د حر حكم پيدا كړ ليكن كه يې ورڅخه بند كړی بيا پر مريي دم هلته لازميږي چي كله آزاد سو كه مريي د احرام په وخت كي ممنوع عمل وكړی جزاء پر لازمه ده كه يې جزاء بدني وه لكه ګنيلي كلي چي واغوندي روژې به نيسي اوس پر لازميږي او كه مالي وه بيا تر آزادېدو بعد پر لازميږي او كه مريي د احرام څخه بعد بادار آزاد كړی بيا يې تمام كول پر لازم دی حج يې نفلي دی څكه دی بالغ نفل په شروع سره لازميږي او په دغه حج سره د ده څخه فرضي حج نه ساقطيږي د كوچني حكم مخالف دی بيان يې لږ مخكي تېر سوی دی وربسې وګوره دا وه د ملا علي القاري شرحه.

## فصل د احرام په ناجائزه اعمالو كي

الرفث و الفسوق و الجدال و الجماع و دواعيه كالقُبلة و اللمس و المفاخذة و المعانقة بشهوة و ازالة الشعر حلقا و نتفا و تنورا و احراقا مباشرة او تمكينا و حلق الرأس و تقصيره و الشارب و الابط و العانة و الرقبة و موضع المحاجم و قص اللحية و حلق رأسه او رأس غيره و لو حلالا و قلم الا ظافير و لبس المخيط و القميص و السراويل و العمامه و القلنسوة و البرقع و زرا الطيلسان و القباء و نحوه و لبس الخفين و الجوربين و كل ما يواري الكعب الذي عند المعقد شراک النحل ولبس ثوب مصبوغ بطيب الا ان يكون غسيلا لا ينفض و تغطية الراس و الوجه و التطيب و التدهين و اكل الطيب و شده بطرف ثوبه وقتل صيد البر و اخذه و دوام امساكه في يده و الاشارة اليه و الدلالة و الاعانة عليه و تنفيره و كسر بيضه و نتف ريشه و كسر قوائمه و جناحه و حلبه و شيه و بيعه و شرائه و اكله و قتل القملة و رميها و الامر بقتلها و الاشارة اليها ان قتلها المشار اليه و القاء ثوبه في الشمس و غسله لهلاكها و خضب راسه و لحيته و عضو اخر بالحناء و غسلهما بالخطمي و الوسمة و تلبيد شعره بثخين غير مائع و لو من غير طيب و قطع شجر الحرم و قلعه و رعيه الا الاذخر و اما التي لا جزاء فيها سوى الكراهة في هذه.

متن و بعد شرح ملا علي القاري
دا هغه شیان دلته بیانیږي چي احرام بنده ته منع دي نو دا فصل پر مکروهاتو تحریمیه او مفسداتو مشتمل دی ١: رفث دی چي په قرآن کي الله تعالی فرمایلي دي:
فمن فرض فیهن الحج فلا رفث و لا فسوق و لا جدال. البقره ١٩٧
ژباړه: تاسي په حج کي رفث او فسق او جنګ مه کوئ.
رفث جمهور ورته وطي وایي لیکن اصحه قول دا دی چي مراد ورڅخه شیان دي معنا هغه عمل ته رفث وایي چي سړی په شهوت کي راولي یا د ښځو په حضور کي د شهوت خبري کوي یا فحش وینا کوي.
٢: فسق چي هره ګناه ورڅخه مراد ده یا ښکنځلو ته ویل کیږي ګناه خو هر وخت ناروا ده لیکن په حج کي یې ګناه ډېره ده لکه ورېښمین کالي چي په لمانځه کي یې اغوستي وي.
٣: جدال معناد خپلو رفیقانو سره جنګ کول دی.
۴: وطي (کوروالی) کول دي.
۵: مچول او یا نامحرمه مسحه کول دي یا په شهوت ورته کتل دي.
٦: غاړه په غاړه کېدل دي یا ورنونه په شهوت سره مُنښلول دي.
٧: د تیخرګو څخه وېښتان یا تر نامه لاندي خریل په چاړه سره یا په کښلو سره یا موی پاک سره یا په سوځولو سره په خپله یا په بل سره عامه خبره ده که په زور ورڅخه وخریل سي یا په خوب کي یا مثل د دې.
٨: خپل یا د بل سر خریل دی.
٩: لنډول د سر د وېښتانو یا د برېتو.
١٠: کښل د تیخرګو د وېښتانو یا د نامه لاندي وېښتانو خریل دي.
١١: د مغزي خرېل.
١٢: د حجامت ځای خریل.
١٣: د ږیري لنډول یا کښل دي.
١۴: د حلال سر ور خریل.
١۵: د نوکانو لنډول.
١٦: ګنډلي کالي اغوستل.
١٧: قمیص اغوستل که پټو نه وو قمیص به سره څیري کړي پټو به ورڅخه جوړ کړئ.

۱۸: پر توګ اغوستل که يې لنګ نه درلود سره څيري به يې کړي.
۱۹: رخچينه پر سر کول.
۲۰: لنګوټه تړل.
۲۱: برنس معنا جګه رخچينه لکه د وزيرو پر سر کول.
۲۲: ښځي لره روی بند تړل.
۲۳: وزر الطيلسان معنا پټو په څټ کي غوټه کول.
۲۴: چينه پر اوږو اچول يا مثل د دغه.
۲۵: د هغه موزو په پښه کول چي تر بجلکو لاندي پرې سوي نه وي.
۲۶: جرابي په پښه کول او هر هغه شی چي د پښې د پنډۍ او ګوتو تر مابين د چوټي د بند ځای پټوي.
۲۷: په خوشبويي رنګ سوی احرام به نه تړي مګر که پرېولی وو او بوی نه ورځخه تلی پروا نه لري بحر زاخر او بحر العميق او قاضيخان او بدائع وايي د احرام مانع بوی دی نه رنګ اګر که خلاف اولی رنګ هم دی.
۲۸: ټوله يا بعضي برخه د سر پټول نر ته.
۲۹: مخ پټول نر او ښځي ته خو د ښځي مخ پټول دا رنګه منع دی چي پر مخ يې پېوسته وي.
۳۰: تر احرام بعد د خوشبويي استعمال.
۳۱: او خوړل د خوشبويه طعام.
۳۲: د عطرو يا بل خوشبويه شي شيشه په احرام کي غوټه کول.
۳۳: د وچي مځکي ښکار کول نه د درياب.
۳۴: د ځان سره نيول د ښکار په لاس کي.
۳۵: ورحمله کول ښکار ته د نيولو دپاره.
۳۶: اشاره کول و ښکار ته چي معلوميږي.
۳۷: لار ورښول ښکار ته چي نه معلوميږي.
۳۸: پر ښکار معاونت کول چي چاړه يا توره يا بل شی ورته راوړي.
۳۹: بې له ضرورته ښکاري حيوان ولاړول.
۴۰: د ښکاري حيوان پښې ماتول يا وزر کښل يا هګۍ ماتول يا يې غولانځه کښل.
۴۱: شيه معنا د ښکاري حيوان هګۍ پخول.

۴۲: د ښکاري حيوان رانيول خرڅول او خوړل.
۴۳: د سپږي وژل غورځول يا بل ته ورکول.
۴۴: د سپږي په وژلو او اشارې امر کول.
۴۵: خپل کالي لمر ته غورځول چې خبره او سپږي ورڅخه ورکي سي.
۴۶: پرېول د خپلو کالو دپاره د سپږو د ورکولو.
۴۷: سر يا ږيره په نکريزو رنګول يا يې پرېولل په خطمي ګل سره.
۴۸: ويښتان د سر په داسي شي سره وهل چي سره ومښلي تخته سي لکه کونډري مګر که ضرورت وو پروا نه لري.
۴۹: د حرم د درختي پرې کول يا کښل يا يې حيوان خوړل ليکن يو سورګنۍ يعني شيربوتهي پروا نه لري دا خلق د خولې دپاره استعمالوي.

فايده: په حديث شريف کي راغلي دي چي چا حج وکړ او فسق او شهوتي کارونه يې و نه کړه نو د حج څخه به داسي پاک راسي لکه د مور څخه چي په اوله ورځ پيدا سوی وو نو محترمو مسلمانانو دا نهه ځلويښت ۴۹ هم داسي شيان دي چي په احرام کي منع بلکي د حج مبرور درجه ختموي او د حج مبرور بدل نبي ﷺ وايي جنت دی لهذه فکر کوه چي په کښې واقع نه سي او بل د هر چا غاړي يې بندي چي دا کتاب مطالعه کوي محمد جمعه ته د زړه د اخلاصه څخه د مغفرت دعا و نه کړي، اللهم اغفر لکاتبه و لکافة المؤمنين امين ثم امين ثم امين.

## فصل مکروهات د احرام

ازالة التفث و غسل الراس و اللحية و الجسد بالسدر و نحوه و مشط رأسه و حكه ان افضى الى قتل الهوام و ازلة الشعر و عقد الطلسان على عنقه و القاء القباء و العباء و نحوهما على منكبيه من غير ادخال يديه في كميه و عقد الازار و الرداء و ان يخله بخلال و شدهما بحبل و نحوه و لبس ثوب المخبر و شم الطيب و مسه ان لم يلتزق و شم الريحان و الثمار الطيبه و كل نبات له رائحة طية و الجلوس في دكان العطار لا شتمام الرائحة و التزين و تعصيب شئ من جسده و الدخول تحت استار الكعبة ان اصاب راسه او وجهه و تغطية انفه لو زقنه او عارضه بثوب و اكل العطام يوجد منه رائحه الطيب و كب وجهه على وسادة بخلاف خديه.

متن وبعد شرح
د احرام د مکروهاتو څخه يو څو دا دي:
۱: خيري ليري کول يا بوبر سري ليري کول په حديث کي راغلي دي:

الحج الشعث التفث آخرجه الهثمي في مجمع الزوائد ج۳، ص۲۱۸ نصب الرايه ج۳ ص۲۰.

معنا حج ببر سر خيرن په قرآن کي الله تعالی فرمايلي دي:
ثم ليقضوا تفثهم. الحج ۲۹
معنا چي حج خلاص سو باره دي خپل خيري ليري کړي.
۲: په صابون يا بوروزی سر، ږيره او بدن پرېولل.
۳: سر يا ږيره ږمنځول څکه په دې عمل کي يا خو خطر د وېښتانو د کښلو راځي يا به برسری ورکيږي او بل ښايست راځي.
۴: د بدن سر يا ږيري گروول څکه احتمال د ختلو د وېښتانو لري او که ختل ورسره يا په کښې سپږي مړي کېدي بيا حرام کار دی.
۵: پر غاړه پټو غوټه کول.
٦: چپنه يا کوټ پر اوږو اچول بغېر د دې چي لاسونه ور داخل کړي.
۷: غوټه کول د احرامينو لنگ يا پټو.
۸: احرامين په ستن سره بندول.
۹: احرام معنا لنگ په رسۍ سره تړل.
۱۰: خوشبويه لنگ تړل.
۱۱: خوشبويي بويول.
۱۲: لاس ور وړل خوشبويه شي ته اگرچي ور پوري و نه منښلي.
۱۳: گل ريحان بويول.
۱۴: خوشبويه وابنه يا مېوه بويول.
۱۵: د عطار په دوکان کي دپاره د ښه بوی کښېنستل.
۱٦: سر تړل يا بدن تړل بې علته.
۱۷: د کعبې تر پردو لاندي کېدل که سر يا مخ ته رسېدې.
۱۸: پزه يا زنه پټول يا بارخوگان په کالو پټول.
۱۹: بوی ناکه شی خوړل.
۲۰: پرمخي پر بالښته مخ پټول.

## فصل په احرام کي د مباحاتو کارو

الغسل و الغمس في الماء و دخول الحمام و غسل الثوب و لبس الخاتم و تقلده السيف و القتال و شد الهميان و المنطعة و السلاح و الاستظلال بيت و محمل و عمارية و

فسطاط و ثوب و غيرهما و الاكتحال و النظر في المراٰة و السواک و نزع الفرس و الظفر المكسور و الفصد و الحجامة بلا ازالة الشعر و قلع الشعر النابت في العين و جبر المكسور و تعصيبه بخرقة و لبس الخز و البز و الثوب الهروي و المروي و القصب و البرد الملون كالعدني و التوشح بالقميص و الارتداد به والاتزار به و بالسراويل و التحز بالعمامة و غرز طرفي ردائه في ازاره و القاء القباء و العباء و الفروة عليه بلا ادخال منكبيه و وضع خده على الوسادة و وضع يده او يد غيره على راٰسه و انفه ولبس المداس و الجمجم و المكعب و الشمسک و المصندلة و تغصية اللحية دون الذقن و اذنيه و قفاه وفاه ويديه و سائر بدنه سوى الراس و الوجه و الحمل على راٰسه اجانة او عدلا او جولقا او طبقا و نحو ذلک بخلاف حمل الثياب و اكل ما اصطاده حلال و اكل طعام فيه طيب ان مسته النار او تغير والسمن و الزيت و الشيرج و كل دهن لا طيب فيه و الشحم و دهن جرح او شقاق وقطع شجر الحل و حشيشه رطبا و يابسا و انشاد الشعر و التزوج و التزويج و ذبح الابل و البقر و الغنم و الدجاج و البط الاهلى و قتل الهوام و حک راٰسه برفق و جسده و لو بشده او خروج دم و الجلوس في دكان العطار لا لاشتمام رائحة و اذا تم احرامه دخل مكة و فعل ما ياتي في بابه هذا.

متن و بعده ترجمة و شرح ملا علي القاري

د احرام د مباح كارو څخه چې جواز لري احرام بنده ته هغه دا دي:

۱: په خالي اوبو لږ صابون يا بوروزى سره غسل كول روا دى چې نظافت راسي او ګرږ ورڅخه ليرې كړي يا د ګرمۍ د ليرې كولو دپاره نه داسې چې خيره په ليرې كوي يا خوشبويه يا ځان ښايسته كوي دا په مكروهاتو كې تېر سوه.

۲: په اوبو كي غوټه خوړل اګر كه سر په كښې پټ سي.

۳: د تقوىٰ دپاره د ګرمو اوبو دپاره و حمام ته داخليدل.

۴: كالي پرېولل يوازې د پاكۍ دپاره نه د ښايسته يا سپږو د ليرې كولو دپاره.

۵: كه احتياج وو ګوتمې په ګوته كول كه نه وو غوره يې نه په ګوته كول دي.

۶: توره په غاړه كول.

۷: د دښمن سره تعروزي او دفاعي جنګ كول پر طريقه شرعي سره.

۸: كمربند تر ملا كول.

۹: مطلق هرقسمه سلاح ګرځول.

۱۰: د كوټې يا كجاوې يا مركب يا خيمې يا دېوال سوري ته كښېنستل.

۱۱: د غره يا اوښ يا د كالو يا لاس سوري ته كښېنستل.

۱۲: په بې بويه رنجو د سترګو د قوت دپاره سترګې تورول نه د ښايست دپاره

بلکې د سنت د عمل دپاره.
۱۳: په هنداره کې کتل.
۱۴: مسواک استعمالول.
۱۵: د غابن کښل.
۱۶: د نوک کښل چې مات وي.
۱۷: رګ وهل.
۱۸: حجامت کول چې وېښته و نه خيژي د هغه ځای.
۱۹: د سترګې څخه وېښته يا دانه کښل.
۲۰: د مات سر اصلاح کول ترل يې په يو ټيوکر سره.
۲۱: پمبه يې لنګ اغوستل هراتی يا د مروي احرامين اغوستل.
۲۲: عدني لنګ اغوستل.
۲۳: قميص سرېيره پر ځان راګرځول لکه پټو.
۲۴: پرتوګ لنګ کول.
۲۵: د لنګوټې څخه لنګ جوړول.
۲۶: پټو را لوړول د لمانځه دپاره چې ډېر و نه ځړيږي.
۲۷: چپنه يا کوټ پر اوږو اچول بې له داخلولو د اوږو په کښې معنا چپه پر اوږو کول.
۲۸: مخ پر بالښته اينسول.
۲۹: خپل يا د بل لاس پر سر يا پزه اينبول احرامي په پښه کول.
۳۰: هندی کلوښي چې کعب (بجلکی) نه پټوي معنا د چَوَتې د بند ځای.
۳۱: بغدادي موزې چې کعب (بجلکي) پټوي په پښه کول.
۳۲: ږيره پټول نه زنه.
۳۳: غوږونه پټول.
۳۴: څټ پټول.
۳۵: په دسمال سره لاسونه پټول نه په دسکلو سره.
۳۶: تول يا بعضي بدن بغير د سر او مخ څخه پټول.
۳۷: پر سر لګن يا تالۍ وړل.
۳۸: پر سر غوټه وړل.
۳۹: جوال پر سر وړل.
۴۰: ديګ يا مثل د دې پر سر وړل.

رحمت نبي دی پر خپل امت ډېر مهربانه چي امت ته يې د جواز لاره هم خلاصه کړه او بله وجه دا هم ده چي په دې کي د نبي ﷺ عظمت ته هم اشاره ده پر نورو پېغمبرانو عليهم السلام باندي.

نو حاجي لڅ سر په عاجزي سره لکه ګنهګاره بندي يا مريې چي عرض کول کيږي پر بخښونکي مهربان خدای جل جلاله نو د ده دا حال مقتضي د رحمت دی نو به دا دعاء کوي:

اللهم ان هذا حرمت و حرم رسولک فحرم لحمي و دمي و عظمي على النار اللهم امني من عذابک يوم تبعث عبادک.

ژباړه: ياالله دا ستا او ستا د رسول حرم دی نو زما غوښه او وينه او هډوکي حرام کړې پر اور باندي يا الله وما ته امان راکړه د عذابه څخه د هغه ورځي چي ته خپل بندګان را پورته کوې.

بيا به تلبيه وايي همېشه بيا به په مابين مابين کي تسبيحات الحمدلله کلمه د تمجيد او ثناء وايي درود به پر نبي ﷺ ووايي دعاوي به د ځان دپاره د والدينو دپاره او استاذانو او پيرانو دپاره د قريبانو دپاره د ټوله مؤمنانو دپاره کوي باره به طوی مقام ته راسي چي دا ځای د تنعيم د طرفه څخه و حرم ته نژدې ځای دی دلته ښخوا د اوبو شيله وه په الزهر مشهوره وه مقبره هم وه که چيري دا ځای پيدا نه کړي يا د بل طرفه څخه راسي نو هم دغسي ځای چي تر حرم وتلی ورته نژدې مقام وي هغه ته به کوي چي اوس يې بيان تېر سو نو به اول غسل وکړي هر ځای چي ورته اسانه وي لکه عراقيان چي په بطحاء کي د ميمونه په نامه ځاه دی د جبل حراء پر محاذات دی د حراء غر د مکې څخه اته زره ګامه يا ميتره ليري دی دا غسل د نظافت او پاکۍ دپاره دی لهذا حيضه ښځه به هم دا مستحب غسل کوي د شپې و حرم ته داخليدل باک نه لري ليکن د ورځي ورتګ يې بهتره دی حضرت ابن عمر ﷛ چي به مکې ته راتلی نو د طوی سره به يې شپه وکړه سهار به يې غسل وکړی نو به حرم ته داخل سو امام مسلم د نبي ﷺ کړه هم دغسي نقل کړي دي. رواه الشيخان.

مستحب د څلورو امامانو پر مذهب دا ده چي ومکې ته داخليدل د ثنية كداء چي عقبة العلياء هم ورته وايي د مکې مکرمې د لوړي خوا د حجون طرف څخه ورته را داخل سي څکه نبي ﷺ په اتم کال په فتح مکه کي پر دغه لاره راغلی او بل ابراهيم ﷺ دلته دعاء وکړه چي خدايه د خلقو زړونه و بيت الله ته را مايله کړې او بل دروازه د بيت الله هم سړي ته مخامخ کيږي مولانا الطرابلسي وايي چي بل طرفه څخه لکه د عراق يا يمن څخه راسي هم ورته مناسب دا ده چي و دغه مقام ته ورسي چي متابعت د سنت طريقې په

کنبي وسي حج او عمره فرق نه لري په دواړو کي به د دغه ځايه څخه راځي او که د تنعيم څخه عمره راوړي بيا به د مکې مکرمې د لاندې خوا څخه ورځي شايد د قيل مراد هم دغه وي د متن که داسي محمل ور نه کړي بيا بې معنې څخه د سنت سره راځي. والله اعلم.

فايده: د دې مقام ثنية كدا. فضيلت اتفاقي خلقو لره دی که تکليف نه وو او که تکليف وو بيا پروا نه لري د هر طرف څخه چې اسانې وي ورته لکه په نن زمانه کې چې د غالبه انسانانو څخه رحمت پورته دی ځکه خيونه تنګ سوي دي او نبي ﷺ چې د جعرانې څخه عمره راوړه چا نه دی ليدلی چې پر دغه ثنية كدا. راسي هر کله چې حاجي بيته وليدله نو به دا دعاء کوي:

اللهم اجعل لي بها قرارا و ارزقني فيها رزق حلالا.

يا الله وما ته دلته قرار راکړې او رزق حلال راکړې.

چي و رأس الردم مقام ته ورسيدی د مکې د لوړې خوا څخه چې اوس مدعي مقام ورته وايي او بيته هم معلوميږي بيا به هره دعا چې د ده زړه غواړي کوي به يې ليکن نيکه دعا داده:

ربنا اتنا في الدنيا حسنة و في الاخرة حسنة وقنا عذاب النار. بقره ۲۰

اللهم اني اسالک من خير ما سالک منه نبيک محمد و اعوذبک من شر ما استعاذک منه نبيک محمد.

ژباړه: يا رب العالمين راکړه و موږ ته په دنيا او آخرت کي ښه ښه ژوند او حَسَنې لو د عذاب څخه د اور مو وساته، يا الله زه ستا څخه هغه بهترين شيان غواړم چي کوم ستا نبي محمد ﷺ درڅخه غوښتنه کړي ده او پناه د هغه شيانو غواړم کوم چي ستا نبي محمد ﷺ پناه ورڅخه غوښتې ده.

و مکې ته چي ور داخليږي ګاى به تلبيه وايي ګاى به دعا کوي تر باب السلام پورې يا تر بلې دروازې پورې فضيلت منده باب السلام دی چي په کنبي ورداخل سئ اول به خپله سامانونه خوندي کوئ که چيري بېره وه بيا به و مسجد ته ورسئ د هغه څخه به شروع وکړئ که انديوالان ډېر وه بيا دي يو څه سامان خوندي کړي او بعضي دي شروع د مسجد څخه وکړي مستحب طريقه ښځي ته دا ده چي طواف و شپې ته وځنډوي ځکه ښځي لره ستر کول مناسب دی.

## فصل مستحب کارونه د حاجي په ورتلو کي بيت الله ته

و يستحب ان يدخل المسجد من باب السلام حافيا الا ان يسضر و اذا رأى البيت هلل وكبر ثلاثا و دعا بما احب و من اهم الادعية طلب الجنة بلاحساب و لا يرفع يديه عند

روية البيت و قيل يرفع ثم يتوجه نحو الركن الاسود و لا يشتغل بتحية المسجد الا ان يكون عليه فائتة او يخاف فوت المكتوبة او الوتر و سنة راتبة او فوت جماعة فيقدم كل ذلک علی الطواف.

متن و باقي شرح ملا علي القاري

مستحب طريقه د ځلورو امامانو پر مذهبو دا ده چي د باب السلام د دروازې څخه و مسجد ته داخل سي راسته پښه به دمخه کوي دعا به کوي درود به وايي او داسي دعا به کوي:

اعوذ بالله العظيم و بوجهه الكريم وسلطانه القديم من الشيطان الرجيم بسم الله و الصلاة و السلام على رسولِ الله اللهم اغفرلي ولي جميع ذنوبي و افتح لي ابواب رحمتک.

د مقام سره مناسب دعا دا ده:

اللهم انت السلام و منک السلام و اليک يرجع السلام حينا ربنا بالسلام و ادخلنا دار السلام تبارکت ربنا و تعاليت يا ذالجلال و الاکرام.

لځي پښې به ور داخليږي که تکليف نه وو کنز العباد وايي چي عتبه به مچ کړي کله چي بې بيت الله وليدله درې واره الله اکبر او کلمه د توحيد به ووايي درود به ووايي هغه دعا به وکړي چي د ده خوښه وي طبراني روايت کړی دی چي نبي ﷺ به چي بيت الله ته وکتل داسي دعا به يې کول يا الله د بيت الله شرافت او عظمت او کرامت زيات کړه او مهمه دعا دا ده چي د خدايه څخه بې له حسابه جنت وغواړي لاسونه دلته د ليدلو په وخت کي د دعا دپاره په مشهورو کتابو کي نه دي نقل سوي لکه قدوري هدايه کافي بدائع بلکې طحاوي په شرح معاني الاثار کي په صريح قول کي دا ويلي دي چي لاسونه پورته کول دلته مکروه دی د امام اعظم رحمه الله او ابو يوسف او محمد رحمه الله پر مذهب باندي بلکه جابر رضي الله عنه دي عمل ته کار د يهودو ويلي دي او کوم کسان چي په طواف کي د دعا دپاره لاسونه پورته کوي دا د عوامو کار دی اصل نه لري البر همطوشي رحمه الله به د طواف په حال کي لاس پورته کونکی جبراً منع کول، دستي به حجر الاسود ته ورځي د مسجد دپاره طواف کفايت کوي نه صلاة اشراق يا تهجد مگر که قضايي لمونځ ورباندي وو يا د وخت لمونځ تېرېدی په جماعت سره يا وتر پاتېدل يا سنت د لمانځه پاتېدل بيا به اول دا لمونځونه وکړي حجر الاسود ته به ورسي دپاره د طواف د شروع چي بيان يې اوس شروع کيږي.

## فصل د طواف د شروع طريقه

اذا اراد الشروع في الطواف ينبغي ان يضطبع قبله بقليل و هو ان يجعل وسط ردائه تحت ابطه الايمن ويلقي طرفيه على كتفه الايسر و يكون المنكب الايمن مكشوفا

و هو سنة في كل طواف بعده سعي ثم يقف مستقبل البيت بجانب الحجر الاسود مما يلي الركن اليماني بحيث يصير جميع الحجر عن يمينه و يكون منكبه الايمن عند طرف الحجر فنوي الطواف و هذه الكيفية مستحبة ثم يمشي مارا الى يمينه حتى يحاذي الحجر فيقف بحياله و يستقبله و يبسمل و يكبر و يحمد و يصلي و يدعو و يرفع يديه عند التكبير حذاء منكبيه او اذنيه مستقبلا بباطن كفيه الحجر و لا يرفعهما عند النية فانه بدعة ثم يستلم الحجر و صفة الاستلام ان يضع كفيه على الحجر و يضع فمه بين كفيه و يقبله من غير صوت ان تيسر و الا يمسح بالكف و يقبله و يستحب ان يسجد عليه و يكرره مع التقبيل ثلاثا و ان لم يتيسر ذلك امس الحجر شيئا و قبل ذلک الشئ ان امكنه و الا يقف بحياله مستقبلا له رافعا يديد مشيرا بهما اليه كانه واضع يديه عليه مبسلا مكبرا مهللا حامدا مصليا داعيا و قبل كفيه بعد الاشارة مرح به الحدادي.

و سن الاستلام في كل شوط و ان استلمه في اوله و امزه اجراه و اذا فرغ من الاستلام اخذ عن يمين نفسه مما يلي الباب و جعل البيت عن يساره فيطوف سبعة اشواط وراء الحطيم و من الحجر اليه شوط و يرمل في الثلاثة الاول حول جميع البيت وهو ان يسرع في المشي و يهز كتفيه و يرى من نفسه الجلادة و القوة مع تقارب الخطا دون الوثوب و العدو و يمشي في الباقي على هيئته و الوصل بالقرب من البيت افضل عند الامكان و الا فالطواف بالبعد منه افضل من القرب بغير رمل فان ازدحم الناس صبر فيرمل و لا يطوف بلا رمل الا اذا تعذر لمرض و يكون في طوافه ذاكرا داعيا مصليا على النبي عليه السلام و يستحب استلام الركن اليماني في كل شوط و اذا طاف سبعة اشواط استلم الحجر فختم به ثم ياتي المقام فيصلي خلفه ركعتي الطواف يقراء في الاولي الكافرون و في الثانية الاخلاص و يستحب ان يدعو بعدهما ثم ياتي الملتزم بعد اداء الركعتين او قبلهما فيتشبث به بقرب الحجر و يضع صدره و بطنه وخده الايمن عليه رافعا يديه فوق راسه مبسوطتين على الجدار داعيا بالتضرع والابتهال مع الخضوع والانكسار مصليا على النبي المختار ثم ياتى زمزم فيشرب من مائها و يتطع ثم يعود الحجر فيستلمه ان قدر و الا استقبله و كبر و هلل و حمد و صلي ثم مضي الى الصفا فسعي ثم ان كان المحرم مفردا بالحج وقع طوافه للقدوم و ان كان مفردا بالعمرة او متمتعا او قارنا وقع عن طواف العمرة نواه له او لغيره و على القارن ان يطوف طوافا اخر للقدوم.

متن و بعده ترجمه و شرح ملا علي القاري

حاجي چي هركله د طواف اراده وكړي لږ ګړی دمخه به راسته اوږه لڅه کړي دې ته په عربي کي اضطباع وايي چي پټو پر چپه اوږه کښېږدي دا بل طرف تر راسته اوږه لاندي د

تیخرګ سره راوګرځوي پر چپه اوږه یې را واړوي نو راسته اوږه به باره لڅه سي دا طریقه چي راسته اوږه به لڅه وي په هر هغه طواف کي چي تر هغه بعد سعیه وي سنت ده لکه طواف قدوم عمره طواف زیارت اګر که یې په طواف زیارت کي کالي اغوستي وي لا ښه کار دا دی چي مشابهت د اوږه لڅونکي سره وکړي ځکه من تشبه بقوم فهو منهم راغلي دی.

مستحب کیفیت یې دا دی چي و بیت الله ته مخامخ د حجراسود په طرف کي ودریږي کوم طرف چي و رکن یماني ته نژدې دی په داسي ډول سره چي ټول حجر اسود د ده راسته اوږې ته سې نو به د طواف نیت وکړي دغه مخامخ دریدل په شروع کي د طواف زموږ پر مذهب سنت دی او کرماني وایي دغسي طریقه اکمله او افضله ځکه ده چي د خلافه څخه خبره ووزي باره به نیت وکړي چي فرض دی نو به خپل تګ د طواف دپاره شروع کړي پر راسته طرف باندي ترڅو چي بیا و حجر اسود ته مخامخ کیږي بیا به دریږي مخامخ بسم الله الله اکبر الحمدلله اللهم صل دعا لاسونه به د الله اکبر په وخت کي تر اوږو یا غوږو پورته کوي خو د لاسو مخان به د حجر اسود طرف ته وي او د نیت د طواف په وخت کي لاس پورته کېدل نسته.

طریقه د حجر اسود د مسحه کولو دا ده چي دواړه لاسونه به پر کښېږدي نه یو لاس ځکه دا د متکبر علامه ده او حجراسود ته د الله تعالی لاس ویل سوي دي چي د خپلو بندګانو سره په دغه مصافحه کوي بیا به خپل مخ د دواړو لاسو ترماینن پر حجر الاسود کښېږدي چي مشابهت د سجدې سره راسي بیا به خپل لاسونه مچ کړي اواز به نه پورته کوي که چیري دا کارونه ورته آسانه وه خو ښه دی که نې بیا دي لاسونه صرف وروړي خو مستحب طریقه دا ده چي خپل لاسونه اول پرمخ او تندی پر طریقه د سجدې کښېږدي او دا سجده درې واره سره د مچولو مکرر کړي او که داسي طریقه هم نه وه ورته اسانه بیا دي لکړه ور اوږده کړي هغه دي مچ کړي او که دا هم نه کېده بیا دي مخامخ ورته ودریږي لاسونه دي صرف ورته پورته کړي بسم الله الله اکبر لا اله الا الله الحمدلله درود شریف او دعا به وکړي خپل لاس به مچ کړي چي اشاره یې و حجر الاسود ته په کړې ده دا قول د حدادي ﷫ دی ځکه اشاره پر منزله د اېښودلو د لاسو ده او بدل هم حکم د مبدل منه اخلي په سر یا خولې به حجر لسود ته اشاره نه کوي سنت طریقه دا ده چي په هر شوط کي به حجر اسود مسحه کوي یا د دې بدل مثلاً اشاره به ورته کوي.

سوال: آیا په هر شوط کي به لاسونه د الله اکبر سره و حجر اسود ته پورته کوي او که هغه اول ځل کفایت کوي؟

الجواب: د احادیثو او د فقهاوو د عبارتو څخه بلکې د ابن الهمام میلان دې ته دی چي يو ځل چي اول وار يې لاسونه پورته کړه بيا يې ضرورت نسته.

سوال: تلبيه به کله پرېږدي؟

الجواب: حاجي متمتع او عمره کونکي به تلبيه د طواف د شروع سره پرېږدي نه قارن او حاجي مفرد هرکله چي د حجر اسود څخه فارغه سو د راسته طرف څخه خپل ياد حجر اسود چي دروازې ته نژدې دی چي بيت الله د ده پر چپه طرف راځي اووه شوطه طواف به وکړي خو د حطيم شريف تر شا، ارشاد الساري ليکلي دي چي حطيم ته حجر هم وايي حکه دا د بيت الله څخه منع سوی دی حطيم هغه ځای دي چي تر ميزاب لاندي دی شکل يې د نصف دائرې دی خو ټوله حطيم نه دی صرف شپږ گزه په کښي د حطيم دی په يوه لوېشت بالا تقرير الرافعي.

د حجر اسود څخه بيا تر حجر اسود پوري دا يو شوط دی په اولو درې شوطو کي به اوږې ښوروي چاپېره پر ټوله بيتي د اوږو ښورولو طريقه دا ده چي ځان به قوي او تيار و عبادت ته ګڼي او اوږو ته به لږ حرکت ورکوي په تګ کي به لږ تېزي راولي پورته به نه غورځي ګامونه به لنډ لنډ ږدي په باقي څلورو شوطو کي به پر خپل عادتي طريقه ځي که حاجي ته اساني وه بيت الله ته نژدې او که تکليف وو بيا ليري اوږې ښورول غوره دی که د خلقو ازدحام ډېر وو اوږې يې نه سوای ښورولای بيا به صبر کوي چي موقع پيدا کړي بيا دي اوږې ښوروي که هيڅ موقع هم نه پيدا کېده چي څونه يې وس کېږي هغه قدر دي اوږې ښوروي د طواف په ټوله شوطو کي دي تسبيحات الحمدلله لا اله الا الله والله اکبر ولاحول ولا قوة الا بالله وايي.

په حديث کي همدغه راغلي دي د قرآن تر تلاوت دلته دغه ويل غوره دی يا دي نور ذکرونه کوي او دعاګاني به کوي چي تيري سوي دي دلته په تېر عبارت کي. چي د رکن عراقي پر برابر ودرېدی دا دعا به کوي:

اللهم اني اعوذبک من الشک و الشرک و لنفاق و الشقاق وسوء الاخلاق وسوء المنقلب في الاهل و المال و الولد.

ژباړه: ياالله وما ته پناه راکړه د شک او شرک او نفاق او مخالفت او بد اخلاقي او بدځای د ورتګڅخه په اهل او مال او اولاد کي.

د مېزاب پر برابر به دا دعا کوي:

اللهم اظلني تحت ظل عرشک يوم لا ظل الا ظلک ولا باقي الا وجهک.

ژباړه: يا الله سوري تر عرش لاندي په هغه ورځ راکړه چي بل شی سوری نه لري او

همېشه بغير ستا د ذات څخه بل ذات نسته.

د شامي رکن سره به دا دعا کوي:

اللهم اجعل حجا مبرورا و سعيا مشکورا و زنبا مغفورا و تجارة لن تبورا يا عالم ما في الصدور اخرجني من الظلمات الى النور.

ژباړه: يا الله زما حج مقبول وګرځوې زما کوشش مقبول وګرځوې ګناه مي وبخښې تجارت مي مه بربادوې اې د زړو خبرداره ما د تيارو څخه د ګنهو و نورانيت ته د طاعت راوړې.

د رکن يماني دعا دا ده:

اللهم اني اسئلک العفو و العافيه في الدين و الدنيا و الاخرة.

ژباړه: يا الله زه سوال کوم ستا څخه د عفوي او پاکۍ په دين او دنيا او اخرت کې.

د حجر اسود او د رکن يماني د مابين دعا:

ربنا اتنا في الدنيا حسنة.

اې زموږ ربه و موږ ته په دنيا کې ښه د نيکۍ اسباب موجود کړې.

فايده: پام کوه چې د دعا په وخت کې به درېږې نه او نه د طواف په وخت کې څکه موالات معنا پرله پسې کېدل مستحب کار دی د طواف په شوطو کې او بل درود ويل په ډېرو دعاګانو کې په مابين اول او اخير کې بلکې د دعا پر ځای هم ښه کار دی خصوص بيا د بيت الله د هر کونج سره.

مستحب دی چې رکن معنا کنج يماني که ورته رسېدی په هر شوط کې به يې په راسته لاس سره مسح کوي پام کوه چې دلته د لاس مچول او پرمخ اېښول نسته لکه د حجراسود دا چې که ورته رسېدای نه سوای بيا اشارې ته ضرورت نسته هغه د لاس مچولو اقوال ټوله ضعيف دي سخت او هغه دوه رکنه چې عراقي او شامي دي د هغو مسح کول او اشاره ورته کول نسته بلکې بدعت دی پر ټولو مذهبو باندې هرکله چې اووه شوطه پوره سوه حجر اسود به مسح کړی نو طواف ختم سو باره به ومقام ابراهيم ته ورسي يا و بل داسي ځای ته چې ورته اساني وي نو به دوه رکعته واجب د طواف لمونځ وکړي چې په اول رکعت کي تر الحمدلله بعد به قل يايها الکافرون په دويم کې به قل هو الله احد سورتونه ووايي تر لمانځه بعد به منقولې دعاګانې کوي دا مستحب دی لکه د حضرت آدم عليه السلام دعا هغه دا ده:

اللهم انک تعلم سري و علا نيتي فاقبل معذرتي و تعلم حاجتي فاعطني سؤلي و تعلم ما في نفسي فاغفرلي ذنوبي اللهم اني اسالک ايمانا يباشر قلبي و يقينا صادقا حتى

اعلم انه لا يصيبني الا ما كتبت لي و رضا بما قسمت لي يا ارحم الراحمين.
ژباړه: یاالله ته عالم یې زما په پټو او ښکاره اعمالو زما عذر قبول کړې او ته زما په حاجت خبر یې زما سوال قبول کړه او ته عالم یې زما په نفس سره ما ته مغفرت وکړه د ګنهو زما یاالله زه سوال د ایمان کومه چي زما زړه په صادق یقین جذب کړي ترڅو چي ما ته هغه ورسیږي چي تا راته مقرر کړی.

په روایت کي راغلي دي چي الله تعالی و آدم ﷺ ته وحي وکړه چي ستا دعا ما قبوله کړه ګنهونه دي وبخښل سوه او ستا ټوله غمونه ما درڅخه لیري کړه او هر څوک چي ستا د اولادې څخه دا دعا کوي تر تا وروسته د هغه سره هم دغسي د مغفرت معامله کومه د سترګو څخه یې فقر باسمه او د دنیا تجارت ور نصیب کومه او دنیا به ورته ذلیله را روانه وي اګر که یې دی اراده نه کوي. رواه الارزقي و الطبراني في الاوسط و ابن عساكر.

په روایت کي راځي چي آدم ﷺ دا دعا د مقام ابراهیم شا ته وکړه په بل روایت کي ملتزم راځي په بل روایت کي رکن یماني راځي د ټولو توفیق دا دی چي درې سره ځایه یې دا دعا کړې ده خو د مقام ابراهیم سره لمونځ به په مکروه وختو کي نه کوي وروسته تر لمانځه د دوو رکعتو د طواف به و ملتزم ته راسي چي د رکن حجر اسود او د دروازې په مابین کي دی.

ارشاد الساري وایي چي مقدار یې څلور ګزه دی چي دوه میتره کیږي او بل ملتزم عجائز ورته وایي چي دا هم څلور ذراعه دی چي دوه میتره کیږي د رکن یماني او د هغه دروازې تر مابین دی چي د مغرب طرف ته ترلې ده اوس، حباب.

و ملتزم ته چي ورغلی نو به خپل ځیګر خیته او مخ راسته طرف او لاسونه به تر سر پورته کړي نو به ځان پر پوري پیوست کړي راسته لاس به د دروازې خوا ته وي او چپه لاس به د حجر اسود طرف ته وي دلته به دعاوي کوي د قبول د دعا ځای دی په ډېره عاجزۍ او ښېره او د زړه په اطمینان سره درود او ذکر به هم دلته کوي دعا یې دا ده:

اللهم حرم شعري و جسدي على النار اللهم كما صنت وجهي عن السجو و لغيرك فصن وجهي عن مسألة غيرك اللهم يا رب البيت العتيق اعتق رقابنا و رقاب ابائنا و امهاتنا من النار يا كريم يا غفار يا عزيز يا جبار ربنا تقبل منا انك انت السميع العليم وتب علينا انك انت التواب الرحيم.

ژباړه: یاالله زما وېښتان او زما بدن حرام کړې پر اور باندي یاالله لکه تا چي زما مخ د بل چا د سجدې څخه ساتلی دی نو زما مخ د بل چا د سوال څخه هم نګاه کړه یاالله اې د بیت الله پخوا جوړونکې زما او زما پلرو او مندو ګردنونه د اور څخه ازاد کړې اې کریمه اې

بخښونکې اې غالبه اې لويه خدايه اې ربه زموږ دعا قبوله کړه ته اورېدونکی او عالم ذات يې زموږ توبه قبوله کړه ته توبه قبلونکی ذات يې او رحيم ذات يې.
تر ملتزم بعد به د زم زم څاه ته راسي اوبه به ورڅخه وچښي او باقي به پر ځان توی کړي او پخپله به يې راکاږي او حديث هم په دغه کې وارد دی بيا به و حجراسود ته ورسي مسح به يې کړي که قادر وو که نې نو مخامخ دې ورته ودرېږي هغه تيري سوي دعاګانې او ذکرونه او تسبيحات به ووايي بيا به صفا ته ورځي هلته به واجب سعيه کوي.
فايده: که حاجي مفرد وو دا طواف قدوم سو دا سنت افاقي لره دی که متمتع يا قارن وو عمره سوه که په مياشتو کې د حج وه مګر پر قارن حاجي بل طواف قدوم سته هغه به کوي چې د عمرې څخه فارغه سو ځکه دواړه به نه سره ګډوي.

## باب د طواف اقسام او احکام

انواع الا طوفة او احکامها و اما انواعها فسبعة الاول طواف القدوم و هو سنة للافاقي المفرد بالحج و القارن بخلاف المعتمر و المتمتع و المكي و من بمعناه فانه لا يسن في حقهم الا ان المكي اذا خرج الى الافاق ثم عاد محرما بالحج أو القران فعليه طواف القدوم و اول وقته حين دخوله مكة و اخره وقوفه بعرفة فاذا وقف فقد فات وقته و ان لم يقف فالى طلوع فجر النحر و لو قدم الافاقي مكة يوم النحر او قبله بعد الوقوف سقط عنه هذا الطواف و لو تركه فذهب الى عرفة ثم بدا له فرجع و طاف له ان رجع قبل الوقوف في وقته اجزاه و الا ولم يجزه و لا اضطباع ولا رمل و لا سعي لاجل هذا الطواف و بما يفعل فيه ذلک اذا اراد تقديم سعي الحج على وقته الاصلي وهو عقيب طواف الزيارة الثاني طواف الزيارة وهو ركن لا يتم الحج الابه و اول وقته طلوع الفجر في ايام النحر و فيه رمل الاضطباع و بعده سعي الا اذا فعلهما في القدوم فلا يرمل فيه و لا يسعي بعده الثالث طواف الصدر و هو واجب و اول وقته بعد طواف الزيارة و لا اخرله وليس فيه رمل و لا بعده سعي و هذه الا طوفة الثلاثة في الحج الرابع طواف العمرة و هو ركن فيها و فيه اضطباع و رمل و بعده سعي و اول وقته بعد الاحرام بها و لا آخر له الخامس طواف النذر و هو واجب و لا يختص بوقت الا ان يكون عليه غيره السادس طواف تحية المسجد و هو مستحب لكل من دخل المسجد الا اذا كان عليه غيره فيقوم هو مقامه كالمعتمر السابع التطوع اذا لم يكن عليه غير و لا بشخص اذا كان مسلما طاهرا و يلزم بالشروع فيه.

متن و بعده شرح ملا علي القاري

حاجي صاحب دلته به ډېر فکر کوي چې د طوافو اقسام يا احکام خطا نه سي چې بيا به دې حج سره خراب سي. د طواف قسمونه اووه دي په تفصيل د هر يوه احکام راځي:

۱: اول قسم طواف القدوم دی چي په بل نامه ورته طواف ملاقات هم وايي او بل نوم يې طوال اول عهد بالبيت دی بل نوم يې طواف احداث العهد بالبيت دی بل نوم يې طواف الورود بل نوم يې طواف الوارد دی چي تو له شپږ نومونه سوه معنا يې دا ده چي اول بيت الله شريفي ته ورغلې ستا ورسره وعده او عهد دا سو چي زه خو راغلی يم ستا و طواف ته نو لهذا دا طواف د اطرافو او افاقو خلق کولای سي نه د مکې سړی او يا د ميقاتو سړی لیکن که د مکې څخه د مکې سړی اطرافو ته ولاړی د حج تر مياشو دمخه بيا يې کولای سي علاوه دا ده چي د مکې او د ميقاتو يا د مابين خلق حج تمتع او حج قِران هم د دې وجهي کولای نه سي ترڅو چي ځان افاقي جوړ نه کړي نو دا طواف سنت دی اول وخت د طواف قدوم د اداء د صحت يې چي ومکې ته ورداخل سو او اخير وخت يې چي پر عرفات ودرېدی او د لوی اختر تر سهاره پوري هم جواز لري که مخکي نه وو درېدلی ځکه د عرفات د درېدلو هم دا اخيري وخت دی لیکن افضله طواف د ملاقات چي و مکې ته ورسېدی.

سوال: که افاقي و مکې ته د اختر په ورځ يا د عرفات په ورځ را ورسېدی تر درېدو بعد به د طواف قدوم څه حکم وي؟

الجواب: ورڅخه ساقط دی ځکه سنت ځای يې تر عرفات دمخه دی.

سوال: که حاجي وخت او قدرت پر طواف قدوم درلود ولاړی عرفات ته څه حکم يې دی؟

الجواب: که چيري بيرته ولاړی طواف يې وکړی او بيرته عرفات ته راغلی اګر که په شپه د اختر کي تر سپېدو مخکي و عرفات ته ورسېدی جواز لري او سنت يې پر ځای سو ځکه تر درېدو د عرفات مخکي سو او که ولاړی نه يا خو ولاړی لیکن د عرفات درېدل ورڅخه پاته سو بيا يې سنت فوت سو.

ارشاد الساري ليکلي دي که طواف قدوم سړی و نه کړي او عرفات ته ولاړی پر ودرېدی بيا نو وخت ورڅخه تېر سو بيرته ورګرځېدل فايده نه لري معنا سنت يې نه پر ځای کيږي، حباب.

سوال: آيا په طواف قدوم کي اضطباع معنا د اوږې لڅول او بل د اوږو ښورول او تر طواف بعد سعيه پکښي سته؟

الجواب: اصالة دا دري سره په کښي نسته او که يې وکړه بيا په طواف زيارت کي ورباندي نسته.

۲: دويم طواف الزيارت دی دا هم څو نومونه لري ۱: طواف زيارت، ۲: طواف رکن، ۳: طواف افاضة، ۴: طواف الحج، ۵: طواف الفرض، ٦: طواف يوم النحر.

دا طواف د حج یو رکن او فرض دی چي حج بغېر د دغه څخه صحت نه لري لیکن غټ رکن د حج پر عرفات درېدل دي چي پر و نه درېږي حج یې هیڅ صحت نه سي پیدا کولای او د طواف زیارت وخت دېر دی تر اخیره پوري د عمر یې ادا کولای سي که مړ سو وصیت یې وکړی اوښ یې پر ځای حلالولای سي په حرم کي اول وخت د طواف زیارت د صحت او جواز چي د اختر د ورځي سهار سو انتها یې تر تېوله عمره ده لیکن واجب د امام صاحب پر مذهب د اختر ورځي دي په دغه طواف کي اوږي ښوروول اوږه لڅول سته چي طواف خلاص سو بیا سعیه وربانديي سته لیکن هلته بیا نسته اوږي ښوروول او سعیه که یې دا دواړه په طواف قدوم کي کړي وه بیا به دلته دا عمل نه کوي ځکه تکرار یې نه دی ثابت.

۳: طواف الصدر معنا د رجوع طواف چي په پښتو طواف رخصت ورته وایي دا طواف واجب دی پر افاقي معنا اطرافي خلقو نه پر مکي او هغه کسانو چي دلته استوګن سوي دي یا میقاتي دي اول وخت یې چي طواف زیارت خلاص سو لیکن مستحب دا دی چي تېوله افعال د حج خلاص سي وړ کړي اخیر د دې طواف نسته هر وخت چي یې وکړي په دغه طواف کي هم اوږي ښوروول او لڅول د اوږي او سعیه نسته.

فایده: دا دري سره قسمه طوافونه په حج کي دي خاص.

۴: څلورم قسم طواف د عمرې دی او دا طواف د عمرې رکن معنا فرض دی په دغه طواف کي اوږه لڅول اوږي ښوروول په درو اولو شوطو کي چي دا دواړه سنت دي او سعیه په کښي سته چي واجب ده او اول وخت یې دا دی چي احرام دي ورته وتړی اخیر نه لري.

۵: پنځم قسم طواف د نذر دی دا واجب دی معنا عمل یې فرض دی عقیده درلودل یې واجب دی دا معین وخت نه لري هر وخت کېدای سي لیکن که تر ده بل قوي پیدا سو بیا هغه دمخه کېږي مثلاً فرضي طواف یا نذر معین طواف.

۶: طواف د تحیة المجسد دی معنا دا چي اول وار سړی و مسجد ته د حرم ورسي نو دوه رکعته لمونځ به وکړي بیا به یو طواف د تحیة المسجد هم وکړي مګر که فرضي یا نذر یا واجب طواف وربانديي وي بیا که طواف د تحیة المسجد و نه کړي هغه فرضي یا د نذر طواف یې پر ځای درېږي لکه عمرې ته چي سړی ولاړ سي طواف یې فرض دی یا حاجي متمتع وي د عمرې طواف یې فرض دی نو د دغه فرضو پر ځای نفلي کول او مخکي کول په کار نه دی مثال یې دا دی چي ومسجد ته ورسي که د نفلو وخت وو تحیة المسجد (دوه رکعته نفلي لمونځ به وکړي) او که د نفلو وخت نه وو بیا وربانديي نسته خپل فرض لمونځ به کوي دغه فرضي لمونځ د تحیة المسجد د لمانځه پر ځای درېږي.

۷: اووم طواف نفلي دی اوس که سوال وسي چي شپږم لمبر طواف تحیة المسجد

وو هغه هم نفلي وو بيا نو د دې نفلي طواف د ذکر کولو ضرورت څه وو جواب دا دی چې د دواړو تر مابين دا فرض دی تحية المسجد خاص د ملاقات په وخت کي کيږي او نفلي طواف تخصص نه لري په هر وخت کي کېدای سي علاوه دا ده چې په مکروه اوقاتو کي لا کېدای سي زموږ پر مذهب نه د مالک رحمه الله ليکن که بل فرضي يا د نذر طواف پر باندي وو په کار نه دی چې نفلي مخکي کوي لکه پر سړي چې فرضي لمونځ وي نفلي لمونځ ورته په کار نه دی يا زکات ورباندي وي خيرات ورته په کار نه دی.

سوال: اوس دلته دا سوال پيدا کيږي چې تا خو وويل چې نفلي طواف تخصيص په وخت پوري نه لري او مفهوم د عبارت خو اوس دا را وړتې چې تخصيص داسي لري چې تر فرض دمخه کېدای نه سي؟

الجواب: موږ په جواب کي داسي وايو چې يوه ته تخصيص د فراغت وايي هغه دلته مراد دی چې ځان اول سړی د فرض څخه فارغه کړي مرگ څه په باور دی او بل تخصيص د جواز دی معنا دا سوه چې جواز خو لري ليکن اول ځل کول د فرضو مناسب دی.

سوال: آيا نفلي طواف جُنبي، حائضه او نفاسه کولای سي جواز ورته لري؟

الجواب: دغه اشخاصو لره طواف حرام دی که يې وکړي گناهگاره دي او کفاره پر لازميږي لکه په خپل محل کي به درته راسي.

سوال: که د نفلي طواف شروع يې وکړه بيا يې په وسه نه وه پوره پرېښنول يې ورته جواز لري تر نيت کولو بعد.

الجواب: په قرآن کي الله تعالي فرمايلي دي:

ولا تبطلوا اعمالکم. محمد ۳۳

معنا دا ده چې عمل شروه کړی نيک بيا يې مه باطلوئ لهذا نو پر لازم سو چې پوره کوي به يې اگرچي دی خو د خپل نفس مالک دی تر شروع مخکي نه بعد لکه شافعي رحمه الله چې يې نه لازموي او که يې د نذر طواف په نيت شروع وکړه بيا د شروع څخه ورته معلوم سو چې نذر ورباندي نسته بيا دلته نه پر لازميږي په شروع سره.

## فصل د طواف د صحت دپاره شرطونه

شرائط صحة الطواف ۱: الاسلام، ۲: والنيت، ۳: والوقت، ۴: وکونه بالبيت لا فيه، ۵: و في المسجد و لو علی سطحه، ٦: و اتيان اکثره، ۷: وقيل و الابتداء من الحجر.

متن و بعده ترجمة و شرح ملا علي القاري

د طوافو دپاره اووه شرطونه دي که دا شرطونه موجود وه بيا نو د دغه شخص طواف صحت لري او که دا شرطونه نه وه پوره بيا نو د ده طواف عبث او بې ځايه تماميږي:

۱: اول شرط د صحت دپاره اسلام دی ځکه کافر اهل د عبادت نه دی وجه دا ده چې عبادت نیت غواړي او په عبادت کې نیت شرط دی.

۲: دویم شرط د جمهورو علماوو پر مذهب نیت دی.

۳: دریم شرط د بعضې طوافو دپاره وخت دی.

۴: څلورم شرط طواف کول دي خارج د بیت الله څخه نه داخل په کښې لهذا طواف به د حطیم شا ته کوي.

۵: شرط طواف کول دي په مسجد حرام کې اګر که پر بامو وي.

٦: شرط د طواف اکثره شوطونه کول دي اګرچې دا د طواف رکن دی باقي درې بې واجب دي دلته څه مسامحه سته.

۷: اوو شرط د ابن الهمام فائق شرح الکنز او شرح المنار وایي شروع د طواف ده د حجر اسود څخه پر اصح قول باندې لیکن اکثره علماء وایي چې شرط نه دی بلکې سنت دی په ظاهره روایت کې پرېښول یې مکروه کار دی لیکن محمد رحمه الله په الرقیات کې وایي چې د بله ځایه څخه د طواف شروع جواز نه لري او د نبي ﷺ د مواظبت څخه یې وجوب معلومیږي ځکه نبي ﷺ د بل ځایه طواف نه دی شروع کړی..الخ.

## د نیت د شرطیت متفرعه مسئلې

جمهورو علماوو د حج د طواف دپاره یو شرط د صحت نیت بللی وو تحقیق یې دا دی چې اصلي نیت د طواف دپاره شرط دی نه تعین داسې چې دا د طواف زیارت یا طواف صدر یا طواف قدوم دی بلکې دا سنت دی یا مستحب نو د شرطیت فایده دا سوه که چیرې یو کس بلا قصده یا د پوروړي څخه یا د دښمن څخه یې تېښتونه وهله هغه پر بیت الله اووه واره راوګرځېدی او یا خبر نه وو چې بیت الله ته راغلی یم او س دغه کسانو اګرچې لغوي نیت یې کړی دی معنا دا ده چې پر بیت الله خو یې طواف کړی دی لیکن دا هیڅ اعتبار نه لري په شریعت کې طواف نه ورته ویل کیږي.

سوال: که یو کس وحرم ته د عمرې دپاره راغلی وو مطلق د طواف نیت یې وکړ د عمرې د طواف تعین یې ونه کړی دا طواف د عمرې د فرض طواف څخه ګرځي؟

الجواب: دلته د مطلق نیت د طواف کولو ضرورت سته هغه سوی دی دا طواف د عمرې د فرض طواف پر ځای کیږي علاوه دا ده چې د بل طواف نیت وکړي لا دا د عمرې طواف دی نه بل.

سوال: که حاجي مفرد یا حاجي قارن د اختر تر ورځې مخکې بیت الله ته راغلی طواف یې وکړی تعین یې ونه کړی علاوه دا ده چې قارن دوه طوافه وکړه نو څه حکم لري؟

الجواب: د حاجي مفرد طواف د قدوم دی د حاجي قارن اول طواف د عمرې دی او دويم يې د طواف قدوم دی خلص مطلب دا دی چې د هر قسمه طواف وخت وو چي ادا يې کړی په مطلق نيت سره د هغه وخت مناسب طواف ورڅخه مراد دی.

## فصل د ښسده او ييده سړي د طواف طريقه

ولو طافوا بالمغمي عليه محمولا اجزاء ذلک عن الحامل و المحمول.. الخ.
متن و باقي شرحه

سوال: که دوه کسان و حج ته روان سوه يو په کښي ښسده وو چي و حرم ته ورسېدل اوس چي دا پرسد کس هغه ښسده په شا کړي نو د خپل ځان او د ده نيت به څنګه کوي؟

الجواب: د وړونکي نيت د ځان دپاره اصلي دي او د ښسده دپاره نيابتي دی لهذا که تر شروع دمخه نيت وکړي د مطلق نيت د ځان او بيا د ملګري دپاره د دواړو نيت صحت لري اګرچي د دواړو نيتونه سره مخالف وي د مثال په ډول د يوه نيت د واجب د بل د فرض وي خلص مطلب دا دی چي د احرام نيت لره اعتبار دی هلته چي يې د هر قسم طواف نيت کړی وو دا طواف د هغه نيت موافق ګرځول کيږي اګر که ښسده و خپل ملګري ته امر هم نه وي کړی دا عقده د شفقت څخه شمېرل کيږي.

سوال: که يو کس په حرم کي مريض سو د طواف طاقت يې نه درلود آيا چي د ده ملګري په ده باندي طواف په شا کوي د ده اجازه غواړي که يې ضرورت نسته لکه د ښسده طواف؟

الجواب: دلته اجازه د ده ضروري ده بغير د اجازې صحت نه لري.

مسئله: که مريض و خپلو ملګرو ته وويل چي په ما طواف وکړی دی دلته ويښ وو ليکن چي طواف ته ملګرو پورته کړی او طواف يې کوی ييده وو بياهم دا طواف صحت نه لري.

سوال: که مريض و يو کس ته وويل ولاړ سه وما ته يو مزدور را پيدا کړه چي په ما طواف وکړي هغه کس په بل کار سره مشغوله سو وروسته يې مزدور پيدا کړ چي راغلی مريض ييده وو طواف يې په وکړی څه حکم لري؟

الجواب: که يې دستي راوستی جواز لري که زمانه ډېره تېره سوه جواز نه لري ليکن مزدوري پر لازم ده.

سوال: د ښسده سړي او د ييده سړي شريعت ولي په طواف کي فرق کړی دی چي د ښسده اجازه نه ده ضروري او د ييده څخه اجازه اخيستل ضروري عمل دی؟

الجواب: چونکې نيت د جمهورو علماوو پر مذهب شرط دی نو حقيقتي نيت د بېسده په حق کې لغو سو اوس به په حکمي نيت سره اکتفاء کيږي د رفيقانو د ده ځکه د دوی تر مابين عقد د مشارکت سته په وعده او صحبت کې او د بيده دپاره حقيقي او صريح نيت ته ځکه ضرورت سته چي د ده حال نژدې و شعور ته دی.

سوال: که بېسده يا مريض يې په حال د خوب کې يو کس په شا کړه او د طواف نيت يې و نه کړی او يا يې د ځان دپاره وکړی نه د دوی او يا د دوی ورونکي په اصل کې په خپل پورورې پسې ګرځيدی نو د دوی د طواف حکم څه دی؟

الجواب: د بېسده لو بيده طواف صحت نه لري او که ورونکي نيت د ځان دپاره هم نه وو کړی د هغه طواف هم صحت نه لري او که بيده د طواف په وخت کې ويښ سو نيت يې پخپله وکړی بيا يې طواف صحيح دی.

سوال: که مزدور د بيده يا بېسده دپاره دطواف نيت وکړي صحت لري؟

الجواب: که بېسده په سد کې راغلی او يا بيده ويښ سو د مزدور نيت د دوی په حق کې جواز نه لري.

## دا فصل د طواف د مکان مقدار معلوموي

مکان الطواف حول البيت لا فيه داخل المسجد و يجوز في المسجد و لو من وراء السواري و زمزم و لو طاف على سطح المسجد و لو مرتفعا عن البيت جاز.

متن و بعده شرح ملا علي القاري

د طواف دپاره ځای چاپېره منطقه ده د بيت الله شريفي داخل په مسجد کې عامه خبره ده ليري وي که نژدې خو په مسجد کې به داخل وي او طواف د مسجد په ټولو اجزاوو کې جواز لري اګر که تر ستنو هاخوا ته وي او د زم زم تر شا وي او که د مسجد پر بام سرېږه طواف کوي هم جواز لري اګر که د بيت الله تر ودانۍ لوړ وي ځکه بيت الله تر اسمانه پوري ده لهذا چي سړی پر غره د ابي قبيس ولاړ وي لا لمونځ يې صحت لري چي د حرم د لمرخاته خوا ته دی او ۴۲۰ ميتره جګوالہ لري لهذا که بيت الله ونړېږي العياذ بالله تعالى لا به لمونځ و دغه طرف ته کيږي.

ارشاد الساري دلته حاشيه مفصله کړې ده چي مطلب به يې دلته انشاء الله تعالى ذکر سي چي د مسجد پراخي د نبي ﷺ د زمانې څخه شروع سوې ده بيا د حضرت عمر رضی الله عنه په زمانه پراخي زياته سوه چي کم تر قامت يې ديوال ورته جوړ کړی بيا د حضرت عثمان رضی الله عنه په زمانه کې څه زياته سوه بيا يې پراخي ابن الزبير رضی الله عنه وکړه بيا الوليد بن عبدالملک بيا المنصور بيا المهدي، علامة القطبي په تاريخ مکه کې ويلي دي چي دا د

اوس بناء په کال سنه ۹۸۰ په شپږمه د جمادي الاول سوې ده په زمانه د السلطان مراد بن السلطان سليم ده د جانب شرقي او شمالي طرفونه کامل کړه د غربي او جنوبي طرفونه د مسجد سره د دروازو او درجاتو پوره کړه دا په سنه ۹۸۴ کال کي دغه بنا تر سنه ۱۳۵۴ کالو پوري وه د کعبې تر جوړولو دمخه څکه د کعبې د جوړولو کار په يو زر او شلو يښتم کال کي پوره سو.

ارشاد الساري په بله حاشيه کي د کعبې د خرابولو العياذ بالله په باب څه زرين معلومات ذکر کړي دي چي زړه ته اطمينان او نورانيت راولي ومن الله التوفيق دی وايي چي بعضي اصحاب الکمال زما څخه دا سوال وکړ چي په قرآن کي خو الله تعالی د بيت الله حج فرض ګرځولی دی الله فرمايي:

ولله على الناس حج البيت من استطاع اليه سبيلا. آل عمران ۹۷

و قوله عزوجل:

و ليطوفوا بالبيت العتيق. الحج ۲۹

د اول آيت ژباړه دا ده چي د خدای جل جلاله د طرفه څخه پر هغه خلقو حج فرض دی چي طاقت يې ولري، د دويم آيت ژباړه دا ده تاسي پر بيت الله طواف کوئ چي پخوانی بيته ده محفوظه د جبائرو څخه.

نو آيا چي دا ديوالونه نه وي د کعبې بيا نو حج فرض دی طواف به چيري او څنګه کووو او لمونځ به کوم طرف ته کوي.

الجواب: دا خبره چي څوک کوي چي بيت خو هغه ځای ته وايي چي څلور ديواله لري سره د بامه دا د منطقينو فلاسفه وو خبري دي او کوم چي بعضي فقهاوو ورته بيت ويلي دي دا په اعتبار سره د عرف او اصطلاح چي بيت هغه دی چي شپه په کښي تېرېږي د يخ يا ګرمی. څخه نو د جواب مطلب دا دی ته فکر وکړه کعبې ته چي بيت الله ويل سوې ده نه د دې معنا دپاره چي خلق به په کښي شپه کوي او بل فقهاوو په باب کي د حج د شرطو څخه د حج د بيت الله ديوالونه او بام نه دي ذکر کړي نه د وجوب نه د اداء په شرطو کي او نه يې د حج په موانعو کي او نه په هغه عذرو کي چي حج په ساقطيږي دا خبره کړې ده او بل د دې جواب تائيد يو څه نور دلايل هم درته کوي رب العالمين په طوفان د نوح عليه السلام کي بيت الله و اسمان ته پورته کړه چي اوس بيت المعمور ورته وايي او ملائکي طواف پر کوي بيا دلته هيڅ بنا نه وه حضرت ابراهيم عليه السلام د رب العالمين په امر سره جوړه کړه په صحت رسېدلې ده چي هيڅ بناء نه وه چي هود او صالح عليهما السلام به دلته راتله او داسي نور غټ غټ پيغمبران عليهم السلام به راتله حج به يې کوی او د دغه مکې تعظيم او اکرام به

یې کاوه نو دا د دې دلیل سو چي بیت الله و هغه ځای ته ویل کیږي او په قرآن کي حق تعالی د پخواني پیغمبرانو په طریقه سره خپل رسول حضرت محمد ﷺ او مؤمنان امر کړي دي، قوله تعالی:

فبهداهم اقتدوا. سورت الانعام آیت ۹۰

او بل ابراهیم علیه السلام چي اسماعیل علیه السلام ته ورسېدی او بنا د بیت الله یې شروع کړه دلته هیڅ دیوال او علامه نه وه لا الله تعالی بیت الله ورته وویل چي ابراهیم علیه السلام جوړه کړه:

و اذ یرفع ابراهیم القواعد من البیت و اسماعیل. البقره ۱۲۷

که څوک دا سوال وکړي چي دا خو په اعتبار د مایؤل الیه ورته ویل سوي دي جواب دا دی چي حقیقت ممکن مجاز سیر کول جواز نه لري او بل دلیل دا دی چي په قرآن کي الله فرمایلي دي:

و اذ بوانا لابراهیم مکان البیت.

دا دلالت پر دې کوي چي بیت الله ځکي هم دلته وه او معلومېدله او بل صریح دلیل مراد ورڅخه هغه ځکه ده نه دېوالونه دي چي ابراهیم علیه السلام ته الله وایي ته بیت الله پاکه کړه د طواف کونکو او مقیم او لمونځ کونکو دپاره ظاهره ده چي دلته ورڅخه مراد هغه مبارکه بقعه ده نه دیوالونه حکمت د الله تعالی په دې کي دی چي دغه ځکه په بیت الله کي معتبره ده نه دیوالونه او نه بام ځکه دا د رب العالمین تجلي پر واقع سوې ده چي د اسمانو او ځکي تر پیدابښت مخکي حق تعالی پر اوبو تجلي وغورځوله نو دریاب په ښور کي راغلی دود ورڅخه پورته سو هوا ته د هغه څخه اسمان جوړ سو باره بناء د ځکي وسوه پر هغه اصلي محل د تجلي د رب العالمین چي راغله دا د ځکي زړه سو لکه زړه یا د انسان نو چي په مابین کي دی او په حدیث کي راغلي دي حق تعالی ستاسي و بدنو او اعمالو ته نه ګوري بلکي ستاسي و زړو او احوالو ته ګوري په دې کي اشاره ده و بیت الله ته چي د اصلي ختمه د بني آدم ده په قران کي فرمایي:

منها خلقناکم.

چي منشاء د پیدا کېدو د بني آدم ده.

و فیها نعیدکم.

په دې کي اشاره ده ورتګ ته د بني آدم.

ومنها نخرجکم تارة اخری. طٰه ۵۵

نو دلته دا امور په ګوته کیږي چي عمده د طاعاتو او عباداتو لمونځو او اعتکافو

بلکې په تېرو حالاتو کې معدن د خير او د توجه او فضيلت او انوارو ځای دغه قبله ده او خير د ناستې قبلې ته دی هدانا الله تعالی الی سواء الطريق و اعتق رقابنا ببرکة بيته العتيق و حسبنا الله تعالی و نعم الوکيل.

## فصل د طواف واجبات اووه ۷ دي

الاول الطهارة عن الحدث الاکبر و الاصغر الثاني قيل الطهارة عن النجاسة الحقيقة و الاکثر علی انه سنة و قيل قدر ما يستر به عورته من الثوب واجب فلو طاف وعليه قدر ما يواري العورة طاهر و الباقي نجس جاز والا فهو بمنزلة العريان الثالث ستر العورة فلو طاف مکشوفا وجب الدم و المانع کشف ربع العضو فما زاد کما في الصلاة و ان انکشف اقل من الربع لا يمنع و يجمع المتفرق الرابع المشي فيه للقادر فلو طاف راکبا او محمولاً او زحفا بلا عذر فعليه الاعادة او الدم و ان کان بعذر لا شئ عليه و لو نذر ان يطوف زحفا لزمه ما شيا الخامس التيامن و هو اخذ الطائف عن يمين نفسه و جعل البيت عن يساره و ضده اخذه عن يساره و هو الطواف المنکوس السادس قبل الابتداء من الحجر الاسود السابع الطواف وراء الحطيم فلو لم يطف ورائه بل دخل الفرجة التي بينه و بين البيت فطاف فعليه الاعادة او الجزاء ثم الواجب ان يعيده علی الحجر و الافضل اعادة کله و صورة الاعادة علي الحجر ان ياخذ عن يمينه خارج الحجر حتی ينتهي الی اخره ثم يدخل الحجر من الجانب الاخر او لا يدخل الحجر بل يرجع و يبتدء من اول الحجر هکذا يفعل سبع مرات و يقضي حقه فيه من رمل وغيره فاذا اعاده سقط الجزاء و لو طاف علی الجدار الحجر قيل يجوز و ينبغي تقييده بما زاد علی حد و هو قدر ستة او سبعة اذرع.

متن و بعده شرحه ملا علي القاري

هغه افعال چې طواف بغير د دوی څخه هم صحت لري ليکن جبيره غواړي په دم لازمولو سره اووه ۷ دانې دي.

۱: اول واجب پاکي ده د نجاست بدني څخه چې بې اودسيا او جنابت دی دا دواړه حکمي نجاست دی مثال د طواف د لمانځه دی په اعتبار سره د شرطو ليکن دونه فرق يې سته چې په طواف کې تګ او مخ د قبلې څخه اړول شرط نه دی هرکله چې دا ثابته سوه چې پاکي د نجاست حکمي څخه واجب ده نو که چيري يو کس بې اودسه يا په جنابت سره طواف وکړي بيرته راګرځول د دغه طواف پر واجب دی او که يې را و نه ګرځوی دم پر لازميږي او دا حکم د هر واجب دی چې پاته سي ليکن د بې اودسيا د طواف او جنابت فرق په ګناه او کفاره کې سته.

۲: د بعضي علماوو پر مذهب د بدن او کالو او هغه ځای د طواف د ظاهري نجاست

څخه پاکول يې واجب دی اگر که اکثره علماء د بدن او کالو پاکول سنت مؤکد بولي ..الخ.

۳: دریم د واجباتو څخه عورت پټول دي که څلورمه د اندام د ښځي حري یا مينځي یا نر د عورت څخه لږ سو یا زیاته بیا یې طواف لکه لمونځ جواز نه لري یا به بیرته په ستر کي طواف کوي یا به دم پر لازمیږي او که لږ لږ وه چي جمع کړي دي وای څلورمه د اندام د عورت جوړېده بیاهم جواز نه لري او که تر څلورمي حصې د اندام کم لږ وو بیا جواز لري د سراجي قول پر مقتضي د شافعي رحمه الله دی چي مقدار یوه نوک هم منع راولي که د یو کس کالي تپوله مردار وه دا هم پر منزله د لږ بعضي علماء بولي معنا طواف يې صحت نه لري لکه چي دا مسئله په دویمه شمېره عربي کي تېره سوې ده او که دونه قدر جامه په کښي پاکه وه بیا پروا نه لري چي عورت پټوي.

۴: څلورم واجب پیاده طواف کول دي چي پر تګ قدرت لري زمونږ پر مذهب نو که یو قادر سړی طواف په سپرتیا یا د بل په شا یا سکېډلو یا په خامپوسو یا پر بغل یا ستوني ستخ وکړي بې له عذره پر ده اعاده ده یا دم پر لازم دی او که عذر وو بیا جواز لري هیڅ شی وربانديني نسته مسئله که یو کس چي پر تګ د پښو قادر وو پر ځان يې په سکېډلو طواف نذر ومنی نو لازمه دا ده چي په پښو طواف وکړي او که يې په سکېډلو طواف شروع کړی وو بیاهم بهتره دا ده چي په پښو سره طواف وکړي اګرچي بعضي علماوو جواز ورکړی دی لکه طحاوي او بدائع.

۵: پنځم واجب د جمهورو پر صحیح باندي پرراسته طرف طواف کول دی راسته طرف داسي دی چي کعبه د سړي پر چپه وړه کیږي د ده وړه راسته سوه چي د دې ضد طواف داسي دی چي کعبه پر خپله راسته وړه راولي دې ته طواف مقلوب وايي معنا د خپلي طریقي څخه اوښتی طواف نو د وجوب حکم دا دی چي مخالفت ورڅخه وکړي مثلا لکه اوس چي د طواف مقلوب مثل درته تېر سو دا حرام دی یا خو بیرته راګرځېدل يې پر لازم دی یا دم پر لازم دی.

۶: شپږم واجب د طواف شروع د حجر اسود څخه ده لکه د ابن الهمام دا مختاره مذهب دی اګرچي اکثره ورته سنت وايي او بعضي شرط ورته وايي.

۷: اووم واجب طواف د حطیم تر شا کول دی اوس که طواف په هغه خالي ګاه کي د حطیم شریف کوي پر ده بل طواف لازم دی یا دم پر لازمیږي.

که یو شخص ټول یا بعضي طوافونه د حطیم او د کعبې تر مابین په هغه خالي ګاه کي کړي وه نو دلته د راګرځولو دپاره دوې طریقي دي یا به ټوله طوافونه راګرځوي چي دا افضله طریقه ده چي د ده طواف به یو پر بنه طریقه ادا سي او بل به د علماوو د خلافه څخه

ووزي لکه ابن الهمام چي يې توله راګرځول واجب بولي او بله طريقه د راګرځولو يې دا ده چي د حطيم د ديوال په اندازه سره به طواف کوي طريقه يې يوه داسي ده چي د يوه سرد څخه را روان سو تر اخيره چي ورسېدی بيا به په هغه مابين د حطيم او د کعبې کې و سر ته د بل وار دپاره راځي يا به بيرته پر هغه لاره ځي چي په طواف کې پر راغلی وو خو ياد ساته که هغه طوافونه خراب سوي وه چي اوبړې په کښې بنورول کېدې دلته به هم په دغه قدري طواف کې دري طوافه اوبړې بنورروي او د حطيم اندازه شپږ يا اووه ګزه ده دلته چي اوس هر څونه دي طريقه يې يوه ده.

## فصل دوه رکعته لمونځ د طواف واجب دی

وهي واجبة بعد کل طواف فرضا کان او واجبا او سنة و کذا مستحبا او نفلا و لا تختص بزمان و لا مکان و لا تفوت فلو ترکها لم تجبر بدم و لو صلاها خارج الحرم و لو بعد الرجوع الی وطنه جاز و يکره و السنة الموالاة بينهما و بين الطواف و تسحب موکدا خلف المقام و افضل الا ما کن لا دائها خلف المقام ثم في الکعبة ثم الحجر تحت الميزاب ثم کل ما قرب من الحجر الی البيت ثم باقي الحجر ثم ما قرب من البيت ثم المسجد ثم الحرم ثم لا فضيلته بعد الحرم بل الا سائة و المراد بما خلف المقام قيل ما يصدق عليه ذلک عادة و عرفا مع القرب عن ابن عمر ﷺ انه کان اذا اراد ان يرکع خلف المقام جعل بينه و بين المقام صفا او صفين او رجلا او رجلين رواه عبدالرزاق، ويستحب ان يقرء في الاولی الکافرون و في الثانية الاخلاص و يستحب ان يدعو بعدها لنفسه و لمن احب و المسلمين و يدعو بدعاء آدم عليه السلام و لو صلي اکثر من رکعتين جاز و لا تجزء المکتوبة و المنذورة عنها و لا يجوز اقتداء مصلي رکعتي الطواف بمثله لان طواف هذا غير طواف الاخر و لو طاف بصبي لا يصلي عنه و يکره تاخيرها عن الطواف الا في وقت مکروه و لو طاف بعد العصر يصلي المغرب ثم رکعتي الطواف ثم سنة المغرب و لا تصلي الا في وقت مباح فان صلاها في وقت مکروه قيل صحت مع الکراهة و يجب عليه قطعها فان مضي فيها فا لا حب ان يعيدها بعد طلوع الفجر الی طلوع الشمس قدر رمح و وقت الاستواء و بعد العصر الی اداء المغرب و عند الخطبة و شروع الامام في المکتوبة و بين صلاتي الجمع بعرفات و مزدلفة.

متن و بعد ترجمة و شرح شيخ ملا علي القاري

دوه رکعته د طواف مستقله زموږ پر مذهب واجب مستقل دی اګرچي شافعي رحمه الله يې سنت بولي دا دوه رکعته واجب تر هر طواف وروسته عامه خبره ده که طوف فرض وي لکه طواف زيارت يا د عمرې او که واجب وي لکه طواف صدر يا طواف د نذر يا

سنت طواف وي لكه طواف قدوم كه مستحب وي لكه طواف تحية المسجد يا نفلي وي لكه طواف تطوع، دا لمونځ په زمانه يا مكان پوري تخصيص نه لري په هر مقام او زمان كي صحت او جواز لري اگر چي فضيلت يې تر طواف بعد كه مكروه وخت نه وو پيوست په حرم كي د مقام ابراهيم شا ته لري دا لمونځ د سړي ځخه بې له مرگه نو فوتيږي او كه پاته سو دم نه پر لازميږي ځكه دا واجب مستقل دی معنا د واجباتو سره د حج تعلق نه لري اگرچي بعضي كسانو لكه الحدادي دم لازم بولي په پاته كېدو سره.

كه يو كس طواف وكړي او دا لمونځ ورځخه پاته سو وطن ته ولاړ وي گوزارل جواز لري خو عمل يې مكروه دی ځكه مستحب طريقه يې ترک كړه او د طواف او لمانځه تر مابين يې بېلتون راوستی د لمانځه سنت طريقه دا ده چي د طواف ځخه ځنگه فارغه سو كوي به يې كه مكروه وخت نه وو مستحب او مؤكد طريقه يې دا ده چي د مقام ابراهيم شا ته يې وگذاري چي موافقت د نبي عليه السلام د فعل سره راسي خصوصا د قرآن د آيت سره:

واتخذوا من مقام ابراهيم مصلی. البقره ۱۲۵

ژباړه: د مقام ابراهيم سره لمونځونه كوئ.

اگرچي بعضي كسان د آيت ځخه خصوصي دغه ځای اخلي نو حكم د وجوب كوي پر دغه ځای موږ جواب ور كوو چي ټول حرم ورځخه مراد دی، اولا خو د دغه لمانځه گذارل د مقام ابراهيم تر شا دی بيا يې د فضيلت ځای داخل كعبه ده بيا يې فضيلت منده ځای تر ميزاب لاندي په حطيم كي دننه دی بيا و بيت الله ته نژدې د حطيم سره دی چي اووه ۷ ذراع چي دري نيم ميتره كيږي ليري دی بيا باقي ځای د حطيم سره بيا چي بيت الله ته نژدې په هر طرف كي چي وي خصوصاً د كعبې د كونجانو پر برابر يا د ملتزم يا د دروازې پر برابر يا مقام د جبرائيل عليه السلام بيا نو ټول مسجد د دغه لمانځه ځای دی.

ارشاد الساري ليكلي دي چي ما د ابن الهمام د شاگردانو ځخه د فتح القدير پر حاشيه وليدل چي كه په مسجد حرم كي سړی لمونځ كوي او بل يې تر مخ تېرېږي نه دې منع كوي ځكه احمد ابو داود د المطلب بن ابي وداعة ځخه روايت كړی چي ما نبي عليه السلام وليدی لمونځ يې د دروازې سره د بني سهم كوی او خلق به د ده ومخ ته تېرېدل او ستره يې هم نه وه نو دا حمل كيږي پر طواف كونكو باندي ځكه طواف هم لمونځ دی نو مثال يې داسي سو لكه د لمانځه صفونه چي د سړي ومخ ته ولاړ وي مولانا صاحب وايي چي بيا مي په بحر العميق كي چي د ابن جماعت د مشكلات الآثار للطحاوي ځخه يې حكايت كړی وو چي په كعبه كي د لمانځه كونكو ومخ ته تېرېدل جواز لري ردالمحتار هم دغه حكم كړی دی كذا في تقرير الشيخ عبدالحق بيا يې ځای د طواف د واجب لمانځه حرم دی بل

ځای بیا فضیلت نه لري ځکه د خپل مستحب ځای څخه بدل سو او د خپل سنت وخت واوښتی اگر که په مسجد نبوي یا بیت المقدس کي وگذاري د طواف قدوم لمونځ د مقام ابراهیم سره دونه فضیلت لري چي بل ځای یې کول دونه فضیلت نه لري ځکه په یو روایت کي راځي چي ابن عمر ﷺ چي به اراده د طواف د لمانځه وکړه نو به مقام ابراهیم ته په دونه فاصله کي ودرېدی چي ومخ ته به یې ځای دونه وو چي دوه یا یو صف یا دوه کسه یا یو کس به ځایېدل رواه عبدالرزاق.

شاید ابن عمر ﷺ د نبي العَلَيْلاً د لمانځه د ځای کوشش کوی د مبارک العَلَيْلاً درېدل شاید په دې بنا وي چي پاکي حاصله سي د بت پرستانو د مشابهت څخه او یا به د پر ازدحام وو چي خیرالانام خلق وویني لیکن زیاتو صحابه کرامو به په مسجد حرم کي کوی اگرچي امام مالک رحمه الله چي د مقام ابراهیم سره لمونځ واجب بولي زموږ دلیل پر ده رد سو ځکه چي زموږ پر مذهب توفیق د ټوله احادیثو او آیت راځي نه د ده پر مذهب مستحب دا ده چي په اول رکعت کي تر الحمدلله بعد قل یایها الکافرون سورت په دویم کي قل هو الله احد ووایي او تر لمانځه بعد مستحب دعا د آدم العَلَيْلاً ده چي مخکي د طوافو په بیان کي تېره سوه ضرور یې په یاد کړه وجه هلته وگوره که تر دوو رکعتو زیات لمونځ وکړي هم جواز لري خو تر دوو زیات لمونځ یې نفلي دی.

سوال: آیا د طواف د لمانځه پر ځای چي وخت د فرض لمانځه وي د نذر لمونځ درېږي؟

الجواب: د طواف لمونځ مستقل واجب دی بل لمونځ یې پر ځای نه درېږي.

سوال: آیا د طواف لمونځ حاجیان په جماعت نه سي گذارلای؟

الجواب: طواف د هر یوه د هغه بل څخه غېر دی لهذا په جماعت سره نه کول کیږي اگر که طوافونه د یو قسم حج یا عمرې څخه وي.

سوال: که یې په یو غیر ممیز کوچني طواف وکړی نو د طواف لمونځ به یې څوک کوي؟

الجواب: چونکي لمونځ عبادت بدني دی نیابت په کښي صحت نه لري نو پر هیڅ چا یې لمونځ نسته.

سوال: چي طواف وکړي او لمونځ وځنډوي او وخت د کراهت نه وي حکم یې څه دی؟

الجواب: ځنډول یې مکروه دی ځکه پیوست په طواف پوري لمونځ سنت دی.

سوال: که د مازیگر تر لمانځه بعد سړی طواف وکړی د لمانځه سنت طریقه یې

کومه ده؟

الجواب: اول به د ماښام فرض وکړي بیا دوه رکعته واجب لمونځ د طواف وکړي بیا به دوه رکعته سنت د ماښام وکړي ځکه واجب پر سنتو مقدم وي او بل حکم د فرض او واجب يو دی په عمل کي اګر که په عقیده کي فرق لري لهذا درته معلومه سوه چي د طواف لمونځ به په مکروه وخت کي نه کوي.

سوال: که يې دا لمونځ په وخت مکروه کي وکړی راګرځيدل خو به نه غواړي؟

الجواب: زموږ د شریعت عامه قاعده دا ده چي هر لمونځ په مکروه وخت کي وګذارل سي راګرځيدل غواړي.

سوال: د طواف د واجب لمانځه دپاره کوم وختونه مکروه دي؟

الجواب: ۱: د سهار د سپيدو څخه تر لمرخاته چي يوه يا دوې نېزې را پورته سي.

۲: بل چي لمر پر سر ودريږي.

۳: بل د لمر ختلو په وخت کي چي سترګه نه پر برېښي.

۴: بل چي د مازيګر لمونځ ادا سي بيا د ماښام تر لمونځ ادا کېدو پوري.

۵: بل د خطبې د ويلو په وخت کي.

۶: بل د عرفات د ماپښين او مازيګر لمونځ چي يوځای د ماپښين په وخت کي ادا کيږي د دې په مابين کي دا لمونځ مکروه دی.

۷: او بل د مزدلفې د لمونځو په مابين کي چي د ماښام او ماخوستن لمونځ يوځای ګذارل کيږي د ماخوستن په وخت کي.

## فصل د طواف سنت لس دي

سنن الطواف ۱: استلام الحجر مطلقا، ۲: و الضطباع، ۳: والرمل في الثلاثة الاول، ۴: و المشي علي هيته في الباقي في طواف الحج و العمرة، ۵: و الاستلام بين الطواف و السعي بل لمن عليه السعي. ۶: و رع اليدين عند التكبير مقابلة الحجر، ۷: والابتداء من الحجر و هو الصحيح. ۸: و استقبال الحجر في ابتدائه، ۹: و الموالات بين الاشواط. ۱۰: والطهارة عن النجاسة الحقيقة.

متن و بعد ترجمة و شرح ملا علي القاري

د طواف د لسو سنتو څخه ۱: اول د حجر اسود مسح کول دي يا چي د دې پر ځای دريږي لکه تېره سوې چي ده دا مسئله.

۲: دويم اضطباع ده چي پټو تر راسته ووږه لاندي کړي دا هم تېره سوې ده ليکن دا به په ټوله طواف کي وي.

۳: دریم اوړې ښوررول په اولو دریو شوطو کې.

۴: څلورم په څلورو باقي شوطو کي پر خپل عادتي طور تګ دی ځکه تېز تګ کول ضرر رسول په کښې راځي تشویش د زړه په راځي او په مستي تلل علامه د کبر او ریاء ده.

سوال: راسته وړه لځول او اوږې ښوررول په کومو طوافو کي کیږي؟

الجواب: دا دوه عمله په هر هغه طواف کي کیږي چي تر طواف بعد یې سعیه د صفا او مروا ضروري وي لکه حج او عمره.

سوال: د اوږو ښوررولو علت څو بیره وه د مشرکانو څخه چي صحابه کرام ﷺ حج ته راغله مشرکانو به ویل دوی د مدینې تبو خراب کړي دي کمزوري دي حمله پر کېدای سي نو نبي ﷺ و صحابه کرامو ته وفرمایل اوږې لځي کړئ د بهادرانو پر چم اوږې یو خوا او بل خوا اړوی چي د دوی ګمان ختم سي اوس خو هغه علت ختم سو نو ولي موږ اوس اوږې ښوررو؟

الجواب: دا خبره غلطه ده چي اوس یې دلیل او علت نسته ځکه نبي ﷺ په حجة الوداع کي چي مکه فتح سوه مسلمانان قوي سوه لاهم وړه لځه کړه او اوږې یې ښوررولې دپاره د شکر چي امن تر خوف بعد حاصل سو د مشرکانو څخه لهذا موږ په قرآن کي په اظهار د شکر سره امر سوي یو او بل د یوه حکم دپاره ډېر دلائل کېدای سي نه داسي چي تا په سوال کي یو علت پېش کړ.

۵: پنځم د طواف او د سعي تر مابین د حجر اسود مسح کول دي بلکې هر هغه چا ته چي صفا ته د سعي دپاره ځي د مقام ابراهیم لمونځ یې کړی وي او که نه ملتزم ته ورغلی وي او که نه زم زم ته ورغلی وي او که نه.

٦: صحیح مذهب دا دی چي د طواف شروع د حجر اسود څخه سنت ده که مسح او مخامخ کېده وي او که نه اګرچي بعضو فرض بعضو واجب ورته ویلي دي.

۷: مخامخ کېدل حجراسود ته د طواف په شروع کي ځکه د طواف په مابین کي خو مستحب ده.

۸: د طواف د شوطو پرله پسې کېدل او د سعي د طوافو پرله پسې کېدل هم سنت دی همدا رنګه طواف او سعي پرله پسې کول.

۹: ځان او کالي پاک ساتل د مرداری څخه. یوه غلطي ومنه ځکه په پښتو شمارو کي یو د بل سره ګډ سوي دي لهذا دلته نهه سوه په عربي عبارت لس دي.

## فصل د طواف په مستحباتو کي

مستحباته استلام الرکن الیماني و اخذ الطواف عن یمین الحجر بحیث یمر جمیع

بدنه علیه و تقبیل الحجر و السجود علیه ثلاثا و اتیان الاذکار و الادعیه فیه و ان یکون طوافه قریبا من البیت و للمرأة البعد و ان تطوف لیلا و الطواف وراء الشازوران و استناف الطواف لو قطعه او فعله علی وجه مکروه و ترک الکلام و کل عمل ینا في الخشوع والاسرار بالذکر و الادعیة وصون النظر عن کل ما یشغله.

متن و بعده ترجمة و شرحه

د طواف د مستحبو اعمالو څخه د رکن یماني مسح کول دي بغیر د مچولو او لاس اینبودلو څخه پر تندي باندي بې له لاس پورته کولو شروع کول د طواف دي د حجر اسود څخه چي راسته طرف ته د دروازې پروت دی اول به ورته مخامخ سي باره به طواف شروع کړي په داسي شان سره چي ټول بدن يې د حجر اسود پر برابر تېر سي درې واره مچول د لاس دي چي پر حجراسود يې کښېږدي بیاهم درې واره پر لاس تندی اینبودل دي لکه سجده، ذکرونه او دعاګاني کول دي په طواف کي چي ضرر نه وي و بیت الله ته نژدې طواف کول دي ښځي لره که خلق ډېر وه یا يې لمبر نه وو د بیت الله څخه لیري طواف کول دي ښځه اگر که بوډۍ وي طواف يې د شپې مستحب دی طواف د شازوران تر شا کول دي چي دا د حجر اسود په درجه کي یو بیل ځای دی که بې له عذره څخه د طوافو تر مابین وخت ورڅخه بې معنا تېر سو او طواف قطعه معنا پر له پسې و نه سو بیر ته د سره څخه راګرځول دي او که یو مکروه کار ورڅخه په کښې وسو بیر ته طواف راګرځول دي او اذکار او دعاګاني په کښته آواز معنا په پټه ویل دي او خپلي سترګي د هغه شیانو څخه چي زړه مشغوله کوي ساتل دي د طواف په دوران کي خبري نه کول دي اگر که مباح وي او نه کول دي د هر داسي عمل چي د زړه څخه بیره او عاجزي لیري کوي.

ارشاد الساري په حاشیه کي د ملا علي القاري یوه رساله نقل کړې ده د هغې په اخیر کي د خشوع طریقه د ابن عمر ﷺ څخه په کښې نقل سوې ده چي ده مبارک به ویل موږ خپل رب وینو مگر خپل راسته یا چپه طرف نه وینو او ده به بل طرف ته نه کتل په مقام د احسان کي وو چي کوم ﷺ فرمایلي دي چي تاسي د خپل رب داسي عبادت کوئ لکه خپل رب ته چي ګورئ او که تاسي رب نه وینئ الله خو تاسي ویني انتهٰی.

فائده مهمه

سوال: د طواف په وخت کي بعضي انسانان لاسونه پر نامه نیسي دلیل دا وایي چي طواف خو حیثیت د لمانځه لري لهذا په لمانځه کي خو لاسونه تر نامه لاندي اینبودل سنت دي ذلته هم دا سنت عمل دی.

جواب: دا عمل مکروه او خلاف سنت دی په قرآن کي الله فرمایي:

و من یشاقق الرسول من بعد ماتبین له الهدی و یتبع غیر سبیل المؤمنین نوله ما تولی و نصله جهنم وساءت مصیرا○ النساء ۱۱۵

هر څوک چي مخالفت د رسول الله ﷺ څخه وکړي او هدایت هم ورته رسېدلی یا د مؤمنانو څخه بله لار واخلي نو چي دی مخ اړوي موږ به یې جهنم ته داخل کړو چي بد ځای دی مطلب دا دی که د رسول الله صلی الله وسلم څخه په طواف کي تر نامه لاندي لاسونه اینښودل ثابت وای نو اصحابو کرامو کله پرېښودل او بل خاص او عام دا عمل نه کوي رسول الله هم ویلي دي چي زما امت پر ضلالت نه جمع کیږي.

## فصل په طواف کي جائزه کارونه

۱: الکلام، ۲: والسلام. ۳: وافتاء. ۴: والاستفتاء. ۵: والخروج منه لحاجة. ٦: والشرب، ۷: والطواف في نحل اوخف اذکانا طاهرین. ۸: و ترک الاذکار. ۹: وقرائة القرآن، ۱۰: وانشاد شعر محمود، ۱۱: والطواف راکبا او محمولا لعذر.

متن و بعد شرح

۱: په طواف کي که احتیاج وو خبري جواز لري او کوم چي په مستحبا تو کي تېره سو چي نه کول یې مستحب دی او یا ابن الهمام ویلي دي چي د طواف خبري مکروه دي او د سړي نیکي خوري د دې څخه مراد ارشاد الساري وایي بې له ضرورته خبري دي انتهی ځکه چي په مرفوع حدیث کي د ابن عباس رضی الله عنه څخه راغلي دي چي طواف پر بیت الله په مثل د لمانځه دی لیکن دونه فرق یې سته چي چي په لمانځه کي خبري نسته نو په طواف کي هم خبري بې له ضرورته څخه د خیر او ذکر مه کوئ. ترمذي شمېره ۹٦۰ ترغیب او ترهیب جلد ۲ ص۱۹۱ د مشکات حدیث ۲۵۷٦ شمېره کنز العمال حدیث شمېره ۱۲۰۰۳

۲: سلام کول دی پر هغه چا چي په ذکر سره نه وي اخته بلکي که هغه ذکر کوی ستا سلام ورته کول مکروه دی او که نه وو بیا سنت عمل دی علاوه دا ده که چیري یو کس سلام وکړئ بیا یې وعلیکم السلام ویل فرض کفایي دی او یا چا ونو ږل الحمد لله یې وویل پر تا د یرحمک الله ویل ورته واجب دی.

۳: فتوٰی ورکول بلکي په شرعي مسئله کي تر ذکر یې فضیلت زیات دی.

۴: د بل څخه فتوٰی غوښتل دی.

۵: د طواف څخه وتل دی د ضرورت دپاره.

٦: د اوبو څښل دی ځکه دا طواف نه سره شکوي.

۷: په طواف کي نعلین یا پرې موزې په پښه کول دی که عذر وو څپلی یې پاکي وي او که عذر نه وو نو بیا بدائع ورته بې ادبي ویلې ده.

۸: په طواف کې ذکر نه کول او دعا نه کول مباح کار دی.
۹: په کراره او خفیه د قرآن ویل مباح دی او په لوړ آواز مکروه دی.
۱۰: اشعار جوړول مباح دی که د شریعت سره موافق وه او بد اشعار جوړول خو په دې ځای کې لا حرام دی.
۱۱: د عذر او ضرورت پر وخت سپرېدل او یا په شا کېدل مباح عمل دی.

## فصل په طواف کې حرام کارونه

الطواف جنبا او حائضا او نفساء او محدثا او عریانا او راکبا او محمولا او زحفا بلا عذر او منکوسا او داخل الحجر و ترک شئ منه ولو نفلا و لا مفسد الطواف.

بې اودسه جنوب حیضي نفاسي لڅ سړي ته په سپرتیا بې له عذره او په ځکېدلو پر کوناټو بې له عذره طواف کول حرام او ناروا کار دی داخل په حطیم کې او د طواف څخه یو شی پرېښودل اگر که نفلي طواف هم وي حرام دی او د طواف فاسدوونکی بل عمل مرتد کېدل دی العیاذ بالله.

## فصل د طواف مکروهات

الکلام الفضول، البیع و الشراء و انشاءة الشعر یعري عن حمد و ثناء مطلقا و رفع الصوت و لوبالقران والذکر و الدعاء، والطواف في الثوب النجس، وترک الرمل والاضطباع لمن علیه، و ترک الاستلام، تفریق الطواف تفریقا کثیراً و الجمع بین الاسبوعین فاکثر من غیر صلاة بینهما الافي وقت مکروه و رفع الیدین عند نیة الطواف، والطواف عند الخطبه و اقامة المکتوبة. والاکل وقیل الشرب والطواف وقتاً.

متن. وبعد شرح ملا علي القاري.

۱: د طواف د مکروهاتو څخه فضول خبري کول دي نبي ﷺ فرمایي که څوک ایمان پر الله او ورځې د اخرت لري یا دې د خیر خبري کوي یا دې چپه خوله سي.
۲: خرڅول او رانیول خو به مسجد کې لا مکروه دي په طواف کې خو یې کراهت زیات دی بلکې وینا یې لا مکروه ده.
۳: د حمد او ثنا او وعظ یا علم یا ترغیب څخه پرته په بل شي کې اشعار جوړول مکروه دی بلکې بعضي وایي دا ځای د ذکر او دعاوو دی مطلق شعر جوړول مکروه عمل دی.
۴: تشویش پورته کوونکی آواز اگر که د قرآن ذکر یا دعا وي مکروه دی.
۵: په مردارو کالو کې احرام مکروه دی.
۶: پر کوم حاجي چي د اوږو ښورول او اوږې لڅول سنت دي پرېښودل یې مکروه

دی.

۷: که د حجر اسود مسح پر سنت وه پرته د رکن یماني څخه پرېښودل يې مکروه عمل دی او د رکن یماني مسح پرېښودل خلاف الاولی دی.

۸: د طواف د یو بل څخه جدا کېدل بې له ضرورته څخه ډېره زمانه مکروه دی.

۹: که یو طواف اووه شوطه پوره کړي دوه رکعته د طواف لمونځ و نه کړي او بیا طواف یا ډېر ورپسې کړي دا عمل مکروه دی که چیري وخت د لمانځه د کراهت نو بیان یې تېر سوی دی.

۱۰: بې الله اکبره د طواف د نیت په وخت کي لاسونه پورته کول مکروه عمل دی او که الله اکبر ورسره وو بیا خو سنت عمل دی.

۱۱: د امام د خطبې په وخت کي طواف کول مکروه دی ځکه دلته اعراض راځي.

۱۲: د طواف شروع کول په وخت د فرض لمانځه کي مکروه دی او که آخره د طواف وه فرض لمونځ یې هم کولای سو د طواف پوره کول بیا غوره کار دی.

۱۳: د طواف په دوران کي خوراک مکروه دی ځکه د طواف پر له پسې کېدل ضررناکه کیږي بعضي کسانو د اوبو څیښل مکروه بللی دی اګر چي دا قول ضعیف دی.

۱۴: طواف کول مکروه دی چي بولو یا چکر نیولي وي او ځان یې ټینګ کړی وي.

## متفرقه د تېر بیان مسائل

سوال: که یوه سړي طواف پوره کړی د طواف لمونځ یې هم سو بل طواف یې شروع کړی یو شوط یې کړی وو چي په یاد یې سوه چي ما خو د تېر طواف لمونځ نه دی کړی څه به کوي او حال دا دی چي پر له پسې کېدل د شوطو سنت عمل هم دی.

الجواب: که یې شوط نه وه پوره کړي پرې دې ږدي خپل د طواف لمونځ دي وکړي او که یې شوط پوره کړي وه بیا دي دا طواف هم پوره کړي باره دي دواړه لمونځونه وکړي.

سوال: که حاجي د طواف زیارت چي فرض دی یا د عمرې طواف چي داهم فرض دی یا غیر د فرض څخه لکه طواف صدر چي واجب دی یا د نذر طواف چي دا هم واجب دی یا سنت طواف لکه طواف قدوم یا نفلي طواف اته شوطه طواف وکړي څه حکم لري او څه به کوي؟

الجواب: که یې کلک ګمان د اووم وو هیڅ پر نسته او که وسوسه وه پوره دي.

سوال: که چیري یو کس طواف زیارت کوی یا یې د عمرې طواف کوی چي فرض دی او په شوطو کي د طواف شکمن سو چي ما زیات یا کم تر اووه شوطه وکړه آیا دلته پر غالبه ګمان لکه په لمانځه کي بنا کولای سي؟

الجواب: احتیاطاً به د سره څخه ټول طواف راګرځوي پر لمانځه يې قياس کول درست ځکه نه دی چې طواف په ټول عمر کي يا کال کي يو وار دی او لمونځونه خو ډېر دي او بل دلته چې يې طواف فرض ياد کړی دا ورڅخه عيانه سوه چې په نورو طوافو کي پر غالبه ګمان عمل کېدای سي.

سوال: که په فرض طواف کي شکمن سو او بيا يوه يا دوو عادلانو کسانو ورته وويل چې دومره شوطه د طواف دي کړي دي بيا څه حکم دی؟

الجواب: د يو شخص په قول عمل کول ورته مستحب او د دوو کسانو په قول عمل کول ورته واجب دی ځکه دا دوه کسان د ده پر عمل پر منزله د شاهدانو دي او کوم چې د يوه شخص په قول عمل مستحب دی دليل يې دا دی چې يو خو هغه څه غرض نه لري او بل د دغه څخه هم چې شمېر يې ورک دی.

سوال: که يې څلور شوطه پوره کړه لمونځ يې وکړی وخت وتی وروسته يې هغه باقي درې شوطه پوره کړه جزا يې څه ده؟

الجواب: هيڅ جزا وربانديي نسته ځکه پرله پسې کول د طواف د شوطو په عذر سره پاته سوي دي او بل اکثره حکم د ټول لري ليکن غوره دا ده چې طواف را وګرځوي.

سوال: د طواف حکم خو د لمانځه دی که ښځه د سړي سره پر وړه برابره سوه په فرضي طواف کي څه حکم لري؟

الجواب: د ښځي محاذات او برابري د سړي سره په طواف کي طواف نه فاسدوي ځکه يو خو د ښځي محاذات شرطونه لري هغه دلته نسته او بل په حقيقي معنا سره طواف د لمانځه حکم نه نري لهذا طواف سړی په دوو اودسو سره کولای سي نه لمونځ.

سوال: په طواف کي چې د حاجي نعلين په پښه وي څه حکم لري؟

الجواب: د څپليو سره طواف کول بې ادبي ده دا آيت يې دليل دی ژباړه يې تېره سوې ده:

فاخلع نعليک. طٰه ۱۲

مګر که ضرورت وو پروا نه لري.

سوال: په طواف کي بې مطلبه خبري کول څه حکم لري؟

الجواب: دا غفلت عظيم دی او ځان د مناجات څخه د خپل رب محرومه کول دي په حديث کي راغلي دي چې نيک مسلمان د بې هوده خبرو څخه د ځان ساتنه کوي. ابن عدي في الکامل ج۳ ص۹۰۷، مجمع الزوائد ج۸ ص۱۸، مسند احمد ج۱ ص۲۰ کنز العمال ج۳ شماره ۸۲۹۱

سوال: که يې په ټول طواف کي هيڅ ذکر يا دعا و نه کړه څه حکم لري؟
الجواب: هيڅ جزا نه لري مباح کار دی.
سوال: که اوږې ښورول يا وړه لګول ورڅخه پاته سول څه حکم لري؟
الجواب: طواف يې صحيح دی چي د حجر اسود مسح هم ورڅخه پاته سي ليکن د سنتو څخه مخالفت مکروه عمل دی بې له عذره.

## ضروري تنبيهات

و حاجي لره مناسب ده چي خپل طواف د داسي قول يا فعل ظاهري او باطني څخه وساتي چي شرع په ناراضه وي لکه کتل و هلکانو يا ښځو ته په شهوت سره او يا و بل ته کتل دي چي ترڅان يې خوار بولي او که جاهل يو کار خراب کوي په نرمي يې پوه کول په قرآن کي الله تعالی وايي تاسي خلق د الله و لاري ته په نيک نصيحت او حکمت سره را و بولئ:

ادع الی سبيل ربک بالحکمت و الموعظة الحسنة. النحل ۱۲۵

ژباړه يې پورته تېره سوه.

او بل د افاقي سړي دپاره تر نفلي لمانځه نفلي طوافونه زيات ثواب لري او بل هغه منکر او ناروا چي ډېر فاحش عمل دی چي ښځي د طواف په مبارکه مځکه کي د نرانو سره خلط ډيکه وهونکي رواني وي علاوه لا دا ده چي ځانونه يې هم ښايسته کړي وي او د عطرو خوش بويي هم ورڅخه پورته کيږي چي د خلقو زړونه جلبوي او په تشويش کي واقع کيږي ډېر بيا داسي هم وي چي د عورت اندامونه يې لڅ هم وي خصوصي بيا لاسونه او پښې نو د دوی سره که نر و مبتلي د امام شافعي رحمه الله پر مذهب د سړي اودس مات دی طواف يې خراب سو او بل د منکراتو څخه دا دي چي بعضي ظالمان د ځانو سره خادمان لو اندېوالان راولي چي خلق ورڅخه پوري وهي او يا بعضي خلق د بل چا پروا نه کوي ډيکې وهي تلوار کوي او خاص منکر عمل دا کوي بعضي جاهلان چي چي و حجر اسود ته ځان رسول غواړي نورو خلقو ته آزار رسوي پر اوږو يې اوړي يا ځان تخته کوي نو ضرر يې تر ثواب زيات سي او بل منکر بعضي کسان دا کوي چي طواف ګاه تنګه کي مخ او شا ته کيږي ځان د واجب عمل مخالف کړي و قبلې ته شا کړي او بعضي بيا دا بدعت هم کوي چي د بيت الله سره آوازونه پورته کوي يا پر لارو کيښني عورت يې لڅ وي.

## باب السعي بين الصفا و المروة

اذا فرغ من الطواف فالسنة ان يخرج للسعي علی فوره فان اخره لعذر او ليستريح فلا بأس به و ان اخره لغير عذر فقد اساء ولا شئ عليه و يستحب ان يخرج من باب الص

فان خرج من غيره جاز و يقدم رجله اليسري للخروج ثم يتوجه الى الصفا و يصعد عليه حتى يرى البيت من الباب لا من فوق الجدار ان امكنه و الا فقد رما يمكنه و يستقبل البيت و يرفع يديه حذاؤ منكبيه جاعلا بطنهما نحو السماء كما في للدعاء فيحمد الله تبارك و تعالى و يثني عليه و يكبر ثلاثا و يهلل و يصلي على النبي ثم يدعو للمسلمين و لنفسه بما شاء و يكرر الذكر مع التكبير ثلاثا و يطيل القيام عليه و لا بعجل ثم يهبط نحو المروة داعيا ذاكرا ما شيا على هيْته حتى اذا كان دون الميل المعلق الكائن في ركن المسجد قيل بنحو ستة اذرع سعي سعيا شديداً في بطن الوادي حتي يجاوز الميلين بفناء المسجد و فناء دار العباس ثم يمشي على هيْته حتى ياتي المروة ان امكن و يفعل على المروة جميع ما فعله على الصفا من الاستقبال و التكبير و الذكر و الدعاء ثم ينزل منها داعيا ذاكرا و يمشي على هيْته فاذا بلغ الميلين سعي كما مر هكذا يفعل ذلک سبعة اشواط يبدا بالصفا و يختم بالمروة من الصفا الى المروة شوط و العود منها الى الصفا شوط اخر و يستحب ان يكون السعي بين الملين فوق الرمل دون العد و هو سنته في كل شوط فلو تركه او هرول في جميع السعي فقد اساء و لا شئ عليه و يلبي في السعي الحاج لا المعتمر و ان عجز عن السعي بين الميلين صبر حتى يجد فرجة و الا تشبه بالساعي في حركته و ان كان على دابة حركها من غير ان يؤذي احدا و ليحترر عن اذي وغيره و تعريض نفسه للاذي.

متن و بعده شرح ملا علي القاري

حاجي چي د هغه طواف څخه فارغه سي چي تر هغه بعد سعيه وي نو سنت دا دی چي بلا تاخير تلواري و صفا ته ووزي او كه يې خان هوسا كړ يا عذر وځنډوی پروانه لري لو كه بې له عذره وځنډېدی دم پر نسته ليكن گناهگاره دی ځكه سنت كار يې پرېښود مستحب طريقه د وتلو دروازه د صفا ده چي پر هغه به وزي د حرم څخه او كه پر بله دروازه ووتی جواز لري د وتلو په وخت كي به چپه پښه دمخه كوي لكه دا چي د هر مسجد بلكې د متبرک ځايه څخه د وتلو طريقه ده ليكن و مسجد ته د داخلېدو په وخت كي به راسته پښه دمخه كوي چي د مسجد څخه ووتی صفا ته ورسېدی داسي دي ووايي:

ابدا بما بدا الله تعالى به ان الصفا و المروة من شعائر الله فمن حج البيت او عتمر فلا جناح عليه ان يطوف بهما و من تطوع خيرا فان الله شاكر عليم، (كما ورد في الحديث).

باره دي و صفا ته پورته سي و هغه دروازې ته دي ورسي چي بيت الله معلومېږي مخامخ به سي و قبلې ته اگر كه نه معلومېږي ځكه ادب د دعا دغه طريقه ده نو به لاسونه د اوږو تر برابره پورته كړي د لاسو مخان به د آسمان طرف ته وي ځكه د لاسو پورته كولو د

دعا آسمان قبله ده نو حمد درود او لا اله الا الله محمد رسول الله به وواییي دري واره به الله اکبر وواییي نو به دعا د ځان او مسلمانانو دپاره وکړي دري واره به د ذکر سره الله اکبر واییي خلص مطلب دا دی چي داسي دعاء به کوي:

الله اکبر الله اکبر الله اکبر و لله الحمد الحمدلله الذي هدانا لهذا الحمدلله علی ما اولانا الحمدلله وحده لا شریک له له الملک و له الحمد یحي و یمیت و هو حی لا یموت بیده الخیر و هو علی کل شئ قدیر لا اله الا الله و لا نعبد الا ایاه صدق وعده و نصر عبده و اعز جنده و هزم الاحزاب وحده لا اله الا الله و لا نعبد الا ایاه مخلصین له الدین و لو کره الکافرون اللهم کما هدیتني للاسلام اسئالک ان لا تنزعه منی حتی توفاني و انا مسلم سبحان الله والحمدلله و لا اله الا الله و الله اکبر و لاحول و لا قوة الا بالله العلي العظیم اللهم صل و سلم علی سیدنا محمد و علی اله و صحبه و اتباعه الی یوم الدین اللهم اغفرلي و لوالدي و لمشایخي و للمسلمین اجمعین و سلام علی المرسلین و الحمدلله رب العالمین.

یو خو یې ترجمه آسانه او بل بیا په مکرره دعاګانو کي راځي لهذا طوالت راولي چي ترجمه یې ولیکم او بله دا مسئله ده چي خاص خو دا دعا نه ده په شرط د دې چي زده یې نه وي بله دعا هم کولای سي اګر که دا غوره خو ده نو بیا دي یې زده کړي.

پر صفا به د سورة بقره د پنځه ویشتو آیتو په مقدار سره درېږي حاجي به په دغه مقام کي دا تلوار نه کوي چي ژر کښته سمه ځکه دا د دعا د قبلېدو خاص ځای دی بیا به د مروا طرف ته راکښته سي په داسي حال کي چي پر خپل عادتي تګ به روان وي خپل ذکر او دعاګاني به کوي دا به تر رسېدو د ملینو ته وي چي اوس خو نسته هغه ځایونه رنګونه لري پر هغه معلومیږي چي د دغه ځایه څخه بیا تر هغه رنګه د میلینو ځایونه دي تقریبا اندازه یې شپږ ګزه شرعي او زموږ په اصطلاح سره درې میتره کیږي د دغه میلانو تر مابین به تر خپل عادتي تګ تیزي کوي د نر دپاره نه د ښځي. هرکله چي تیر سو بیرته به پر خپل عادتي تګ سره ځي هرکله چي د مروا ته ورسیدی دلته به هم هغه ذکرونه ثناوي او دعاګاني کوي لکه پر صفا چي یې کول هغه دعا به یاد لري دا هم د دعا د قبول ځای دی اوس نو د ده یو شوط پوره سو بیا چي د مروا څخه و صفا ته ورسېدی بل شوط پوره سو دا سلسله به تر اووه واره پوري پوره کوي چي شروع یې د صفا څخه سوې ده ختم د شوط به پر مروا کیږي هر وار چي د میلانو مابین ته ورسي تیزي به کوي که نه کېدل یو ګړی دي صبر وکړي چي موقع پیدا کړي باره به تیز په کښبي روان سي او که هیڅ موقعه نه کېده بیا دي صرف چم د تېزي کوي د یادولو وړ خبره دا ده چي تیزي دلته په مقدار د اوږو ښورولو ده کوم چي تا د مکې په طواف کي کوله که سړی سپور وو هم به دلته خپل حیوان ته تېزي ورکوي که و بل

چا ته ضرر نه رسېدی او بله مسئله یاد لره که هغه حاجي چي سعيه تر طواف قدوم بعد کوي تلبيه به وايي ليکن عمره کونکي به تلبيه نه وايي اگر که عمره د تمتع وي او يا يې د طواف زيارت څخه بعد سعيه کړي وي بيا به رمي د جمره کوي نو تلبيه د اول رمي سره قطع سوه.

## فصل د سعي د صحت شرطونه اووه ۷ دي

وهي سبعة بعدد اشواطه او الاول كينونته بين الصفا و المروة سواء كان بفعل نفسه او بفعل غيره بان كان مغمي عليه و لو بغير امره او مريضا او صحيحا بامره فسعي به محمولا او راكبا يصح سعيه لحصوله كائنا بينهما و لاتجوز فيه النيابة الا للمغمي قبل الاحرام الثاني ان يكون بعد طواف او بعد اكثره فلو سعي قبل الطواف او بعد اقله لم يصح و لو سعي بعد اربعة اشواط صح الثالث تقديم الاحرام عليه فلو سعي قبله لم يجز واما وجود الاحرام حالة السعي فان كان سعي الحج وقد سعي قبل الوقوف فلا يشترط و لا يسن و ان كان سعي العمرة فلا يشتر ما فيه وجوده و هل يجب حال سعيه الظاهر نعم الرابع البدائة بالصفا و الختم بالمروة فلو بدأ بالمروة لم يعتد بذلك الشوط فاذا اعاد من الصفا كان هذا اول سعيه الخامس ان يكون السعي بعد طواف على طهارة عن الجنابة و الحيض فان لم يكن طاهرا وقت الطواف لم يجز رأسا و اما الطهارة عن الحدث الاصغر في الطواف فليست بشرط لصحت السعي السادس الوقت لسعي الحج فلو احرم بالحج و سعي له قبل اشهر الحج لم يصح سعيه و لو سعي فيها او بعد مضيها صح السابع اتيان اكثره فلو سعي اقله فكانه لم يسع.

متن و بعد ترجمة و شرح شيخ ملا علي القاري

سعيه خو زموږ پر مذهب واجب ده بنفسه اگر امام شافعي رحمه الله يې ركن بولي او د سعي د صحت دپاره اووه شرطونه دي چي بغير د دغه شرطو څخه صحت نه لري د ده سعيه اول شرط چي الكبيروالا ركن ورته ويلي دي د سعي هغه تګ كول دي په مابين كي د صفا او مروا چي په شاوخوا كي بل ځاى صحت نه لري دا سعيه به يا پخپله پياده يا سپور كوي او كه بېسده وو بيا به بل څوک دغه بېسده په شا اخلي سعيه به په كوي اگر كه يې امر كړى نه وي د لېوني يا غير مميز كوچني هم دغسي حكم دى او كه مريض يا جوړ سړى سعيه د بل په شا كول امر يې ضروري دى د په شا سړي يا سپاره سعيه صحت لري كه د صفا او مروا تر مابين وه.

سوال: آيا په سعيه كي سړى بل څوک وكيل كولاى سي چي د ده پر ځاى د صفا او مروا په مابين كي تګ او راتګ وكړي؟

الجواب: نيابت صحت نه لري بغير د هغه بېسده څخه چي تر احرام دى بېسده

سوی وي څو سعيه تمام ته رسيږي.

سوال: که یو شخص و صفا ته د را رسېدو په حال کي بېسده سو دلته نیابت صحت لري؟

الجواب: دلته نیابت صحت نه لري ځکه چي ضرورت نسته دلته خو امکان لري چي ملګري يې په شا کړي سعيه په وکړي کوم چي د احرام نيابت وو هغه د ضرورت په وجه سره وو که چيري دلته يې صحت درلودلای نو مصنف د قبل الاحرام ولي لګول.

۲: دويم د صحت شرط دا دی چي سعيه به تر طواف بعد وي اګر که نفلي وي او يا به تر اکثره طوافو بعد وي بياهم صحت لري او که يو سړی د طواف څخه مثلاً دري شوطونه کړي وه سعيه يې صحت نه لري لکه تر طواف چي مخکي سعيه وکړي ځکه د سعي رکن او فرض دا دی چي تر طواف د بيت الله به وروسته وي.

۳: دريم شرط دا دی چي احرام د حج يا د عمرې به تر سعي دمخه وي که تر احرام دمخه طواف وکړي هم سعيه جواز نه لري دليل دا دی چي واجب عمل او فرض يې له شرطه جواز نه لري لهذا د طواف شرط احرام دی او سعيه د حج د واجباتو څخه ده نو بې له احرامه د ده سعيه صحت نه لري علاوه دا ده چي بعضي شرطونه داسي دي چي تر فراغت پوري پر شرطيت باقي وي لکه اودس د لمانځه دپاره بعضي بيا بقاءيه شرط نه وي لکه نيت د لمانځه.

سوال: احرام خو شرط د طواف او سعي دی اوس که يو شخص احرام وتړی پر عرفات نه ودرېدی او حج هم تمتع، قِران يا مفرد وو سعيه يې وکړه بيا پر عرفات ودرېدی بيا يې طواف زيارت وکړی ځان يې حلال کړی اوس خو احرام ختم سو سعيه کوي جواز لري؟

الجواب: په دغه صورت کي احرام شرط نه دی جواز لري د ده سعيه ليکن ترتيب سنت عمل دی چي اول به د اختر په ورځ رمي کوي بيا به د سر خريل کوي بيا به طواف زيارت کوي بيا به سعيه کوي.

سوال: که عمره کونکي طواف وکړی تر احرام بعد يې سر وخريي ځان يې حلال کړ اوس سعيه جواز ورته لري؟

الجواب: سعيه يې جواز لري ليکن دم پر لازم دی ځکه ده ځان تر وخت دمخه حلال کړی دی او پر واجب عمل چي سعيه ده دمخه کړی دی د عمرې دپاره احرام اګرچي بعضي يې رکن بولي ليکن پر اصح مذهب شرط دی.

سوال: آيا د عمرې په سعيه کي احرام واجب دی؟

الجواب: هو ! واجب دی ځکه د وجوب څخه مخالف عبارت بل نه دی پیدا سوی بلکې طرابلسي په متابعت د مبسوط قول کوي چي مناسب نه ده عمره کونکي ته چي ځان تر سعي مخکي حلال کړي ځکه سعیه د عمرې بغیر د احرام څخه ادا کېدای اګرچي حاجي تر ځان حلالولو بعد سعیه کولای سي.

۴: څلورم شرط د صحت څخه د سعي شروع د صفا څخه ده ختم يې پر مروا دی که چیري شروع د مروا څخه وکړي بیا دا شوط اعتبار نه لري بیرته به يې دسره څخه راګرځوي بیا چي يې د صفا څخه شروع وکړه تر مروا ولاړی دا يې یو شوط سو بدائع وایي دا مشهور روایت دی.

سوال: آیا د سعي شروع د صفا څخه سنت ده شرط ده که واجب ده چي د مروا څخه شروع وسي تر صفا پوري د اول څخه دا شوط هیڅ اعتبار نه لري راګرځېدل غواړي معنا دا چي بیرته به شروع د صفا څخه کوي؟

الجواب: د صفا څخه شروع که شرط یا واجب او یا سنت سي راګرځول په درې سره احوالو کي مطلوب دی دپاره د تکمیل د امام اعظم رحمه الله څخه روایت دی چي شروع د صفا څخه و نه سي بلکې د مروا څخه وسي شی وړاندي نسته محیط او بدائع دا روایت لیکلی دی چي دا د دې دلیل دی چي شروع د صفا څخه سنت عمل دی په ترک سره يې سړی ګناهګاره کیږي لیکن اصح مذهب د هدایې کافي او طرابلسي دا دی چي د ټولو شوطو دپاره شروع اول وار کول د صفا څخه واجب دی او اصح قول هم دغه دی تائید يې امام محمد رحمه الله کړی دی دغه کتابونو د وجوب دلیل یو دا قول د نبي عليه السلام ذکر کړی دی:

بدوا بما بدا الله.

مسند امام احمد بن حنبل ج۳ ص۳۹۴، سنن الکبریٰ ج۱ ص۸۵، مسلم باب الحج بدایة و النهایة ج۵ ص۲۲۵ وغیره.

ژباړه: تاسي د هغه ځایه څخه د سعي شروع وکړئ کوم چي الله په قرآن کي شروع په کړې ده چي صفا ده.

او بل قول د نبي عليه السلام دی چي تاسي زما څخه د حج افعال زده کړئ او وا يې خلئ.

ابن الهمام وایي په اول حدیث او دویم حدیث کي عليه السلام د امر په صیغه فرمایلي دي ظاهره ده چي امر دپاره د وجوب دی او اعدل او مختاره په حیث د دلیل د وجوب قول دی بنا پر دغه قول که يې ټوله شوطونه د مروا د طرفه څخه پوره کړه یا به يې د صفا څخه بیرته راګرځوي او یا به دم پر لازمیږي.

۵: پنځم شرط د صحت دپاره دا دی چي سعیه به تر طواف بعد وي او طواف به هم ده

په پاکي کي کړی وی د جنابت حیض او نفاس څخه که د طواف په وخت کي پاک نه وو نو د ده طواف نه دی جائز ګرسره او دا عبارت صاحب د بدائع په صراحت سره ذکر کړی دی نو دا علامه د دې سوه چي پاکي د حج د طواف دپاره شرط ده چي د ده سعیه هم صحت په پیدا کوي او که یې طواف په بې اودسیا سره کړی وو یا یې نور بدن یا کالي یا ځای مردار وو بیا به سعیه صحت لري کامله اګر که یې طواف ناقص دی خلص مطلب حاصل د بدائع د عبارت دا دی چي پاکي د غټ طهارت په طواف کي کول د سعي دپاره شرط د صحت دی اګر که سعیه په پاک بدن وکړي هم یې سعیه صحت نه لري چي طواف یې په جنابت یا حیضي کي کړی وي.

٦: شپږم شرط د سعي د صحت دپاره د حج میاشتي دي په شرط د دې چي مخکي یې احرام تړلی وي اوس که یو شخص احرام وتړی او سعیه یې کامله یا یو څه تر طواف بعد وکړه د حج میاشت لا نه وه راختلي دا سعیه اعتبار نه لري ځکه سعیه واجب ده او وخت د حج د میاشتو ورلره شرط دی د ټولو افعالو د حج دپاره لیکن صرف احرام شرط دی تر وخت دمخه صحت لري اګر که مکروه دی ځکه مکروه دی چي یو قسم مشابهت د رکن سره لري که یو شخص سعیه د حج په میاشتو کي وکړه پر داسي طریقه چي اکثره معنا څلور شوطه طواف قدوم یې وکړی او یا د حج ورځي ختم سوې باره یې تر طواف زیارت بعد سعیه وکړه هم جواز لري حاصل د مطلب دا دی چي د حج د سعي دپاره که قارن وي که متمتع وي د حج میاشتي داخلیدل ورلره شرط دی خو د شروع دپاره اګر که یې یو څه شوطونه تر وخت واوړي جواز لري معنا تر وخت دمخه صحت نه لري بعد یې لري د عمرې سعیه بیا وخت نه لري هر وخت په کال کي تر طواف بعد کېدای سي.

۷: اووم شرط د سعي د صحت دپاره اکثره شوطونه کول دي که یې لږ وکړه بیا یې سعیه صحت نه لري علاوه دا ده چي اکثره شوطونه د سعي رکن دی شرط نه دی.

## فصل د سعي واجبات څلور دي

واجبات السعي ١: اکمال عدده سبع مراة فان ترک اقله صح سعیه و علیه صدقة مابقي ٢: المشي فیه فان سعي راکبا او محمولا او زاحفا بغیر عذر فعلیه دم ولو بعذر فلا شئ علیه ٣: و کونه في حالة الاحرام في سعي العمرة، ۴: وقطع جمیع المسافة بینهما و هو ان یلصق عقبیه بهما او یلصق عقبیه في الابتداء بالصفا و اصابع رجلیه بالمروة و في الرجوع عکسه.

متن و بعده ترجمة و شرح ملا علي القاري
د صفا او مروا د سعي واجب اعمال دا دي:

۱: اول واجب پوره کول دي د سعي اووه شوطه او که لږ ورڅخه پاته سوه اکثره یې کړي وه بیا یې سعیه صحت لري ځکه اکثره په کښي فرض د سعي دي نو به د هر شوط چي

ورڅخه پاته سوي وي خيرات به کوي.

سوال: آيا فرق څه دی چي اکثره شوطونه پاته سي دم پر لازميږي چي لږ پاته سي خيرات پر لازميږي عقل خو يې فرق نه کوي بايد دلته هم دم لازم وای؟

الجواب: د ډېر او لږ فرق سته دليل دا دی چي ډېر شوطونه په سعيه کي د فرض د کامله کولو دپاره دي او لږ باقي يې د واجب د پوره کولو دپاره کيږي نو اول قول قوي سو ځکه په پرېښولو يې دم لازميږي او دويم کمزوره دی ځکه خيرات کفايت کوي.

۲: دويم واجب د پښو تګ کول دی که په سپرتيا يا خالپوځو يې سعيه بې له عذره څخه وکړه دم پر لازميږي او که يې د عذر په وجه وکړه بيا شی نسته ورباندي.

۳: دريم واجب د عمرې په سعيه کي احرام دی ځکه احرام په عمره کي د سعي دپاره واجب دی نه شرط اصلي خبره په کښي دا ده که عمره کونکي طواف وکړی ځان يې حلال کړی سر يې وخروی نو يې سعيه وکړه دم خو پر لازم دی خو خبره په بل دم کي هم ده ځکه يو جنايت د ده سعيه ده بې له احرامه څخه دويم جنايت دا دی چي سر يې مخکي خرېلی دی.

۴: څلورم واجب د صفا او مروا تر مابين ټوله مسافه قطع کول دی معنا پر دغه ټوله پوره مسافه به تګ کوي سپور وي که پياده اوس که يې د پښې پونده د صفا څخه شروع سوه او د پښو ګوتي يې پر مروا ولګېدلې او بيا د دغه طرف څخه په پونده د مروا څخه شروع وسوه او ګوتي د پښو يې د صفا څخه ومُښتلې نو د ده سعيه صحيح سوه خو ياد لره دا هغه زمانه کېدای سوه چي د صفا او مروه غونډۍ پوره وې او معلومېدلې اوس خو صرف هغه قدر اندازه مځکه ده نو لهذا اوس هغه مقدار د مځکي ته اعتبار دی.

سوال: د مخکي عبارت څخه معلومه سوه چي قطع کول د مسافې فرض يا شرط دی په څلورو شوطو کي ځکه يې دم لازمول نه دی ذکر کړی که واجب پاته سي خو دم پر لازميږي ملا علي القاري وايي ما د مصنف په بل کتاب کي چي د الکبير په نامه دی ليدلي دي چي مصنف ويلي دي چي شرط دا دی چي د صفا او مروا تر مابين مسافه به قطع کوي ليکن مصنف بيا په الکبير کي ورته مذهب د شافعي رحمه الله ويلي دی؟

الجواب: تلل د صفا او مروا تر مابين واجب دی ليکن پوره کول يې شرط دی معنا چي دغه مسافه به ټيک پوره کوي اګر که مذهب د شافعي رحمه الله مخالف دی هغه يې رکن بولي موږ يې واجب بولو.

## فصل د سعي سنت افعال

سنن السعي ۱: الموالات بينه و بين الطواف، ۲: و الصعود عن الصفا و المروة، ۳: و الموالات بين لشوطه. ۴: و الهرولة بين الملين، ۵: و ستر العورة.

متن و بعده شرح ملا علي القاري

د سعي سنتونه پنځه دي:

۱: اول د طواف د بيت الله او سعي بلا فصله (پرله پسې) کول دي چي بيان يې تېر سوی دی.

۲: چي کومه مسافه د صفا او مروا تر مابين ده تګ راتګ په کښې وکړي پوره کېدل دي د صفا او مروا غونډيو ته.

۳: د صفا او مروا تر مابين تګ راتګ چي سعيه ورته وايي دا پرله پسې بې له ځنډه کول دي اګر که دا قول د سنت دی ليکن الکبير وايي مستحب دی اوس که بې يو شوط يوه ورځ بل شوط بله ورځ وکړی نو مستحب دا دی چي د سره څخه بې راوګرځوي په شرط د دې که بې بې له عذره څخه دا جلاوالی کړی وو علاوه دا ده چي په يوه شوط کي به لا ځند نه کوي اتصال يې مستحب دی ظاهره دا ده چي بعضي عبارتونه داسي وي چي سعيه خو مستقل عبادت نه دی او مستحب هم دی راګرځول نه غواړي لکه لمونځ يا طواف چي يې غواړي.

۴: د صفا او مروا په مابين کي چي کوم ځلي دي د هغو تر مابين تېز تګ کول دي چي بيان يې تېر سوی دی.

۵: بل ستر د عورت معنا خپله شرمګاه به پټه ساتي د عورت پټول خو په هر حال کي فرض دی دلته يې ولي په سنتو کي راوستی جواب دا دی چي اصلاً خو واقعي فرض دی ليکن دلته لږ باريکي دا لري چي په بې ستری د صفا او مروا تر مابين تګ راتګ وکړي اګر که واقعي ګناه لري خو د سعي په باب کي چي سنت دی شی نه پر لازميږي او بل به د طواف او سعي فرق هم حاصل سي چي په طواف کي د عورت پټول واجب دی او په سعيه کي سنت دی نو اوس فرق د مراتبو هم وسو علاوه دا ده چي په حديث کي نبي ﷺ فرمايلي دي چي پر بيت الله به لڅ سړی طواف نه کوي. سنن الکبرٰی ج۹ ص۲۲۴، فتاوٰی حاوي ج۱ ص۲۵۱

## فصل د سعي مستحبات

مستحبات السعي ۱: الذکر و الدعاء، ۲: والطهارة عن النجاسة، ۳: و النية، ۴: و الخشوع، ۵: و طول القيام عليهما، ٦: و تکرار الذکر ثلاثا، ۷: و استفتائه لوقوفه. ۸: و اداء رکعتين بعد فراغه منه في المسجد.

متن و بعده شرح ملا علي القاري

۱: اول د سعي په شوطو کي ذکر کول او هغه منقولي دعاګاني کول دي چي

مستقل بیان یې را روان په دعاګانو کې دی.

۲: دویم مستحب د بدن او کالو ساتل دي د حقیقي یعني لیدونکي مرداری څخه او د هغې مرداری څخه چې بې اودسیا یا جنوب والی دی.

۳: نیت کول دی اګرچې غوره دا وه چې سنت ورته ویل سوي وای چې پر افعالو یې د سنت کامل ثواب مرتب سوی وای لکه حنبلیان چې یې شرط بولي لیکن موږ یې مستحب بولو اوس که یو سړي د صفا او مروا تر مابین څغستا یا خرڅول یا رانیول وکړ او یا خبر نه وي چې زه د صفا او مروا تر مابین تګ کومه نو سعیه د ده صحیح سوه دا یو لویه لو عظیمه پراخي ده لکه د عرفات یا د شیطانانو د ځلو وېشتل یا سر خریل چې نیت په کښې شرط سوی نه دی.

۴: په زړه کې بېره نیول او په ظاهره ځان د بېرېدونکي پر طریقه جوړول دی.

۵: پر صفا او مروا دېر درېدل دی بیان یې تېر سوی دی.

٦: هغه اذکار او دعا درې واره مکرروول دي چې تېر سوه دواړه په بیان کې.

۷: که فرض لمونځ یا د جنازې لمونځ کېدی خلقو ته فتویٰ ورکول دي چې دا لمونځونه وکړي د سعي پرله پسې کېدو ته نقصان نه رسوي چې لمونځ وسو بیا هغه باقي شوطونه پوره کړي که د یو چا څخه د عذر یا بل باعث په وجه د سعي شوطونه سره وشکېدل هم به یې هغه وخت پاته سوي پوره کوي ټوله د سره څخه راګرځول نه غواړي وجه دا ده چې تکرار د سعي یې مشروع نه دی.

۸: د سعي اووه شوطونه چې پوره سوه بیا دوه رکعتونه لمونځ کول دي، کذا في قاضیخان وغیره، زموږ دا مسئله د منسک السروجي والا سره ټکر نه لري چې هغه ویلي دي چې دلته لمونځ نسته څکه د ده مراد واجب لمونځ دی زموږ مراد مستحب لمونځ په هغه مسجد کې دی د دې مسئلې بیان په را روانو عبارتو کې درته راځي تفصیلاً.

## فصل د سعي مباحات

مباح السعي الکلام و الکلام و الشرب و الخروج منه لاداء المکتوبة او صلاة الجنازة.

**متن**

**ملا علي القاري** یې داسي شرحه کوي چې خبري کول اګر که په هر وخت کې بنه کار نه دي **شغل د** خدای د ذکر څخه راولي لیکن جواز لري او بل خوراک یا څښاک اګر چې **په طواف کې منع** دي د طواف زمانه لږ ده او دا شغل راولي د ذکرو څخه او د طواف د پرله **پسې کولو څخه** د شوطو لیکن په سعیه کې که یې سعي ته نقصان نه رسوی جواز لري او

بل د طواف عمل هم غټ دی تر سعي او که فرض لمونځ په جماعت کېدی یا د جنازې لمونځ ورتلل جواز لري ځکه دا هم یا خو فرض یا فرض کفایي یا سنت لمونځ دی او ظاهره ده چي دا عذر دی پروا په کښې نه لري.

## فصل مکروهات په سعیه کي

مکروهات السعي الرکوب من غیرعذر و تفریقاً کثیراً و البیع و الشراء و الحدیث اذا کان یشغله و ترک الصعود و الهرولة و تاخیره عن وقته و ترک ستر العورة.

متن

شیخ ملا علي القاري د متن تشریح داسي کړې ده چي یو څو عملونه په سعیه کي د صفا او مروا مکروه معنا بد اعمال دي لکه په سعیه کي چي په پښو تګ کول واجب دی او بې علة عذره دم پر لازمیږي چي ورځخه یاته سي لیکن دلته هم د مکروه څخه تحریمي مکروه مراد دی خو د مکروه لفظ یې دلته عام وویل چي دواړه قسمو ته شمول وکړي لهذا مصنف دلته وویل یې له عذره سپرتیا ورته مکروه ده او دویم مکروه عمل د سعي د شوطو معنا د تګ راتګ تر مابین جداوالی راوستل دي ځکه پرله پسې کول یې سنت دی نو لهذا پرې کول یې مکروه دی دریم څلورم او پنځم مکروه عملونه خرڅول رانیول خبري کول دي ځکه دا درې کاره یو خو سړی د ذکره څخه باسي حضور د زړه خرابوي د سعي تګ راتګ جلا کوي او شپږم مکروه د صفا او یا مروا هغه ځای ته نه پورته کېدل دي چي کعبه معلومیږي او اووم مکروه د میلانو یا د هغو تر مابین تېز تګ نه کول دي او اتم مکروه د خپل عورت نه پټول دي د پوهي خبره دا ده چي دا خو حرام دی نو مکروه ولي ورته وایي او خصوصاً خو په سعیه کي دېر حرام دی جواب یې دا دی چي هغه په اعتبار د عموم کي فرق یې دلته دا دی چي ستر و نه کړي دم نه پر لازمیږي ګناه چي یې هر څونه وه په واقع کي.

## فصل د سعي څخه بعد د درې قسمه حاجیانو کړه

و یستحب له ان یصلي رکعتین في المسجد و لا یصلي علی المروة ثم ان کان الفارغ منه قارنا او متمتعا ساق الهدی او مفردا بالحج فانه یقیم بمکة حراما فلا یقصر و لا یحلق و لا یلبس المخیط و یطوف بالبیت کلما بدا له بلا رمل و لا اضطباع و لا سعي بعده و یصلي لکل اسبوع رکعتین و لا یترک التلبیه في الاحوال کلها في المسجد و خارجه الی ان یرمي جمرة العقبة الا حال کونه في الطواف و لا یعتمر حال اقامة بمکة فان فعل اساء و لزمه دم سواء کان في اشهر الحج او قبلها و ان کان الفارغ متمتعا لم یسق الهدی او مفردا بعمرة فعلیه ان یحلق و یحل و یقطع التلبیة عند شروعه في طواف العمرة و هو بعد حلقه حلال یفعل کما یفعل الحلال فان لم یکن متمتعا اعتمر کلما بدا له قبل اشهر الحج و یکره

فيها الاعتمار لكل من كان بمكة او داخل الميقات و لا يخرج المتمع الىالافاق لئلا يبطل تمتعه على قول بعض.

متن و بعده شرح شيخ ملا علي القاري

سعيه کونکي لره مستحب دی چي دوه رکعته لمونځ د فراغت څخه بعد په مسجد کي وکړي ځکه په روايت د المطلب بن ابي وداعه کي راغلي دي چي نبي ﷺ ما وليدى چي د صفا د سعي څخه فارغه سو باره راغلی و برابر ته د الرکن نو په يوه کناره کي يې د طواف گاه دوه رکعته لمونځ وکړی د ده او طواف کونکو تر مابين هيڅ پرده نه وه. رواه احمد و ابن ماجه و ابن حبان

په بل روايت کي وايي ما نبي ﷺ وليدى چي د حجر اسود سره برابر يې لمونځ وکړی او خلق او ښځي يې په حضور کي تېرېدل تر مابين يې هيڅ پرده نه وه، په بل روايت کي وايي ما د باب بني سهم د دروازې سره وليدى لمونځ يې کوی چي د ملا علي القاري رحمه الله په زمانه کي په باب العمرة مشهور وو لهذا ابن الهمام صاحب د فتح القدير وايي چي د حديثو څخه معلوم سو چي لمونځ د سعي د مستحباتو څخه نه دی. بلکي احتمال لري چي د تحية المسجد دپاره وي چي بې له قصده د طواف څخه ورسي نو به د حديثو تر مابين موافقت راسي اگر که بعضي دا لمونځ د ختم د سعي بولي نو تعرض راځي په حديثو کي او بل به لمونځ پر مروا نه کوي اگر که قياس او عقل جواز ورکړی دی.

د يوه قسم حکم دا دی که د سعي څخه هغه قارن او متمتع حاجي چي د ځانه سره يې هديه معنا اوبن يا غويي يا پسه راوستلی وي او يا د اوله څخه حاجي مفرد وي فارغه سو باره به په مکې کي احرام بنده گزاره کوي نه به سر لنډوي يا خروي نه به اغوستل د گنډلو کالو کوي طوافونه د بيت الله به ډېر کوي اگرچي مالکيه ورته مکروه وايي په طواف کي به اوږې ښورول او وړه لڅول نه کوي ځکه دا دوه عملونه په هغه طواف کي کيږي چي وروسته د صفا سعيه کوي هغه اوس بيان کيږي او بل د هر طواف څخه بعد دوه رکعته لمونځ کوي ځکه دا لمونځ واجب دی د هر طواف دپاره که واجب وي که نفلي او تر طواف بعد به بيا د صفا سعيه نه کوي ځکه سعيه خو د واجباتو څخه د حج يا عمرې ده نه د صرف يوازي نفلي طواف دپاره تلبيه به هميشه وايي په مسجد حرم کي دباندي ليکن آواز به داسي نه پورته کوي چي پر لمونځ کونکو يا طواف کونکو حال پوشيده کړي د الکبير قول صحت نه لري چي وايي تلبيه به د طواف قدوم څخه ماسوا په بل طواف کي نه وايي دا تلبيه به تر هغه وخته پوري وايي ترڅو چي د جمرې ځلي دشيطانو ولي دلته تلبيه ختم سوه حاجي تمتع چي په مکة مکرمة کي مقيم وي احرام بنده عمره به نه کوي که يې وکړه يو خو

ګناهګاره دی او بل دم پر لازم سو او دا حکم عام دی که یې د حج په میاشتو کې احرام تړلی وي او که مخکې.

د بل قسم حاجي حکم، که داسې متمتع حاجي چې هدیه نه وه ورسره او دی د صفا د سعي څخه فارغه سو او یا بل سړي عمره کوله د عمره کونکي سره هدیه وي او که نه وي نو بیا دوی دواړو لره اختیار دی که ځان حلالوي سر خریي او که یې نه حلالوي عمره کونکي اګر که د حاجي متمتع وي چې طواف یې شروع کړی تلبیه به پرېږدي خو یاد لره چې دلته هغه متمتع مراد دی چې هدیه نه وي ورسره متمتع او عمره کونکي چې د عمرې څخه وروسته سر وخریي او ځان حلال کړي بیا دوی لره هم جائز فعل روا دی او س که نوري عمرې کوې هم جواز ورته لري ځکه د عمرې د کراهت دپاره مخصوص وختونه دي نه دغسې لکه بیان چې تېر سو.

متمتع حاجي به د مکې څخه اطرافو ته نه ځي چې تمتع یې باطله نه سي پر قول د بعضو علماؤ تفصیل یې دا دی چې قوام الدین په شرح د هدایې کې و شرح الطحطاوي ته اشاره کړې ده هغه متمتع حاجي چې د عمرې څخه فارغه سي او هدیه هم ورسره وي اوس یې دا غوښتل چې حج تمتع نه کوم نو د ده خوښه ده چې هدیه خرڅوي یا یې بل ته ورکوي اوس چې هدیه یې دلاسه څخه ووتل که یې بیرته اراده د حج درلودل نو دلته درې صورتونه جوړېږي د ده د تمتع دپاره او پر ده دوې هدیې واجبیږي یوه هدیه د اوسني تمتع دپاره او بل هغه چې دلاسه څخه یې ایستلې ده ځان یې حلال کړی وو دا هغه یو صورت دی چې د مکې څخه نه وي وتلی او بل صورت یې دا دی چې اول وار ځان حلال کړي هدیه دلاسه وباسي تر عمرې بعد بیا د حرم څخه ولاړ سي کور ته لیکن بیرته په دغه کال و حج ته راسي نو داسې شخص متمتع نه سي جوړېدلای او شی هم نه پر لازمیږي او دریم صورت یې دا دی چې د عمرې څخه ځان حلال کړي هدیه دلاسه وباسي او تر میقات تېر سي لیکن و خپل کور ته نه وي تللی دلته په کښې اختلاف دی ابو یوسف او محمد رحمهما الله وایي داسې شخص هم په حکم کې د دې دی لکه خپل اهل ته چې ورغلی وي حج یې تمتع نه دی او امام اعظم رحمه الله وایي دی په حکم کې د مکي دي متمتع کېدای سي هدیې دوې پر لازمیږي لکه د اول صورت چې وو.

فایده: که د مکې سړي وي او یا افاقي په کښې پنځلس ورځې مقیم سو د حج د فوت کېدو څخه یې بېره وه عمره ورته مکروه ده همداسې حکم د میقاتي دی چې هلته یې کور وي یا داخل په میقات کې دلیل بعضې فقهاؤ د حضرت بي بي عائیشه صدیقه رضي الله تعالی عنها حدیث په دې پوري خاص ګرځولی دی ځکه دې عذر درلود عمره یې نه

سوه کولای چي نبي ﷺ د مکې څخه د وتلو اراده وکړه و مدينې ته نو بي بي عايشې رضي الله تعالى عنها ووېل يا رسول الله ﷺ تېرلو خلقو حج او عمره وکړه او زه د عمرې څخه محرومه پاته سومه نو نبي ﷺ د دې ورور عبدالرحمن ته امر وکړ چي دا بوزه د تنعيم څخه دې احرام د عمرې وتړي او عمره دې وکړي نو په اعتبار د دغه معنا دا په حکم کي د افاقي سوه او بل هغه کړه چي د ابن زبير ﷺ ده چي ده خانه کعبه د رجب پر اوويشتم پوره جوړه کړه باره يې خلقو ته ووېل ولاړ سئ عمره راوړئ او خپله يې هم وکړه دا د ده خپل کړه دي پر بل دليل نه سي گرځېدای، والله اعلم.

سوال: که يو شخص د حج دپاره احرام وتړی بيا کولای سي چي د حج احرام په عمره واړوي؟

الجواب: د حج احرام بيا د عمرې دپاره نه سي بدلېدلای حنابله چي يې روا بولي او ارشاد الساري په حاشيه کي د دوی دليل لس حديثونه را جمع کړي دي او بيا يې جوابونه ورکړي دي يو دليل يې د جواب ورکولو دا دی چي هغه احاديث چي دوی دلايل د ځان د خپل مذهب دپاره وايي د هغو تر مابين تعرض دی او بل په بخاري او مسلم کي حديث دی حضرت بي بي عايشه رضي الله تعالى عنها وايي موږ د نبي ﷺ سره حج ته روان سو بعضو احرام د حج بعضو د عمرې بعضو د دواړو دپاره تړلي وه نبي ﷺ د حج احرام تړلی وو چا چي د عمرې احرام تړلی وو چي طواف او سعيه به خلاصه سوه نو ځانونه به يې حلال کړه او چا چي به د حج يا د حج او عمرې دواړو احرامونه تړلي وه هغو د اختر تر ورځي ځان نه دی حلال کړی.

## باب الخطبه او وتل د حاجيانو د مکې څخه و عرفات ته

و خروج الحاج من مكة الى عرفة و الاحرام منها اذا كان اليوم السابع من ذي الحجة فالسنة ان يخطب الامام بعد الظهر خطبة واحدة لا يجلس فيها يبدأ بالتكبير ثم بالتلبية ثم بالخطبة يحمد الله و يثني عليه و يصلي على النبي ثم يعلم الناس فيها المناسك كالخروج الى منى و المبيت بها ليلة عرفة و الرواح الى عرفات و الصلاة و الوقوف بعرفة و الافاضة منها ثم الخطب في الحج ثلاث اولها هذه و الثانية بعرفة قبل الجمع بين الصلاتين و الثالثة بمنى في اليوم الحادي عشر فيفصل بين كل خطبة بيوم كلها خطبة واحدة بلا جلسة في وسطها الاخطبة يوم عرفة و كلها بعد ما صلى الظهر الا بعرفة فانه قبل ان يصلى الظهر و كلها سنة.

متن و بعده شرح ملا علي القاري

د اووم په ورځ به د اختر د مياشتې امام خطبه ووايي او د اتم په ورځ به د مکې

مکرمې څخه د منٰی پر لور روان سي احرام به د مکې څخه وتړي افضله طریقه دغه ده اکمله دا ده چې د مسجد څخه يې وتړي او اولی دا ده چې د حطيم يا يې د خپله کوره څخه وتړي سنت طریقه امام لره دا ده چې تر لمانځه د ماپښين بعد يوه خطبه ووايي او کښېني به نه اولین شروع به په الله اکبر بيا به تلبيه ووايي اگر که قياس وايي تلبيه به تر مخ ووايي او بل به د دغه خطبې قياس د اختر پر خطبې نه کوي ځکه د اختر په خطبه کي شروع په الله اکبر سره خاص سنت دی تر الله اکبر او تلبيې بعد به حمد او ثناء او درود پر نبي ﷺ ووايي نو به امام و حاجيانو ته د دغه ورځي آداب او طريقه د وتلو و منٰی شريفي ته د اتم په ورځ تر لمرخاته بعد بيان کړي او د شپې تېرولو چې په منٰی شريفي کي پنځه لمونځونه کېږي لکه په حديث کي چې هم دغسي راغلي دي او بل به امام په خپله خطبه کي د عرفات د ورځي د وتلو طريقه د منٰی څخه تر لمرخاته بعد بيان کړي او پر عرفات چې د ماپښين او مازيگر لمونځونه پر يو ځای د ماپښين په وخت کي او په مسجد نمره کي گزارل کېږي بيان کړي او بل به د عرفات د درېدلو او هغه احکام چې د عرفات سره تړلي مناسبات لري څرگند کړي.

فايده: په حج کي درې خطبې ويل سنت دی اوله دغه وه چې تېره سوه دويمه پر عرفات ويل کېږي ليکن د ماپښين تر لمانځه دمخه ځکه دلته دوه لمونځونه پر يوه ځای په جماعت سره گزارل کېږي او دريمه خطبه د يولسم په ورځ په منٰی کي ويل کېږي اوس نو د هري خطبې جلاوالی هم راغلی ځکه د ټولو خطبو وينا پر يوه ځای ستړيا راولي او اگر که امام زفر رحمه الله داسي وايي چې اوله خطبه دي د اتم په ورځ دويمه د نهم دريمه د اختر په ورځ ووايي ځکه خطبې به پرله پسې سي په دغه درې سره خطبو کي ناسته تر ماپښين نسته بغير د عرفات د خطبې ځکه دلته خطبې دوې کېږي معنا په ماپښين کي به نه کښېني او ټولي خطبې د ماپښين تر لمانځه بعد ويل کېږي بغير د عرفات د خطبې څخه ځکه دا خطبه تر لمانځه دمخه ويل کېږي او ټولي خطبې سنت دي بغير د جمعې د خطبې څخه ځکه دا فرض بلکې شرط ده اوربدل يې واجب دی د هري خطبې معنا و ټولو ته غوږ نيول.

## فصل اقسام د احرام د مکي څخه

اعلم ان الحاج بمكة على انواع اما ان يكون مكية فلا يجوز له الا الافراد بالحج لو افاقيا دخل بعمرة متمتعا او لا ساق الهدى او لم يسق حل منها او لم يحل محكمه كالمكي بلحج فلا يحتاج الى تجديد الاحرام او ميقاتيا فهو ان دخل مكة لحاجة فكالمكي و ان دخل لقصد الحج فعليه ان يحرم من الحل بالحج المفرد و الافضل للمتمتع وغيره ان يعجل الاحرام فكلما عجل فهو افضل بعد دخول اشهر الحج و اذا اراد الاحرام بالحج من مكة يوم التروية او قبله فالافضل ان يغتسل و يتطيب ثم يدخل المسجد فيطوف ثم

يصلي ركعتين ثم ركعتي الاحرام فيحرم عقيبها ثم ان اراد تقديم السعي على طواف الزيارة ينتقل بطواف بعد الاحرام بالحج يَضطبع فيه و يرمل ثم يسعي بعده و هل الافضل تقديم السعي او تاخيره الى وقته الاصلي قيل الاول و قيل الثاني و الخلاف في غير القارن اما القارن فالافضل له تقديم السعي او يسن.

متن و بعده شرح ملا علي القاري

پوه سه چي هغه کسان چي په مکه مکرمة کي گزاره کوي د دوی حج پر دري قسمه دی:

۱: يا خو اصلي باشنده د مکې دی چي بغير د حج افراد څخه بل نه سي کولای لکه دا بيان چي تېر سوی دی يا افاقي سړی دغسي يا د عمرې دپاره راغلی وو د اقامة نيت لري او که نه د تمتع حج دپاره يې هديه راوستلې وي او يا يې نه وي راوستلی ځان يې حلال کړی وي د عمرې څخه چي هديه نه وي ورسره او که يې د احرام څخه ځان نه وي حلال کړی لکه هديه چي ورسره وي نو په دغه ټوله صورتو کي د ده حکم داسي دی لکه د مکې سړی معنا يې دا ده چي ده لره هم بغير د حج افراد څخه بل قسم جواز نه لري او که افاقي سړی مکې ته د حج افراد دپاره احرام بنده راغلی بيا نوی احرام نه غواړي ځکه دی خو د احرام څخه وتلی نه دی چي بل نوی وتړي او که ميقاتي سړی مکې ته د يو کار دپاره راغلی بغير د حج او عمرې څخه خو اوس که وغواړي د ده حج داسي دی لکه د مکې سړی حج يې فرق نه لري او که د حج په قصد راغلی وي بيا لازمه ورلره دا ده چي د حرم څخه خارج به احرام تړي بيا به وحج ته راځي دلته يې د عمرې بيان ځکه و نه کړی چي ميقاتي سړی لکه مکي د حج په مياشتو کي د عمرې څخه منع دی د حج مياشتي چي داخلي سوې بيا نو افضله کار حاجي مفرد او حاجي متمتع لره دا دی چي هر څونه تلوار کيږي احرام به تړي او د حج تر مياشتو دمخه احرام تړل مکروه دی اگر که په ځان باور لري د ځان ساتلو د حرام کارو څخه عامه خبره که د مکې سړی وي که افاقي سړی وي.

هر کله چي حاجي د احرام اراده وکړي د اتم په ورځ دي يا مخکي تر دغه نو فضيلت منده په اعتبار د مجموع کي او په اعتبار د خصوص ورلره غسل کول سنت طريقه ده ځکه غسل د زړه په نورانيت کي تاثير لري چي غفلت او د زړه خيره ليري کوي اولياؤ ته په کشف سره معلوميږي بيا به ځان خوشبويه کړي بيا به دوه رکعته لمونځ وکړي او دا لمونځ سنت مؤکد دی د احرام دپاره دلته د افضل په قطار کي د ترتيب پر طور واقع سو چي ولاړ سوی لا نه وي د لمانځه د ځايه څخه احرام به وتړي چونکې اصل طريقه د سعي دا ده چي تر طواف د بيت الله به بعد وي اوس که د مکې باشنده يا هغه شخص چي د ده په حکم کېدی د

تکليف په وجه او غواړي چي سعيه د صفا پر طواف زيارت مکې وکړم نو پر مکي سړي خو طواف قدوم هم نسته چي سعيه تر طواف قدوم بعد وکړي نو د ده دپاره اول دا په کار ده چي نفلي طواف مخکي باره سعيه وکړي تر احرام بعد باره نو د ده سعيه صحت پيدا کوي هغه شخص چي تمتع حج کوي هديه ورسره وي او که نه وي د طواف قدوم يا نفلي طواف دپاره به راسته وړه لځه کړي په ټول طواف کي ليکن د اوږو ښورول به په درو اولو شوطو کي وي تر دغه بعد به د صفا سعيه کوي سوال دلته دا پيدا کيږي چي آيا د ده په باره کي سعيه مخکي کول تر طواف زيارت افضله ده او که تر طواف زيارت بعد کول ورته غوره دی چي اصلي وخت يې هم دغه دی نو بعضي علماؤ د افاقي دپاره سعيه کول تر طواف زيارت مخکي کول غوره بللی دی او بعضو بيا تر طواف زيارت بعد غوره په دې دليل سره بللې ده چي د اختلاف څخه د علماؤ ځان ايستل په اجماع سره د ټولو علماؤ مستحب کار دی دلته د امام شافعي رحمه الله خلاف سته په شان د مکي سړي چي دی سعيه تر طواف زيارت دمخه نه سي اداء کولای لهذا ابن الهمام دغه مذهب ته صحيح ويلي دي چي سعيه به تر طواف زيارت بعد وي او کوم حاجي چي قارن وي پر ده خو دوه طوافه او دوې سعي دي لهذا نو د ده دپاره افضله طريقه دا ده چي تر طواف زيارت دمخه سعيه وکړي ليکن وروسته کول يې هم جواز لري يې له کراهته څخه علاوه لا دا ده چي بل مذهب دا دی چي د قارن دپاره سنت دا دی چي مخکي سعيه وکړي.

## فصل و منی ته د تللو طريقه

الرواح من مكة الى منٰى فاذا كان يوم التروية و هو الثامن ذي الحجة راح الامام مع الناس بعد طلوع الشمس من مكة الى منى فيقيم بها و يصلي بها الظهر و العصر و المغرب و العشاء و الفجر و لو خرج من مكة بعد الزوال فلا بٲس به و ان بات بمكة تلك الليلة جاز و اساء و يستحب ان يكون في خروجه من مكة ملبيا داعيا ذاكرا.

متن و بعده شرح ملا علي القاري

هرکله چي د ذي الحجې اتمه ورځ سوه نو تر لمرخاته بعد به امام او خلق د مکې څخه د منٰی پرخوا روان سي باره به دلته مقيم سي چي ماپښين مازيگر ماښام ماخوستن او د دا بل سهار چي پنځه لمونځونه پوره کيږي او که چيري په دغه ورځ تر زوال بعد ولاړ سي بياهم پروا نه لري لهذا هم مبسوط او الکافي مستحب دا بللې ده چي د ماپښين لمونځ به په منٰی کي کوي ارشاد الساري په حاشيه ليکلي دي چي ابن عمر رضي الله عنه روايت کړی دی چي نبي عليه السلام به په مکة مکرمة کي د اتمي ورځې د سهار لمونځ وکړی او بيا به لمر راوختنی نو به منٰی ته ولاړی بيا به يې د ماپښين او مازيگر او ماښام او ماخوستن او دا بل سهار لمونځونه

وکره اهـ انتهى.

سوال: که د اتم په ورځ جمعه وه په منٰى کي خو د جمعې لمونځ نسته او فضيلت هم د جمعې د لمانځه زيات دی څه به کوي؟

الجواب: علماؤ داسي تصريح کړې ده چي د اتم ورځ د جمعې سره موافق راغله نو د اتم په ورځ تر زوال دمخه وتل و منٰى ته سنت دی نو په دغه وخت کي د جمعې لمونځ نه دی پر واجب او که د غرمې لمر په مکه کي زايل سو بيا نو وخت د جمعې د لمانځه دی تر څو چي د جمعې لمونځ نه وي وکړي منٰى ته به نه ځي ځکه اوس پر واجب سوه او وتل يې مکروه عمل دی.

سوال: که حاجي شپه په مکه يا بل داسي ځای کي تېره کړه چي منٰى ته معنا نه ورغلی څه حکم لري؟

الجواب: د منٰى څخه بغير بل ځای شپه تيرول جواز خو لري ليکن د سنت عمل مخالفت يې کړی دی ګناهګاره دی او الفارسي په متابعت د محيط کي هم په منٰى کي د شپې تيرول سنت بللی دی او هدايې او الکافي وغيره کتابو ليکلي دي که ده شپه د عرفې په مکه کي تېره کړه او په صبا کي و عرفات ته ولاړی او پر منٰى هم تير سو جواز لري ليکن ګناهګاره دی ځکه ده د خپل نبي ﷺ څخه مخالفت وکړ ځکه شپه يې په منٰى کي و نه کړه علاوه لا الکرماني فرمايي د اتم په سهار تلل و منٰى ته دپاره د ځان جوړولو و عرفات ته سنت دی او ترک د سنت مکروه عمل دی او مبسوط د اتم د ورځي د ماپښين لمونځ ګزارل په منٰى کي مستحب بللی دی.

سوال: مکې ته د ورتلو او راتلو مستحب عمل کوم شی دی؟

الجواب: که مکې ته ور داخليږي او يا ورڅخه را خارجيږي مستحب عمل ورلره تلبيه ويل او ذکر کول دی.

سوال: په عربي کي د اتم ورځي ته يوم التروية وايي او په لغت کي د تروي معنا ځان اوبه کولو ته وايي نو دلته يې مناسبت څنګه برابريږي؟

الجواب: په زمانه کي د نبي ﷺ پر عرفات اوبه نه وې او بل به د ليري ځايو څخه خلق پر اوښانو راتلل نو دوی به په دغه ورځ د اتم د اختر د مياشتي خپل اوښان اوبه کړه نو د نهم په ورځ به عرفات ته فارغه سوه په دغه اعتبار ورلره ترويه وايي.

سوال: منٰى خو غورځېدو ته وايي په عربي ژبه کي ځکه په قرآن کي هم الله تعالی د منٰى ترجمة په غورځېدو کړې ده لکه د سړي څخه چي د شهوت پوره کولو په وخت نطفه د انسان رحم ته د ښځي ور غورځي:

من نطفة اذا تمنٰى. النجم ۴٦

الجواب: په سوال چي کومه ترجمه د منٰى سوې ده صحیح ده دلته په منٰى کي په ملینو حیوانان قرباني کیږي ظاهره ده چي حیوان حلالوې وینه ورڅخه غورځي دا یې د نوم وجه سوه، ومن الله التوفيق.

## فصل د منٰى څخه عرفات ته د تللو طريقه

فاذا اصبح صلي الفجر بها ثم يمكث الى ان تطع الشمس على ثبير فاذ طلعت توجه الى عرفات مع السكينة و الوقار ملبيا مهللا مكبرا داعيا ذاكرا مصليا على النبي ﷺ و يلبي ساعتة فساعة و ان راح قبل طلوع الفجر جاز و اساء و يستحب ان يسير الى عرفة على طريق ضب و يعود على طريق المازمين و اذا وقع بصره على جبل الرحمة دعا ثم لبي الى ان يدخلها.

متن و بعده ترجمة و شرح ملا علي القاري

حاجي چي هرکله د سهار لمونځ په رڼا کي وګزاری بیا دي د لمر تر راختلو پوري پر ثبير غره ودرېږي چي دا غر په منٰى کي پر برابري د مسجد خيف دی سرۍ چي عرفات ته ځي پر چپه اوړه يې برابرېږي هرکله چي لمر راوختنی نو به په ښه عزت او د زړه په خوښي او ېره کي تلبیه ویونکی لا اله الا الله ویونکی دعا کونکی ذکر کونکی او درود ویونکی په شروع او د رسېدو په حال کي او ګړی په ګړی تلبیه به وایي عرفات ته به روان سي ارشاد الساري د عرفات دعا په حاشیه کي دغه لیکلې ده چي مستحب دعا دا ده:

اللهم اليک توجهت وعليک توکلت و وجهک اردت فاجعل ذنبي مغفورا و حجي مبرورا و لاتخيبني و بارک لي في سفري واقض بعرفات حاجتي انک على کل شئ قدير قاله في الفتح اه حباب.

ژباړه: یا الله وتا ته زما مخ دی او پر تا مي توکل دی او زما ذات ستا اراده لري نو زما ګناهونه و بخښې او حج زما قبول کړې او ما مه نامراد کوه او زما په سفر کي برکت واچوې او زما حاجتونه پرعرفات قبول کړې بې شکه ته پر هر څه قادر یې.

که چیري یو شخص د سهار تر سپېدو مخکي او یا یې د سهار لمونځ وکړی تر لمرخاته مخکي او یا یې لمونځ وکړی تر لمرخاته دمخه ولاړی حج یې جواز لري او دغسي فعل يې حرام دی ځکه د سهار لمونځ نه ادا کول په منٰى کي حرام کار دی دا سړی ګناهګاره دی عرفات ته وتلو دپاره مستحب طریقه دا ده چي د ضب پر لاره ولاړ سي ضب یو غر دی چي د مسجد خیف پر برابر دی چي سړی و عرفات ته ځي پر راسته وړه د سړي راځي چي راګرځي بیا به د ما زمین پر لاره راځي دا بیا د مزدلفې او عرفات تر مابین یو تنګ ځای دی

که دلسې طریقه عملي کړي نو بې اقتدا. به سيد الانام ﷺ پسې وکړه لیکن علامه ملا علي القاري لو ارشاد الساري دواړو لیکلي دي چي د دوی په زمانه کې پر دغه لار څوک روان نه دي بلکه څخه نه سو تللای هرکله چي د حاجې ستر کې پر جبل الرحمة ولګيدلې دعا نه وکړي او تسبيحات لو الله اكبر لو لا اله الا الله لو د خدای جل جلاله لوړې لو استغفار نه دې وواېي.

ابي الدنيا به کتاب الاضاحي لو ابن ابي عاصم لو الطبراني په الدعا کې نو البيهقي په الدعوات کې د ابن مسعود ﷺ څخه روايت کړی دی چي واېي نسته يو مړی يا مېنځه چي د عرفات په شپه کې دا دعا وکړي چي لس کلمې دي لو دی يې زر واره وواېي نو هر شی چي د الله جل جلاله څخه غواړي هغه ورکوي بغير د وصلې د قطعه کولو لو يا د ګناه د شي څخه هغه دعا دا ده:

سبحان الذي في السماء عرشه سبحان الذي في الارض موطئه سبحان الذي في البحر سبيله سبحان الذي في النار سلطانه سبحان الذي في الجنة رحمته سبحان الذي في القبر قضاؤه سبحان الذي في الهواء روحه سبحان الذي رفع السماء سبحان الذي وضع الارض سبحان الذي لا ملجاء و لا منجاء منه الا اليه

پاکي د الله هغه ذات لره ده چي عرش يې په آسمان کې دی پاکي ده هغه الله تعالى لره چي په مځکه کې يې تصرف چليږي پاکي ده هغه الله تعالى لره چي په درياب کې يې لارې جوړې کړي دي پاکي ده هغه الله تعالى لره چي پر اور د ده حکم چليږي پاکي ده هغه الله تعالى چي جنت يې خپل رحمت ګرځولی دی پاکي ده هغه الله تعالى لره چي په قبر کې د ده فيصله کيږي پاکي ده هغه لوی خدای لره چي هوا يې رحمت ګرځولې ده پاکي دې هغه ذات لره وي چي آسمان يې پورته کړی دی پاکي دې وي هغه الله تعالى لره چي مځکه يې وضعه کړې ده پاکي ده هغه ذات لره چي ځای د خان پټولو ورڅخه نسته لو نه هم ځای د ورتګ يې له ده سته. دغه وه دعا د حضرت ابن مسعود ﷺ چي ده دا حديث بيان کړی ورته وويل سوه چي تا د نبي ﷺ څخه دا حديث په خپله واورېدی ابن مسعود ﷺ وويل چي هو ما ورڅخه واورېدی. حاجي به تلبيه وېونکی و عرفات ته ور داخل سي يا به تر هغه وخته ملته وي ترڅو چي اول ځلي د شيطان ولي.

## باب د ورپېښل پر عرفات او احکام د عرفات

اذا دخل عرفة نزل بها مع الناس حيث شاء و الافضل ان ينزل بقرب جبل الرحمة فاذا نزل يمكث فيها و يشتغل بالدعا و الصلاة على النبي و الذكر و التلبية الى ان تزول الشمس فاذا زالت اغتسل او توضا و الغسل افضل و قدم حوائجه

متن و بعده ترجمة ملا علي القاري

وتبتل اليه تبتيلا. الزمل ۸
ففروا الى الله. الذاريات ۵۰
: اول آيت ژباړه تاسي ځانونه د خپل اهل عيال او مال څخه قطع کړئ خاص الله لره
او د دويم آيت ژباړه تاسي ځئ خاص د خپل الله تعالى د رضا دپاره.

## فصل هغه لمونځونه چي پر عرفات کيږي

و اذا اراد الجمع اغتسل و زالت الشمس سار الى المسجد فاذا بلغه صعد الامام الاعظم المنبر او نائبه و يجلس عليه و يؤذن المؤذن بين يديه قبل الخطبة كما في الجمعة فاذا فرغ قام الامام فخطب خطبتين قائما وصفة الخطبة ان يحمد الله تعالى و يثني عليه و يلبي و يهلل و يكبر و يصلي على النبي و يحظ الناس و يامرهم و ينهاهم و يعلمهم المناسك كالوقوف بعرفة و مزدلفة و الجمع بهما و الرمي و الذبح و الحلق و الطواف و سائر المناسك التي هي الى الخطبة الثالثة و يقيم المؤذن فيصلي بهم الامام الظهر ثم يقيم فيصلي بهم العصر في وقت الظهر و الحاحل ان يصلي بهم الظهر و العصر في وقت واحد و يسر القرأة في الصلاتين بخلاف الجمعة و يكره الامام و الماموم ان يشتغل بالسنن و التطوع او شئ اخر فان اشتغل بصلاة او عمل اخر و لو بعذر ما يقطع فور الاذان اعاد الاذان و الاقامة للعصر و ان كان التاخير من الامام لا يكره للماموم ان يتطوع بينهما الى ان كان الامام مقيما اتم الصلاة و اتم معه المسافرون ايضا و اتم المقيمون فاذا سلم قال لهم اتموا صلاتكم يا اهل مكة فانا قوم سفر و لايجوز للمقيم ان يقصر الصلاة و لا للمسافر ان يقتدى به ان قصر و لو خطب قبل الزوال او لم يخطب اصلا صح الجمع و يكره التنفل بعد اداء العصر في وقت الظهر صرح به بعضهم و لا يصح اداء الجمعة بعرفة.

متن و بعده شرح ملا علي القاري

پوه سه چي په عرفات کي په جماعت سره لمونځ کيږي زموږ پر مذهب مقيم او مسافر دواړه دا لمونځ کولای سي امام شافعي رحمه الله او د ده تابعداره يې خاص مسافر لره جائز بولي نه مقيم لره نو دا لمونځ په جماعت سره کول ځان ته شرطونه لري که چيري يو شرط په کښي موجود نه وو بيا به هر سړی خپل په خيمه کي يوازي يا په جماعت سره خپل لمونځونه وکړي که هغه امام چي قائم المقام د نبي عليه السلام دی تر ټوله شرطونه او احکام يې پرځای کوه اراده د جماعت د لمانځه يې وکړه او غسل يې وکړی او لمر زايل سو معنا ماپښين سو نو به مسجد نمرة ته ولاړ سي دا مسجد د عرفات پر يوه څنډه دی ارشاد الساري ليکلي دي چي مسجد نمرة الشيخ حنيف الدين المرشدي ورته مسجد ابراهيم وايي څکه ده بنا کړې ده څکه د کعبې تر جوړولو مخکي ده دلته لمونځ کړی دی لکه تقرير

الرافعي او النووي هم په دغه قول يقين کړی دی او بعضي ورته په دې وجه نسبت د ابراهيم ؑ ورته کوي چې د مسجد الحرم يوه دروازه چې نسبت يې ابراهيم ؑ ته کيږي
دغه طرف ته د مسجد را خلاصه ده او بعضي ورته مسجد عرفة وايي بعضي ورته مسجد
عرنة وايي او په بله حاشيه کې وايي چې صاحب د الغاية کتاب يقين په دغه کړی دی چې دا
مسجد په عرفات کې نه دی طرابلسي د قيل په قول وايي چې مخکې طرف د مسجد په
عرنة شيله کې دی نه په عرفات کې او د مغرب طرف دېوال که ونړيږي د هغه شيلې په خيته
کې به واقع سي او کوم کسان چې وايي لکه درمختار چې عرفات ټوله د دربدو ځای دی
بغير د هغه شيلې څخه عرنة د مسجد غرب طرف ته ده او په حرم کې ده ارشاد الساري وايي
زموږ مشاهده د دغه قول د خلاف تقاضا څکه کوي څکه هيڅ شک نسته چې عرفات تر
مابين د دوو علامو واقع دی چې دواړي علامې د قبلې د طرف څخه د عرفات د حدودو
دپاره ولاړي دي او بل په دغه طرف کې د حرم د حدودو دپاره هم دوې علامې ولاړي دي د
حرم او عرفات د علامو تر مابين يو ميل معنا ځلور زره ګزه فاصله ده د هغه تر مابين هغه
عرنة معنا شيله ده چې مسجد نمره تر عرفات ورته نژدې دی او يو طرف يې د حرم خوا ته
غزېدلی دی صاحب د ارشاد الساري وايي ما په روضة الناطفي کې وليدل چې عرنه معنا
هغه شيله د حرم او عرفات د حدود تر مابين واقع ده او زموږ د مذهب د ټول عبارات علاوه لا
متون د کتابو دا وايي چې مسجد نمرة هم په دغه اعتبار ورته وايي چې په عرفات کې نه ده
بلکې غاية البيان تصريح په دې کړې ده چې دا مسجد په عرفات کې نه دی همدا سې
عبارت د السروجي او د المنسک الکبير او التبيين لهذا حاجي لره په کار دی د عرفات تر
علامو تېر نه سي تر لمر لوېدو پوري اګر که يو لحظه پر عرفات درېدل خو کافي دی ليکن
د عرفات تر حدود به نه تېريږي ليکن د جمعې د لمانځه دپاره دا واجب ده چې د لمر تر
لوېدو به پر عرفات درېږي او که نه ودرېدی دم پر لازميږي د ارشاد الساري حاشيه دلته
خلاصه سوه امام چې لمونځ پر عرفات کوي او مسجد ته راسي نو به امام يا د ده نايب و
معبر ته وخيژي پر کښېني به ني باره به مؤذن اذان د ده په حضور کې وکړي تر لمانځه دمخه
لکه د جمعې صحيح قول او مطابق د ظاهره روايت سره هم دغه قول دی او دا قول د امام ابو
يوسف ؒ د قول سره مخالفت هم نه لري چې دی وايي مؤذن به اذان کوي او امام به د
خمې څخه راوزي څکه کېدای سي چې مؤذن د امام و حضور ته ولاړ وي بار اذان وکړي
مؤذن چې د اذان څخه فارغه سو باره به امام په ولاړه دوې خطبې ووايي په مابين کې به يې
کښېني لږ وخت لکه د جمعې د خطبو تر مابين چې کښېني ارشاد الساري عبارت د بحر
الرائق نقل کړی دی چې په اخر کې يې ليکلي دي چې تر مابين د خطبو کښېنستل اتباع د

نبي ﷺ ده نو اوس هغه سوال لره ځای پاته نه سو چي نبي ﷺ خو پر اوبنه خطبه ويله نو ترمابين ناسته به يې څنګه کوله البدر د ابن العز څخه نقل کړي دي چي احتمال لري چي ممبر جوړ سوی وي طريقه د خطبې پر مسنونه طريقه داسي ويل کيږي چي اول به حمد ووايي رنګ رنګ ثناوي به ووايي د خدی جل جلاله صفات او نومونه به بيان کړي او تلبيه به ووايي او لا اله الا الله به ووايي الله اکبرونه به ووايي ځکه د تشريق ورځ هم يوه دغه ده او درود به هم ووايي وعظ به خلقو ته کوي چي د دنيا څخه به يې بې رغبته کوي د اخرت رغبت به ورکوي د خدی جل جلاله د محبت بيان به ورته کوي او ذکر او شکر د ويلو ترغيب به ورکوي امر بالمعروف او نهي عن المنکر به ورته بيان کړي خصوص بيا د احرام په باره کي د حج مناسک به ورته بيان کړي لکه د عرفات درېدل پر مزدلفې درېدل د جمعې د لمونځو طريقه په اوله ورځ د اختر د شيطان ځلي ويشتل بيا قرباني حلالول بيا سر خريل بيا طواف زيارت کول چي فضيلت منده طريقه دا ده چي د اختر په ورځ يې وکړي اګر که پس هم جواز لري او په شپه کي هم جواز لري باقي هغه ټول مناسک چي تر دريمي خطبې پوري په کار وي هغه به ټوله ورته بيان کړي باره به دعا وکړي ځان او ټوله مسلمانانو ته باره به مؤذن اقامت وکړي امام به لمونځ ورکړي نه بل څوک د ماپښين بيا به مؤذن اقامت وکړي بيا به د مازيګر لمونځ هم په دغه وخت کي وکړي د ماپښين چي دغه دوه لمونځونه چي پر يوه ځای ګزارل کيږي په عربي کي ورته جمعه تقديمه وايي حاصل د مطلب دا دی چي دواړه لمونځونه پر يوه ځای کيږي په يوه وخت د ماپښين کي نو اذان به يو وکړي اقامتونه به دوه وي ارشاد الساري يې دليل دا ويلی دی چي اذان خو ځکه يو دی چي د خلقو د خبر دپاره کول کيږي چي وخت داخل سو او اقامتونه خو ځکه دوه کيږي چي دا خو د لمانځه د شروع خبر ورکوي ظاهره ده چي دلته دوه لمونځونه کيږي نو دوه واره شروع کيږي لهذا اقامتونه دوه سوه د لمانځه قراءت به په پټه وايي واجب هم دغه دی چي په زوره به قراءت نه وايي پر مذهب د ټولو امامانو باندي د جمعې حکم مخالف دی د جمعې د لمانځه حکم ځکه مخالف دی چي هغه و ځان ته مستقل شرطونه لري او احکام يې هم جلا دي امام لو مقتديانو ته مکروه عمل دا دی چي د ماپښين او مازيګر د فرض لمونځو تر مابين سنت يا نفل يا بل داسي عمل لکه د مازيګر تر لمانځه مخکي چي خلق نفل کوي علاوه لا ده چي خوراک يا څښل کوي ارشاد الساري په حاشيه کي ليکلي دي چي د مصنف عبارت خو دې ته هم شمول کوي چي تکبيرونه د تشريق به هم نه وايي ځکه مصنف وايي چي هيڅ شی به نه وايي او تکبيرونه خو تر هر لمانځه بعد ويل کيږي نو يو خو د عرفې په ورځ او بل د مزدلفې په شپه دوه دوه لمونځونه يو ځای ادا کيږي نو ارشاد الساري والا وايي چي نبي

ﷺ به د ماپښين لمونځ کوي بيا به اقامت وسو بيا به يې د مازيګر لمونځ وکړي تر مابين به يې بل لمونځ نه کوي نو دلته خو صراحتاً لمونځ ذکر دی د دې څخه خو دا نه لازميږي چې تکبيرونه دي هم نه وايي ځکه بيا يې قياس د واجب پر نفل يا سنت عمل راسي دا قياس مع الفارق دی او بل د تکبيرو مُده هم لنډه ده فاصل نه بلل کيږي حاصل د مطلب دا سو چې د تکبيرو ويل واجب دی اوس يې پرېښول نه ساقط کېدای ترڅو چې دليل د سقوط موجود نه سي او مخکي بيان د تکبيرو د نه ويلو دليل نه سي کېدای.

که چيري د اذان او اقامت تر مابين يې لمونځ وکړی يا بل داسي عمل چې په اصطلاح کي جلا کونکی بلل کېده بيا به اذان بيرته راګرځوي او که د اقامت او مازيګر د لمانځه تر مابين جلا والی وکړي هم به اقامت راګرځوي د محيط او الکافي قول صحت نه لري چې دوی وايي چې د ماپښين او مازيګر تر مابين به بغير د ماپښين د سنتو څخه په بل شي نه مشغوله کيږي دا صحيح قول نه دی ځکه د جابر ﷜ د حديث څخه مخالف دی او که چيري ځنډ د امام څخه وسو او مقتديانو سنت يا نفلي لمونځ په مابين کي وکړی بيا پروا نه لري او که چيري امام مقيم وو نو دی خو لمونځ پوره کوي هغه کسان چې مسافر ورېسې ولاړ وي هغه به هم لمونځ پوره کوي او که امام مسافر وو بيا به سفرانه لمونځ کوي او هغه کسان مقتديان چې مقيم دي خپل لمونځونه به تر سلام بعد پوره کړي ځکه تر سلام دمخه ولاړېدل حرام کار دی او بل که مسافر امام لمونځ د مقيم په رنګه پوره کوي هم ګناهګاره دی مسافر امام چې سلام وګرځوی نو به داسي وايي اې اهله د مکې تاسي خپل لمونځونه پوره کړئ موږ خو مسافر يو او مقيم لره بيا جواز نه لري چې د مسافر په رنګه سفرانه لمونځ وکوي ځکه اجماع پر قصر د لمانځه راغلي ده مسافر لره او نه هم مسافر لره اقتداء د لمانځه روا ده چې امام يې مقيم وي او بيا امام د سفر لمونځ وکوي ځکه د امام چې مقيم وي سفرانه لمونځ جواز نه لري ملا علي القاري ليکلي دي حاجي چې په مکة مکرمه کي د پنځلس ورځو نيت وکړي بيا نو مقيم ګرځي او يا يې په منٰى کي د پنځلسو ورځو د مقيم کېدو نيت وکړی صحت لري او مقيم دی لمونځونه به پوره کوي او که يې په دواړو کي د پنځلس ورځو نيت وکړی بيا نو مقيم نه ګرځي خپل لمونځ به سفرانه کوي او که چيري حاجي و مکې ته راغلی او د يوې مياشتي د اقامت نيت يې وکړی بيا نو مقيم بلل کيږي اګر که منٰى ته هم په دغه مياشت کي سفر وکړي ځکه د مقيم کېدو شرط خو پنځلس شواروزه تېرول دي او دا شرط نه دی لګېدلی چې پرله پسې به وي په مابين کي به يوه ورځ يا دوې ورځي بل خوا ته هيڅ نه ځي او کوم شخص چې د پنځلس شپو نيت وکړي او بيا يوه شپه په کنبي و منٰى ته ولاړ سي مقيم نه بلل کيږي ځکه د اقامت شرط پنځلس شپې تېرول دي هغه

نه پوره کيږي نو اوس ښه پوره معلومه سوه که چيري يو کس د اختر په لسو ورځو کي راسي د اقامت نيت وکړي صحت نه لري علاوه لا دا ده چي تر دغه لسو شپو مخکي راسي هم چي د اختر د مياشتي تر اتمي ورځي پوري يې پنځلس ورځي پوره نه سي مقيم کېداى نه سي که چيري امام تر زوال دمخه خطبه ووېل او يا يې گرسره و نه ويل د ماپښين او مازيگر لمونځونه يې پر يو ځاى په جماعت سره جواز لري ځکه دا خطبه سنت ده ليکن په پرېښولو يا تر وخت دمخه کول يې مکروه عمل دى او شرط نه دى د لمانځه د صحت دپاره او نفل کول د مازيگر تر لمانځه بعد کول اگر که وخت هم د ماپښين وي مکروه کار دى ځکه په دغه ورځ خو يې دغه وخت دى د مازيگر د لمانځه دپاره او د مازيگر تر لمانځه بعد لمونځ مکروه شارع بللى دى مطلقا لهذا که يې د مازيگر لمونځ خپل وخت مازيگر ته وځنډول بيا په ماپښين کي نفل کول ورته جواز لري په عرفات کي د جمعي لمونځ جواز نه لري ځکه کورونه او سکونت ځايونه په کښي نسته اگر که خلق په کښي زيات وي او د جمعي د لمانځه يو شرط ښار دى نو يوازي په خلقو ښار نه سي گرځېداى هغه روايت غلط دى چي بعضي وايي د امام اعظم او ابو يوسف رحمه الله پر مذهب جواز په کښي لري او په منى کي د حج په دوران کي ځکه زموږ پر مذهب روا دى چي بازارونه په دغه وخت کي جوړ سي په کښي بغير د حج د موسم څخه بيا د جمعي لمونځ نه دى په کښي روا.

## فصل د عرفات د لمونځو د جمعي شپږ شرطونه

شرائط جواز الجمع الاول تقديم الاحرام بالحج عليهما فان صلي الظهر ثم احرم بالحج وصلي العصر لم يجز العصر و قيل يشترط كون الاحرام قبل الزوال الثاني تقديم الظهر علي العصر حتى لا يجوز تقديم العصر على الظهر و لو صلي الامام الظهر و العصر فاستبان يلزمه اعادتهما جميعا الثالث الزمان و هو يوم عرفة الرابع المكان و هو عرفة و ما قرب منها الخامس الجماعة فيهما فلو صلي الظهر وحده و العصر مع الجماعة او بلعكس لو صلاهما وحده لايجوز العصر قبل وقته السادس الامام الاعظم او نائبه فلو صلي بهم رجل بغير اذن الامام لم يجز العصر و لو ادرک رکعة من کل واحدة من الصلاتين مع الامام جاز.

متن و بعده شرح ملا علي القاري

د عرفات د لمونځو دپاره يو څو شرطونه دي بعضي اختلاف په کښي دي او په بعضو کي اتفاق موجود دى او بل اختلاف دا دى چي دا دواړه لمونځونه پر يوه ځاى کول سنت دى يا مستحب دى او په بعضي مناسکو کي راغلي دي چي مازيگر د ماپښين وخت ته را دمخه کول واجب دى دپاره د جماعت د نگهباني نو مناسب دا ده چي د وجوب څخه دلته لغوي معنا واخيستل سي چي ثابت دى:

۱: اول شرط یې احرام د حج دمخه کول دی تر دواړو لمونځو اوس په دغه عبارت کې اشاره سوې دې خبري ته که یې احرام د عمرې دپاره تړلی وو د لمونځو په وخت کې په اتفاق د علماؤ یې لمونځ په جماعت سره جواز نه لري او که یې د ماپښین لمونځ د عمرې په احرام کې وګزاری او مازیګر د لمانځه دپاره یې احرام د حج وتړی بیاهم د امام اعظم رحمه الله پر مذهب جواز نه لي باقي علماء وایي جواز لري او که چیري یو بې احرامه حلال سړی د ماپښین لمونځ په جماعت وکړي بیا یې د مازیګر د لمانځه دپاره احرام د حج وتړی هم د ده د مازیګر لمونځ جواز نه لري مګر که د مازیګر په وخت کې یې و ګزاری لکه دا ظاهره روایة د امام اعظم رحمه الله څخه دی دا مسئله اختلاف سته په کښې متفق علیه مذهب دا دی چې د مازیګر دپاره احرام ضروري دی او کومو کسانو چې تر زوال دمخه احرام شرط بللی دی دا قول ضعیف دی ځکه صحیح قول د زیلعي دی چې وایي صرف داسي احرام کافي دپاره د جمعو د لمونځو دپاره دی چې مقصود په حاصلیږي.

۲: دویم شرط د جمعو د لمونځو دپاره اول د ماپښین بیا وروسې د مازیګر لمونځ ګزارل دي فایده یې دا ده چې په اتفاق سره د علماؤ چې د مازیګر لمونځ پر لمانځه د ماپښین دمخه کول جواز نه لري.

۳: دریم شرط د جمعو د لمونځو دپاره وخت دی چې ورځ د عرفې ده تر زوال وروسته د مازیګر تر وخت دمخه دا هم متفق علیه مذهب د ټولو علماؤ دی.

۴: څلورم شرط یې مکان دی چې پخپله عرفات یا هغه ځایونه چې عرفات ته نژدې وي صحیح مذهب دا دی چې د لمانځه ځای به خارج د عرفات څخه هم وي ځکه نبي عليه السلام په خپله خارج د عرفات څخه غوره کړی دی او نبي عليه السلام دا کار د خپل امت د اسانۍ دپاره غوره کړی دی ځکه دی د رحمت نبي دی او مبارک په شرطو کې د دربدلو ډېره پراخي کړې ده حاصل دا دی چې ځای د لمانځه هغه دی چې نبي عليه السلام لمونځ په کښې کړی دی اوس جمعه د لمونځو یې کړې ده ورسره ملحق هغه ځایونه هم دي چې عرفات ته نژدې وي هر طرف ته د عرفات چې وي نه خو دي داخل عرفات اوس د مصنف قول په الکبیر کې فاسد معلوم سو ځکه ده بیان د مکان کړی دی لیکن تعین یې نه دی کړی او بل عرفات ټوله د لمانځه ځای دی بغیر د هغه عرنة شبلي څخه خبازي یو عالم دی وایي چې د جمعې لمونځونه چې دوه پر یوه وخت او یو مکان کې ګزارل کیږي وجه یې دا ده چې یو خو حاجت موجود دی او بل بیا دربدل به تر لمر لوېدو پوري غزوي او هغه شخص چې یوازې لمونځ کوي هغه حاجت ځکه نه لري چې هر ځای لمونځ کولای سي او د مازیګر لمونځ هم په خپل وخت کې کولای سي پر خپل ځای د دربدو او کومو کسانو چې په جمعه

نه پوره کيږي نو اوس بنه پوره معلومه سوه که چيري يو کس د اختر په لسو ورځو کي راسي د اقامت نيت وکړي صحت نه لري علاوه لا دا ده چي تر دغه لسو شپو مخکي راسي هم چي د اختر د مياشتي تر اتمي ورځي پوري يې پنځلس ورځي پوره نه سي مقيم کېداى نه سي که چيري امام تر زوال دمخه خطبه وويل او يا يې ګرسره و نه ويل د ماپښين او مازيګر لمونځونه يې پر يو ځاى په جماعت سره جواز لري ځکه دا خطبه سنت ده ليکن په پرېښولو يا تر وخت دمخه کول يې مکروه عمل دى او شرط نه دى د لمانځه د صحت دپاره او نفل کول د مازيګر تر لمانځه بعد کول اګر که وخت هم د ماپښين وي مکروه کار دى ځکه په دغه ورځ خو يې دغه وخت دى د مازيګر د لمانځه دپاره او د مازيګر تر لمانځه بعد لمونځ مکروه شارع بللى دى مطلقا لهذا که يې د مازيګر لمونځ خپل وخت مازيګر ته وځنډول بيا په ماپښين کي نفل کول ورته جواز لري په عرفات کي د جمعي لمونځ جواز نه لري ځکه کورونه او سکونت ځايونه په کښې نسته اګر که خلق په کښې زيات وي او د جمعې د لمانځه يو شرط ښار دى نو يوازي په خلقو ښار نه سي ګرځېداى هغه روايت غلط دى چي بعضي وايي د امام اعظم او ابو يوسف رحمهما الله پر مذهب جواز په کښې لري او په منى کي د حج په دوران کي ځکه زموږ پر مذهب روا دى چي بازارونه په دغه وخت کي جوړ سي په کښې بغير د حج د موسم څخه بيا د جمعې لمونځ نه دى په کښې روا.

## فصل د عرفات د لمونځو د جمعي شپږ شرطونه

شرائط جواز الجمع الاول تقديم الاحرام بالحج عليهما فان صلي الظهر ثم احرم بالحج وصلي العصر لم يجز العصر و قيل يشترط كون الاحرام قبل الزوال الثاني تقديم الظهر علي العصر حتى لا يجوز تقديم العصر على الظهر و لو صلي الامام الظهر و العصر فاستبان يلزمه اعادتهما جميعا الثالث الزمان و هو يوم عرفة الرابع المكان و هو عرفة و ما قرب منها الخامس الجماعة فيهما فلو صلي الظهر وحده و العصر مع الجماعة او بلعكس او صلاهما وحده لايجوز العصر قبل وقته السادس الامام الاعظم او نائبه فلو صلي بهم رجل بغير اذن الامام لم يجز العصر و لو ادرک رکعة من کل واحدة من الصلاتين مع الامام جاز.

متن و بعده شرح ملا علي القاري

د عرفات د لمونځو دپاره يو څو شرطونه دي بعضي اختلاف په کښې دي او په بعضو کي اتفاق موجود دى او بل اختلاف دا دى چي دا دواړه لمونځونه پر يوه ځاى کول سنت دى يا مستحب دى او په بعضي مناسکو کي راغلي دي چي مازيګر د ماپښين وخت ته را دمخه کول واجب دى دپاره د جماعت د نګهباني نو مناسب دا ده چي د وجوب څخه دلته لغوي معنا واخيستل سي چي ثابت دى:

١: اول شرط يې احرام د حج دمخه کول دی تر دواړه لمونځو اوس په دغه عبارت کي اشاره سوې دې خبري ته که يې احرام د عمرې دپاره تړلی وو د لمونځو په وخت کي په اتفاق د علماؤ يې لمونځ په جماعت سره جواز نه لري او که يې د ماپښين لمونځ د عمرې په احرام کي وګزاری او مازيګر د لمانځه دپاره يې احرام د حج وتړی بياهم د امام اعظم رحمه الله پر مذهب جواز نه لي باقي علماء وايي جواز لري او که چيري يو بې احرامه حلال سړی د ماپښين لمونځ په جماعت وکړي بيا يې د مازيګر د لمانځه دپاره احرام د حج وتړی هم د ده د مازيګر لمونځ جواز نه لري مګر که د مازيګر په وخت کي يې و ګزاری لکه دا ظاهره رواية د امام اعظم رحمه الله څخه دی دا مسئله اختلاف سته په کښي متفق عليه مذهب دا دی چي د مازيګر دپاره احرام ضروري دی او کومو کسانو چي تر زوال دمخه احرام شرط بللی دی دا قول ضعيف دی ځکه صحيح قول د زيلعي دی چي وايي صرف داسي احرام کافي دپاره د جمعو د لمونځو دپاره دی چي مقصود په حاصليږي.

٢: دويم شرط د جمعو د لمونځو دپاره اول د ماپښين بيا وروسته د مازيګر لمونځ ګزارل دي فايده يې دا ده چي په اتفاق سره د علماؤ چي د مازيګر لمونځ پر لمانځه د ماپښين دمخه کول جواز نه لري.

٣: دريم شرط د جمعو د لمونځو دپاره وخت دی چي ورځ د عرفې ده تر زوال وروسته د مازيګر تر وخت دمخه دا هم متفق عليه مذهب د ټولو علماؤ دی.

٤: څلورم شرط يې مکان دی چي پخپله عرفات يا هغه ځايونه چي عرفات ته نژدې وي صحيح مذهب دا دی چي د لمانځه ځای به خارج د عرفات څخه هم وي ځکه نبي عليه السلام په خپله خارج د عرفات څخه غوره کړی دی او نبي عليه السلام دا کار د خپل امت د اسانۍ دپاره غوره کړی دی ځکه دی د رحمت نبي دی او مبارک په شرطو کي د دريدلو ډيره پراخي کړې ده حاصل دا دی چي ځای د لمانځه هغه دی چي نبي عليه السلام لمونځ په کښي کړی دی اوس جمعه د لمونځو يې کړې ده ورسره ملحق هغه ځايونه هم دي چي عرفات ته نژدې وي هر طرف ته د عرفات چي وي نه خو دي داخل عرفات اوس د مصنف قول په الکبير کي فاسد معلوم سو ځکه ده بيان د مکان کړی دی ليکن تعين يې نه دی کړی او بل عرفات ټوله د لمانځه ځای دی بغير د هغه عرنة شيلې څخه خبازي يو عالم دی وايي چي د جمعې لمونځونه چي دوه پر يوه وخت او يو مکان کي ګزارل کيږي وجه يې دا ده چي يو خو حاجت موجود دی او بل بيا دريدل به تر لمر لويدو پوري غزوي او هغه شخص چي يوازي لمونځ کوي هغه حاجت ځکه نه لري چي هر ځای لمونځ کولای سي او د مازيګر لمونځ هم په خپل وخت کي کولای سي پر خپل ځای د دريدو او کومو کسانو چي په جمعه

لمونځونه کړي وي هغوی امکان دلته د لمانځه نسته ځکه دلته څوک پورته کیږي څوک کښېنه کیږي صفونه نه برابریږي نو محتاج دی وتلو ته د عرفات څخه او بیا د مازیګر دپاره انتظام نه سي برابرېدلای او غزول د دریدو تر لمر لوېدو پوري واجب دی نو موږ ورته وایو چي برابري د صفو دلته ضرورت دی ساقطیږي ځکه برابري د صف سنت ده او عبادت په مابین د دریدو د وخت کي بهتر دی او نبي ﷺ خو دا کړه دپاره د خپل امت د اسانۍ دپاره کړي دي چي مخکي یې بیان تېر سو په ښه تفصیل سره د خبازي ملا صاحب دلیل هم زموږ دپاره نه سو دلیل.

۵: پنځم شرط دواړه لمونځونه په جماعت کول دي د امام اعظم رحمه الله پر مذهب باندي نو اوس که د ماپښین لمونځ یوازي وکړي او د مازیګر لمونځ په جماعت سره وکړي او یا د ماپښین لمونځ په جماعت سره وکړي او د مازیګر لمونځ تنها وکړي او یا دواړه لمونځونه تنها سره وکړي په دغه دري سره صورتو کي بې د مازیګر لمونځ جائز نه دی تر وخت دمخه په نزد د امام اعظم رحمه الله پر مذهب او د ابو یوسف او محمد رحمه الله پر مذهب جواز لري او هغه کسان چي بغیر د امام اکبر څخه بل ځای په جماعت سره لمونځونه کوي هم یې د ماپښین او مازیګر جمعه پر یوه ځای نه ده روا.

٦: شپږم شرط د جمعو د لمانځه دپاره امام اعظم یا د ده نایب دی که یو شخص بغیر د ده د اجازې څخه لمونځ ورکړي د مازیګر لمونځ یې جواز نه لري د امام اعظم رحمه الله پر مذهب باندي د ابو یوسف او محمد رحمه الله پر مذهب جواز لري او که چیري یو شخص د هر لمانځه څخه یو یو رکعت ونیسي بیا یې لمونځ جائز دی لکه د مثال په ډول سره یو کس د امام سره د ماپښین یو رکعت ګیر کړی خو دی هغه بل رکعت کوي امام د مازیګر د لمانځه څخه بیا اول رکعت ورځخه تېر کړی نو د هر لمانځه څخه یې یوه حصه ګیر کړه بې له خلافه څخه یې دواړه لمونځونه صحیح دي او که یې د ماپښین لمونځ د امام اکبر څخه ماسوا په بل جماعت سره وګزاری او د مازیګر لمونځ یې د امام اکبر سره وکړی دلته یې د مازیګر لمونځ صحت نه لري د امام اعظم رحمه الله پر مذهب لیکن د یارانو پر مذهب جائز دی.

طرابلسي وایي چي محمد رحمه الله وایي که چیري امام د جمعې په دغه ورځ وفات سو او خلقو پر بل سړي باندي جمعواري وکړه چي دی به د جمعې لمونځ راکوي جواز لري لهذا موږ د دغه مسئلې څخه دا هم ګڼو که چیري د عرفات تر لمونځو دمخه امام اکبر وفات وکړی او خلق پر بل سړي جمعه سي چي دا زموږ امام دی هم یې لمونځ جائز دی د امکان په صورت کي موږ د امام اعظم رحمه الله د مذهب مطابق دا جواب ورکوو چي د جمعې لمونځ خو فرض دی اوس که یو څوک انتخاب نه کړي لمونځ د جمعې پاتیږي نو دلته عذر موجود سو او دلته

دا دوې جمعې چې کيږي دا خو فرض يا واجب نه دي چې به له ضـرورته پرته جمعې پر جمعې قياس وکړي او بل د جمعې لمونځ که فوت سي خو بدل لري چې د ماپښين لمونځ يې پر ځای وکړي دلته خو بدل پر ځای نه لري دا قياس چې محمد ﷺ کوي صحيح نه دی.

## فصل د عرفات د درېدلو طريقه

فاذا فرغ الامام في الجمع من مسجد ابراهيم راح الى الموقف و الناس معه و يكره التاخير فان تخلف احد ساعة لحاجة لا بأس به لكن الافضل ان يروح مع الامام فيقف راكبا وهو الافضل و الافقائما و الا فقاعدا بقرب الامام و بقرب جبل الرحمة افضل خصوصا عند الصخرات السود مستقبل القبلة خلف الامام و الا فعن يمينه او بحذائه او شماله را فعايديه بسطا مكبرا مهللا مسبحا مليبا حامدا مصليا على النبي عليه السلام داعيا مستغفرا له و لوالديه و اقاربه و احبائه و لجميع المؤمنين و المؤمنات و يجتهد في الدعاء و يقوي الرجاء و لا يفرط في الجهر بصوته و يكرر الدعاء ثلاثا يستفتحه بالتحميد و التمجيد و التسبيح و الصلاة و يختمه بها فيقف هكذا الى غروب الشمس ويلبي ساعتة فساعة في اثناء الدعاء و يعلمهم المناسک و ليجتهد في ان يقطر من عينيه قطرات فانه دليل الاجابة و ليكن على طهارة و ليتباعد من الحرام في اكله و شربه و لبسه و ركوبه و نظره و كلامه و ليحذر من ذلک كل الحذر و ليجتهد في ان يصارف موقف النبي قيل هو الفجوة المستعلية التي عند الصخرات السود الكبار عند جبل الرحمة بحيث يكون الجبل بيمينک اذا استقبلت القبلة و البناء المربع عن يسارک بقليل و رائه فان ظفرت بموقفه الشريف فهو الغاية في الفضل و الا فقف مابين الجبل و البناء المذكور على جميع الصخرات و الا ماكن التي بينهما فعلي سهلها تارة و علي جبلها اخري رجاء ان تصادفه فيفاض عليک من بركاته

متن و بعده شرح ملا علي القاري

امام چې هرکله د لمانځه څخه فارغه سو په مسجد ابراهیم علیه السلام کي چې مشهور په مسجد نمرة دی نو به امام هغه د درېدو ځای ته د خلقو سره ورسي تر لمانځه بعد تر امام ځان وروسته کول مکروه عمل دی او که ضرورت وو څنډول پروا نه لري ليکن تلوار فضيلت لري نو به امام پر خپل مرکب سپور ودرېږي اکمله په کښېنې اوښ دی او که د سپاري مرکب نه وو بيا به په ولاړه که يې قدرت وو او که نه وو بيا به په ناسته که قدرت نه وو بيا په پروته سره ځکه په قرآن کي الله تعالي فرمايلي دي:

الذين يذكرون الله قياما و قعودا و على جنوبهم. آل عمران ۱۹۱

که ازدحام نه وو امام ته به نژدې ودرېږي او جبل الرحمة ته نژدې درېدل فضيلت لري که د خلقو ازدحام نه وو ځای خالي وو او ظالمانو نه وو اشغال کړی خصوصاً به هغه غټو

تورو اوارو ډېرو ته ورځي چي د نبي ﷺ د درېدو د ځای ګمان پر کيږي ارشاد الساري ليکلي دي چي دلته مسجد هم جوړ سوی وو په مسجد الصخرات سره نوم ناکه وو اهـ
مخامخ به قبلې ته درېږي ځکه شريف جهت او طرف د درېدو دغه دی او بل يا د امام شا ته که اساني وه يا به راسته طرف ته يا و مخ ته يا و چپه طرف ته درېږي لاسونه به پورته کوي انتظار به د برکت کوي او د فيض چي بيا يې خپل پر مخ را تويه کړي په مسح کولو د لاسو پر مخ باندي الله اکبر او سبحان الله او الحمدلله او اللهم صل به ووايي باره به هغه قرآني او منقولي دعاګاني وکړي چي لږ وروسته به درته په خپل ځای کي د دعاګانو په بيان کي درته راسي مغفرت به د ځان او مور او پلار دپاره د اقرباؤ او دوستانو او ټوله مسلمانانو دپاره وغواړي او ډېر کوشش به په دعا کي کوي او عاجزي او ډېر والی او قوي اميد به د قبول د دعا کوي او تلبيه به په ډېر لوړ آواز نه وايي چي پر ځان زور راولي او دعاګاني به په پټ آواز سره وايي لکه په قرآن کي چي الله فرمايلي دي:
ادعوا ربکم تضرعا و خفية. الاعراف ٥٥
او نبي ﷺ به هغه کسانو ته ويل چي هغو به په ډېر لوړ آواز دعا او ذکرونه لوړ ويل تاسي خو داسي ذات ته دعاوي نه کوی چي هغه يې نه اوري او يا درڅخه ليري دی بلکې تاسي اورېدونکي او هغه رب ته دعاوي کوی چي قبلونکی دی په قرآن کي هم دغسي الله فرمايلي دي:
و اذا سألک عبادی عنی فانی قريب اجيب دعوة الداع اذا دعان. البقرة ١٨٦
معنا دا ده اې محمد ﷺ که ستا څخه زما بندګان زما متعلق سوال وکړي ته ورته ووايه زه ورته نژدې يمه د هر دعا کونکي دعا قبلومه.
دعا به درې واره مکرره وايي تسبيحات ثناوي لويي د خدای به رنګ رنګ وايي درودونه به پر نبي ﷺ او پر انبياؤ او ملائکو باندي وايي او د دعا خاتمه به هم پر درود او سلام وي او په اخير کي به امين وايي ځکه دا هم د جملې څخه د دعا ده معنا يې دا يالله زما دعا قبوله کړه او په حديث کي راغلي دي چي امين د رب العالمين مهر دی روايت الطبراني په الاوسط کي کړی دی چي نبي ﷺ پر عرفات ودرېدی داسي يې وويل:
لبيک اللهم لبيک.
بيا يې داسي وويل:
انما الخير خير الاخرة.
په بل روايت کي راغلي دي:
اللهم لاعيش الاعيش الاخرة.

او دا به نبي ﷺ د وخت د پراخي او ډېر اتباعو او کامل والي د دين د ده کي ويل ليکن د تنگی او سختی په دورانو کي لکه پر مدينه منوره چي کفار راوگرځېدل سختي سوه بيا يې دا وويل چي د دنيا سختي خو همېشه نه ده لکه خوند چي همېشه نه دی روايت موقوف ابي شيبة د ابن عمر ﷺ څخه کړی دی چي نبي ﷺ چي د مازيگر لمونځ وگزاری پر عرفات ودرېدی لاسونه يې پورته کړه نو يې داسي دعا کوله:

الله اکبر و لله الحمد.

دا يې دري واره وويل بيا يې وويل:

لا اله الا الله وحده لا شريک له له الملک و له الحمد اللهم اهدني بالهدٰی و نقيني.

رواه الغليل ج٣ ص١٢٥

په يو روايت کي راغلي چي دا يې هم وويل:

واعصمني بالتقوٰی واغفرلی فی الاخرة و الاولی)

دري واره يې دا دعا وويله:

اللهم اجعله حجا مبرورا و ذنبا مغفورا.

باره به نبي ﷺ پر مخ لاسونه تېر کړه دونه به ساکت ولاړ وو لکه الحمدلله سورت چي سړی تلاوت کړي بيا به نبي ﷺ لاسونه پورته کړه هغسي دعا به يې وکړه چي اوس تېره سوه او امام ترمذي د ابن خزيمة څخه او بهيقي د علي ﷺ څخه داسي دعا نقل کړې ده چي نبي ﷺ به د عرفات پر ميدان کوله او ډېر به يې هم کوله دعا دا ده:

اللهم لک الحمد اللهم لک صلای و نسکی و محيايی و مماتی و اليک مآبی و لک ربی تراثی اللهم انی اعوذ بک من عذاب القبر و وسوسة الصد و شتات الامر اللهم انی اسالک من خير ما تجئ به الريح و اعوذ بک من شرما تجئ به الريح.

او طبراني بيا د ابن عمر ﷺ څخه روايت کړی دی چي نبي ﷺ به د عرفات په ورځ آواز پورته کړی دا دعا به يې ويله په لوړ آواز:

اللهم انی اسالک رزقا طيبا مبارکا اللهم انک امرت بالدعاء و قضيت علی نفسک بالاجابة و انک لاتخلف الميعاد و لا تنکث عهدک اللهم ما احببت من خير فحببه الينا و يسره لنا و ما کرهت من شئ فکرهه الينا و جنبناه و لا تنزع منا الاسلام بعد اذ هديتنا.

او يو روايت طبراني د دعا په شان کي د ابن عباس ﷺ څخه کړی دی چي نبي ﷺ به د عرفات په ورځ دا دعا کوله:

اللهم انک تری مکانی و تسمع کلامی و تعلم سری و علانيتی و لايخفی عليک شئ من امری و انا البائس الفقير المستغيث المستجير الوجل المشفق المقر المعترف

بذنبه اسالک مسالة المسکین و ابتهل الیک ابتهال المذنب الذلیل و ادعوک دعاء الخالف الضرور من خضعت لک رقبته وفاضت لک عیناه و نحل لک جسده و رغم انفه اللهم لا تجعلنی بدعائک ربی شقیا و کن بی روفا رحیما یا خیر المسؤولین و یا خیر المعطین.
الدر المنثور ج۱ ص۲۲۹ واتحاف السادة الیقین ج۴ ص۳۷۵ و امالی ج۲ ص۶۰.

البیهقي په شعب کي د جابر ابن عبدالله څخه روایت کړی دی چي نبي ﷺ وفرمایل هر مسلمان چي د عرفات په ورځ د عرفات مخامخ قبلې ته ودریږي او داسي ووایي:
لا اله الا الله وحده لاشریک له له الملک و له الحمد و هو علی کل شئ قدیر.
دا سل واره ووایي بیا سل واره قل هو الله احد سورت ووایي او بیا سل واره دا درود ووایي:
اللهم صل علی محمد کما صلیت علی ابراهیم و علی ال ابراهیم انک حمید مجید و علینا معهم.

نو حق تعالی و ملایکو ته ووایي زما د داسي بنده جزا څه ده لوڼ څه شی دی چي زما پاکي یې بیان کړه او زما د وحدانیت کلمه یې وویله لا اله الا الله محمد رسول الله او تکبیر یې ووایه او زما لویي یې بیان کړه او زما معرفت یې وکړی او ثناوي یې وویلې درودونه یې وویل نو اې زما ملایکو تاسي شاهدان سئ چي ما مغفرت ورته وکړی او ما پخپل نفس کي ورته شفاعت وکړی او که دغه بنده د عرفات د دغه ټولو خلقو دپاره شفاعت وکړي چي وې بخښه زه د ده شفاعت د ټولو په شان کي قبلومه شاید بعضو علماؤ د دغه حدیث څخه اخیستل کړي چي وایي:
سبحان الله سل واره ووایه الحمد لله سل واره ووایه الله اکبر سل واره ووایه ولاحول و لاقوة الا بالله سل واره ووایه استغفر الله سل واره ووایه.

ابن ابي شیبة وغیره د علي رضی الله عنه څخه روایت کوي چي نبي ﷺ به ویل اکثره دعا زما او د پخوانیو انبیاؤ علیهم السلام داسي وه:
لا اله الا الله وحده لاشریک له له الملک و له الحمد یحیی و یمیت وهو علی کل شئ قدیر اللهم اجعل فی سمعی نورا و فی بصری نورا و فی قلبی نورا اللهم اشرح لی صدری و یسرلی امری و اعوذ بک من وساوس الصدر و تشتیت الامر و عذاب القبر اللهم انی اعوذبک من شر ما یلج فی اللیل و شر ما یلج فی النهار و شرما تهب به الریح و شر بوائق الدهر. السنن الکبری ج۵ ص۱۱۷ المطالب العالیة ص۱۱٦۵. الدرالمنثور ج۱ ص۲۲۸

الجندي د ابن جریج څخه روایت کوي چي دی وایي وما ته رسېدلي ده چي خلق به یې امر کول چي اکثره دعاء د مسلمان په عرفات کي دا ده:

ربنا اتنا فی الدنیا حسنة و فی الاخرة حسنة وقنا عذاب النار. البقره ۲۰۱
امام او خلق به دغسې دعا کونکي مخامخ قبلې ته تر لمر لوېدو ودرېږي بيهقي په شعب الايمان د بکير بن عتيق څخه روايت کوي چې ما حج کوی یو کس مې نښتي کړی وو چې زه به ورپسې اقتداء کومه چې دڅه کول هغه به زه هم کومه چې معلومات مې وکړی هغه سالم بن عبدالله وو پر عرفات يې داسې ویل:
لا اله الا الله وحده لا شريک له له الملک و له الحمد بیده الخیر و هو علی کل شئ قدیر لا اله الا الله وحده و نحن له مسلمون لا اله الا الله و لو کره المشرکون لا اله الا الله ربنا ورب اباءنا الاولین.

همیشه به ده دا ویل چې لمر غیب سو بیا یې وما ته وکتل راته یې وویل دا حدیث زما پلار د خپل پلار څخه هغه د ابن عمر الخطاب ﷺ څخه هغه د نبي ﷺ څخه نبي ﷺ به ویل چې الله تبارک و تعالی فرمايي هر بنده چې زما ذکر دی مشغوله کړی د دعا څخه زه هغه چې دعا کونکي ته يې ورکومه دغه ذکر کونکي ته تر هغه ډېر ورکوم. انتهی.
اوس هغه سوال هم دفع سو چې چا به ویل چې نبي ﷺ به ویل هغه ټوله ثناوي وې نو بیا دعا ولي نبي ﷺ ورته ویلي دي چې دا زما او د پخوانيو پیغمبرانو دعا ده:
لا اله الا الله وحده لا شريک له ... الخ.

نو جواب مخکیني حدیث وکړی چې پر ثناء څونه ثواب دی دا ډېر دی تر دعا کولو او بل جواب دا دی چې ثنا او صفت د الله هم تعرض و دعا ته دی بلکې تر هغه دعا لا زیات علاوه لا دا چې سرې د قرآن تلاوت وکړي څکه په حدیث کي راغلي دي څوک چې قرائت د قرآن یې د ذکر او دعا څخه مشغوله کړي الله تعالی وايي تر هغه دوارو زه د قرآن ویونکي ته ډېر ثواب ورکوم مطلب دا دی چې ګړی په ګړی به تلبیه وايي د دعا په مابین کي او امام به خلقو ته مناسک وربنيي او کوشش به په دعا کي کوي چې تر سترګو يې یو څو څاڅکي د اوښکو تویې سي څکه دا دلیل د قبول د دعاء دی او پوره پرهیز به د حرام کاری څخه وکړي په خوراک لباس څښاک او سپرتیا کي په خبرو او کتلو کي کوشش به کوي چې پر هغه ځای چې نبي ﷺ درېدلی دی هلته ودرېږي که وچا ته تکلیف نه وو په کښې که نې نبي ﷺ فرمايلي دي چې ټول عرفات د درېدو ځای دی خو غوره کار به دا وي چې پر هغه ځای ودرېږه چې ستا په زړه کي ببره بنه پیدا کیږي هر ځای چې وي خصوص په نن عصر د ښځو څخه ځان ساتل لازمي کار دی او خرابونکی د حج د قبول خامخا ګرځي الی اخره.

## فصل د عرفات د درېدلو شرطونه

شرائط صحت الوقوف و الواجب و سننه و مستحباته و مکروهاته اما شرائطه

فالاول الاسلام فلا يصح وقوف الكافر الثاني الاحرام بحج صحيح غير فائة و لا فاسد فلو وقف غير محرم او محرما بحج فائة لم يصح وقوفه و كذا لو وقف باحرام حج فاسد لم يسقط به الحج و ان لزمه المضي الثالث المكان فلو اخطاه لم يجز وقوفه بغير عرفة الرابع الوقت و اوله زوال الشمس يوم عرفة و اخره طلوع الفجر الثاني من يوم النحر الخامس كينونة بعرفة في وقته و لو لحظة سواء كان ناويا او لا عالما بانه عرفة او جاهلا نائما او يقظان مفيقا او مغمي عليه مجنونا او سكران مجتازا مسر عاطائعا او مكرها محدثا او جنوبا حائضا او نفساء ليلا او نهارا و اما القدر المفروض من الوقوف فساعة لطيفة و اما الواجب فمدة الوقوف من الزوال الى الغروب و وقوف جزء من الليل و اما سننه فالغسل و الخطبة و كونها بعد الزوال قبل الصلاة و الجمع بين الصلاتين و التوجه الى الوقوف بعده بلا تاخير و الدفع مع الامام و الافاضة في الحال بعد وقوف جزء من الليل و اما مستحباته فالاكثار من التلبية و الدعاء و الذكر و الاستغفار و التضرع و الخشوع و تقوية الرجاء و الوقوف بقرب الامام و خلفه و كونه راكبا و النزول مع الناس و التوجه الى القبلة و الاستعداد للوقوف قبل الزوال و النية و رفع اليدين للدعاء و تكرار الدعاء ثلاثا و افتتاحه و ختمه بالحمد و الصلاة و الطهارة و الصوم لمن قوي و الفطر للضعيف و البروز للشمس الا لعذر و ترک المخاصة و الاکثار من اعمال الخير و اما مكروهاته فتاخير الرواح الى الموقف بعد الجمع و الوقوف بعرنة و النزول على الطريق و الخطبة قبل الزوال و الوقوف مع الغفلة و تاخير الافاضة بعد الغروب و التوجه قبل الغروب و ان لم يجاوز حدود عرفة و اداء المغرب بعرفة و الايضاع ان ادى الى الايذاء و الدفع قبل الغروب حرام.

متن و بعد شرح ملا علي القاري

اول بحث د شرطو دی د عرفات درېدو د صحت دپاره چونکي د درېدو د عرفات دپاره پنځه شرطونه اول په دغه بحث کي ذکر کيږي بيا واجبات ذکر کيږي بيا وربسې سنتونه بيا مستحبات بيا مکروهات ټول په ترتيب سره ذکر کيږي مطالعه يې پر تا ده:

١: اول شرط اسلام دی د کافر درېدل صحت نه لري.

٢: دويم شرط احرام دی د صحيح حج نه د فاسد سوي او يا فوت سوي حج ځکه چي لزوم د احرام او وجود د اسلام په سبب د نيت او تلبيې سره د عرفات د درېدو دپاره فرض دي فلهذا احرام تر اسلام دمخه اعتبار نه لري اگرچي اودس هم شرط د لمانځه دی ليکن د کافر اودس صحت لري لمونځ په روا دی ځکه اودس زموږ پر مذهب نيت ورلره فرض نه دی په خلاف د احرام چي مشابه د رکن سره دی نيت لازمي غواړي او کافر اهل د نيت نه دی د صحيح حج معنا دا ده چي يو خو به احرام د عمرې نه وي او بل که داسي سړی وو چي يو کال

ده احرام وتړی عرفات ورځخه پاته سو تر دا بل کاله پوري په هغه احرام کي وو نوی احرام بې د دغه درېدو د عرفات دپاره سږ کال و نه تړی نو بیا یې سږ کال هم حج صحت نه پیدا کوي په هغه زاړه احرام کي او د هغهٔ شخص درېدل پر عرفات هم اعتبار نه لري چي حج یې فاسد کړی وي اگرچي ټوله افعال د حج پر لازم دي چي پوره کوي به یې دلته یو سوال دا کېدای سي چي حج یې فاسد سو نو بیا ولي د ټولو افعالو د حج پوره کول پر لازمېږي حاصل د جواب دا دی چي ده احرام وتړی او پر عرفات لا نه وو درېدلی د خپلي زوجي سره یې وطي وکړه نو د ده درېدل پر عرفات صحت نه لري لکه د ده احرام اگرچي کول یې پر لازم دی همدا رنگه باقي افعال لیکن بل حج پر لازم سو دپاره دقضا د دغه فاسد حج فساد د حج داسي نه دی لکه د لمانځه خلص مطلب دا دی چي د ده احرام په وطي سره باطل سو اوس که نوی احرام وتړي د حج دپاره هم صحت نه لري.

٣: دریم شرط هغه مکان د درېدو دی که یې په خطا یا قصداً یا سهوا یا جاهل وو پوهېدی نه اگرچي په هغه شېله کي ودرېږي حج یې صحت نه لري.

۴: څلور شرط وخت د درېدو دی چي شروع یې د لمر د زایل کېدو څخه کېږي د نهم د ورځي څخه بیا د اختر د شپې د سهار د سپېدو سره ختمېږي تقریباً اتلس ساعته وخت اول او اخیر کېږي د عرفات د درېدو زمانه.

۵: پنځم شرط د سړي درېدل دي په خپل وخت د عرفات کي اگر که یوه لحظه معنا لږ گړی ودرېږي عامه خبره ده که یې نیت کړی وي او که نه د درېدو لیکن احرام به یې خامخا تړلی وي خبر وي چي دا عرفات دی او یا ناخبره وي یا بیده وي که وېښ پرسد وي که بېسده عاقل وي که لیونی پر حال وي که مدهوشه په تلوار ځي که کرار په رضا وي که په زوره بې اودسه وي که جنب، حائضه یا نفاسه وي لڅ وي که پټ وي ولاړ وي که ناست وي شپه وي که ورځ وي خلص مطلب دا دی چي د دغه ټولو درېدل صحت لري اگرچي یوه دقیقه ورباندي ودرېږي.

تنبیهه: په ټوله زمانه کي شپې د را رواني ورځي تابع دي لیکن نه دوې شپې یوه د اتم ورځ ده چي تېر سوې ده مگر را روانه شپه چي ورته تبع ده یو د نهم ورځي ته د لسم شپه تابع ده یعني د عرفات ورځي ته د اختر شپه تابع ده.

و اما الواجب: واجب اعمال د عرفات د درېدو دپاره د زوال څخه شروع بیا تر لمر لوېدو پوري درېدل واجب دی چي بدائع هم تصریح په کړې ده او که چیري ورځ ورځخه خطا سوه بیا د اختر په شپه درېدل پر واجب دی.

و اما السنة: او سنت اعمال غسل کول دي خطبه ویل دي په مسجد نمرة کي او

خطبه تر زوال بعد ويل دي او د ماپښين او مازيګر تر لمونځو دمخه ويل دي اګرچې دغه دريږ سنت دي خو مستقل سنت دي هر يو دلته چې په شمار کي د عرفات د سنتو کي راغله د تعلق په وجه تر جماعت پس و عرفات ته تلل دي بې له ځنډه د امام سره يوځای عرفات ته تلل دي نه مخکي د شپې په اول جز کي د عرفات څخه راکښته کېدل دي اګر که امام وځنډيدی.

واما مستحباته: د عرفات د درېدو مستحب اعمال ډېر والې د تلبيې دی دعاګاني کول دي ذکر کول دي مغفرت غوښتل دي ځان عاجزه ښکاره کول دي په زړه کي عاجزي کول دي يقين د دعا د قبول دی امام ته نژدې شا ته يا راسته يا چپه طرف ته درېدل دي که سپور وو د خلقو سره پر ځکه درېدل دي مخامخ قبلې ته درېدل دي تر زوال دمخه ځان د عرفات و درېدو ته جوړول دي په زړه کي د عرفات د درېدو نيت کول دي لاسونه د آسمان طرف ته په دعا کي پورته نيول دي ځکه د لاسو د دعا دپاره قبله آسمان ده تکرارول د دعا دي دري واره شروع کول د دعا او ختم کول د دعا په حمد او درود کول دي ځان پاکول دي ظاهر او باطن که قوي سړی وو روژه نيول دي که ضعيف وو بيا نه نيول دي او کوم چې په قاضيخان کي وايي روژه نيول د عرفات په ورځ او د اتم په ورځ مکروه ده هغه حکم پر اغلب دی او مراد هم عاجز او ضعيف دي لهذا کرماني وايي مکروه نه ده زموږ پر مذهب روژه نيول حاجي لره پر عرفات که قوي وو او که ضعيف وو توان يې د پوره افعالو د عرفات نه درلودی بيا يې نه نيول غوره کار دی او په الفتحه کتاب کي وايي که ضعيف وو د عرفات د درېدو څخه او دعاګانو څخه ستړی کيدی بيا ورته مستحب دا دی چې روژه و نه نيسي او په ثبوت رسېدلې ده چې نبي ﷺ د کمال قوت سره په دغه ورځ د عرفات روژه نه ده نيولې ځکه د مبارک مقصد د امت څخه تکليف ليري کول وو او بل څوک يې هم نه دی منع کړی د روژې د نيولو څخه نو دلته کراهت لره هم لاره پيدا نه سوه چې بعضي کسان ورته مکروه وايي علاوه لا دا ده چې د مشروع طريقې څخه مخالفت دی او بل مستحب کار لمر ته ځان ښکاره کول دي ليکن که عذر وو پروا نه لري د دنيا په امورو کي د چا سره ګفتګو او عداوت نه کول دي د خير کارونه کول دي لکه ډوډۍ ورکول اوبه ورکول خيرات ورکول احسان کول د انديوالو سره رحم پر مسکين کول مريي آزادول وغيره نيک اعمال.

واما مکروهاته: د عرفات د ورځي هغه اعمال چې کول يې د سنت عمل څخه مخالف دي او جواز نه لري مکروه دي يو په کښېني تر جماعت پس تلل دي و عرفات ته او بل مکروه پر لاره کښېنته کېدل دي او بل خطبه ويل دي تر زوال دمخه او پر عرفات په غفلت کي درېدل دي تر ماښام بعد پر عرفات پاته کېدل دي بې له ضرورته او تر ماښام دمخه روانېدل

دي اوگر که د عرفات تر حدود تېر سوی نه وي چې لمر ولوېږي د ماښام لمونځ کول دي پر عرفات باندي او د ماخوستن لمونځ کول پر عرفات باندي علاوه لا دا ده چې دغه دواړه لمونځونه کول پر مزدلفه واجب دي نو لهذا دلته کول يې حرام دی ليکن چې دلته مکروه ورته وويل سوه کېدای سي چې پر مزدلفه يې بېرته را وګرځوي تر سهار کېدو لا دمخه او که يې نه را و نه ګرځول هم صحت لري ځکه فساد يې موقوف دی پر مزدلفې نه مطلق په مقتضي زموږ د مذهب د قواعدو اګرچي شافعي رحمه الله ورته اختيار ورکړی دی که جمع کوي که يې تنها کوي او پر مکي سړي د ده پر مذهب واجب ده چې د ماښام لمونځ پر خپل وخت وکړي همدا رنګه د ماخوستن او بل مکروه عمل په تلو کي تلوار کول دي او که بل ته ضرر رسېدی بيا نو حرام کار دی حاصل دا دی چې امام روان سو په ارامه او ډېر عزت سره به ځي او که يو څه خالي ګاه يې پيدا کړه تلوار به کوي او بل مکروه بلکې حرام کار چې دم هم لازموي تر ماښام دمخه تلل دي.

فايده: ابن الهمام وايي پوه سه چې ظاهره کلام د قدوري او هدايې وغيره کتابو دا دی چې عرفات ټوله د دريدو ځای دی نه هغه عرنة معنا هغه شېله او مزدلفة ټوله ځای د درېدو دی نه هغه بنده شېله دا دوه ځايه د درېدو نه دي او که په کښي ودرېدی جواز نه لري او ظاهره حديث هم دغسي دی لکه مسلم په باب الحج کي ۱۴۹ ابو داؤد په خپل سنن باب المناسک کي ۱٦۵، ترمذي ۸۸۵، نسائي ابن ماجه مسند احمد سنن کبری ج۵ ص ۱۱۵، المعجم الکبير ج۱۱ ص۴۹، ص۱۱۹، ص۲۲۷، مشکل الاثار ج۲، ص۷۷، ص۷۳، مجمع الزوائد ج۳ ص۲۵۱، نصب الرايه ج۳ ص۶۰، ص۶۵، کنزالعمال ۱۲۰۵۱-۱۲۰۵۲-۱۲۰٦۹، تفسير ابن کثير ج۱ ص۳۵۳، قرطبي ج۲ ص۴۱۸.

نبي عليه السلام دغه شېلې ته د شيطان شيله ويلې ده او کوم چې وايي که په هغه شېله کي د عرفات ودريږي جواز لري هغه مذهب د امام مالک رحمه الله دی ليکن دم پر لازم دی د ده پر مذهب ليکن القرا في تصريح کړې ده چې د څلورو امامانو پر مذهب دا شېله د درېدو ځای نه دی جواز نه لري نو د غنيمت خبره اصلي دغه سوه.

## فصل د عرفات اندازه او حدود

د عرفات د حدود او اطرافو په اندازه کي ډېر اختلاف دی اول طرف د عرفات تر جاده پوري دی د لمرخاته خوا دويم طرف يې د عرفات شا ته غرونه دي تر هغو پوري غزيږي دريم طرف يې و هغه باغو ته د ابن عامر رسيږي چې پر عرفات سړی ودريږي مخامخ و قبلې ته دا قريه او باغونه د سړي و چپه طرف ته کيږي او څلورم طرف د عرفات هغه شېلې ته چې په نامه عرنة ياديږي رسيږي ارشاد الساري په حاشيه کي ليکلي دي چې

عرنة شپله مسجد نمرة او مسجد ابراهيم چي په بل نامه ورته مسجد عرنة وايي د عرفات څخه خارج دي د لمر لوېدو طرف ته چي مزدلفې او منٰی او مکه ته نژدې طرف دی په دغه کي هيڅ اختلاف نسته چي مسجد عرنة د عرفات څخه خارج نه دی بلکې هغه کسان چي د امام شافعي رحمه الله مذهبيان دي پر دغه خبره اتفاق کړی دی لکه امام شافعي رحمه الله تصريح کړې ده چي مسجد ابراهيم د عرفات څخه نه دی که څوک دلته ودرېږي درېدل د عرفات يې صحت نه لري او کوم قول چي الرافعي کړی دی چي د مسجد مخکي طرف په عرنة کي دی نه په عرفات کي او اخيري طرف يې په عرفات کي دی لهذا کوم طرف چي په عرفات کي دی درېدل يې صحت لري او کوم طرف چي په عرنة شپله کي دی بيا يې درېدل صحت نه لري نو د دواړو اقوالو مطابقت داسي کيږي چي په مسجد کي تر امام شافعي رحمه الله بعد پراخي راغلې ده امام ارزقي وايي چي د مسجد د مخکي طرف څخه بيا تر اخير طرفه يوسل او درې شپېته گزه دی او د راسته طرف بيا د چپه طرفه د عرفې او لاري تر مابين دوه سوه او ديارلس گزه دی سل شرفي لري او لس دروازې لري او د حرم د جده څخه بيا تر مسجد عرنة پوري يو زر او شپږ سوه او پنځه گزه دی او د مسجد څخه بيا د نبي عليه السلام د درېدو تر ځايه پوري څلور زره گزه لاره ده نو عرنة او نمره دواړه نه د عرفات څخه دي او نه د حرم څخه دي او جبل الرحمة د عرفات پر مابين دی نو امام شافعي رحمه الله وايي د عرفات ټوله طرفونه د درېدو ځايونه دي چي غرونه او هوار او شپلې او ذالمجاز بازار هم په کښي د اخل دی او همت صاحب په تاريخ قبله کي د حنفي مذهب عالم احمد عبدالغفور د حجة النبي کتاب څخه داسي حدود د عرفات ښوولي دي چي سنه ۱۴۲۱ کي يې همت صاحب ليکل کړي دي د عرفات شمال طرف ته د عرفات اندازه سعد غره ته رسيږي چي د عرفات څخه بيا تر دغه غره پوري زر ميتره واټن لري لمر لوېدو طرف ته او د جنوب طرف د عرفات تر درو کيلو ميترو پوري رسيږي او د جنوب لوېديځ لوري ته د نمرې د مسجد تر نيمايي برخي پوري شپږ سوه ميتره واټن لري د بني عامر د کلي تر غرو پوري، تاريخ مکه ص ۳۸۳

## فصل د عرفات څخه تر ماښام دمخه تلل

فاذا دفع قبل الغروب فان جاوز حد عرفة بعده فلا شئ عليه و ان جاوزه قبله فعليه دم فلم يعد اصلا او عاد بعد الغروب لم يسقط الدم و ان عاد قبله فدفع بعد الغروب سقط على الصحيح و لوند به بعيره فاخرجه من عرفة قبل الغروب لزمه دم و كذا لوندب بعيره فتبعه.

متن و بعده شرح ملي علي القاري

که يو کس تر لمر لوېدو دمخه د عرفات تر حدود تېر نه سو ليکن روان سو د خپل

ځایه ځخه بیا شی نسته وربانديې په اتفاق سره او که تېر سو د لمر لوېدو دمخه دم پر لازمېږي او که تر لمر لوېدو دمخه بیرته راوګرځیدی بیا دم نه پر لازمېږي اوکه را و نه ګرځیدی یا تر لمر لوېدو بعد ورته راوګرځیدی دم پر لازم دی نه ورځخه ساقطیږي او که تر لمر لوېدو دمخه راوګرځیدی دم پر صحیح قول نه پر لازمېږي اګرچې پر بل قول دم پر لازمېږي ځکه پر ده خو د زواله ځخه بیا د شپې تر یوه جز درېدل واجب وه او ده خو یوه حصه د دغه وخت ځخه خارج تېره کړه نو د ده د درېدو ځخه یو جز کم سو کوم چې واجب وو لهذا دم پر لازم دی لیکن صحیح قول په جواب کې ورته وایي چې د زال ځخه د ده د درېدو غزېدل د ماښام تر یوه جز پوري وه اوس خو دی تر ماښام بعد راوګرځیدی هغه جز د شپې ده په عرفات کې ګیر کړی نو دم نه پر لازمېږي اوس که یو سړی پر اوښ سپور وو او اوښ سرکښي وکړه د عرفات ځخه یې توپ کړه د نه سوای راګرځولای او یا نه وو سپور اوښ ووتی دی وریسې ووتی تر ماښام دمخه دم پر لازمېږي لیکن په اول صورت کې تر اختیار خبره وتلې وه دم ورځخه ساقط دی لکه د ارشاد الساري او شارح رحمہ اللہ هم دغه قول مختاره کړی دی۔

## فصل که د عرفات ورځ پوښیده سوه

و اذا التبس هلال ذي الحجة فوقفوا بعد اكمال ذي القعدة ثلاثين يوما ثم تبين بشهادة ان ذلک اليوم کان يوم النحر فوقوفهم صحيح و حجهم تام و لا تقبل الشهادة و لو ظهر انه يوم التروية او الحادي عشر لا يجزيهم فيه و لو شهدوا عيشة عرفة برؤية الهلال فان بقي من الليل ما يمكن ان يقف فيه الامام مع عامة الناس او اكثرهم لزمه ان يقف و ان لم يقف فات حجهم و ان لم يبق من الليل و ما يمكنه الوقوف فيه مع اكثرهم لكن الامام و من اسرع معه يدرک الوقوف و اما المشاة و اصحاب الثقل فلا يدركونه لم يعمل بتلک الشهادة و يقف من الغد بعد الزوال و ان کان يمكن الوقوف مع اكثر الناس فوقف مع اكثرهم الا انه قد ترک ضعفة الناس جاز وقوفهم و ان لم يقفوا فاتهم الحج فالمعتبرو فيه الاعم الاکثر لا الاقل و لو وقف الشهود بعد ماردت شهادتهم على رويتهم لم يجز وقوفهم و عليهم ان يعيدوا الوقوف مع الامام و ان لم يعيد وافقد فاتهم الحج وعليهم ان يحلوا بعمرة وقضاء الحج من قابل و لو شهد عدول على رؤية الهلال في اول العشر من ذي الحجة فرأى الامام ان لا يقبل ذلک حتى يشهد جماعة كثيرة و مضي على رايه اجزاهم و لو خالفه الشهود و وقفوا قبله لا يجزيهم و لا عبرة باختلاف المطالع فيلزم برؤية اهل المغرب اهل المشرق و ان ثبت في مصر لزم سائر الناس في الظاهر الرواية و قيل يعتبر في اهل کل بلده مطلع بلدهم اذا کان بينهما مسافة كثيرة.

متن و بعده شرح ملا علي القاري
که پر خلقو د لوی اختر میاشت پوشیده سوه ذي القعده یې دیرش شپې پوره کړه
یا دوی پر عرفات ودرېدل په دې گمان چي دا ورځ نهم ده د عرفات لیکن نورو کسانو
شاهدي ورکړه چي نن ورځ لسمه د اختر ورځ ده د عرفات ورځ پرون وه او د دوی شاهدي هم
مقبوله وه لا د حاجیانو پر عرفات درېدل صحیح دی او حج یې پوره او تام دی هیڅ ناقص نه
دی شرعاً امام به دا شاهدي هیڅ نه قبلوي اگر که شاهدان عادلان هم وي او که چیري د اتم
په ورځ پر عرفات درېدلي وه او یا د یولسم په ورځ پر عرفات ولاړ وه چي شاهدان عادلان
تېر سوه چي نن ورځ یا د اتم ده تر عرفات دمخه ده او یا تر اختر تېره سوې ده یولسم ورځ ده
یا نو د دوی درېدل پر عرفات جواز نه لري حج یې نه دی پوره او که شاهدان د عرفات په
شپه چي د اختر شپه وه تېره سوه چي نن شپه د میاشتي لسمه ده معنا سبا اختر دی اوس به
وگورو که د شپې دونه حصه پاته وه چي امام د ټوله حاجیانو یا اکثرو سره په دغه شپه کي پر
عرفات درېدلای سو بیا د شاهدانو شاهدي قبوله ده پر امام لازم دی چي په دغه شپه به
درېږي او که و نه درېدی حج یې نه دی سوی نو به دغه احرام د عمرې کړي پوره به کړي
عمره په دغه احرام باندي او که چیري د شپې دونه حصه نه وه پاته سوې چي امام د ټوله یا
اکثره خلقو سره نه سوای درېدلای او شاهدانو هم د قبول وړ شاهدي ورکړه بیاهم د دوی
شاهدي به امام نه قبلوي سبا به پر عرفات درېږي او هغه کسان چي ضعیف وي یا پیاده وي
د امام سره عرفات ته و نه رسیږي هغه به بل حج کوي په بل کال کي اصلي قانون په کتبې دا
دی چي اعتبار و اکثرو لره او اغلب لره دی اکثره چي هر طرف وو اعتبار هغه لره دی لکه په
دغه قول چي هدایې الکافي بدائع او الکرماني تصریح کړې ده.
اگرچي د محمد رحمه الله څخه داسي روایت سوی دی چي امام ته خبره ښکاره سوه
چي نن شپه د اختر ده نو که په تلواري هر څونه کسان ورسره ولاړه د هغو حج صحیح دی او
هغه باقي پاته کسان به بل کال حج کوي سږ کال ورځخه تېر سو او که داسي وخت شاهدان
تېر سوه چي نه امام او نه نورو کسانو عرفات ته ځان رسولای سو بیا دي امام د دوی شاهدي
نه قبلوي لیکن طرابلسي وایي مناسب نه ده شرعاً چي د یوه یا دوو کسانو شاهدي قبوله
کړي اگرچي قیاس د دوو کسانو عادلانو شاهدي ته اعتبار ورکوي او کوم شرع او قیاس
دواړه د عادلانو شاهدي قبلوي دا په هغه صورت کي چي امکان د درېدو وي پرعرفات
باندي..الخ.
تفصیل یې شارح د کنز داسي کړی دی که شاهدان د اتم په ورځ تېر سوه چي نن
ورځ د عرفات ده اوس به وگورو که امکان په دغه ورځ د درېدو وو پر عرفات شرعاً او قیاساً

دا شاهدي قبوله ده معنا که و نه درېدل حج يې فاسد سو په دې شرط که په دغه شپه هم و نه درېدل او که د دې امکان نه وو چي په شپه کي ودرېږي بيا نو دا شاهدي به نه قبلوي سبا به پر عرفات درېږي اوس په شاهدانو کي خبره دا ده چي د دوی خپل علم معتبر دی که د امام عمل نو به دلته دا قاعده ذکر کړو چي د امام عمل ته اعتبار دی معنا دا سوه هر کله چي امام د شاهدانو شاهدي قبوله نه کړه رد يې کړه اوس که شاهدانو د امام سره په درېدو کي د عرفات موافق سوه حج يې صحيح او که يې د خپل علم مطابق تر امام دمخه ودرېدل يې د امام سره و نه درېدل حج يې صحت نه لري بل به کوي او بل اصل او قانون دا دی چي اختلاف د مطالعو لره په ظاهره روايت کي اعتبار نسته او اکثره مشائخ هم پر دغه قول دي او پر دغه قول به فتوٰی فقيهه ابو الليث کوله همدا رنګه فتوٰی د شمس الائمه الحلواني او مختاره د صاحب د التجريد او الکافي وغيره مشائخو ده او قيل ويلي دي چي اختلاف د مطالعو لره اعتبار سته هر ښار لره خپل د ښار مطلع معتبره ده خصوص يې چي د يوې مياشتي مسافه يې تر مابين وي دا قول صاحب د المجمع او شارح د کنز او نقايي خوښ کړی دی ليکن په جواب کي ورته الفتحه کتاب ويلي دي چي غوره به عمل په ظاهره روايت وي چي اول مذهب ذکر سو ځکه چي په هر ښار د مسلمانانو کي چي مياشت وليدل سوه نو پر ټوله نړۍ يې عمل لازم دی.

## فصل د عرفات څخه راکښته کېدل

و اذا غربت الشمس افاض الامام و الناس معه و عليهم السكينة و الوقار فان وجد فرجة لسرع المشي بلا اذاء وقيل لايسن الايضاع و يستحب ان يسير الى مزدلفة على طريق المأذمين دون طريق ضب و ان اخذ غيره جاز و لا يتقدم احد على الامام الا اذاخاف الاذدحام او كان به علة و لو تقد احد على الامام او الغروب و لم يجز حدود عرفة فلا باس به و ان ثبت مع الامام فهو الافضل و لو مكث قليلا بعد الغروب او افاضة الامام جاز ولو ابطا الامام بالدفع دفعوا قبله و يستحب ان يكون في سيره ملبيا مكبر مهللا مستغفرا داعيا مصليا على النبي عليه السلام ذاكرا باكيا حتى ياتي مزدلفة ولايصلي المغرب و لا العشاء بعرفات و لا في الطريق و لا يعرج على الشي حتى يدخل مزدلفة و ينزل بها.

متن و بعده شرح ملا علي القاري

هر کله چي لمر ولوېدی نو به امام او خلق په ډېر عزت او ارام د عرفات څخه راکښته سي که يې په خلقو کي خالي ګاه پيدا کولای سوه تېزي به کويُ که و چا ته ضرر نه رسېدی اګرچي قيل وايي ايضاع معنا په تلواري تګ سنت نه دی لکه علامة صاحب وايي ما ليدلي دي چي بعضي خلق ضررناکه تګ کوي او که ضرر نه وي چا ته بيا خو په اجماع د علماؤ د

ثابت دی چي تېز تګ د آیت څخه چي افاض دی معلومېږي لهذا بیا سنت عمل دی خو شرط په کېنې دا دی چي آزار به چا ته نه رسوي مستحب دا دی چي مزدلفې ته پر لاره د مازمین ولاړ سي نه پر لاره د ضب لو که پر بله لار ولاړ سي بیاهم جواز لري لیکن خلاف اولی کار دی د عوامو توهم غلط دی چي د میلینو ترمابین تلل شرط یا واجب او یا سنت کار دی دا وسوسه د شیطان ده چي په هلاکت کي سړی اچوي او بل به سړی د عرفات څخه تر امام نه د مخه کېږي لو که ازدحام د خلقو ډېر وو یا بل ضرورت وو تر امام یا تر لمر لوېدو دمخه ولاړې پروا نه لري خو په شرط د دې چي د عرفات تر حدود نه وي تېر سوی دمخه تر لمر لوېدو لیکن افضله او غوره دا ده چي د خپل امام سره یوځای که عذر نه وو را شوه سي د عرفات څخه او که تر ماښام لېر ګړی وځنډیږي او یا تر امام لکه په نن زمانه کي بیا جواز لري او که امام وځنډېدی عذر لري او که نه خلقو لره تر ماښام بعد تلل په کار دی مستحب دا دی چي پر لاره تلبیه الله اکبر او تهلیل او استغفار او دعاګاني او درودونه او ذکرونه کوي ژړېدونکي روان وي او که یې ژړا نه راتله بیا به ځان د ژړا په رنګه جوړوي تر هغه وخته ترڅو چي مزدلفې ته رسیږي د ماښام او د ماخوستن لمونځونه به نه پر عرفات او نه پر لاره کوي او نه به پر یوځای خیژي ترڅو چي مزدلفې ته را رسیږي.

## نبي ﷺ په عرفات کي

نبي ﷺ د منٰی څخه عرفات ته پر لاره د ضب ولاړی امام ازرقي رحمه الله وایي دا لاره د عرفات ډېره لنډه ده دغه لاره ته اوس په عربي کي طریق القناطر وایي نبي ﷺ امر کړی وو چي په نمره کي دی زما دپاره خېمه ودرول سي نبي ﷺ چي ور ورسېدی دلته یې واړول دپاره د اسانۍ او بیا د ماپښین او مازیګر لمونځو دپاره امام ازرقي وایي چي د نمره تر غره لاندي خلور ګزه په پنځه ګزه کي چي مربع منطقه ۲۰ ګزه ورڅخه جوړیږي دلته لاندي یو غار دی چي نبي ﷺ به تر زواله پوري دلته ناست وو کوم چي د عرفات څخه خارج مځکه ده بیا به تر زوال وروسته پر قصوٰی نامي اوښه سپور سو او د عرنې د ناوې مابین ته به ورغلی چي دا هم د عرفات څخه خارج ده باره به یې خطبه وویله د دغه مربع ځای او د خطبې چي په نمره مقام کي ویل کېده زر میتره فاصله ده علامه کردري لیکلي دي چي دغه مربع مقام چي نبي ﷺ به تر زوال دمخه دلته ځان هوسا کوی د پخوانی پیغمبرانو او ابراهیم ﷺ په وخت کي هم وو احمد عبدالغفور په حجة النبي کتاب کي وایي دغه مقام اوس هم په سنه ۱۳۹۷ ق کال کي موجود وو نبي ﷺ چي به په نمره کي خطبه او لمونځونه ادا کړه بیا به پر قصوٰی نامي اوښه سپور سو تر لمر لوېدو به د جبل الرحمة په لمن کي ولاړ وو چي بعضي وایي پر هغه مقام د ده مسجد جوړ سوی دی او

د احاديثو څخه معلوميږي چي دلته هم نبي ﷺ يو څه د عبرت خبري کړي دي جبل رحمت د شاوخوا غرو په نسبت سره کوچني غر دی چي لوړه خوا يې هواره په ډبرو فرش ده د دغه غره پر سر يو څلی هم دی او د ډبرو څخه جوړ سوی دی چي دری يا څلور ميتره جګ دی او د عرفې په شپه دلته څراغونه او برقونه لګيږي د دغه غره سر ته د شپږمي پيړی په نيمايي کي په سنه ۵۵۹ ش کال کي وزير محمد بن علي المنصور په جواد لقب ۹۰ نامنظمي زينې جوړي کړي دي دغه غر ۳۰ ميتره جګ او ۳۰۰ ميتره اوږد دی همدغه راز د دغه غره پر سر باندي يوه دوکانچه جوړه سوې ده چي اوږدوالی يې پنځلس ميتره او بر يې لس ميتره دی دغه دوکانچې ته مسجد ابراهيم وايي چي و سر ته ختل يې بدعت عمل دی جواز نه لري، زموږ د قبلې تاريخ ص۳۸۴.

## باب احکام المزدلفة

فاذ اوا في مزدلفة يستحب ان يدخلها ماشيا و يغتسل لدخولها ان تيسرو ينزل بقرب جبل قزح عن يمين الطريق او يساره و يكره النزول على الصريق.

متن و بعده ترجمه مع الشرح

عامه خبره تر واجب او سنت دا ده چي مزدلفې ته راننژدې سو ورته مستحب دا دی چي پياده په ادب او عاجزي سره ور داخل سي څکه دا هم حرم المحترم دی او بل به غسل وکړي دپاره د داخلېدو که دا دواړه ورته اسانه وه او دغره سره به کښته سي چي جبل قزح ورته وايي چي دلته مسجد هم دی په مشعر الحرام سره نوم ناکه دی او فضيلت منده ځای د ولاړي دغه دی پر راسته يا چپه طرف د لاري به کښته سي څکه پر لاره کښته کېدل مکروه عمل دی.

## د مزدلفې لاره او نوم

د مزدلفې شروع د عرفات څخه د ماء زمينو څخه شروع کيږي ماء زمين هغه دوه غرونه دي چي په مابين کي يې نرۍ لاره تېره سوې ده د دغه ځايه څخه يوه غټه ارشوبيا په سترګو کيږي چي ورته مزدلفه وايي د سعودي حکومت دلته هم اوس د اوبو او نور سهولتونه برابر کړي دي دغه ارشو يې ډېره پراخه کړې ده د د مزدلفې اخيري پای د محسر ناوه ده چي د عرفات څخه تر دغه محسره پوري د مزدلفې اوږدواله يو څه زيات څلور کيلوميتره دی همدا راز د سعودي حکومت يوه لاره دغه د پياده وو دپاره او اته يا نهه ۹ لاري يې د وسايلو دپاره ورته جوړي کړي دي او بل د محسر کنده د مزدلفې او منٰی په مابين کي يوه کنده ده چي دغه دوې سيمي سره جلا کوي محسر نه د مزدلفې او نه د منٰی څخه بلل کيږي محسر ځکه ورته وايي چي دلته د ابرهه لښکر په عيسوي سنه ۵۲۳ ع کي

ماته خورلي وه چې مره يې تر شلو زرو زيات سوي وه نو په حسرت معنا غم کي داخله سوه هم دا وجه ده چي نبي ﷺ به تېرېدی په تېزي به تر دغه ځای تېر سو ، مزدلفه چي ورته وايي وجه دا ده چي حاجيان خپلو افعالو د حج ته نژدې سي يا دا معنا چي جبرايل عليه السلام و ابراهيم عليه السلام ته د حج مناسکو د ښولو په دوران کي وفرمايل:

ازدلف الى المشعر الحرام.

معنا مشعر حرام ته ورنژدې سه او مزدلفه هغه بهترينه ځکه ده چي د عرفات او منٰی تر مابين واقع ده او په حرم کي داخل ده او د ماښام او ماخوستن جمعه په کښي کيږي وجه دا ده چي آدم او حوا عليهما السلام دلته سره جمعه سوي دي تر ډيري مدې پس، د قبلې تارخ ص۳۸۹، ص۳۸۷

## فصل په مزدلفه کي د ماښام او ماخوستن لمونځ پر يوه ځای کول

يستحب التعجيل في هذا الجمع فيصلي الفرض قبل حط رحله و ينيخ جماله و يعقلها فادخل وقت العشاء اذن المؤذن و يقيم فيصلي الامام المغرب بجماعة في وقت العشاء ثم يتبعها العشاء بجماعة و لا يعيد الا اذن و لا الاقامة للعشاء بل يكتفي باذان واحد و اقامة واحدة و لايتطوع بينهما و لا يشتغل بشئ اخر فان تطوع او تشاغل اعاد الاقامة للعشاء دون الاذان و ينوي المغرب اداء لا قضاء و الجماعة سنة في هذا الجمع و ليس بشرط فلو صلاهما وحده جاز و شرائط هذا الجمع الاحرام بالحج و تقديم الوقوف بعرفة عليه و الزمان و المكان و الوقت فاطر الزمان فليلة النحر و اما المكان فمزدلفة حتى لو صلي الصلاتين او احداهما قبل الوصول الى مزدلفة لم يجز و عليه اعادتهما بها اذا وصل و لا يصلي خارج المزدلفة الا اذا خاف طلوع الفجر فيصلي حيث هو ولو لم يعدهما حتى طلع الفجر عادت الى الجواز و اما الوقت فوقت العشاء فلو وصل الى مزدلفة قبل العشاء لا يصلي المغرب حتى يدخل وقت العشاء و يفارق هذا الجمع جمع عرفة من وجوه الاول ان هذا الجمع واجب بخلاف جمع عرفة فانه سنة او مستحب الذي لا يشترط السلطان ولا نائبه الثاني لا يشترط فيه الجماعة الثالث انه لا تسن له الخطبة الرابع انه باقامة واحدة بخلاف الجمع بعرفة فانه باقامتين.

متن و بعده شرح ملا علي القاري

هر کله چي مزدلفې ته ورسېدی نو مستحب ورته دا دی چي تلوار وکړي د جماعت د دوو لمونځو دپاره اول به خپل اوښ چوک کړي يا به يې وتړي تر بار او نورو سامانو مخکي به فرض لمونځ وکړي چي وخت د ماخوستن داخل سو باره به مؤذن اذان وکړي او اقامت به وکړي

نور خلق وي که نه نو به امام د ماښام لمونځ د ماخوستن په وخت کي په جماعت سره وکړي د ماښام تر لمانځه بعد به متصل د ماخوستن لمونځ وکړي په مابين کي بې نه بل اذان او نه بل اقامت سته بلکې د دواړو جماعتو دپاره يو اذان او يو اقامت کافي دی اګرچي زفر رحمه الله وايي يو اذان او دوه اقامته به کوي ده پر عرفات قياس کړی دی او که بې د ماخوستن لمونځ اول وار وکړی بيا بې د ماښام لمونځ وکړی د ماخوستن لمونځ به دويم وار د ماښام تر لمانځه بعد بيرته کوي او بل به د ماښام او ماخوستن د لمونځو تر مابين نفلي لمونځ بلکې د ماښام سنت به هم نه کوي لکه مولانا جامي رحمه الله چي پخپل منسک کي همم دغسي تصريح کړې ده او نه به هم په بل کار لکه خوړل يا چنبل ځان مشغوله کوي يا دلسي بل کار بې له ضرورته څخه او که بې د ماښام تر لمانځه بعد لمونځ نفلي يا بل کار وکړی د ماخوستن د لمانځه دپاره به اقامت راګرځوي نه اذان او که بې په مابين کي قضايي لمونځ وکړی بيا اقامت راګرځيدل نسته او بل به د ماښام د لمانځه نيت د وخت د لمانځه وي نه نيت د قضايي لمانځه ځکه د نبي عليه السلام څخه يو کس پوښتنه وکړه چي اوس ماښام دی لمونځ نه کوو نبي عليه السلام ورته وفرمايل د ماښام د لمانځه ځای ته لا نه يو رسيدلي مخ ته ځه هلته دي په مزدلفه کي دا دوه جماعتونه سنت دي لکه نور لمونځونه چي په جماعت سره کول کيږي علاوه لا دا ده چي دلته جماعت د دواړو لمونځو دپاره شرط نه دی که بې تنها تنها وکړی هم جواز لري ليکن په جماعت د امام سره کول بې سنت دی لکه الحاوي چي ذکر کړي دي او بالمقابل چي برجندي او شرح النقايه په حواله د الروضة ذکر کړي دي چي د ماښام او ماخوستن لمونځونه بغير د امام څخه بې له جماعته د امام صاحب پر مذهب جواز نه لري دا خبره اصل نه لري د عمل وړ نه ده او د مشهور قول څخه خلاف ده او شرطونه د دغه دوو لمونځو دپاره يو احرام دی د حج نه د عمرې ځکه دا تصريح د علماؤ ده چي دا جمعه د منسک معنا د افعالو څخه د حج ده نو ځکه احرام د حج په کښي ضروري دی لهذا د عمرې په احرام کي نه سي کيدای اګر که يو مخالف قول محبوبي کړی دی چي د دغه لمونځو دپاره احرام شرط نه دی او بل شرط بې تر مخ درېدل پر عرفات دی که په ورځ کي درېدلی وي او که په شپه کي پر عرفات درېدلی وي اوس که بې په مزدلفه کي دا دواړه د ماښام او ماخوستن لمونځونه په جماعت وکړه وروسته پر عرفات ودرېدل بيا بې دواړه لمونځونه جائز نه دي او بل شرط بې شپه د اختر ده تر سپېدو پوري او بل شرط بې کول په مزدلفه کي دی اوس که بې پر لاره يا تر مزدلفې تير سو و منی ته بيا جواز نه لري يو لمونځ وي که دواړه صحت نه لري هر وخت چي مزدلفې ته په دغه شپه د اختر کي ورسيدل بيرته به دواړه لمونځونه راګرځوي او که بې د ماښام لمونځ پر لاره وکړی ماخوستن مزدلفې ته ورسيدل د امام اعظم او امام محمد رحمهما الله پر مذهب به بې بيرته راګرځوي او که بې وځنډوی په مزدلفه کي د ماښام لمونځ وکړي

په اجماع سره د علماؤ جواز لري د مزدلفې څخه خارج يو لمونځ په دغه دواړو کي جواز نه لري بغير د بيري څخه چي سهار به سي رابانديې قضا به سي يا يې د ضرورت په وجه هر ځای چي وو هلته جواز لري او که يې بل ځای دواړه لمونځونه وکړه باره مزدلفې ته ورغلی خو تر سهاره پوري يې و نه کړی نو يا يې قضا نسته بيرته صحت ته وروگرځيدل ليکن واجب عمل ورڅخه پاته سو گنهگاره دی او که مزدلفې ته تر ملنبام دمخه ورسېدل هم به لمونځ نه کوي ترڅو چي ملخوستن سوی نه وي لهذا وخت د دغه جمعو دپاره شرط دی د مزدلفې جمعه د عرفات د جمعې څخه په څو شيانو کي فرق لري:

۱: اول دا جمعه د مزدلفې واجب ده د عرفات جمعه سنت او مستحب ده.

۲: دويم د عرفات جمعې لره امام شرط وو بې له امام جماعت جواز نه درلود دلته امام شرط نه دی.

۳: دريم د مزدلفې د جمعې دپاره خطبه نسته په عرفات کي تر لمونځو دمخه سنت ده.

۴: په مزدلفې کي د دواړه جمعو دپاره يو اقامت کافي په عرفات کي دوه اقامته ضروري دي.

## فصل شپه تېرول په مزدلفه کي

والبيتوتة بها سنة مؤكدة الى الفجر لا واجبة فيبيت تلك الليلة بها و يشتغل بالدعاء بمثل ما اشتغل به بعرفة ان تيسر له و ينبغي احياء هذه الليلة بالصلاة و التلاوة و الذكر و التضرع و الدعاء لانها جمعت شرف الزمان و المكان و يسئال الله تعالى ارضاء الخصوم و لا يتهاون في ذلک فان الاجابة موعودة فيها.

متن وبعده ترجمه و شرح ملا علي القاري

مزدلفه يو ځای دی د عرفات او د منی تر مابين معنا د مزدلفه نزديکت و الله تعالى ته او يا يې معنا ده نژدې کول د خلقو و منی ته تر عرفات بعد او يا يې معنا تگ دی د خلقو په يوه حصه کي د شپې و مزدلفې ته او يا يې معنا دا ده چي دا هواره مځکه ده الطحاوي د مزدلفې دپاره درې نومونه ذکر کړي دي ۱: مزدلفة، ۲: المشعر الحرام، ۳: جمع.

او اصح هغه نوم دی چي الكرماني ذکر کړی دی هغه دا چي دا مشعر الحرام په کتبي دی لکه په قرآن کي چي الله تعالى فرمايلي دي:

فاذا افضتم من عرفات فاذكروا الله عند المشعر الحرام. البقره ۱۹۸

يعني چي تلسي د عرفات څخه راکښته سئ نو ذکر کونکي و مشعر الحرام ته راسئ چي په مزدلفه کي مشعر الحرام د يوه غره نوم دی.

شپه تېرول په مزدلفه کي سنت مؤکد عمل دی نه واجب لکه شافعي رحمه الله چي ورته واجب وايي په دغه شپه کي به هغه اعمال ترسره کوي کوم چي يې پر عرفات کول لکه دعاګاني کول ذکر کول تلاوت کول درود ويل عاجزي کول لمونځونه کول تلبيه وغيره ويل ځکه دلته ځوخصوصيات سته يو خو ډېره مشرفه زمانه ده چي په يوه وجه د عرفې او په بله وجه د اختر شپه ده او بل د حج اخيره شپه ده او بل دا ځای په حرم کي داخل دی او بل مشعر الحرام په کښي دی نو لهذا دا شپه به ټوله په عبادت کي تېروي او سوالونه به الله تعالی ته کوي چي د ده څخه د ده دښمنان خوشاله کړي هيڅ ستې به نه کوي چي حق تعالی ټوله مظالم چي ده ظلم پر کړی وي ورڅخه راضي کړي ځکه د سهار په خوا کي هر څه حق تعالی ورته معاف کوي او قبول د دعا په کښي واقع دی لهذا په روايت کي د ابن ماجه شريف وغيره د حديثو په کتابو کي راغلي دي د عباس بن مرداس رضي الله عنه څخه روايت دی چي نبي عليه السلام د خپل امت حاجيانو ته د عرفې په ورځ د مغفرت دعا وکړه الله ورڅخه قبوله کړه او د امت ظالمان يې ورڅخه وايستل الله ورته وفرمايل د مظلوم حق ورڅخه اخلم نبي عليه السلام دعا وکړه چي ياالله مظلوم ته په عوض کي د بدل اخيستو جنت ورکړه خو الله يې دغه دعا وا نه خيستله په عرفات کي بيا د مزدلفې په شپه کي يې دعا وکړه د شپې په اخيره حصه کي الله تعالی دا دعا هم ورڅخه قبوله کړه نو نبي عليه السلام تبسم معنا خندا ورپه کيدل چي ابوبکر او عمر رضي الله عنهما وليدی پوښتنه يې وکړه چي يارسول الله عليه السلام په داسي وخت کي موږ ته خندا کونکی نه يې ليدلی الله تعالی دي تا وخندوي رسول الله عليه السلام ورته وويل چي د خدای دښمن شيطان چي خبر سو چي زما دعا د ظالمانو په حق کي الله تعالی قبوله کړه او مغفرت يې ورته وکړی نو ده په لپو لپو خاوري پر سر بادولې د ځان دپاره يې د هلاکت دعاوي کولې نو زه د ده هغو چيغو او فرياد په خندا کړم.

## فصل درېدل پر مزدلفه

الوقوف بها واجب و شرائط صحته شرائط جمع الصلاة و اول وقته طلوع الفجر الثاني من يوم النحر واخره طلوع الشمس منه فمن وقف قبل طلوع الفجر او بعد طلوع الشمس لا يعتد به وقدر السنة امتداد الوقوف الى الاسفار جدا و قدر الواجب منه ساعة و لو لطيفة و اما ركنه فكينونته بمزدلفة سواء كان بفعل نفسه او بفعل غيره بان يكون محمولا بامره او بغير امره وهو نائم او مغمي عليه او مجنون او سكران نواه او لم ينو علم بها او لم يعلم و لو ترك الوقوف بها فدفع ليلا فعليه دم الا اذا كان لعلة او ضعف او يكون امراة تخاف الازدحام فلا شئ عليه ولو مربها في وقته من غير ان يبيت بها جاز و لا شئ عليه و لو وقف بعد ما افاض الامام قبل طلوع الشمس او دفع قبله او قبل ان يصلي الفجر

اجزاء و لا شئ عليه و اساء لترکه الامتداد و اداء الصلاة بها و اما مکان الوقوف فجزء من اجزاء مزدلفة ای جزء کان و المزدلفة کلها موقف الاوادي محسر و حد المزدلفة مابين ما زمي عرفة و قرني محسر يمينا و شمالا من تلک الشعاب و الجبال و ليس المازمان و لا وادي محسر من المزدلفة قيل ميل و قيل ميلا ن و اول محسر من القرن المشرق من الجبل الذي على يسار الذاهب الى منا.

متن و بعده ترجمة و شرح ملا علي القاري

تر سهار راختو بعد پر مزدلفة درېدل واجب دی زموږ پر مذهب نه دی سنت لکه د شافعي رحمه الله پر مذهب هغه شرطونه چي درېدل پې صحيح کيږي وړاندي بعينه هغه شرطونه دي لکه د لمانځه د جمعې چي وه لکه دمخه احرام تړل او مخکي پر عرفات درېدل او زمانه چي شپه د اختره ده او مکان چي مزدلفه ده اول وخت د درېدو چي سهار سپېدې سوې د اختر د ورځي او اخير وخت يې چي لمر رلوختی لهذا که څوک تر سپېدو مخکي پر ودرېدی يا تر لمرخاته بعد پر ودرېدی يا نو د ده درېدل هيڅ اعتبار نه لري او د واجب درېدلو مقدار يې يوه لحظه او دقيقه ده او سنت درېدل پر مزدلفة د سهار سپېدو څخه بيا تر لمرخاته لړ مخکي دی او د دغه واجب درېدو دپاره فرض عمل دا دی چي پر مزدلفه به درېږي نه په هغه شپله کي د محسر لو درېدل که پخپله وکړي او يا يې بل په شا وړولي د ده په امر وي او که نه بېده وي که وينښ بېسده وي که ليونی او مدهوشه وي نيت يې کړی وي او که نه خبر وي چي دا مزدلفه ده او که نه جواز لري هيڅ شک نسته په کښي او که چيري يو کس د مزدلفي څخه په دغه شپله کي بې له عذره څخه راکښته سو دم پر لازميږي لو که عذر موجود وو ضعيف وو يا مريض وو يا ښځه وه چي سهار خلق ډيريږي د نرانو سره خلط کيږ مه بيا نو دم نه پر لازميږي ځکه واجب يې پر ځای کړه چي درېدل وه که چيري يو کس سهار تر امام دمخه راکښته سو او يا امام راکښته سو دی وروختی خو لمر راختلی وو جواز لري دم نه پر لازميږي ځکه ده واجب پر ځای کړه ليکن ګنهګاره په دې دی چي يو خو د امام سره يوځای نه وو لو بل يې توله وخت د سنت په کښي پوره نه کړی لو بل هغه ځای چي سړی پر درېږي په مزدلفة کي هغه عام دی په هره کناره کي چي ودرېدی جواز لري ليکن فضيلت منده ځای هغه دی چي نبي عليه السلام پر درېدلی دی چي د مشعر الحرام مقام معنا غر دی صرف به په هغه شپله کي د محسر نه درېږي او بل مقدار او اندازه د مزدلفې د هغه لاري څخه چي د عرفات څخه راځي د مازمين په نامه ځايه څخه شروع کيږي تر هغه دوو طرفو شمالي لو جنوبي د هغه شپلې پوري لو د هغه غرو پوري لو مازمان او وادي اندازه يې اته زره ګزه ده لرشاد الساري ليکلي دي چي د محسر شپلي اندازه پنځه سوه او

پنځه څلويښت ګزه ده او اخير د محسر د اول څه د منا څلور زره ګزه منطقه ده اول د محسر د قرن غره څخه دی چې سړی د منا ته ځي د سړي پر چپه طرف کيږي.

## فصل اداب د مزدلفې

فاذا انشق الفجر يستحب ان يصلي الفجر بغلس مع الامام و ان صلي فردا جاز فاذا فرغ منها فالمستحب ان ياتي الامام و الناس الى المشعر الحرام وهو جبل قزح الذي عليه البناء اليوم ويقف مستقبل القبلة و الناس ورائه والافضل ان يقف على الجبل قزح ان امكنه والافتحته او بقربه و يرفع يديه للدعاء بسطا و ستقبل بهما وجهه و يذكر الله كثيرا و يسال الله حوائجه و لا يزال كذلک الى ان يسفر جدا وهو ان يبقي من طلوع الشمس قدر ركعتين او نحوه فيدفع و الافضل ان يكون وقوفه بعد الصلاة.

متن و شرح ملا علي القاري

اوس په دغه فصل کې هغه ادبيات بيانيږي چې په مزدلفة کې يې کول فضيلت ډيروي يو په کښې دا دی چې لمونځ به په اول سهار معنا په تياره کې کوي ځکه نبي ﷺ په دغه ورځ په دغسې تياره کې دغه لمونځ کړی دی او په کوم حديث کې چې راغلي دي چې تلسي د سهار لمونځ په رڼا کې کوئ ستاسي نيکۍ ډېروي، ترمذي ۱۵۴، نسائي ج۱ ص۲۷۲، مسنداحمد ج۴ ص۱۴۲- ج۵ ص۴۲۹، سنن کبریٰ ج۱ ص۴۷۵، المعجم الکبير ج۴ ص۲۹۵، نصب الراية ج۱ ص۲۳۵-۲۳۷، ميزان الاعتدال ۱۰۸۰، لسان الميزان ج۱ ص۱۴۸۷، فتح الباري ج۲ ص۵۵. مجمع الزوايد ج۱ ص۳۱۵، کنزالعمال ۱۹۲۷۴-۱۹۲۷۷-۱۹۲۸۳-۱۹۲۸۴، کشف الخفاء ج۱ ص۱۳۲-۱۴۰ وغيره.

دغه حديث مخصوص البعض دی وجه دا ده چې دلته به وختي لمونځ وکړي چې ځان د درېدو دپاره فارغه کړي او بل ځان د منا دپاره ښه برابر کړي نو لهذا د امام سره به په تياره سهار کې لمونځ ادا کړي او که يوازي لمونځ وکړي هم جواز ورته لري چې د لمانځه څخه فارغه سو مستحب دا دی چې امام او ټول خلق و مشعر الحرام غره ته ورسي چې جبل قزح هم ورته وايي چې د ملا علي القاري رحمه الله په زمانه کې دلته يوه بنا سوې کوټه هم وه نو به مخامخ قبلې ته ودريږي او خلق به راسته او چپه او شا طرفو ته ولاړ وي افضله خو پر جبل قزح درېدل دي يا ورنژدې نو به لاسونه پورته کړي ښه غوړونکي د ځانه څخه ازاده دعاوي به وکړي او ډېر ذکر به وکړي او خپل ټول حاجتونه به د خپل خدايه څخه وغواړي دا به د ده طريقه وي ترڅو چې رڼا کيږي په دونه اندازه سره چې سړی دوه رکعته لمونځ وکړي نو لمر راخيژي نو به راکښته سي او فضيلت منده دا ده چې درېدل به تر لمانځه بعد وي او که مخکي تر لمانځه وي هم جواز لري.

## فصل و منا ته د تللو اداب

فاذا فرغ من الوقوف و اسفر جدا فالسنة ان يفيض مع الاما قبل طلوع الشمس ولا شئ اه تقدم على الامام او تاخر عنه جاز و كذا لو دفع بعد طلوع الشمس فاذا دفع فليكن بالسكينة و الوقار شعاره التلبية و الاذكار فاذا بلغ بطن محسر لسرع قدر رمية حجر و ان كان ما شيا حرم دابته ان كان راكبا ثم خرج الى منى سالكا الطريق الوسطى التي تخرج لي العقبة.

متن و بعده شرح ملا علي القاري

هر كله چي د مزدلفې د درېدو څخه فارغه سو او رڼا سوه نو سنت طريقه دا ده چي د امام سره به راکښته سي تر لمرخاته دمخه نو به ومنا ته راسي كه لمر راختلى وي كه نه وي څرنګه چي ورته اساني وي حاصل د خبري دا دي چي سنت طريقه ورته دا ده چي په رڼا كي د مشعر الحرام څخه راکښته سي او كه لمر راوختى په مزدلفة كي پياهم د سنت څخه نه مخالف كيږي او تر امام دمخه يا وروسته کېدو سره هيڅ شى نه پر لازميږي او يا لمر راختلى وو امام ورسره وي او كه نه وي ورسره هيڅ نه پر لازميږي ليكن د سنت عمل په پرېښولو سره ګنهګاره کيږي حاصل د خبري دا دي چي د امام سره يوځاى د مزدلفې څخه راکښته کېدل سنت عمل دى او په عرفات كي خو ورسره يوځاى راکښته کېدل واجب دى نه دلته او بل د مزدلفې څخه راکښته کېدل به په ډيره ارامه او د وقار او عزت پر طريقه وي تلبيه ويونكي او ذكر كونكي به وي چي هغه بندي محسر شېلې ته ورسيږي تېز رفتار به كوي دونه اندازه چي سړى ډبره وغورځوي څونه اندازه رسيږي او كه سپور وو بيا به خپله دابه تيزوي دا مستحب عمل دى پر څلور سره مذهبو باندي جابر ﷺ وايي چي نبي العَلِيْلاً به دلته تيز رفتار كوى په موطاء كي ابن عمر ﷺ روايت كړى دى چي نبي العَلِيْلاً به د يو انسان د ډبري د ويشتلو په اندازه تيز رفتار كوى دې شېلې ته محسر وايي دلته اصحاب فيل بند سوه يا شيطان په كښي غم كوي يو كس په دغه شېله كي ښكار كوى اور د آسمانه څخه پرراغلى وې سوځوى نو د اور شېله هم ورته وايي او دلته به دا دعاء كوي چي خدايه په غضب كي موږ مه وژنه او هلاک كوه مو مه او عفوه راته وكړه نو به منا ته پر هغه مابين لاره ولاړ سي چي پر عقبه ورغلې ده كه ورته اسانه وه.

## فصل د مزدلفې څخه د شيطانانو دپاره ډبري وړل

ويستحب ان يرفع من المزدلفة سبع حصيات مثل النواة او الباقلاء وهو المختار و ان رفع من مزدلفة سبعين حصاة او من الطريق فهو جائز و قيل مستحب و يجوز اخذها من كل موضع الامن عند الجمرة و المسجد و مكان نجس فان فعل جاز وكره و يكره ان يأخذ حجرا كبيرا فيكسر صغارا ولو اخذها من غير مزدلفة جاز بلا كراهة و لو رمي كبارا او نجسا

جاز مع الكراهة و ندب غسلها.

متن و بعده شرح ملا علي القاري

مستحب طريقه دا ده چي ډبري د مزدلفې څخه د ځان سره را واخلي په مقدار د خرما د مندكي يا د شور باغلي يا لكه مردكه يا د نخود په اندازه باندي اووه دانې چي په اوله ورځ جمرة العقبة په وولي او كه يې اويا دانې د مزدلفې څخه يا د لاري څخه را ټولي كړې هم جواز لري بلكې قيل وايي مستحب كار هم دغه دی چي اويا دانې د ځان سره واخلي د مزدلفې څخه لكه بعضي مشائخ چي هم دغسي وايي او كرماني وايي دا مخالفت د سنت څخه دی زموږ د مذهب بدائع السبجابي التحفه كتابو داسي ظاهره كړې ده چي ډبري دي د مزدلفې څخه يا د لاري څخه واخلي مراد يې اووه دانې دي محيط او كافي بيا وايي د لاري څخه يې هم اخيستلای سي خلص مطلب دا دی چي د هره ځايه څخه يې را اخيستلای سي صرف د هغه ځلو څخه د شيطانانو يې را اخيستل مكروه عمل ځكه دی چي دا هغه ډبري دلته پاتيږي چي د كوم سړي حج نه وي قبول سوی ځكه چي حج يې قبول سوی وي هغه ډبري ملايكي پورته كوي دا بيا د قيامت په ورځ د ده د نيكۍ پلې ته په ترازو كي وراچوي او بل د مسجد خيف څخه دي ډبري نه وړي ځكه دا بې احترامي د مسجد ده چي په بې عزتي سره يې ډبري پر شيطانانو ورولي او بل مكروه عمل دا دی چي د مردار ځايه څخه به ډبري نه را ټولوي او كه يې داسي وكړه جواز لري او بل مكروه عمل دا دی چي غټي غټي ډبري د ځان سره اخلي او كه ډبري مرداري وي بيا يې پرېولل مستحب كار دی.

## باب مناسک منا

فاذا الی منی يوم النحر تجاوز عن الجمرة الاولی و الثانية الی جمرة العقبة وهی التی تلی مكة من غير ان يشتغل بشئ اخر قبل رميها بعد دخول وقتها ويقف في بطن الوادی و يجعل منی عن يمينه و الكعبة عن يساره و يستقبل الجمرة ثم يرميها بسبع حصيات يكبر مع كل حصاة و يدعو و يقطع التلبية باولها و كيفية الرمي ان يضع الحصاة علی ظهرها بهامه اليمني و يستعين عليها بالمسبحة و قيل ياخذ بطر في ابهامه و سبابة و هو الاصح و هذا بيان الاولوية و اما الجواز فلا يتقيد بهيئة بل يجوز كيفما كان الا انه لايجوز وضع الحصاة و يجوز طرحمها لكنه خلاف السنة و الافضل رمي جمرة العقبة راكبا وغيرها ماشيا من فوق العقبة جاز و كره و يستحب ان يكون بينه و بين الجمرة خمسة اذرع فاكثر و يسن ان يكبر مع كل حصاة ولو سبح او هلل و اتي بذكر غير هما مكان التكبير جاز و لو ترک الذكر فقد اساء و يستحب الرمي باليمني و يرفع يده حتی ير بياض ابطه و اذا فرغ من الرمي لايقف للدعاء عند هذه الجمرة في الايام كلها بل ينصرف داعيا

للدعاء عند هذه الجمرة في الايام كلها بل ينصرف داعيا و لا يرمي يومئذ غيرها.
متن و بعده ترجمة و شرح ملا علي القاري

پوه سه حاجي صاحب چي منا يوه اوږده غونډۍ ده چي اوږدواله يې اته زره گزه دی او بر يې کم دی غرونه پر راگرځيدلي دي مخامخ چي ورته کوم غر دی په منا کي داخل دی او جمرة العقبه نه ده په کښي داخل ارشاد الساري ليکلي دي چي دا هغه جمرة ده چي د مکي مکرمي طرف ته ده چي په نامه د جمرة الکبرٰی يا جمرة الاخيرة ده امام النووي ذکر کړي دي چي اندازه د منا د محسر شيلي څخه شروع کيږي بيا تر جمرة العقبه پوري ده چي په اوږدواله منا دوه ميله معنا اته زره گزه ده او بر يې کم دی او مخامخ و منا ته غر په کښي داخل دی او د شا غرونه ورځخه وتلي دي او مسجد الخيف څلور زره گزه ورځخه ليري دی د مکي د طرف څخه نو جمرة العقبه د منا په آخر کي ده د مکي طرف ته ده د منا څخه خارج ده او دا هغه جمرة العقبه ده چي نبي ﷺ د انصارو سره بيعت دلته وکړی د جمرة العقبه څخه بيا تر محسر شيلي پوري اووه زره او دوه سوه گزه منطقه ده چي اوږدواله د منا جوړوي او بل منا يو څو خصوصيات هم لري:

۱: د دغه ځايه څخه بانبی غوبنی نه وړي.
۲: دلته په طعام کي مچ نه واقع کيږي.
۳: او بل ستر گو کي کوچنی ده مگر ټوله حاجيان ځايوي.
۴: او بل غوماشي په کښي په نيست شمار دي.

لکه په دغه بيان کي لاندي ابيات هم ويل سوي دي چي معنا يې تېره سوه:
و ای منا خمس فمنها اتساعها

الحجاج بيت الله لو جاوزوا الحدا
و منع حداة خطف لحم بارضها

و قلة وجدان البعوض بها عدا

او زموږ د قبلې د تاريخ همت صاحب د منا اوږدواله ۳۵۲۸ ميتره ښوولي دي ص ۳۵۴.

په ورځ د اختر چي و منا ته ورسي د عرفات تر درېدلو پس نو به تر جمرة الاول تېر سي کوم چي د مسجد الخيف سره نژدې دی او دويم چي جمرة الثانية ده ته نژدې ده پر طرف د مکي مکرمي اول شغل به د ده دلته ويشتل وي که يې وخت داخل وو د جواز وخت يې سهار دی مستحب وخت يې تر لمرخاته بعد دی او بل د جواز وخت يې زوال دی مکروه وخت يې شپه ده په هغه شپله کي به ودرېږي منا به د ده راسته طرف ته او کعبه به د ده چپه

طرف ته وي مخامخ به جمرې معنا ځلي ته د شیطان ودریږي په اووه ډبرو به يې وولي جلا جلا به هره ډبره ور غورځوي او د هرې ډبرې د غورځولو سره به الله اکبر وايي او د اول ويشتلو سره به تلبيه پریږدي او داسي دعا به کوي:

بسم الله الله اکبر رغما للشيطان و رضا للرحمن اللهم اجعله حجا مبرورا و سعيا مشكورا و ذنبا مغفورا.

او طريقه مستحبه د ويشتلو د ځلو دا ده چي ډبره به د راسته لاس د غټي بټي ګوتي د نوک پر شا کښېږدي او په هغه بله ګوته به دا نوک ټينګ کړي نو به ډبره ور خطا کړي اسانه او صحيح طريقه دغه ده اګر که يې ويشتل په هره طريقه جواز لري او فضيلت منده طريقه دا ده چي جمرة العقبه په سپرتيا سره وولي او هغه نور به پياده وولي مستحب طريقه دا ده چي د ده او ځلي تر مابين پنځه ګزه منطقه وي يا زياته او اينبول جواز نه لري وربانديي او که د الله اکبر پر ځاى بل ذکر وکړي لکه سبحان الله يا الحمدلله هم جواز لري او که يې هيڅ و نه ويل مکروه کار دى ګناهګاره کيږي ځکه د نبي ﷺ سنت يې پرېښول او مستحب ويشتل په راسته لاس سره دى او لاس به د تيخرګ څخه جلا کوي دونه چي تيخرګ سپين والى يې معلوم کېداى سي چي د ويشتلو څخه فارغه سو بيا به د دعا دپاره هيڅ نه دريږي دا حکم د ټولو ويشتلو دپاره دى ځکه ازدحام د خلقو زيات وي ضرر د ريږي په دغه ورځ به د جمرة عقبه څخه بغير بل ځلى نه ولي باقي احکام شرطونه او واجبات به په مستقل مستقل فصل کي درته رالسي.

## فصل د تلبيې د پرېښولو مقام

يقطع التلبية مع اول حصاة يرميها من جمرة العقبة في الحج الصحيح و الفاسد سواء كان مفردا او متمتعا او قارنا و قيل لا يقطع التلبية الا بعد الزوال و لو حلق قبل الرمي و الحلق و الذبح قطعها و ان لم يرم حتى زالت الشمس لم يقطعها حتى يرمي الا ان تغيب الشمس يوم النحر فحينئذ و لو ذبح قبل الرمي فان كان قارنا او متمتعا قطع و ان كان مفردا لا.

متن و بعده ترجمة و شرح ملا علي القاري

هر کله چي حاجي صاحب جمرة العقبه په ډبرو وويشتل نو به تلبيه ويل بس کړي معنا د اولي ډبري سره به تلبيه پرېږدي عامه خبره ده حج يې صحيح وي او که يې حج فاسد وي حاجي مفرد وي که حاجي متمتع او که حاجي قارن وي دا روايت صحيح دى قاضيخان او طرابلسي هم داسي نقل کړي دي بل روايت قيل نقل کړي دي چي تلبيه به تر زوال بعد پرېږدي لکه په محيط کي چي نقل سوي دي نو دا قول د هغه چا دپاره دى کوم حاجي چي تر زوال دمخه جمره العقبة نه وي ويشتلې نو په زوال کي چي ويشتل کوي تلبيه به پرېږدي

اگرچې سنت خو تر زوال مخکې ويشتل دی او که گرسره جمرة و نه ولي بيا يې د تلبيې د ويلو جواز تر اخيره پوري د عمر سته او دا قول بنا دی پر مذهب د امام ابو يوسف رحمه الله او بل شارح المجمع د محيط څخه داسې قول نقل کړی دی چې قارن حاجي به هغه وخت تلبيه پرېږدي چې په دويم طواف يې شروع وکړه نو دلته داسې فکر کوه چې خطا نه سې دلته هغه حاجي قارن مراد دی چې پر عرفات و نه دريږي نو حج ورڅخه ولاړی نو به عمره پوره کړي هر کله چې يې په طواف د عمرې شروع وکړه تلبيه به پرېږدي ځکه د عمره کونکي د پاره خو د جمرې ويشتل نسته که يو حاجي سر وخروی باره يې جمرة العقبه وويشتل نو به دی هم د رمې سره معنا د ويشتلو سره تلبيه پرېږدي په اتفاق سره او که يې طواف الزيارت تر ويشتلو د جمرې او سر خريلو دمخه وکړی نو د امام اعظم رحمه الله او امام محمد رحمه الله پر مذهب به تر طواف بعد د ويشتلو سره د جمرې تلبيه قطع کوي او امام ابو يوسف رحمه الله وايي ترڅو چې سر يې نه وي خريلی تلبيه به د اختر تر مازيگره پوري وايي او که يو حاجي د اختر په ورځ ويشتل و نه کړه حتی چې لمر ولوېدی غيب سو تلبيه به هم تر دغه وخته پوري وايي چې لمر ولوېدی تلبيه به پرېږدي دا د امام اعظم رحمه الله مذهب دی دا د جواز مسئله ده اگرچې سنت طريقه ورڅخه پاته سوې ده د امام محمد رحمه الله څخه درې روايتونه سوي دي خو ظاهره او اصلي روايت يې د امام اعظم رحمه الله سره موافق دی او که حاجي قرباني تر ويشتلو دمخه حلاله کړه نو که قارن يا متمتع حاجي وو تلبيه به قطع کړي او که حاجي مفرد وو بيا دي د امام اعظم رحمه الله پر مذهب او د محمد رحمه الله پر مذهب نه پرېږدي تلبيه ترڅو چې رمې معنا د ځلي ويشتل يې نه وي کړي.

بلغ العلی بکماله کشف الدجی بجماله
حسنت جميع خصاله صلو عليه و اله

## فصل قرباني كله حلالېږي

فاذا فرغ من رمي جمرة العقبة يوم النحر انصرف الى رحله و لا يشتغل بشئ اخر ثم ان كان مفردا يستحب له الذبح فيذبح و يحلق و ان كان قارنا اى متمتعا يجب عليه الذبح و الا فالصوم و تقديم الذبح على الحلق واجب عليهما و مستحب للمفرد و الافضل ان يذبح بنفسه ان كان يحسن ذلک والا يستحب له الحضور عن الذبح و يدعو قبل الذبح او بعده و يكره الدعاء بين التسمية و الذبح و لا يحتاج الى النية عند الذبح و يكفيه النية السابقة و كلما كان الهدى اعظم و لسمن فهو افضل و يستحب كون الشاة بيضاء و قيل قوائمها و رأسها لسود و سائرها ابيض و يستحب ان يكون مذبحها او منحرها مستقبل القبلة.

متن و بعده ترجمة و شرح ملا علي القاري

حاجي چي هر کله د جمرة العقبه د ځلي د ويشتلو څخه د اختر په ورځ فارغه سو په
بل هيڅ يو کار به نه مشغوله کيږي بغير د ذبحي څخه نه به رانيول نه به خرڅول او يا بل بلا
ضرورته کار به نه کوي اوس که حاجي مفرد وو نو مستحب ورلره دا دی چي اول ذبحه
وکړي باره سر وخريي او که يې سر وخريل باره يې قرباني حلاله کړه شی نسته وربانديي او
که حاجي قارن يا متمتع وو قرباني وربانديي واجب ده که يې قدرت د قيمت يا حيوان د
قربانۍ درلود او که يې قدرت نه وو بيا لس روژې پر لازميږي چي دري به تر اختر دمخه
نيسي چي دريمه روژه يې د عرفات په ورځ ده او اووه روژې چي د حج څخه فارغ سو خپل
کور ته چي را روانيدی نيسي به يې او که يې روژې و نه نيولې او يا يې روژې هغه دري
پوره کړې باره يې قدرت د قربانۍ پيدا کړی هم قربانۍ پر واجب ده او که حاجي مفرد وو بيا
قرباني يې مستحب عمل دی که فرضي وي که نفلي.

د قربانۍ د حلالولو مستحب کار دا دی چي پخپله يې حلاله کړي که يې زده وه او
که يې زده نه وه بل به امر کړي ليکن ورته درېدل مستحب کار دی د حلال دمخه يا وروسته
به دا دعاء وايي:

اللهم انی وجهت وجهي للذي فطر السموات والارض حنيفا و ما انا من المشرکين ان
صلاتی و نسکی و محيای و مماتی لله رب العالمين لا شريک له و بذلک امرت و انا من
المسلمين اللهم تقبل منی هذا النسک او هذا الاضحيه واجعلها قربانا لوجهک و عظم اجری عليها.

ژباړه: اې پروردګاره زه مخامخ يم هغه ذات ته چي آسمانونه او مځکي يې پيدا
کړي دي او زه پر حق دين يم، نه يم د مشرکانو څخه زما لمونځونه او افعال د حج او ژوند او
مرګ ټوله رب العالمين لره دي چي شريک نه لري او زه يې په دغه قربانۍ سره امر کړی يم
او زه د مسلمانانو څخه يم ياالله راڅخه قبول يې که زما د طرفه څخه دا افعال د حج او د
قربانۍ او دا قرباني خپل د رضا دپاره وګرځوه او اجر او ثواب مي وربانديي ډېر کړي.

او دا دعا ويل د بسم الله الله اکبر او حلالولو تر مابين مکروه عمل دی او بل حلالول
نيت نه لري په وخت د حلال کي بلکې هغه نيت يې کافي دی او بله مسئله دا ده چي هر څونه
د قربانۍ قيمت ډېر وي او چاغ وي بهتره او مستحب دی او بل مستحب دا دی چي يو داسي
پسه رانيسي چي سپين وي خو پښې او سر يې تور وي او بل مستحب دا دی چي يو خو به
مخ پر قبله وي بل به يې چاړه تېره وي او بل د ويني تويولو دپاره کنده جوړه کړي او بل به د
قربانۍ دري پښې دوې د مخ او يوه د شا د طرف څخه وتړي نو چاړه په لاس به کي مخ پر
قبله ودريږي لکه پر لمانځه چي احرام بنده کيږي او په چپه لاس به خپله قرباني ټينګه کړي
او سترګي به د قربانۍ پټي کړي کوم طرف چي حلالونکي ته په ګوري نو به چاړه د حيوان

د حلال پر ځای کښېږدي په تلواري به يې حلال کړي او د چاړې د اېښولو په وخت کې به دلسي وايي بسم الله الله اکبر نو به چاړه پر راکش کړي ځلور شيان به ورڅخه پرې کړي دوه خو رګونه دي چې يو د کرغنکي پر راسته بل پر چپه طرف د ويني رګونه دي او دريم کرغنکه چې وابنه په کښې تيريږي او بل مرۍ ده چې ساه وربانديي اخلي دا دوه په ستوني کې دي وار خطا نه سي د ځلورو امامانو طريقه دا ده چې او کله چې حلال سو پښې به يې ايله کوي نو به د دعا دپاره دريږي چې خدای جل جلاله يې ستا څخه او د ټولو مسلمانانو څخه قبول کړي.

## فصل تر قرباني بعد به سر خريي يا به يې لنډوي

فاذا فرغ من الذبح حلق و ستقبل القبلة للحلق و يبدء بالجانب الايمن من راس المحلوق هو المختار و يدعو له و لوالديه و لمشائخه و يدفن ما حلق او قصر و هو مستحب و يستحب بعده اخذ الشارب و قص الظفر و لو قص اظفاره او شاربه او لحيته او طيب قبل الحلق فعليه موجب جناية و السنة حلق جميع الراس او تقصير جميعه و ان اقتصر على الربع جاز مع الكراهة و هو اقل الواجب في الحلق و اما التقصير فاقله قدرا نملة من شعر ربع الراس و الحلق مسنون للرجال و مكروه للنساء و التقصير مباح لهن و مسنون بل واجب لهن و من لا شعر له على راسه يجرى الموسى على راسه وجوبا هو المختار و قيل استحبابا و لو ازال الشعر بالنورة بفعله او بفعل غيره اجرا عن الحلق و لو تعذر الحلق لعارض تعين التقصير او التقصير تعين الحلق سقطا عنه وحل بلا شئ و الاحسن ان يؤخر الاحلال الى اخر ايام النحر و ان لم يؤخره فلا شئ عليه و لو خرج الى البادية فلم يجل الة او من يحلقه لا يجزئه الا الحلق او التقصير و اذا حلق راسه او راس غيره عند جواز التحلل لم يلزمه شئ.

متن وبعده ترجمة وشرح ملا علي القاري

هر کله چې حاجي د قرباني د حلالولو څخه فارغ سو نو به مخامخ قبلې ته کښېني سر به وخريي او اول شروع به د راسته طرف څخه کوي مختاره مذهب دا دی لکه منسک د ابن العجمي او البحر چې ويلي دي او النخبة کتاب دغه قول ته صحيح ويلي دي او امام اعظم رحمه الله هم دغه مذهب ته رجوع کړې ده اګرچې اکثره مشائخ دا مشهوره بولي چې معتبره د هغه کس راسته طرف دی چې د حاجي سر خريي نو د حاجي دپاره د سر چپه طرف کيږي او که حاجي او هغه سر خريونکی دواړه مخامخ قبلې ته کښېني او د حاجي راسته طرف سر مخکې وخريي نو د خلافه څخه به خبره ووځي طريقه به کامله سي ليکن غوره عمل په حديث دی ځکه نبي عليه السلام د مبارک سر خريل د راسته طرف څخه شروع کړل

علاوه لا ده چي نبي ﷺ په هر شي کي شروع د راسته اندام څخه خوښول او د امام شافعي رحمه الله او زمونږ د بعضي احنافو او سروجي هم دغه مذهب دی نو اوس چاره د مخالفت لاره پیدا نه سوه چي راسته طرف د حاجي مراد دی نه د خریونکي هرکله چي حاجي د سر خریلو اراده وکړه نو به اوبه را واخلي د سر د مخ طرف به لوند کړي او دا مستحب طریقه ده نو به دعا وکړي هغه دا ده:

الحمدلله علی ما هدانا و انعم علینا و قضی عنا نسکنا اللهم هذه ناصیتی بیدک فاجعل لی بکل شعرة نورا یوم القیامة وامح عنی بها سیئة و ارفع لی بها درجة فی الجنة العالیة اللهم بارک فی نفسی و تقبل منی اللهم اغفرلی و للمحلقین و المقصرین یا واسع المغفرة امین.

ژباړه: ثناوي او صفتونه دي هغه ذات لره وي چي مونږ ته یې هدایت کړی دی او پر مونږ یې نعمت کړی دی او پر مونږ یې د حج افعال لازم کړي دي اې خدایه زما تندي ستا په قدرت کېدی نو زما هر وېښته نور وګرځوې په ورځ د قیامت کي او زما ګنهونه په خراب کړې او زما درجې په جنت کي په لوړي کړې یاالله ته زما په ذات کي برکت واچوې او زما څخه یې قبول کړې او بخښنه و ماته او تېوله هغه کسانو ته چي سرونه خریي یا یې لنډوي ورته وکړه اې د لوی مغفرت خاونده امین معنا خدایه قبول یې کړې.

دلته به و خپلو والدینو استاذانو او پیرانو ته هم دعا کوي ځکه د ده تربیه یې کړې ده او تر سر خریلو دمخه او بعد به الله اکبر وایي ځکه دا ورځي د تشریق معنا د الله کبر دي مستحب طریقه دا ده چي سر وخریي او که یې لنډ کړي وېښتان به په مځکه کي پټوي ځکه دا د انسان اجزاء دي په دغه ورځ سنت عمل صرف د سر خریل او یا لنډول دي او که نوکان واخلي یا ږیره د قبضې په مقدار لنډه کړي او بریتونه لنډ کړي بیا تاوان نه لري اګرچي زیلعي ورته مستحب ویلي دي او که یې بریتونه لنډول یا یې نوکان اخیستل نو مستحب طریقه دا ده چي تر سر خریلو به بعد وي او که یې بریتونه لنډ کړه یا یې نوکان واخیستل او یا یې ځان خوشبویه کړی بیا یې جنایت وکړی کفاره پر لازمیږي ځکه د ده احرام لا تر اوسه باقي دی د احرام څخه د سر په خریلو وزي یا لنډولو سره محیط لیکلي دي که یې نوکان واخیستل یا یې سر په خوشبویه شي پرېولی دم پر لازمیږي ځکه د ده احرام لا تر اوسه پوري باقي دی او دا قول د امام اعظم رحمه الله دی او اصح هم دی اګرچي بعضي علماء دم نه پر لازموي او الجصاص وایي ما خلاف نه دی په کښي لیدلی صحیح دا ده چي دم پر لازمیږي ځکه خریل یا لنډول د سر واجب عمل دی نو ځان حلالول بغیر د دغه دواړو څخه په بل شي سره نه راځي او هغه نه دی موجود سوی نو احرام باقي دی او که سر هم د

خريلو دپاره په خوشبويه شي سره پرېولي لا دم پر لازميږي او سنت طريقه دا ده چي ټوله سر به خريي او يا به ټوله سر لنډوي او که يې څلورمه وخريل يا يې لنډ کړې جواز خو لري ليکن عمل يې مکروه دی ځکه سنت کار يې پرېښود صرف يې په واجب قدر عمل وکړ چي کمه درجه يې څلورمه د سر ده نو معلوم سو چي کامل واجب هغه دی چي ټوله سر وخريي يا يې لنډ کړي.

ارشاد الساري ليکلي دي چي ابن الهمام مختاره کړې ده دا چي د درې امامانو پر مذهب باندي مقدار د مسحي په اوداسه کي چي فرض دی په هغه مقدار سر خريل هم دلته واجب دی چي د امام اعظم رحمه الله پر مذهب څلورمه د سر مسح فرض ده او د امام شافعي رحمه الله پر مذهب مقدار د درې ويښتو او د امام مالک رحمه الله پر مذهب د ټوله سر مسح فرض ده په اوداسه کي ليکن دا قياس د خريلو پر مسحي صحت نه لري ځکه تر مابين مناسبت نه لري نو چي قياس صحت پيدا نه کړي ور به سو حديث ته چي نبي عليه السلام ټوله سر خريلی دی او بل به د اختلاف څخه د امامانو هم سرې ووزي والسلام.

د سر د لنډولو اندازه د لاسو د ګوتو د سرو په اندازه د يوه بند قدر دی د څلورمې حصې څخه د سر ليکن سنت طريقه نرانو ته خريل دی او ښځو ته خريل مکروه او لنډول ورته مباح بلکه سنت کار دی ځکه نبي عليه السلام دغه طريقه خوښه کړې ده د ښځو دپاره علاوه لا دا ده چي واجب دی ښځو لره ځکه د سر خريل يې حرام کار ذی نو به ضرور سر لنډوي اوس که يو شخص خپل د سر ويښتان په موی پاک يا خاوره شوه کړه هم د سر خريلو حکم لري که پخپله دا کار وکړي يا بل سړي يې ورته وکړي فرق نه لري او که سر خريل نه سوای کېدای عذر وو يا نو لنډول ورته واجب دی يا يې لنډول نه سوه کېدای يا يې خريل لازم دی او که دواړه نه سوای کېدای يا ورڅخه ساقطيږي شی هم نه پر لازميږي ځکه واجب د عذر په وجه ورڅخه پاته سو که عذر وو يا نبه کار دا دی چي د اختر تر اخيري ورځي پوري خريل وځنډوي باره به ځان حلال کړي او که ووتی صحرا ته د چارې دپاره نو لازمه چي سر به خريي او که بل حاجي ځان حلال کړی نو د ده سر هم خريلای سي.

## فصل د سر خريلو زمانه ځای د جواز شرطونه او حکم يې

يختص حلق الحاج بالزمان و المكان و حلق المعتمر بالمكان فالزمان ايام النحر الثلاثة و المكان الحرم و التخصيص للتضمين لا للتحلل فلو حلق او قصر في غير ما توقت به لزمه الدم و لكن يحصل به التحلل في اي مكان و زمان اتي به بعد دخول وقته و اول وقت صحة الحلق في الحج طلوع الفجر يوم النحر و وقت جوازه بلا جابر بعد رمي جمرة العقبة لان قبله موجب للدم عند ابي حنيفة و اخر وقت الوجوب غروب الشمس من

اخر ايام النحر و لا اخر له في حق التحلل و اول وقت صحته في العمرة بعد اكثر طوافها و اول وقت حله بعد السعي لها فشرط وقوع الحلق معتبر فعله بعد طلوع فجر النحر في الحج و اتيان اكثر الطواف في العمره و ذبح الهدى في الحرم في المحصر و حكم الحلق التحلل فيباح به جميع ما حظر بالاحرام من الطيب والصيد و ليس المخيط و غير ذلک الا الجماع و دواعيه فانه و توابعه يتوقف حله على الطواف و لكن ان وجد بعد الحلق و ان طاف قبل الحلق لم يحل له النساء لغيرها.

متن و بعده شرح ملا علي القاري

د حاجي د سر خريلو دپاره زمانه او ځاى خاص والى لري د امام اعظم رحمه الله پر مذهب باندي په يوه پوري تخصيص نه لري لکه د امام ابو يوسف رحمه الله هم دغسي مذهب دى هدايې او شرح الجامع وغيره کتابو ذکر کړي دي او کرماني او سروجي بيا د ابو يوسف رحمه الله مذهب داسي ذکر کړي دي چي په زمانه پوري خاص نه دى نه په مکان پوري او په نزد د امام محمد رحمه الله پر مذهب تخصيص په مکان پوري لري او په نزد د زفر رحمه الله په زمانه پوري تخصيص لري نه په مکان پوري او عمره کونکي سر خريل بيا د امام اعظم رحمه الله او محمد رحمه الله پر مذهب پر مکان پوري تخصيص لري او د ابو يوسف رحمه الله او زفر رحمه الله پر مذهب مکان په کښي شرط نه دى او زمانه ورلره په اتفاق سره د ټولو ورلره شرط نه ده نو زمانه د سر خريلو حاجي لره دريم ورځي د اختر دي سره د شپو او ځاى د خريلو د حاجي او عمره کونکي دپاره حرم شريف دى او دا وخت چي ورلره خاص ګرځېدلى دى وجه دا ده که بل وخت يا بل ځاى د دغه متعين مقام او زماني څخه سر وخريي بيا نو دم پر لازميږي اګرچي حاجي د احرام څخه په وځي اول وخت د سر خريلو د حاجي دپاره د اختر سهار وختي دى ورروسته تر ويشتلو د اول ځلي د شيطان دا يې د جواز صورت دى د امام اعظم رحمه الله پرمذهب باندي او اخيري وخت د سر خريلو د وجوب په صورت کي چي د دريمي ورځي لمر نه وي لوېدلى اګرچي اخير خو نه لري د جواز په صورت کي اول وخت د سر خريلو په عمره کي چي اکثره طواف وکړي او د جواز دپاره يې اول وخت چي د صفا او مروا تر مابين يې سعي وکړه او شرط د سر خريلو په واقع کيدو کي معتبر د حاجي کار دى او اکثره طواف په عمره کي دى او که حاجي يا عمره کونکي د حج يا عمري څخه بندي سو بيا به هلته ځان حلالوي چي د ده هديه په حرم کي بل کس ورته حلال کړه باره دى د احرام څخه وزي خو وخت به معلوموي او حکم د سر خريلو دا دى چي سري سر وخريل نو بس حلال سو نو اوس هغه شيان چي د احرام په وجه پر حرام ګرځيدلي وه اوس ورته حلال سوه لکه په احرام کي خوشبويي ښکار او ګنډلي کالي ورته حرام وه اوس چي د احرام څخه ووتى

دا شیان ورته حلال دي او هرکله چي يې طواف وکړی باره د خپلي ښځي سره وطي کولای سي معنا تر طواف زيارت مخکي جواز وطي نه ورته لري او که د طواف زيارت تر ويشتلو د ځلو د شيطانانو مخکي هم سرې وکړي بياهم د ښځي سره يې يوځای کېدل جواز نه لري ترڅو چي اول ځلی يې ويشتلی نه وي او سر يې خريلی نه وي حاصل د مطلب دا سو چي د احرام څخه زموږ پر مذهب نه وزي ترڅو پوري چي سر و نه خريي او يا يې لنډ کړی نه وي او د شيطان ويشتل هم سرې نه په حلاليږي صرف د سر خريلو قدر حلاليږي معنا بل شی ورته جواز نه لري لکه کالي اغوستل يا عطر استعمالول او که يې سر وخريل باره يې ځلی د شيطان وويشتل نو په اتفاق سره د احرام څخه وزي.

## باب طواف الزيارت

فاذا فرغ من الرمي و الذبح و الحلق يوم النحر فالافضل ان يطوف للفرض في يومه ذلک والا ففي الثاني او الثالث ثم لا فضيلة بل الكراهة فادخل المسجد بدا بالطواف فيطوف سبعة اشواط بلا رمل فيه و سعي بعده ان قدمهما و الا رمل فيه و سعي بعده و ان قدم السعي لا الرمل سقط الرمل و اما الاضطباع فساقط مطلقا في هذه الطواف ثم بعد الطواف صلى ركعتين عند المقام وهو الافضل او غيره ثم خرج للسعي ان لم يقدمه فيسعي كما مر و سقوط السعي و الرمل مقيد بما اذا اتي به في الطواف كامل و الا فلو طاف للقدوم جنبا او محدثا و رمل فيه و سعي بعده فعليه أعادتهما في الحديث ندبا و في الجنابة اعادة السعي حتما و الرمل سنة و اذا طاف حل له النساء ايضا و هذا الطواف هو المفروض في الحج ولا يتم الحج الابه و الفرض منه اربعة اشواط و ما زاد فواجب.

متن و بعده ترجمة وشرح ملا علي القاري

حاجي چي هرکله د ځلي د ويشتلو او حلالولو څخه د قرباني او سر خريلو فارغه سو په ترتيب سره يا بغير د ترتيب څخه په ورځ د اختر کي نو په اوله ورځ د اختر کي فضيلت دا لري په اتفاق سره د علماؤ چي بيت الله شريفي ته رلسي او طواف زيارت وکړي او که اوله ورځ نه سوه برابره بيا فضيلت دويمي ورځي ته نقل کيږي بيا دريمي ورځي ته او د دغه ورځو شپې هم دغسي په ترتيب سره يو پر بله فضيلت لري او که تر دريمي ورځخه وځنډېدی او عذر هم نه وو بيا يې ځنډول مکروه کار دی دم پر لازميږي ځکه ده حرام کار وکړی د امام اعظم رحمه الله پر مذهب باندي او د يارانو پر مذهب مکروه دی خو تنزيهي او که عذر وو لکه ښځه چي په مرض کي وي ورڅخه وځنډېدی بيا هيڅ پروا نه لري چي مسجد حرام ته پر باب السلام داخل سو لکه بيان چي يې تېر سوی دی نو به په طواف شروع وکړي نه په لمانځه مگر هغه لمونځونه وه چي بيان يې تير سوی دی نو به اووه شوطه طواف

وکړي اوړي بنوروول او سعيه د صفا او مروا نسته وربانديي په دې شرط سره که بې مخکي کړي وه ځکه دا دوه عمله يو وار مشروع دي بيا دويم کرت جواز نه لري او که بې مخکي نه وه کړي بيا به په دغه طواف کي په درو شوطو کي اوږي بنوروي او بيا تر طواف بعد به سعيه کوي او که بې تر طواف دمخه د صفا او مروا سعيه کړې وه او اوږې بې نه وې بنورولي بيا نو اوس هم اوږې بنورول نسته ورڅخه ساقط سوه او په دغه طواف زيارت کي د اوږې لځول نسته عامه خبره ده که بې سعيه مخکي کړې وي او که بې نه وي کړې وروسته بې کوي کالي بې اغوستي وي که صرف احرام وي دلايل بې تېر سوي دي طواف زيارت چي بې پوره کړي نو به دوه رکعته واجب لمونځ د طواف د مقام ابراهيم سره وکړي او فضيلت دا ځای لري يا هغه ځايونه چي بيان بې تېر سوی دی طواف زيارت چي خلاص سو نو به حجر اسود مسحه کړي د صفا لوري ته به د سعي دپاره روان سي که بې مخکي نه وه کړې قانون دا دی چي سعيه او د اوږو بنورول دا قيد لري چي د کامل طواف څخه به بعد کيږي سعي او د اوږو بنورول په کامل طواف کي نو اوس خبره واضح سوه که بې طواف قدوم په بې اودسۍ سره يا په جنابت سره کړی وو او اوږې بې هم په کښې بنورولي وې او تر طواف بعد بې سعيه هم کړې وه اعتبار نه لري نو به په طواف زيارت کي د دويم وار دپاره اوږې بنوروي او تر طواف زيارت بعد به سعيه کوي خو ياد ساته چي مخکي بې طواف قدوم په بې اودسۍ سره کړی وي په طواف زيارت کي بې راګرځول مستحب کار دی او که بې طواف قدوم په جنابت کي کړی وي بيا بې راګرځول په طواف زيارت کي د سعي راګرځول واجب دی او د اوږو بنورول بې سنت عمل دی حاصل دا دی چي د اوږو بنورول د طواف تابع دی معنا سنت دی تابع کول بې يا واجب يا د سنت طواف دپاره هرکله چي طواف زيارت بې وکړی نو اوس د ښځي سره وطي هم ورته روا سوې حاصل د مطلب دا دی چي د طواف زيارت څخه فارغه سو نو اوس ټوله هغه شيان چي د احرام په وجه پر حرام سوي وه ورته حلال وګرځېدل که د ښځي سره وطي دي او که نور خو دا حلالوالی په هغه مخکي سر خريلو سره نه په طواف زيارت سره ځکه د احرام حلالونکی طواف نه دی بلکې سر خريل دی ليکن د سر خريلو عمل خپل بعضي احکام تر طواف زيارت پوري وځنډول چي طواف زيارت بې وکړی باره هغه شيان هم ورته حلال سوه علاوه لا داده چي په حج کي دوه شيان احرام حلالوي يو سر خريل چي بغير د ښځو د وطي څخه نور هرڅه ورته جواز لري او بل حلالونکی طواف زيارت دی چي دا بيا ښځه هم سړي ته حلالوي ليکن په تاثير سره د اول حلال ځکه دليل دا دی که يو څوک اول طواف زيارت وکړي هيڅ شی ورته حلال نه دی ترڅو پوري چي سر و نه خريي او سعيه خو د واجباتو څخه ده زموږ پر مذهب په دې سره

سړی نه حلالیږي اګرچي شافعي رحمه الله یې فرض د حج بولي او طواف زیارت په حج کې فرض دی ترڅو پوري چي طواف زیارت و نه کړي حج یې نه پوره کیږي ځکه د ټولو علماؤ په اجماع سره دا فرض او رکن د حج دی او په طواف زیارت کي څلور اول شوطونه فرض دي باقي دري یې واجب دي.

## فصل اول وخت د طواف زیارت

اول وقت طواف الزیارة طلوع الفجر الثاني من یوم النحر فلا یصح قبله ولا اخر له في حق الصحت فلو اتي به و لو بعد سنین صح و لکن یجب فعله في ایام النحر فلو اخره عنها و لو الی اخر ایام التشریق لزمه دم.

متن و بعده ترجمة و شرح

اول وخت د طواف زیارت د اختر د سهاره څخه شروع کیږي او اخیر یې پای نه لري هر څو کلونه پس چي یې ادا کړي صحت خو لري لیکن واجب کېدل یې په ورځو د اختر کېدی یا په شپو کي د اختر د امام صاحب پر مذهب بلکې په اجماع سره د علماؤ په کنبي سنت دی او ځنډول یې د اختر تر شپو حرام کار دی او که یې بې علمه عذره وځنډوی د اختر تر ورځو بیا دم پر لازمیږي د اختر د ورځو څخه څلوړ ورځي مرادیږي لکه د اختر ورځ او دري ورځي تر اختر بعد چي ایام تشریق هم ورته ویل کیږي په عربي کي او فتوٰی هم پر دغه ده چي تر دغه څلورو ورځو طواف زیارت وځنډوي دم پر لازمیږي مبسوط قاضیخان بدائع او الکافي وغیره کتابو هم فتوا پر کړې ده او صحیح هم دغه مذهب دی.

## فصل د طواف زیارت د صحت شرطونه

شرائط صحة الطواف الاسلام و تقدیم الاحرام و الوقوف و النیة اتیان اکثره و الزمان و هو یوم النحر و ما بعده و المکان وهو حول البیت داخل المسجد و کونه بنفسه ولو محمولا فلا تجوز انیابة الا للمغمي علیه قبل الاحرام و اما العقل و البلوغ و الحریة فلیس بشرط و واجباته المشي للقادر و التیامن و اتمام السبعة و الطهارة عن الحدث و ستر العورة و فعله في ایام النحر و اما ترتیب بینه و بین الرمي و الحلق فسنة و لیس بواجب و لا مفسد للطواف و لا فوات قبل الممات و لا یجزي عنه البدل الا اذا مات بعد الوقوف بعرفة و اوصي باتمام الحج تجب البدنة لطواف الزیارة و جاز حجه.

متن و بعده ترجمة و شرح ملا علي القاري

د طواف زیارت هغه شرطونه دلته بیانیږي چي دا شرطونه ټول په حاجي کي وي بیا یې طواف زیارت جواز لري او که دا شرطونه نه وه په کنبي بیا یې طواف زیارت جواز نه لري اول د دغه شرطو څخه اسلام دی او بل ترمخ احرام تړل دی د حج دپاره او بل شرط یې اول پر عرفات

درېدل دی او بل نيت دی او بل اکثره طواف کول دي دلته دا خبره چي دا رکن دی نه شرط او بل شرط يې کول دي په خپل وخت کي چي ورځ د اختر يا وروسته ورځ ده اگر که تر اخيره پورې د عمر وي او بل شرط يې داخل په مسجد حرام کي پر بيت الله طواف کول دي اگر که پر بامو يې طواف وکړي هم جواز لري لکه اوس چي دويم او دريم او څلورم چتونه د طواف دپاره جوړ سوي دي خو شرط دا دی چي بيت الله به معلوميږي پټه به نه وي ورځخه او بل شرط دا دی چي طواف به پخپله کوي او دا رکن دی په حج کي د طواف دپاره اگر که د بل په شا وي عذر لري او که يې له عذره ځخه وي مطلب دا سو چي بل څوک د ده پر ځای طواف نه سي کولای مگر د هغه چا دپاره يې نيابة کولای سي چي د احرام ځخه پيا تر دغه وخته بېسده وي نو د بېسده دپاره طواف روا دی چي بل څوک يې د ده دپاره وکړي امر يې ورته کړی وي او که يې نه وي ورته کړی او عقل بلوغ او حر والی د طواف دپاره شرط نه دی نو پر کوچني او لېوني او کافر طواف واجب نه دی ليکن پر مريي واجب دی او واجبات د طواف زيارت چي دي هغه دا دي چي قادر سړی به پخپلو پښو طواف کوي او د راسته طرف ځخه به شروع کوي اووه شوطونه به پوره کوي او په پاک بدن به طواف کوي او عورت به پټوي او طواف زيارت به د اختر په ورځو کي کوي او کوم چي ترتيب دی د طواف زيارت او د ويشتلو د شيطانانو او سر خريلو دا واجب نه بلکې سنت عمل دی نو مطلب دا سو که چيري طواف زيارت تر ويشتلو ذ څلو مخکي وکړي نو د ده مخالفت د سنت عمل ځخه وکړی شی نه پر لازميږي صرف دا عمل مکروه دی طواف زيارت نه فاسديږي او نه قضا کيږي او نه هم بل بدل لري ترڅو چي يې پخپله ادا نه کړي اگر که په اخير کي د عمر وي او وفات کېدل د پوره کېدو دپاره به يې وصيت کوي که يې پر عرفات درېدل کړي وه نو حج يې جائز دی ليکن يو اوښ به خيرات کوي حج يې صحت لري طرابلسي د محمد رحمه الله ځخه نقل کړي دي په شان د هغه چا کي چي پر عرفات ودريږي باره مړ سي خو وصيت وکړي چي زما حج پوره کړئ نو به طواف زيارت د ده پر ځای وکړي لو د مزدلفې او جمراتو ويشتلو او طواف زيارت او طواف صدر د پاته کولو پر ځای به يو اوښ ذبح کوي نو يې حج جواز لري قاضيخان او سراجيه ليکلي دي.که سړی پر عرفات ودرېدی لو مړ سو او مبسوط ليکلي دي چي د طواف زيارت دپاره اوښ حلالول پر لازميږي ځکه ميت خو هغه غټ رکن د حج کړی دی چي درېدل پر عرفات دی نبي ﷺ فرمايي حج پر عرفات درېدل دي. سنن ترمذي ٨٨٩، سنن ابن ماجه ٣٠١٥، سنن الکبرٰی ج٥ ص١٥٢

## فصل د طواف زيارت ځخه چي فارغه سي

فاذا فرغ من الطواف رجع الى منى فيصلي الظهر بها و لا يبيت بمكة و لا في الطريق و لو بات كره و لا يلزمه شئ و السنة ان يبيت بمنى ليالى ايام الرمي ثم اذا كان اليوم

الحادی عشر وهو ثاني ايام النحر خطب الامام خطبة واحدة بعد صلاة الظهر لا يجلس فيها كخطبة اليوم السابع يعلم الناس احكام الرمي و السفر و ما بقي من المناسك وهذه الخطبه سنة وتركها غفلة عظيمة و يجمع بمنى اذا كان فيه امير مكة او الحجاز او الخليفة و اما امير الموسم فليس له ذلک الا اذا استعمل على مكة او يكون من اهل مكة.

متن و بعده ترجمة و شرح ملا علي القاري

هركله چي حاجي د طواف زيارت څخه فارغه سو نو به د منا پر لور روان سي او د ماپښين لمونځ به هلته وكړي شپه به په مكې كي نه تېروي او نه پر لاري او كه يې تېره كړه عمل يې مكروه دی ليكن شی نه پر لازمېږي او سنت طريقه دا ده چي د شيطانانو د ويشتلو شپې ټوله په منا كي تيري كړي چي د اختر دويمه معنا يولسمه ورځ سوه امام به د ماپښين تر لمانځه دمخه خطبه يوه ووايي لكه په دوهمه ورځ چي يې ويلې وه معنا كښېني به په كښې نه او خلقو ته به د ويشتلو طريقه ور وښيي او د سفر طريقه به ور وښيي اول او دويم او نور مناسك د حج لكه سعيه او يا احكام د عمرې او نور د عباداتو او اعمالو طريقه او د ممنوعاتو څخه ځان ساتل او دا خطبة زمونږ پر مذهب سنت ده او پرېښول يې غفلت عظيم دی او كه د جمعې ورځ سوه دلته په منا كي به د جمعې لمونځ وكړي كه امير د مكې يا عمومي د حجاز غټ امير او يا باچا ورسره وو او كه صرف د حاجيانو د وخت د كاروان امير وو بيا د جمعې لمونځ نسته مگر كه د امير مكة د طرف څخه د جمعې د لمانځه دپاره ټاكل سوی وو بيا د جمعې لمونځ وركولای سي و منا والا وو ته مناسب دا ده چي د جماعت لمونځ به نه پرېږدي خصوصا بيا په مسجد خيف كي چي ډير ډير درودونه به وايي د هغه پخوانی مناري سره په هغه محراب كي به لمونځونه كوي ځكه دلته نبي ﷺ او ډيرو انبياؤ او اولياؤ لمونځونه كړي دي او په دغه ځای كي د حضرت آدم ﷺ قبر هم دی.

فايده: د اختر په ورځ تر طواف زيارت بعد لمونځ په منا كي كول يا په مكه مكرمه كي كول دلته اختلاف دی ارشاد الساري پر دغه اختلاف هغه متعارض حديثونه را نقل كړي دي او بيا يې د ټولو موافقت كړی دی اوس به اول هغه حديث را نقل كړو چي نبي ﷺ يا صحابه كرامو په مكه مكرمه كي د اختر د ورځې د ماپښين لمونځ كړی دی بيا به هغه حديثونه را نقل كړو چي په منا كي يې د ماپښين لمونځ كړی دی او بيا به د ټول حديثو د عمل او موافقت دپاره لاره پيدا كړو چي په ټولو عمل وسي او اختلاف د ماپين څخه پورته سي د عمل دپاره به لاره صفا سي اول هغه حديث وگوره چي نبي ﷺ په مكه كي د اختر د ورځې د ماپښين لمونځ كړی دی:

١: د جابر ﷺ حديث چي په مسلم كي اوږد حديث راغلی دي چي نبي ﷺ د

عرفات څخه راکښته سو بیت الله ته نو د ماپښین لمونځ یې په مکه کي وکړی، فتح القدیر.

۲: امام نووي وايي چي په شرح المهذب کي راغلي دي چي فضیلت منده طریقه دا ده چي پر بیت الله طواف ... تر زوال دمخه وکړي او بیا لمونځ په منا کي وکړي د ماپښین.

۳: او ابن اعمر ﷺ وايي چي نبي ﷺ د اختر په ورځ چي طواف زیارت وکړي باره یې د ماپښین لمونځ په منا کي وکړی نو ابن عمر ﷺ به هم دغسي کول، رواه مسلم.

۴: ابن زبیر ﷺ د بي بي عایشه رضي الله تعالی عنها هغې د ابن عباس ﷺ څخه روایت کړی دی چي نبي ﷺ طواف زیارت د اختر د ورځي تر ماښامه پوري وځنډوی، رواه ابو داود او ترمذي.

۵: حضرت بي بي عایشه رضي الله تعالی عنها فرمايي چي نبي ﷺ د طواف زیارت څخه چي فارغه سو د اختر په ورځ د ماپښین لمونځ یې وکړی باره او منا ته روان سو.

٦: په بل روایت کي د بي بي عایشه رضي الله تعالی عنها راځي چي نبي ﷺ صحابه کرامو ته وفرمایل تاسي په غرمه کي طواف زیارت وکړئ او نبي ﷺ په شپه کي د ښځو سره طواف وکړئ.

بیهقي ټولو ته اصح روایات ویلي دي او ملا علي القاري وايي چي عقلا او نقلا ثابت ده چي د نبي ﷺ لمونځ د ماپښین د اختر د ورځي چي په مکه مکرمة کي کړی دی ځکه ټنګي خو حدیث دی چي نبي ﷺ د ماپښین لمونځ د اختر په ورځ په مکه کي وکړی او بل عقلي دلیل دا دی چي نبي ﷺ د منا او مشعر الحرام دپاره قصدي او اولی تصمیمي صفر کړی دی چي په اوله ورځ په ځابنت کي ورته راغلی ده مبارک د ځانه سره سل اوښان راوستلي وه د قرباني دپاره چي درې شپیته یې پخپلو مبارکو لاسو حلال کړه چي دا اشاره وه د ده مبارک عمر و کلو ته او د ده مبارک عمر هم درې شپیته کاله وو باقي د حلالولو امر یې و علي ﷺ ته وکړی او بیا د هر اوښ د غوښو څخه لږ لږ جمع سوې پخې سوې باره نبي ﷺ خوراک ورڅخه وکړی وروسته یې سر مبارک وخروی مکې ته ورغلی او طواف زیارت یې وکړی او بیا یې سعیه وکړه نو اوس به معارض هغه حدیث چي لوی جماعت رانقل کړي دي د دغه عبارت سره معارض نه سي چي د مسلم په روایت نبي ﷺ لمونځ په منا کي کړی دی او ابن الهمام وايي چي ضرور به دغه دوو حدیثو کي په یوه کي وهم سته نو هرکله چي تعارض د حدیثو راسي چاره نسته چي ضرور به نبي ﷺ خو یو ځای لمونځ کړی وو نو غوره خو دا ده چي مبارک لمونځ په مسجد الحرام کي کړی وي ځکه چي د دې ثواب زیات دی او که چیري هیڅ چاره نه وي نو بیا که یې لمونځ په منا

کي کړې وي دا د عادت موافق نوو ارشاد الساري داسي موافقت تر مابين را ايستلی دی چي ظاهره ده چي نبي ﷺ به تر زوال دمخه د مشعر الحرام څخه راکښته سوی وي او بيا به يې لمونځ د ماپښين په مکه کي کړی وي په اول وخت کي بيرته به منا ته په دغه ماپښين کي رسېدلی وي هلته به يې هم په دغه ماپښين کي لمونځ کړی وي دپاره د صحابه وو د امامت لکه په بطن نخله کي يې يو جماعت يو ډلي ته بيا يې جماعت بلي ډلي ته ورکړي نو د جابر ﷺ حديث چي په مکه کي يې د ماپښين لمونځ وکړی او د ابن عمر ﷺ چي په منا کي يې لمونځ وکړی دواړو صحت پيدا کړی او د ابن عباس ﷺ او بي بي عايشه رضي الله تعالى عنها حديث چي نبي ﷺ په شپه کي طواف وکړی هغه تاويل داسي دی چي نبي ﷺ په شپه کي صرف د ښځو د حفاظت دپاره راغلی نه د طواف دپاره.

## باب د شيطانانو د څلو ويشتل او احکام

ايام الرمي اربعة فاليوم الاول نحر خاص و لايجب فيه الارمي جمرة العقبه و اليومان بعد نحر و تشريق و الرابع تشريق خاص و في هذه الثلاثة يجب رمي الجمار الثلاث اول وقت جواز الرمي في اليوم الاول يدخل بطلوع الفجر الثاني من يوم النحر فلا يجوز قبله و هذا وقت الجواز مع الاسائة و اخر الوقت طلوع الفجر الثاني من غده و الوقت المسنون فيه بطلوع الشمس و يمتد الى الزوال و وقت الجواز بلا كراهة من الزوال الى الغروب و قيل مع الكراهة و وقت الكراهة مع الجواز من الغروب الى طلوع الفجر الثاني من غده و لو اخره الى الليل كره و لا يلزمه شئ و ان كان بعذر لم يكره و لو اخره الى الغد لزمه الدم و القضاء.

متن و بعده شرح ملا علي القاري

پوه سه حاجي صاحب ويشتل د څلو د شيطانانو واجب دی او که يې پرېښود دم پر لازميږي او د ويشتلو ورځي يې څلور دي په اوله ورځ د اختر به صرف جمرة العقبه وولي په دويمه او دريمه به بيا درې سره څلي وولي په څلورمه ورځ به هم درې سره ولي که چيري تر سهار مخکي د منا څخه ولاړی نه.

فايده: اوله د اختر ورځ ته د نحر ورځ وايي او وروسته دوو ورځو ته ايام نحر او ايام تشريق دواړه نومونه وايي او څلورمي ورځي ته خاص د تشريق ورځ وايي په اوله ورځ د اختر چي سهار سپېدې سوې د جمرة العقبة ويشتل جواز لري ليکن په پرېښولو د سنت کار ګنهګاره کيږي او تر سهار دمخه ويشتل يې جواز نه لري اخيري وخت يې د دويم سهار تر راختلو پوري جواز لري او سنت وخت يې چي د اختر په ورځ لمر راوختي بيا تر زواله بيا يې د جواز وخت د زواله څخه شروع کيږي بې له کراهته څخه تر لمر لوېدو پوري او بيا د لمر

لوېدو څخه تر سبا سهاره پورې جواز لري ليکن مکروه عمل دی او که يې شپې ته وځنډول مکروه دی ليکن نه دی مکروه په حق د ښځو کې او يا د ضعيفه خلقو دپاره او نه لازمېږي کفاره وربانديې صرف گناهگاره دی سنت عمل يې ترک کړی او که عذر وو بيا نه دی مکروه او که يې سبا ته پرېښود د اولې ورځې ويشتل بيا دم او قضا دواړه پر لازمېږي.

## فصل تر اختر بعد د هغه دوو ورځو ويشتل

وقت رمي الجمار الثلاث في اليوم الثاني و الثالث من ايام النحر بعد الزوال فلايجوز قبله في المشهور و قيل يجوز الرمي فيهما قبل الزوال و الوقت المسنون في اليومين يمتد من الزوال الى غرب الشمس و من الغروب الى طلوع الفجر مكروه و اذا طلع الفجر فقد فات الاداء و بقي وقت القضاء الى اخر ايام التشريق فلوا خره عن وقته فعليه القضاء و الجزاء و يفوت وقت القضاء بغروب الشمس من الرابع.

متن و بعده شرح ملا علي القاري

د اختر د ورځې څخه بعد د هغه څلو د شيطانانو ويشتل په دلسې طور ويشتل غواړي نو په دوميه او دريمه ورځ دري سره څلي ويشتل کيږي په مشهوره روايت کې راغلي دي چې تر زوال بعد به څلي ولي او تر زوال دمخه ويشتل يې جواز نه لري په نزد د جمهورو علماؤ لکه هدايې قاضيخان الکافي او بدائع وغيره کتابو داسې ليکلي دي اگرچې قيل والا ذکر کړي دي چې تر زوال دمخه هم ويشتل جواز لري او د امام اعظم رحمه الله څخه روايت سوی دی چې افضله دا ده چې تر زوال بعد څلي وولي او که يې تر زوال مخکې وويشتل جواز لري او د نبي عليه السلام فعل چې تر زوال بعد يې ويشتل کړي دي دا پر افضل کړو عمل کيږي لکه داسې چې صاحب المنتقي الکافي لو بدائع وغيره کتابو ليکلي دي ليکن داسې قول د ظاهره روايت څخه مخالفت دی او په دغه مسئله کې بل روايت هم سته چې د دواړو قولو جمع کونکی دی معنا تر زوال دمخه شروع بيا چې لمر زايل سو وخت يې پوره دی ليکن دا د دويمې ورځې خاص عمل دی د تشريق د ورځو څخه او په المرغناني کې ذکر دي چې په دويمه ورځ د تشريق د. ورځو څخه داسې حکم دی لکه اوله ورځ د تشريق د ورځو څخه معنا د دولسم د ورځې حکم لکه د يولسم د ورځې حکم داسې دی ليکن که په دريمه ورځ يې اراده وکړه چې ولاړ سي د منا څخه نو تر زوال دمخه ويشتل کولای سي او غوره ورته دا ده چې تر زوال بعد يې وولي باره روان سي او هغه خوک چې اراده د تلو نه لري بيا هغه ته تر زوال دمخه ويشتل جواز نه لري لکن حسن چې د امام اعظم رحمه الله څخه روايت کړی دی د يولسم او دولسم د ورځې د ويشتلو سنت طريقه د زواله څخه شروع بيا تر لمر لوېدو پورې ده او د لمر لوېدو څخه بيا د شپې تر سهار پورې په دغه وخت

کي ويشتل مکروه کار دی په اتفاق سره د علماؤ او هرکله چي د څلورمي ورځي سهار سو نو د اداء وخت فوت سو په نزد د امام اعظم رحمه الله خو د قضا وخت لا تر اخيري ورځي د تشريق پوري سته اوس که ويشتل د څلو وځنډوي څلورمي ورځي ته دم پر لازميږي او قضا هم پر لازم ده او که په څلورمه ورځ کي يې تر لمر لوېدو هم و نه ويشتل اوس نو دقضا وخت تېر سو او ختم سو ليکن دم پر لازم دی لکه مخکي چي دا بيان تېر سوی دی.

ارشاد الساري پر دغه مسله چي په يولسم او دولسم ورځو کي تر زاول دمخه ويشتل جواز نري يوه حاشيه کړې ده په هغه حاشيه کي ده د ملاخون يو اوږده رساله نقل کړې ده چي په هغي کي ليکلي دي چي په دغه مسئله کي د علماؤ اختلاف دی بعضي علماء تر زوال دمخه ويشتل جائزه بولي او بعضي ورڅخه منع کوي نو ملا اخون د منعي پر طرف دلايل پيش کړي دي چي د اختر د ورځي بعد په يولسم او دولسم ورځ کي د شيطانانو د څلو ويشتل به تر زوال بعد وي لکه د هدايې قول چي دغسي دی او که څلورمي ورځي ته پاته سي لا به هم تر زوال بعد څلي ولي باره به ځي او په بحر الرائق کي ليکلي دي چي د اختر په دويمه او دريمه ورځ تر زوال دمخه ويشتل جواز نه لري او ظاهره روايت وايي چي په دغه دوو ورځو کي د ويشتلو وخت نه داخليږي مګر تر زال بعد او په منسک سنان الرومي کي وايي چي زموږ احناف وايي چي د ويشتلو د ادا وخت د زواله څخه شروع کيږي او د دې مثل عبارتونه په عامو د متن او شرحو په کتابو کي ذکر دي علاوه دا ده چي عيني شرح د صحيح البخاري وايي چي په دغه دوو ورځو کي ويشتل تر زوال بعد شروع کيږي او ټوله امامانو اتفاق پر دغه مسئله کړی دی يوازي امام اعظم رحمه الله وايي چي په دريمه ورځ شرعا ورته جواز لري تر زوال دمخه او بل يې دا هم ويلي دي که يې د اختر په دويمه يا دريمه ورځ تر زوال دمخه ويشتل وکړه تر زوال بعد به يې بيرته راګرځوي نو اوس معلومه سوه چي د امام اعظم رحمه الله مذهب صرف د ديارلسم د ورځي په باب دی لباب المناسک کي وايي چي پر مشهوره روايت تر زوال دمخه ويشتل جواز نه لري خو متونه ټوله پر دغه ظاهره روايت دي چي تر زوال دمخه جواز نه لري او د متن قول پر شرحي قوي او پر فتاواؤ غښتلی دی لکه متن مختصر الطحاوي او الکرخي او قدوري او الحاکم او خزانة الفقه لابي الليث يا مثل د دې علاوه دا ده چي الدرمختار ليکلي دي چي حکم کول په کمزوري قول باندي ناپوهي او د علماؤ اجماع څيرل دي..الخ لو زموږ د مذهب کتابو ليکلي دي چي د ظاهره روايت څخه به نه اوړي ترڅو چي په مقابل روايت صحيح مشهور او عمده عنماؤ عمل نه وي په کړی لکه هداية او الکافي کتابونه او په دغه مسئله کي د څلو د ويشتلو ظاهره روايت تر زوال بعد حکم کړی دی علاوه لا دا ده چي علماؤ هم اتفاق پر کړی دی زموږ د مذهب او نورو امامانو او په الدرالمختار کي

کي ویشتل مکروه کار دی په اتفاق سره د علماؤ او هرکله چي د ځلورمي ورځي سهار سو نو د اداء وخت فوت سو په نزد د امام اعظم رحمه الله خو د قضا وخت لا تر اخیري ورځي د تشریق پوري سته اوس که ویشتل د ځلو وځنډوي ځلورمي ورځي ته دم پر لازمیږي او قضا هم پر لازم ده او که په ځلورمه ورځ کي یې تر لمر لوېدو هم و نه ویشتل اوس نو دقضا وخت تېر سو او ختم سو لیکن دم پر لازم دی لکه مخکي چي دا بیان تېر سوی دی.

ارشاد الساري پر دغه مسله چي په یولسم او دولسم ورځو کي تر زاول دمخه ویشتل جواز لري یوه حاشیه کړې ده په هغه حاشیه کي ده د ملاخون یو اوږده رساله نقل کړې ده چي په هغي کي لیکلي دي چي په دغه مسئله کي د علماؤ اختلاف دی بعضي علماء تر زوال دمخه ویشتل جائزه بولي او بعضي ورځخه منع کوي نو ملا اخون د منعي پر طرف دلایل پیش کړي دي چي د اختر د ورځي بعد په یولسم او دولسم ورځ کي د شیطانانو د ځلو ویشتل به تر زوال بعد وي لکه د هدایې قول چي دغسي دی او که ځلورمي ورځي ته پاته سي لا به هم تر زوال بعد ځلي ولي باره به ځي او په بحر الرائق کي لیکلي دي چي د اختر په دویمه او دریمه ورځ تر زوال دمخه ویشتل جواز نه لري او ظاهره روایت وایي چي په دغه دوو ورځو کي د ویشتلو وخت نه داخلیږي مګر تر زال بعد او په منسک سنان الرومي کي وایي چي زموږ احناف وایي چي د ویشتلو د ادا وخت د زواله څخه شروع کیږي او د دې مثل عبارتونه په عامو د متن او شرحو په کتابو کي ذکر دي علاوه دا ده چي عیني شرح د صحیح البخاري وایي چي په دغه دوو ورځو کي ویشتل تر زوال بعد شروع کیږي او ټوله امامانو اتفاق پر دغه مسئله کړی دی یوازي امام اعظم رحمه الله وایي چي په دریمه ورځ شرعا ورته جواز لري تر زوال دمخه او بل یې دا هم ویلي دي که یې د اختر په دویمه یا دریمه ورځ تر زوال دمخه ویشتل وکړه تر زوال بعد به یې بیرته راګرځوي نو اوس معلومه سوه چي د امام اعظم رحمه الله مذهب صرف د دیارلسم د ورځي په باب دی لباب المناسک کي وایي چي پر مشهوره روایت تر زوال دمخه ویشتل جواز نه لري خو متنونه ټوله پر دغه ظاهره روایت دي چي تر زوال دمخه جواز نه لري او د متن قول پر شرحي قوي او پر فتاواؤ غبنتلی دی لکه متن مختصر الطحاوي او الکرخي او قدوري او الحاکم او خزانة الفقه لابي اللیث یا مثل د دې علاوه دا ده چي الدرمختار لیکلي دي چي حکم کول په کمزوري قول باندي ناپوهي او د علماؤ اجماع څیرل دي ..الخ او زموږ د مذهب کتابو لیکلي دي چي د ظاهره روایت څخه به نه اوړي ترڅو چي په مقابل روایت صحیح مشهور او عمده علماؤ عمل نه وي په کړی لکه هدایة او الکافي کتابونه او په دغه مسئله کي د ځلو د ویشتلو ظاهره روایت تر زوال بعد حکم کړی دی علاوه لا دا ده چي علماؤ هم اتفاق پر کړی دی زموږ د مذهب او نورو امامانو او په الدرالمختار کي

رسم المفتي ليکلي دي چي زموږ د مذهب امامانو پر ظاهره روايت اتفاق وکړی بيا نو قطعي فتوٰی پر دغه قول ده ..الخ او د ظاهره روايت دليل ابن الهمام په فتح القدير کي داسي ويلي دي چي ويشتل د ځلو دا يو عبادتي امر دی په عقل سره د دې علم نه سي حاصل کېدای نو لهذا عمل په نقلي دليل سره واجب دی چي فعل د نبي ﷺ دی ده مبارک په يولسم او دولسم ورځ تر زوال بعد ويشتل کړي دي علاوه لا دا ده چي امام ابو يوسف او محمد رحمهما الله وايي د ځلورمي ورځي هم دغسي حکم دی که پاته سو تر زوال بعد به ځلي وي مخکي جواز نه لري او دوی هم دغه حديث دليل ګرځوي.

## فصل د ځلورمي ورځي ويشتل

وقت الرمي من الفجر الى الغروب الا ان ما قبل الزوال وقت و ما بعده مسنون و بغروب الشمس من هذا اليوم يفوت وقت الاداء والقضا بخلاف ما قبله و لو لم يرم يوم النحر او الثاني او الثالث رماه في الليلة المقبلة و لا شئ عليه سوى الا سائة و ان لم يكن بعذر و لو رمي ليلة الحادي عشر او غيرها عن غدها لم يصح لان الليالي في الحج في حكم الايام الماضية المقبلة و لو لم يرم في الليل رماه في النهار قضاء و عليه الكفارة و لو اخر رمي الايام كلها الى الرابع مثلا قضاها كلها فيه و عليه الجزاء و ان لم يقض حتى غربت الشمس منه وفات وقت القضاء و ليست هذه الليلة تابعة لما قبلها.

متن و بعده ترجمة و شرح ملا علي القاري

د ځلورمي ورځي ويشتل د سهاره څخه شروع کيږي او دا ورځ هغه ده چي د هغه نورو ورځو په شان تابع د شپې نه ده او دلته دا مسئله د جواز ده همدا وجه ده چي تر زوال دمخه ويشتل يې مکروه دی او سنت طريقه يې تر زوال وروسته دی او په بدائع کي ورته مستحب ويل سوي دي او تر زوال دمخه يې مکروه نه دی بللی او دا مذهب د امام اعظم رحمه الله دی او د ابو يوسف رحمه الله او محمد رحمه الله پر مذهب تر زوال دمخه جواز نه لري په ځلورمه ورځ کي لکه په مخکي ورځو کي چي يې جواز نه درلودی او که د ځلورمي ورځي لمر ولوېدی بيا نه د اداء او نه د قضاء وخت سته په اتفاق د علماؤ سره او تر لمر لوېدو يې لا وخت وو که چيري يو حاجي د اختر په ورځ شيطان نه وويشتی نو بيا دي په را روانه شپه کي وولي او يا په دويمه ورځ ورڅخه پاته سو بيا دي په را روانه شپه کي وولي او که په دريمه ورځ ورڅخه پاته سول بيا دي په دغه ورځي پسې شپه کي وولي اوس که عذر نه وو د ورځي ورڅخه پاته سو که په شپه کي يې ويشتل وکړه نو ګنهګاره دی ځکه چي سنت کار يې پريښی دی او شی نه پر لازميږي او که عذر وو بيا ګناه هم ورباندي نسته که چيري يو حاجي داسي کوله چي مثلا د يوولسم په شپه يې د يوولسم د ورځي دپاره ويشتل کول او د

دولسم په شپه یې د دولسم د ورځې دپاره ویشتل د ځلو کول چې شپه خو پر ورځ دمخه ده نو لهذا دا ویشتل یې جواز نه لري تر ځيل وخت دمخه دی او بل د حج شپې د تيري ورځې تابع دي لکه د مثال په ډول د اختر په شپه پر عرفات درېدل جواز لري ځکه د عرفات د درېدلو وخت خو د نهم ورځ ده اوس د مزدلفې درېدل يا د شيطانانو د ځلو ويشتلو وخت لا نه دی راغلی لهذا په دغه شپه کې جواز نه ورته لري او د هري ورځې ويشتل چې شپې ته وځندوي په شپه کې به يې ولي که په شپه کې هم ورځخه پاته سو دا بله ورځ به يې قضا راوړي او کفاره معنا دم هم پر لازم دی د امام اعظم رحمه الله پر مذهب نه د يارانو او که ټوله ورځې ورځخه پاته سوې بيا دي په ځلورمه ورځ د ټولو قضاء راوړي په اتفاق د علماؤ او دم پر لازم دی او که د ځلورمې ورځې لمر ولوېدی بيا نو د قضاء وخت هم تېر سو ويشتل ورځخه ساقط سوه يو دم پر لازميږي په اتفاق د علماوو.

## فصل طريقه د ويشتلو د شيطانانو د ځلو

صفة الرمي في هذه الايام اى الثلاثة على وجه يشمل الوجوب و السنة و سائر الاحكام و اذا كان اليوم الثاني و هو يوم القرار رمي الجمار الثلاثه بعد الزوال و يقدم الصلاة الظهر على الرمي و يبداء بالجمرة الاولى و يصعد اليها و يعلوها حتى يكون ما عن يساره اقل مما عن يمينه و بين مجتمع الحصي خمسة اذرع او اكثر لا اقل ثم يرميها بيمينه بسبع حصيات مثل حصي الخذف يكبر مع كل حصاة ثم يتقدم عنها قليلا و ينحرف عنها قليلا و عبارة بعضهم و ينحدر امامها فيقف بعد تمام الرمي لا عن كل حصاة مستقبل القبلة فيحمد الله و يكبر و يهلل و يسبح و يصلي على النبي و يرفع يديه كما في الدعاء بسطعا مع حضور و خشوع و تضرع واستغفار و يمكث كذلک قدر قرأة سورة البقرة او ثلاثة احزاب او عشرين اية و يدعو و يستغفر لابويه و اقاربه و معارفه و سائر المسلمين ثم يأتي الجمرة الوسطى فيصنع عندها كما صنع عند الاولي قيل الا انه لا يتقدم عن يساره كما فعل قبل لانه لا يمكن ذلک هنا بل يتركها بيمين و لفظ بعضهم و ينحدر ذات اليسار مما يلي الوادي ويقف ببطن المسيل منقطعا عن ان يصبه حصي الرمي فيفعل جميع ما فعل قبلها من الوقوف و الدعاء و غيره ثم يأتي الجمرة القصوي و هي الجمرة العقبة فيرميها من بطن الوادي كما مر في اليوم الاول ولا يقف عندها في جميع ايام الرمي للدعاء و يدعو بلا وقوف و الوقوف عند الاولين في الايام كلها ثم الافضل ان يرمي جمرة العقبة راكبا وغيرها ماشيا في جميع ايام الرمي.

متن و بعده ترجمة و شرح ملا علي القاري

طريقه د ځلو د شيطانانو په خپلو ورځو کې چې درې ورځې دي پر طريقه د وجوب

يا د سنت او نور احکام دا دي هر کله چي د اختر دويمه ورځ سوه چي دې ورځي ته د قرار ورځ هم وايي نو به تر زوال بعد پر صحيح قول باندي درې سره ځلي وولي علاوه لا دا ده چي اول به د ماپښين لمونځ وکړي باره به د اولي جمرې څخه شروع وکړي ځکه واجب عمل دغسي دی اگر که اکثره ورته سنت عمل وايي دا ځلي مسجد خيف او مزدلفې ته نژدې دي هم دا وجه ده چي وايي د لاندي طرفه څخه د منا دي ورته راسي کومه خوا ته چي مکه ده او ور و دي خيژي ځکه دا ځلي پر جمرة العقبه باندي لوړ دي جمرة اول ته چي ورسي راسته طرف او چپه به د ده سره برابر وي هغه ځلي او ډبرو ته پنځه گزه به کم از کم ورته نژدې وي تر دغه به نه ور نژدې کيږي که څه لا نور هم ازاد وي لا ورته مستحب کار دی نو ځلي به په راسته لاس په بټه گوته په اووه ډبرو د نخود په اندازه سره وولي يا د خرما د مندکي په اندازه او د هري ډبري د ويشتلو سره به الله اکبر وايي معنا داسي به وايي بسم الله الله اکبر ..الخ هر کله چي يې اووه سره ډبري ور وغورځولې نو به لږ يو څه مخ ته سي يا به چپه طرف ته لږ وگرځي باره به مخامخ و قبلې ته ودريږي الحمد لله الله اکبر لا اله الا الله سبحان الله او اللهم صل ووايي لاسونه به د دعا په طرز کي پورته کړي د اوږو د برابر سره او د لاسو مخ به د آسمان طرف ته وي ابو يوسف رحمه الله وايي ليکن ظاهره روايت دا دی چي لاسونه به د قبلې طرف ته مخامخ کي په حضور د زړه او په عاجزۍ سره د زړه او بدن به ودريږي مغفرت به د خدايه وغواړي او په مقدار د بقرې د سورت چي دوه سوه شپږ اتيا آيتونه لري دلته به ودريږي که يې طاقت نه وو د يوې سيپارې د درو حصو په مقدار به ودريږي که يې طاقت نه وو نو د شلو آيتو په مقدار د وينا خو به ودريږي دا يې کمه مرتبه ده چي صاحب د الحاوي او مضمرات مختاره کړې ده نو به ځان مور پلار اقرباؤ پيژندگلوي او مسلمانانو ته دعا وکړي باره به د ماپين ځلي ته ورسي همدغسي طريقه به وکړي چي اوس تيره سوه صرف فرق دونه دی چي دلته به په هغه شيله کي ودريږي بيا به هغه ځلي ته راسي چي د منا د حدود څخه وتلي ده مکې ته نژدې ده چي جمرة القصوی او په بل نامه ورته جمرة العقبة وايي دا به هم د شيلې د خيتي څخه وولي لکه د اختر په ورځ چي يې ويشتلي وه او دلته به نه ودريږي علاوه لا دا ده چي هره پيره يې ولي نه به ورته دريږي او افضله طريقه دا ده چي دا ځلي په سپرتيا سره وولي او هغه نور ځلي پياده پر پښو چي ولاړ وي وولي په تولو ورځو کي او دا طريقه د اکثره مشائخو علماؤ ده لکه صاحب د هدايې الکافي او البدائع وغيره کتابو او د ابو يوسف رحمه الله همدغه مذهب دی او د امام اعظم رحمه الله او محمد رحمه الله مذهب دا دی چي تولو دي په سپرتيا سره وولي لکه د نبي عليه السلام څخه چي همدغسي د سپرتيا روايت سوی دی لو الظهيرية فتاوا ليکلي دي چي پياده ورتلل ځلو ته مستحب کار دی نبي عليه السلام خو د امت د

اساني دپاره په سپرتيا ويشتلي دي او دپاره د بيان د جواز او دپاره د رفع كولو د تكليف د امت څخه او يا د عذر په وجه سره لكه په طواف او سعيه كي او الكبير بيا ليكلي دي چي فعل د نبي ﷺ د اختر په ورځ داسي وو چي جمرة العقبه يې په سپرتيا ووېشتل دا نوري ورځي يې باقي ځلي پياده ويشتلي دي لكه دا حديث چي ډيرو امامانو د حديث نقل كړي دي نو اوس تعارض راځي د حديثو تر مابين د ترجيح وجه غواړي ځكه په دواړو عمل امكان نه لري او نبي ﷺ هم يو حج كړى دى نو د دواړو حديثو تر مابين موافقت پر دغه ځاى راځي چي يوه ورځ يې په سپرتيا ويشتل كړى دى بلكه ورځ يې پياده ويشتل كړي دي او ارشاد الساري هم دواړه روايته په حاشيه كي را نقل كړي دي يو د ابن عمر ﷺ په روايت سره چي نبي ﷺ د اختر تر ورځي بعد درې سره ځلي پياده ووېشتل او په لفظ د احمد سره بيا وايي چي نبي ﷺ د اختر په ورځ په سپرتيا سره ووېشتل او باقي ځلي يې په نورو ورځو كي پياده ويشتلي دي.

## فصل د دويمي ورځي ويشتل

ثم اذا فرغ من الرمي رجع الى منزله و يبيت تلك الليلة بمنى فاذا كان من الغد و هو اليوم الثالث من ايام الرمي و يسمي يوم النفر الاول رمي الجمار الثلاثة بعد الزوال على الوجه المذكور بجميع كيفيته و اذا رمي و اراد ان ينفر في هذا اليوم من مني الى مكة جاز بلا كراهة و سقط عنه رمي يوم الرابع و الافضل ان يقيم و يرمي في اليوم الرابع و ان لم يقم نفر قبل غروب الشمس فان لم ينفر حتى غربت الشمس يكره له اى ينفر حتى يرمي في الرابع و لو نفر من الليل قبل طلوع الفجر من اليوم الرابع لا شئ عليه و قيل ليس له ان ينفر بعد الغروب فان نفر لزمه دم و لو نفر بعد طلوع الفجر قبل الرمي يلزمه الدم اتفاقا.

متن و بعده ترجمة و شرح ملا علي القاري

هركله چي په دويمه ورځ د ځلي څخه د ويشتلو فارغه سو خپل د شپه تېر ځاى ته به ولاړ سي هلته به شپه تېره كړي په منا كي ځكه زموږ پر مذهب دا سنت عمل دى د شافعي ﷫ پر مذهب واجب دى او دغه شپې ته په يو اصطلاح د تلو شپه هم وايي هركله چي دريمه ورځ سوه چي د مياشتي نو ديارلسمه ورځ كيږي تر زوال بعد به درې سره ځلي وولي پر خپل اصلي طريقه لكه د يوولسم په ورځ چي يې څنګه ويشتل كړي وه اوس كه غواړي چي د منا څخه ولاړ سي كولاى سي چي بې له كراهته ولاړ سي مكې شريفي ته ځكه په قرآن كي هم الله تعالى فرمايلي دي:

فمن تعجل في يومين فلا اثم عليه. البقره ۲۰۳

نو د ځلورمي ورځي د ويشتلو څخه اوس خلاص سو هيڅ نه ګناه نه دم پر لازميږي

لیکن فضیلت منده دا ده چي څلورمي ورځي ته پاته سي ځکه الله وايي چي ګناه خو نسته چي څلورمي ورځي ته پاته سي:

و من تاخر فلا اثم علیه. البقره ۲۰۳

او په آیت کي د (لمن اتقی) کلمه هم راغلي ده معنا فضیلت لري چي دلته څلورمي ورځي ته پاته سي نو که چیري تلی تر لمر لوېدو به مخکي ځي او که لمر ولوېدی بیا نو په شپه کي وتل زموږ پر مذهب مکروه عمل دی او د شافعي رحمه الله پر مذهب جواز نه لري وتل ترڅو چي په څلورمه ورځ کي څلي و نه ولي او که په شپه کي تر سهار راختلو مخکي ولاړی بیا جواز خو لري لیکن عمل یې مکروه دی د سنتو څخه مخالف کار دی او شی معنا دم نه پر لازمیږي په ظاهره روایت کي او محمد په رقیات کي تصریح همدغسي کړې ده او په مبسوط کي ورته اشاره هم سته او حسن رحمه الله د امام اعظم رحمه الله څخه روایت کړی دی چي تر لمر لوېدو وروسته ولاړ سي دم پر لازمیږي لکه سهار چي ولاړ سي او داسي قول د دري سره امامانو هم دی همدا وجه ده چي قیل وایي تر لمر لوېدو مخکي چي ولاړ سي باک نسته او تر لمر لوېدو بعد که ولاړی دم پر لازمیږي په نزد د دري امامانو او که د څلورمي ورځي په سهار ولاړی بیا نو په اتفاق د ټوله امامانو دم پر لازمیږي.

## فصل د څلورمي ورځي ویشتل

اذا لم ینفر وطلع الفجر من الیوم الرابع من ایام الرمي وهو الثالث عشر من الشهر و یسمي یوم النفر الثاني و یجب علیه الرمي في یومه ذلک فیرمي الجمار الثلاث بعد الزوال کما مر فان رمي قبل الزوال في هذا الیوم صح مع الکراهة و ان لم یرم حتی غربت الشمس فات وقت الرمي و تعین الدم و اذا اراد ان ینفر و معه حصا دفعها الی غیره ان احتاج و الا فیطرحها في موضع طاهر و دفنها لیس بشئ و رمیها علی الجمرة مکروه.

متن و بعده ترجمة و شرح ملا علي القاري

که په دریمه ورځ د ویشتلو ولاړی نه چي دولسمه د میاشتي ده او څلورمي ورځي ته پاته سو معنا د څلورمي شپې سهار سو ورباندي چي اوس د میاشتي دیارلسمه ورځ کیږي او د تشریق هم اخیره ورځ کیږي او دې ورځي ته دویم نوم د تلو ورځ وایي او په قرآن کي هم الله فرمایي که تر هغه دوو ورځو وځنډېدی بیا ګناه سته د تقوا دارو دپاره:

و من تاخر فلا اثم علیه. بقره

نو په دغه څلورمه ورځ هم ویشتل پر واجب سوه نو به د زوال څخه بعد دري سره څلي ولي او که یې تر زوال مخکي وویشتل جواز لري مګر مکروه کار دی ځکه مخالفت د سنت عمل څخه دی د امام اعظم رحمه الله پر مذهب باندي نه د یارانو پر مذهب او که یې په دغه ورځ

تر لمر لوېدو وېشتل و نه کړه بیا نو وېشتل ورځخه پاته سو ادا او قضا دواړه دم پر لازم لو متعین سو مګر دم نه پر لازمېږي چي عذر موجود وي او که یې اراده وکړه چي ولاړ سي او د څلورمي ورځي د ځلو وېشتلو ډېري ورسره وي نو یې بل سږي ته ورکړي هغه ورته محتاجه وو لو یا یې په یو پاک ځای کي وغورځولې او یا یوځای یې پټي کړي پروا نه لري لو که یې وغورځولې مکروه عمل دی مخالفت د سنت ځخه دی ابن عمر رضي الله عنه وایي چي نبي ﷺ به په دري سره ورځو کي ځلو ته تر ورځي د اختر بعد پیدل تلی او بې په خېر کي همدغسي راغلي دي طبري وایي چي په حدیث کي دلالت موجود دی چي نبي ﷺ تر اختر بعد دري ورځي پوره کړي دي په مناکي او ابن حزم تصریح کړې ده چي نبي ﷺ د اختر په ورځ په مناکي وو بیا د لیلة القرار معنا د یولسم په شپه دلته وو بیا د دولسم په شپه دلته وو چي د تلو ورځ هم ورته وایي او د ځلورم په شپه معنا د دیارلسم په شپه هم دلته وو په ورځ یې هم دلته وو چي د تشریق ورځي یې دلته پوره کړي نو لهذا زموږ مذهب او د شافعي رحمه الله مذهب وایي چي فضیلت لري چي سړی دي ځلورمه معنا د میاشتي دیارلسمه شپه هم دلته په مناکي وکړي چي دا د باب ځخه د تکمیل راځي عبادت یې ښه پوره کېږي لو کوم کسان چي نیکي کوي جنت او نور مزید شیان به الله تعالی ور نصیب کړي.

## فصل د ځلو د ویشتلو احکام شرطونه او واجبات

و اما شرائطه فعشرة الاول وقوع الحصي بالجمرة او قريبا منه فلو وقع بعيدا منها لم يجز و قدر القريب بثلاثة اذرع و البعيد بما فوقها وقيل القريب ما دون الثلاثة و لو وقف الحصي على الشاخص اجزاه و لم ينزل عنه فالظاهر انه لا يجزئه للبعد و الثاني فلو وضعها لم يجز و لو طرحها جاز و يكره الثالث وقوع الحصي في المرمي بفعله فلو وقت على ظهر رجل او محمل و ثبتت عليه حتى طرحها الحامل لم يجز و كذا او اخذها الحامل و وضعها و لو سقطت عنه بنفسها في ستها ذلک عند الجمرة اجزاه و ان لم يدري انها وقعت في المرمي بنفسها او بنفض من وقعت عليه و تحريكه ففيه اختلاف و الاحتياط ان يعيده و كذا لو رمي و شک في وقوعها موقعها فالاحوط ان يعيد الرابع تفريق الرميات فلو رمي بسبع حصيات جملة لم يجزه الا عن حصاة و لو رمي بحصاتين احداها عن نفسه و الاخري عند غير جاز و يكره الخامس ان يرمي بنفسه فلا تجوز النيابة عند القدرة و تجوز عند العذر فلو رمي عن مريض بامره او مغمي عليه و لو بغير امره او صبي او مجنون جار والافضل ان توضع الحصي في اكفهم فيرمونها قيل في حل المريض ان يصير بحيث يصلي جالسا السادس ان يكون الحصي من جنس لارض فيجوز بالحجر و المدر و فلق الاجر و الطين و النورة و المغرة و المللح الجبلي و الكحل و الكبريت و الوزنيخ و المراسنج و قبضة من تراب و الا حجار

النفيسة كالزبرجد و الزمرد و الليلخش و البلور و العقيق و اختلف في الياقوت و الفيروز و الافضل ان يرمي بالاحجار و لايجوز بما ليس من جنس الارض كالذهب و الفضة و الُوْلُوْ و العنبر و المرجان و الخشب و البعرة السابع الوقت و الثامن القضاء في ايامه فلو ترک رمي يوم يجب قضاؤه فيما بعده مع وجوب الكفارة و التاسع اتمام العدد او اتيان اكثره فلو نقص الاقل منها لزمه جزاؤه مع الصحة و لوترک الاكثر فكانه لم يرم و لا يشترط الموالات بين الرميات بل تسن فيكره تركها و الرجل و المراة في الرمي سواء ولا يشترط جهة الرمي فمن اى جهة من الجهات وما ها صح الا انه يستحب او يسن الجهة المذكورة و لا يشترط ان يكون الرامي على حالة مخصوصة من قيام و استقبال و طهارة او قرب او بعد بل على اى حال رمي و من اى مكان رمي صح الا انه يسن وقوفه للرمي بنحو خمسة اذرع من الجمرة او اكثره ويكره الاقل العاشر الترتيب في رمي الجمار على قول البعض و الاكثر على انه سنة فلو بدا بجمرة العقبة ثم بالوسطى ثم بالاولى و هي التى تلى مسجد الخيف ثم تذكر ذلک في يومه فانه يعيد الوسطى و العقبة حتما او سنة و كذا لو ترک الاولى و رمي الاخيرين فانه يرمي الاولى و يسقبل الباقية و لو رمي كل جمرة بثلاث اتم الاولى باربع ثم عاد الوسطى بسبع ثم القصوى بسبع و ان رمي كل واحدة باربع اتم كل واحدة بثلاث ثلاث و لا يعيد و ان استقبل فهو افضل و لو رمي الجمار الثلاث فاذا في يده اربع حصيات و لا يدري من ايتهن هن يرميهن على الاولى و يسقبل الباقيتين و لو كن ثلاثا اعاد على كل جمرة واحد واحدة و لا يعيد لان للاكثر حكم الكل و لو رمي اكثر من سبعة يكره و اما واجباته فتقديمه على الحلق و القضاء في الوقت مع الجابر.

متن و بعده ترجمة و شرح ملا علي القاري

تفصيلي بيان د شيطانانو د ځلو د ويشتلو دپاره احكام شرطونه او واجبات دلته په ښه خوند او ډول سره بيانيږي اول لسو شرطو ته متوجې سه:

: اول شرط دا دى چې هره ډبره وغورځوي هغه به پر ځلي او يا به ورته نژدې منبلې كه په اصطلاح كي ورځخه ليري ومنبتله هغه اعتبار نه لري اندازه د نژدې منبتلو درې ذراعه چې يو نيم ميتره كيږي دى كه تر دغه يو نيم ميتر زيات وو هغه ته ليري وايي او بل قول د قيل دا دى چې نژدې هغه دى چې تر يو نيم ميتر كم وي او د سرې او د ځلي تر مابين به كم از كم دوه نيم ميتره مسافه وي او هدايې ليكلي دي چې ضرور به ويشتونكي ځلي په خپله ويني او يا به يې ولي حاصل د مطلب دا دى چې ځلي ويشتلو ته اعتبار دى سرې چې هر ځونه ورځخه ازاد وي چې ځلي يې وويشتل يا يې ډبره يو نيم ميتره ورته نژدې سوه جواز لي په بدائع كي ليكلي دي كه د سرې دلاسه ځخه ډبره پر ځلي ښوه سوه نو به د

بل ځايه څخه ډبره پيدا کوي د ځلي د ډبرو څخه به يې نه را اخلي او که يې د ځلي څخه را واخيستل جواز لري ليکن مکروه دی او که هغه ډبره چي د ده د لاس څخه لوېدلې وه ده پېژندل را وا يې خيستله بيا جواز بې له کراهته لري.

۲: دويم شرط د ځلي ويشتل دی معنا دا چي ډبرې اېښول جواز نه لري ځکه دې ته ويشتل نه وايي او که يې اووه سره ډبري توليږ په يو وار ور وغورځولې جواز خو لري ليکن مکروه عمل ځکه دی چي مخالفت د سنتو څخه دی.

۳: دريم شرط يې د ډبري واقع کيدل دی پر ځلي باندي او س که دغه ډبره د بل سړي پر شا ومُښتله جواز نه لري او که يو کس بل په شا اخيستی وو بيا د وړونکي ويشتل اعتبار نه لري هغه په شا چي دی هغه به يې پخپله وي او که چيري يو شخص ځلي ته ډبري ور وغورځولې ليکن شکمن سو چي پر منښتي به وي او که نه احتياط دا دی چي بيرته دي راوگرځوي معنا دويم وار دي وولي چي د اختلاف څخه خبره صفا ووزي.

۴: څلورم شرط دا دی چي اووه واره به يې په يوه يوه ډبره ولي او که يې اووه سره ډبري په يو وار سره ور وغورځولې جواز نه لري معنا دا ده چي دا ټول په يوه ځل د يوه وار د ويشتلو دپاره کيږي ځکه دا خو منصوصي راغلي دي چي اووه واره ويشتل به کوئ ډبرو ته اعتبار نسته په دې معنا چي اووه خو مي په يوه وار وغورځولې علاوه لا دا ده چي قياس خو يې د يوه وار دپاره هم جائز نه بولي او د يادولو وړ خبره دا ده چي عمل يې هم مکروه دی ځکه د سنت کار څخه يې مخالفت وکړی الکرماني بيا وايي که يې په يو وار ور وغورځولې خو هره ډبره د بلي څخه پر ځلي تنها تنها ولگيدله بيا جواز لري ده قياس د هغه سړي پر حد کړی دی چي ضعيف وي او ته د ده د حد د وهلو د شمار په اندازه لښتي راجمع کړې باره يې په يو وار ووهي لکه چي ايوب عليه السلام داسي کړي وه او که پر يو ځای ټولې ډبره ولگېدلې بيا جواز نه لري او زموږ احناف امام شافعي او امام احمد رحمه الله يې جائز نه بولي په يو ځل ويشتل په اووه ډبرو سره مطلقا لکه د هدايې وغيره کتابو چي داسي عبارت دی ارشاد الساري په حاشيه کي کرماني ته جواب ورکړی دی چي ستا قياس صحت نه لري وجه يې دا ده چي يو شي پر بل شي قياس کول يو علت جامعه غواړي هغه دلته نسته ځکه په حد کي خو مطلب درد رسول دی هغه شخص ته دلته خو درد رسول مطلب نه دی او بل په کراتو او مراتو دا خبره تېره سوې ده چي د حج افعال ټوله عبادتي کارونه دي په عقل سره يې معلومات نه سي کيدای.

که چيري يو شخص دوې ډبري ور وغورځولې يوه د ځان د طرفه څخه هغه بله د بل چا دپاره چي دی يې نايب وو جواز لري ليکن مکروه دی ځکه مخالفت د سنت څخه دی نو

طريقه يې دا ده چې اول به يې د ځان دپاره اووه سره ور وغورځوي بيا به اووه ډبرې تنها د هغه بل شخص دپاره ور غورځوي چې دی يې نايب دی.

۵: پنځم شرط دا دی چې پخپله به يې ولي بل څوک د ده پر ځای ويشتل نه سي کولای ترڅو چې پخپله قدرت ولري او که يې عذر درلود بيا يې بل نيابت کولای سي معنا دا سوه که چيرې داسې مريض وو چې طاقت يې نه درلود يا بيسده وو او يا کوچنی ناپوه وو او يا ليونی وو بيا يې بل سړی پر ځای ځلي ويشتلای سي علاوه لا دا ده چې فضيلت خو دا لري چې د ده ملګري دې يې په شا کړي او ډبرې په لاس کې ور کښيږدې باره يې دی په خپل کومک و ځلي ته ور وغورځوي او عبارت د الکبير داسې دی که څوک مريض يا بيسده وو طاقت د ويشتلو يې نه درلود نو د ده ملګري به د مريض يا بيسده په لاس کې ډبرې کښيږدې باره دې ور وغورځوي او که يې دوی ور وغورځوې بيا هم جواز لري نو ملا علي القاري رحمه الله وايي چې د مريض بې له امره خو جواز نه لري او که جواز لري هغه د بيسده دپاره ځکه مريض خو پوهيږي او بيسده په ځان نه دی خبر او مريض في الجمله قابل دی ځکه په ويشتلو خو پوهيږي نو اجازه به ورځخه اخلي علاوه لا دا ده چې دلته هر مريض هم نه دی مراد بلکې الحاوي د المنتقي هغه د محمد رحمه الله څخه نقل کړي دي که مريض پر داسې اندازه وو چې لمونځ يې په ولاړه نه سوای کولای په ناسته يې کوی بيا نو د ده پر ځای بل د ده په اجازه سره ويشتل د شيطانانو کولای سي جواز لري شی هم نه پر لازميږي ملا علي القاري صاحب يې وجه دا وايي چې په ولاړه پر لمانځه قدرت ولري نو ځلو ته هم ځان حاضرولای سي په سپرتيا سره يا پر يو بوده سپور سي نو لهذا بيا د ده څخه نيابت بل څوک نه سي کولای او مبسوط ليکلي دي چې مريض هغه دی چې د ويشتلو طاقت و نه لري نو ملګري دې په لاس کې ډبره ور کښيږدي ځلي دې په وولي نو دا جواز لري لکه د بيسده دپاره چې نيابت کوي.

په الغاية کتاب کې ليکلي دي چې مريض او معتوه او بيسده او کوچني لره به په لاس کې ډبرې ور کوي باره به يې د ده ملګري په خپل قدرت ور وغورځوي د دوی په لاسو سره او يا دې بيرته ملګري په خپل لاس ور وغورځوي او دا طريقه جواز لري او فديه هم نسته.

۶: شپږم شرط دا دی چې هغه شی چې د شيطان ځلي ته ور غورځوي د جنسه څخه به د ځمکې وي لکه ډبرې يا لوټې يا د خښتې ټوکې يا ګيرده سوې خټه يا د ګچو څخه جوړ سوی يا د سرې خاورې څخه جوړ سوی يا د غره مالګه نه هغه مالګه چې د اوبو څخه جوړه سوې وي ځکه اجزا يې اوبه وي يا کبريت يا د ډبرې بار يا مردار سنګ يا قيمتي ډبرې

لکه زبرجد یا زمرد یا بلخش یا بلور یا عقیق په یاقوتو او فیروزو کي اختلاف دی ابن الهمام د جواز او زیلعي د نه جواز حکم کړی دی غوره ویشتل په ډبره سره دی او په هغه شي سره چي د مځکي د جنس څخه نه وي جواز نه لري لکه په سرو زرو او یا سپینو زرو ویشتل یا په ملغلرو یا په عنبرو یا مرجانو ویشتل یا په لرګي یا په پچو د اوښ سره ویشتل جواز نه لري مبسوط وایي چي بعضي کسان وایي چي په پچو بې ویشتل ځکه روا دی دلته خو بې عزتي مطلوب ده هغه راغله او موږ دا خبره منو اګرچي محبوبي جواز ورکړی دی.

۷: اووم شرط د ویشتلو وخت دی د جواز وخت سنت وخت مکروه وخت د ادا. وخت د قضاء وخت دا ټوله بیان مځکي تېر سوی دی.

۸: اتم اشرط دا دی که چیري د یو کس څخه قضا سي معنا په خپل وخت کي بې و نه کړي بیا به بې قضا په هغه څلور ورځو کي راوړي او دم هم پر لازمېږي.

۹: نهم شرط پوره کول دی د اوو ډبرو یا اکثره که چیري بې څلور ډبري وویشتې او دري پاته سوې یا کم تر درو بیا خو صحت لري ځکه رکن بې پوره سو لیکن دم پر لازمیږي او که بې څلور یا زیات بې پرېښودې بیا بې حکم داسي دی لکه ویشتلي چي ګرسره نه وي.

او د ویشتلو دپاره پرله پسې والی شرط نه دی په اتفاق د علماؤ عامه خبره ده که د یو څلي ویشتل وي او که هغه دري څلي ویشتل وي لیکن پرله پسې والی بې سنت دی د سنت عمل پرېښول مکروه کار دی د نر او ښځي فرق نسته په ویشتلو کي صرف دونه فرق لري چي د ښځي دپاره د شپې ویشتل بهتره دی اوس په دغه مسئله کي اشاره دې حکم ته وسوه چي د ښځي پر ځای بې بل څوک نه سي ویشتلای بې له شرعي عذر څخه او بل د څلي د ویشتلو دپاره یو خاص طرف شرط نه دی او کوم چي بې خاص ځایونه د ویشتلو دپاره وه هغه په سنتو او مستحب اعمالو کي وه هلته تېر سوه او بل د ویشتونکي دپاره خاص حالت نه دی شرط چي یا به ولاړ وي یا به ناست وي یا به سپور وي یا به مخامخ ورته ولاړ وي یا به اودس لري یا به نژدې وي یا به لیري وي او کوم بیان چي تیر سو چي دوه نیم میتره به ورڅخه کم از کم لیري وي هغه په سنتو کي تېر سوه.

۱۰: لسم شرط ترتیب کول دی په ویشتلو کي د څلو دپاره پر قول د بعضو علماؤ امام سرخسي په مبسوط کي ذکر کړي دي چي په دویمه ورځ که یو شخص اول وار جمرة العقبه وولي بیا د مابین څلی وولي بیا اول څلی وولي چي مسجد ته نژدې دی نو به دغه سړی په دغه ورځ کي بیرته دویم څلی بیا جمرة العقبه څلی ولي اول خو بې مځکي ویشتلی دی دلیل بې دا دی چي په شریعت کي زموږ دغسي ترتیب راغلی دی او که بې وخت تېر

سو معنا دا ورځ پر تېره سوه بيا نو مثال داسي لري لکه هيڅ ويشتل چي يې کړی نه وي قضا پر لازميږي د درې سره څلو او بل ياد لره چي اول خلی د دويم دپاره د شروع مثال لري او دويم بيا د دريم دپاره د شروع مثال لري نو تر شروع د مخه عمل هيڅ اعتبار نه لري لکه په لمانځه کي چي سجده تر رکوع د مخه کوي او يا په حج کي سعيه تر طواف د مخه کوي نو لهذا که ترتيب ورځخه خراب سو د سره به بيرته څلي ولي د مبسوط بيان تمام سو او بعضي لا نه بلکې اکثره علما ترتيب سنت بولي لکه تصريح چي صاحب د بدائع او الکرماني او محيط او فتاوی السراجيه کړې ده او ابن الهمام وايي چي زما په نزد خو ترتيب سنت دی نه تعين او علامه سندي هم په متن ليکلي داسي لکه مبسوط چي چي ترتيب غلط کړي او اخري اول او ميانه دويم اول اخري وار وولي نو پر ده واجب ده چي بيرته به په دغه ورځ دويم او دريم څلي په اول پسې ولي او په نزد د اکثره علماؤ سنت مؤکد دی ترتيب يې.

او که چري يو کس اول خلی په درې ډبرو وولي بيا دويم په اووه او دريم په اووه ډبرو وولي هم اول څلی بيرته په هغه باقي پاته وارو کي ولي چي څلور ډبري يې پاته دي او که يې تړوله هر يو په څلورو څلورو ډبرو وويشتل بيا راګرځيدل نه غواړي او که يې راوګرځوي غوره کار دی که يو سړي تړوله څلي ويشتلي وه چي وې کتل په لاس کي يې څلور ډبري پاته سوي وې خبر نه وو چي دا د کم څلي ځخه پاته سوي دي نو به په دغه ډبرو اول څلی وولي دا نور به بيرته د سره څخه وولي ځکه احتمال لري چي دا به د اول څخه پاته سوي وي نو بيا خو د دا نورو ويشتل صحت نه لري.

او که درې ډبري په لاس کي پاته سوي وې بيا به ورګرځي درې سره څلي به په يوه يوه دانه ولي د سره راګرځيدل نه غواړي ځکه حکم اکثر لره دی اوس خو معلومه سوه چي څلور خو يې ويشتلي دي درې پاته دي او که يو حاجي څلي د اووه اووه واره زيات وولي عمل يې مکروه دی او که په اووم وار کي شکمن سو چي وې ويشتل معلوم سو ورته چي دا خو زما اتم وار وو بيا پروا نه لري او واجبات د ويشتلو دا دي چي د څلو ويشتل پر سر خريلو د مخه دی د امام اعظم رحمه الله پر مذهب او بل واجب دا دی چي د څلو ويشتل واجب دی لول يې ادا او که يې ادا و نه کړه بيا يې قضا واجب ده او که يې وخت تېر سو بيا دم پر واجب دی په اتفاق سره د علماؤ. والله اعلم.

## فصل د څلو د ويشتلو مکروهات

مکروهاته الرمي بعد الزوال في يوم النحر و قبله في سائر الايام و بالحجر الكبير و حصي المسجد و الجمرة و النجس و الزيادة على العدد و ترک الجهة المسنونة و القيام له بقربه و ترک الترتيب و طرح الحصي.

متن و بعده ترجمه و شرح ملا علي القاري

د شيطانانو د ځلو د ويشتلو مکروه کارونه دا دي چې د اختر په ورځ تر زوال وروسته ويشتل په اتفاق سره مکروه دي او په دا نورو ورځو کې تر زوال دمخه ويشتل مکروه دي په ضعيف قول او په صحيح قول سره تر زوال دمخه په دغه باقي ورځو کې جواز او صحت نه لري او په ځلورمه ورځ تر زوال دمخه ويشتل مکروه عمل دی د امام اعظم رحمه الله پرمذهب او د ابو يوسف او محمد رحمهما الله پر مذهب دا هم صحت نه لري تر زوال دمخه او بل مکروه عمل دا دی چې په غټو ډبرو ويشتل وکړي او يا د مسجد په ډبرو يا بل د ځلي ځخه را واخلي بيا يې په وولي او يا مرداري ډبري را واخلي لکه دا بيان چې درته تېر سوی دی او بل مکروه عمل زيات والی دی تر اووه واره او بل مکروه عمل ځېل د سنت طريقې طرف پرېښول دی او يا و ځلي ته نژدې درېدل دی او يا ترتيب غلط کول دی او يا پر ځلو ډبري اېښودل دي.

## فصل د منا ځخه د وتلو طريقه

و اذا فرغ من الرمي و اراد ان ينفر الى مكة في النفر الاول او الثاني توجه الى مكة و اذا وصل المحصب و هو الا بطح فالسنة ان ينزل به و لو ساعة و يدعو او يقف على راحلته و يدعو و الافضل ان يصلي به الظهر و العصر و المغرب و العشاء و يهجع هجعة ثم يدخل مكة وحد المحصب مابين الجبل الذي عند مقابر مكة و الجبل الذي يقابله مصعدا في الشق الا يسر و انت ذاهب الى منا مرتفعا عن بطن الوادي و ليس المقبرة من المحصب و لو ترك النزول بالمحصب يصير مسيئاً.

متن و بعده شرح ملا علي القاري

هرکله چې حاجي د ځلو د ويشتو ځخه فارغه سو نو د منا ځخه مکې مکرمې ته د وتلو طريقه يې دا ده چې د منا ځخه به يا د دريم يا ځلورم په ورځ مکې شريفې ته روان سي نو د محصب سره به يو ګړی ودرېږي چې په بل نامه ورته ابطح او په بل نامه ورته الحصاء او په بل نامه ورته البطحا او الخيف هم وايي چې دا ځای مکې ته تر منا نژدې دی د اندازې بيان به راسي نو سنت طريقه دا ده چې يو ګړی دلته ودرېږي دعاګاني وکړي او که سپور وو راکښته دې سي دا سنت زموږ پر مذهب دی که عذر نه وو ګناهګاره دی علاوه لا دا ده چې د شافعي او نورو علماؤ مذهب دا دی چې دلته کښته کېدل مستحب عمل دی د ټولو علماؤ پر مذهب اګرچې بحر زاخر او الينابع او المضمونات ليکلي دي چې پر خپله دابه دي سپور وي دعا دي وکړي.

ارشاد الساري دلته حاشيه ليکلې ده په هغه کې يې دواړه طرفه د حديثو په رڼا کې

څېړلي دي د ابن عباس ﷺ او بي بي عايشه رضي الله تعالى عنها څخه روايت دی چي دلته کښته کېدل سنت کار نه دی او نبي ﷺ دلته قصدا نه دی کښته سوی بلکې د ده مبارک کښته کېدل د دې دپاره وو چي خان د مکې د داخلېدو دپاره آماده کړي او زمونږ دلايل دا حديث دی چي نبي ﷺ وفرمايل مونږ سبا د خيف سره کښته کېږو معنا خيف بني کنانة څکه دلته قريشو پر خپل کفر قسمونه کړي وه، رواه البخاري و مسلم وغيرها.

او ابن عمر ﷺ وايي دلته کښته کېدل سنت کار دی نو ده ته يو چا وويل چي يو کس وايي دلته کښته کېدل سنت نه دی ابن عمر ﷺ وويل دا ډېر درواغجن دی نبي ﷺ او ابوبکر ﷺ او عمر ﷺ دلته خپل اوښان چوک کړي دي، رواه البخاري و مسلم.

ارشاد الساري وايي تر دې به قوي سنت عمل کوم وي او کوم چي ابن عباس ﷺ او بي بي عايشه رضي الله تعالى عنها وايي دا د خپل اجتهاد څخه نو د مرفوع حديث سره خو مقابله نه سي کولای او بل قانون دا دی چي مثبت پر نفي دمخه دی بحر الرائق ليکلي دي چي دلته کافران سره راجمع سوه او په دغه ځای کي يې قسم سره وکړی چي نبي ﷺ ته به ضرر رسوو نو نبي ﷺ به دلته کښته کېدی دپاره د دې چي دوی معنا کافران نبي ﷺ ووينې او د ده مبارک مهرباني ووينې د ده مبارک عزت ووينې چي الله رب العالمين کامياب کړی پر کفارو باندي نو دا کښته کېدل داسي سنت عمل وګرځيدی لکه د طواف دپاره چي شيطانان ولي، حباب.

فضيلت منده طريقه دا ده چي په منا کي د ماپښين مازيګر ماښام او ماخوستن لمونځونه وکړي بیا ورڅخه ولاړ سي مکې ته او د محصب اندازه دا ده چي د مکې د غره سره چي مقبره ده او هغه غر چي سړی د مکې څخه منا ته ځي چپه طرف ته د سړي کيږي د دغه غرو تر مابين د مقبرې سره دی ليکن مقبره نه ده په کښې داخل او که کښته نه سو ګناهګاره کيږي سنت عمل پاتيږي او تر ورځو د اختر بعد به عمرې د اقرباؤ او برادرانو دپاره کوي او بل به حاجي قارن تر تمامولو د حج د مکې څخه نه وزي.

## د مکې مکرمې د حرم اندازه

قال الله تعالى او لم يروا انا جعلنا حرما امنا و يتخطف الناس من حولهم افبا لباطل يومنون و بنعمة الله يكفرون. العنکبوت ٦٧

ژباړه: الله تعالى جل جلاه فرمايي آيا دوی نه دي ليدلي چي مونږ يو د امن څخه ډک حرم پيدا کړی دی په داسي حال کي چي د حرم د شا خوا څخه خلق تښتول کيږي آيا بیاهم دا خلق باطل مني او د لوی خدايه څخه ناشکري کوي.

فايده: حقيقت دا دی چي رب العالمين په خپل کامل قدرت سره د عربو په يې

امنیته مځکه کي په زرهاؤ کلونه دغه محترم حرم د هرقسم فسادو څخه ساتلی دی او بیا د هر قسمه میوو او اسانتیاؤ او پرېماني څخه ډک کړی دی لهذا د کعبې شریفي د شاوخوا تر لیري پوري د بیت الله حرم بلل کیږي چي د دې په فضیلت کي د حدیثو او فقهي ذخیرې ډکي دي نبي ﷺ فرمایلي دي چي د آسمان او مځکي د پیدایښت څخه شروع بیا د قیامت تر ورځي الله تعالی حرم محترم ګرځولی دی هیڅوک به نه د دغه ځایه څخه وابنه شکوي نه به ښکار په کښې کوي او نه به هغه شی پورته کوي چي د یو چا څخه لوېدلی وي لیکن که یې پورته کړ هغه به دپاره د هغه خاوند ته د رسولو په نیت سره وي لهذا دا محترمه مځکه چي څوک ور داخلیږي خپل شرائط او ادبیات لري چي بې له احرامه څخه سړی نه سي ور داخلېدلای لهذا کفار او دجال او طاعون دې حرم ته نه سي ورتلای نو د دې محترم حرم په شان کي په اسلامي تاریخو کي یو قسم روایات هم نقل سوي دي چي امام ازرقي او امام فاکهي روایت کوي چي هرکله آدم ﷺ پر مځکه باندي د شیطان د مکره څخه وېرېدی نو دی چي کعبې ته راغلی حق تعالی د مکې مځکي ته ملایکي ولېږلې او د آدم ﷺ او د کعبې پر څلورو خواو یې د پیرې دپاره ودرولې بیا د دغه ملایکو پر ځایو څلي ودرول سوه چي د کعبې خوا یې حرم وبلل سوه او د دباندي طرف یې حِل معنا د حرم د حدود څخه خارج مځکه وبلل سوه په بل روایت کي راځي چي هرکله ابراهیم ﷺ د کعبې شریفي د جوړولو څه بعد حجر اسود په کونج کي کېښېښود د هغه څخه د کعبې پر څلور طرفه رڼا پورته سوه تر کومه ځایه چي دا رڼا رسېدلې ده هغه حق تعالی حرم وګرځوی.

## د حرم څلي

دغه څلي چي انصاب الحرم ورته وایي د حرم المحترم د نښاني کیدو په توګه دا هاکو ډبرو او ریګو څخه جوړ سوي دي او ځایونه یې د تاریخ القویم په قول په لاندي ډول دي:

۱: اول د مدینې منورې پر لاره د تنعیم د مسجد سره نژدې دی چي هغه بل طرف ته د حل یې د سعودي د برېښنا د شرکت منطقه ده او هم د دغه ځایه څخه مکې ته د برق لینونه کش سوي دي او بل دلته د پولیسو یوه پوسته هم سته چي د دغه ځایه څخه د حرم خوا ته کافران نه پرېږدي.

۲: دویم څلی په عرفات کي د نمرې د مسجد سره دی.

۳: دریم څلی د طایف په لاره کي د الشرائع د کرهني د مځکو سره دی.

۴: څلورم څلی د یمن په لار کي د محطته البیض سره دی.

۵: پنځم څلی د جدې په لار کي د شمسي مسجد سره دی چي پخوا ورته حدیبیه ویل کېده دوه څلي دي، د یادوني وړ ده چي په نورو کتابو کي شپږم حد هم د عراق پر لاره په

مقطع نومي خاى كي دى د ثنية حل په طرف كي ښوول سوى دى.

## د حرم د ځلو جوړونکی

دغه ځلي تر ټولو دمخه حضرت ابراهيم الطَّلِيِّلاً د جبرايل الطَّلِيِّلاً په لارښونه تقريبا څلور زره كاله دمخه جوړ كړي دي بيا يې دغه كسانو تجديد كړى دى حضرت اسماعيل الطَّلِيِّلاً بيا قصى ابن كلاب بيا قريشو د نبي الطَّلِيِّلاً تر هجرت دمخه بيا د مكې د فتحې په اتم كال بيا په ۱۷ شمسي كال د هجرت كي حضرت عمر ﷺ بيا په ۲٦ كال شمسي كي حضرت عثمان غني ﷺ بيا حضرت معاوية ﷺ بيا عبدالملك بن مروان په ۱۵۹ كال شمسي كي خليفه مهدي بيا په ۳۲۵ شمسي كال كي الراضي بالله عباسي بيا مقتدر عباسي بيا په ٦۱٦ شمسي كال د اربل واكمن ملك ظفر بيا په ٦۸۳ كال كي د يمن واكمن المظفر بيا په ۱۰۲۳ كال كي عثماني باچا اول سلطان احمد بيا په ۱۲۷٦ شمسي كال كي سعودي واكمن ملك سعود كبير جوړ كړل د المظفر تر جوړولو بعد اوس علامه فاسي وايي چي د حرم د جدې او جعرانې پر خواو ځلي نسته خو علامه طاهر كردري وايي چي د جدې پر لاره د شمسي حديبيې سره دوه ځلي ډېر لرغوني دي چي د اوښانو د قافلو پر پخواني لار واقع وه بيا د ۱۳۷٦ شمسي كال په اولي خور كي د دغه دوو ځلو په مقابل كي د جدې پر لويه ډامبر سوې لار د مكې څخه پر ۱۹ كيلوميتره باندي دوه نوي ځلي د ملک سعود په امر جوړ سول چي د جوړولو او نقاشي كار يې هم دغه علامه طاهر كردي ته سپارل سوي وه هم دغه راز د طايف پر لار د شرايع پر سيمه دوه پخواني ځلي په كال ۱۳۷۷ شمسي كي د ملک سعود په امر سره ترميم سوه چي د هغو نقاشي هم علامه طاهر كردي كوله.

## د مسجد الحرام څخه د حرم تر ځلو پوري مقدارونه

د مسجد الحرام څخه د حرم تر ځلو پوري واټنونه امام ازرقي او نور ډېر عالمانو په ميلنو ښولي دي چي دقيقه اندازه يې نه ده معلومه سوې همدا رنګه نورو د تاريخ كتابو خو اوس په دغه لنډه زمانه كي معنا ۱۴۲۳ قمري كال كي په رياض كي د شيخ صفي الرحمن مباركپوري په مشرى سره د عالمانو د يوې ډلې د خوا څخه يو كتاب د تاريخ مكة المكرمة په نامه چاپ سو او د مكې د حرم اندازه په كښې ښوول سوې ده په كيلو ميتر سره لكه څنګه چي دغه كتاب په اوسنى زمانه كي د سعودي او نورو علماو د خوا څخه جوړ سوى او خپور سوى دى فكر كيږي چي دا به دقيق انداز د حرم د ځلو او طرفو معلوم كړي.

د دغه كتاب د رويه څخه د حرم پوله د لمر لوېدو څخه د جدې پر لاره الشمسي حديبيه ده چي د مكې څخه دولس كيلوميتره ليري ده د جنوب طرف څخه د تهامې د خوا څخه د يمن پر لاره اضائة لبن دى چي د مكې څخه دولس كيلوميتره ليري دى او د لمرخاته

طرف څخه د عرنه د ناوي لمر لوېدو څنډه ده چي د مکې څخه پنځلس کیلومیتره لیري ده او د شمال لوېديځ څخه شرائع المجاهدین کلي ته نژدې د جعراني لار ده چي د مکې څخه شپاړس کیلومیتره لیري ده.

## د بیلو بیلو متبرکه ځایو تر مابین واټنونه

د جدې د هوايي ډګر څخه د جدې تر ښاره پوري د لاري واټن ۴۰ کیلومیتره دی.
د جدې او مکې تر مابین د لاري واټن ۷۴ کیلومیتره دی.
د مکې څخه بیا تر منا پوري ۸ کیلومیتره واټن دی.
د منا څخه بیا تر مزدلفې پوري ۵ کیلومیتره واټن دی.
د مزدلفې او نمره مسجد تر مابین ۸ کیلومیتره واټن دی.
د مسجد الحرام او خیف مسجد تر مابین ۹ کیلومیتره واټن دی.
د خیف مسجد څخه د مزدلفې تر مسجد پوري ۵ کیلومیتره واټن دی.
د مزدلفې د مسجد څخه تر نمره مسجد پوري ۷ کیلومیتره واټن دی.
د نمره مسجد څخه د جبل الرحمت تر ډېرو مسجد پوري ۳ کیلومیتره واټن دی.
د مسجد الحرم د باب بني شیبه څخه بیا د معلا د هدیرې تر دروازې پوري ۱۰۴۲ میتره واټن دی.
د معلا د هدیرې څخه تر عقبه ځلي پوري ۵۵۰۷ میتره واټن دی.
د جمرة العقبه ځلي څخه د محسر تر کندي پوري د منا اوږدوالی ۳۵۲۸ میتره واټن دی.
د محسر د وروستۍ برخي څخه د مازمین ترا ولي پولي د مزدلفې اوږدوالی ۳۸۱۲ میتره واټن دی.
د مازمین شروع د عرفات سره د حرم تر دوو ځلو پوري د مازمین د لاري اوږدوالی ۴۳۷۲ میتره دی.
د حرم د دغه دوو ځلو څخه تر هغه ځلو پوري چي دعرفات په لومړيو کي ولاړ دي ۱۵۵۳ میتره واټن دی.
د عرفات د دغه ځلو څخه تر جبل الرحمت تر لمني پوري واټن ۱۵۵۲ میتره دی.
د مسجد الحرام څخه تر عرفاته پوري د لاري واټن ۲۱ کیلومیتره دی.
د مسجد الحرام څخه تر تنعیم پوري د لاري واټن ۱۰ کیلومیتره دی.
د جدې څخه تر مدینې پوري د لاري واټن ۳۸۰ کیلومیتره دی.
د مکې څخه تر مدینې منورې پوري د لاري واټن ۵۰۰ کیلومیتره دی.

د مديني منورې څخه تر ذوالحليفې پورې (ابيارعلي) واټن ۹ کيلوميتره دی.
د مکې څخه تر طايف پورې د نوي لارې جبل کرا د لارې واټن ۸۵ کيلوميتره دی.
د مکې څخه تر رياض پورې واټن ۹۵۷ کيلوميتره دی.
د مکې څخه تر رابغ پورې واټن ۲۱۲ کيلوميتره دی، زموږ د قبلې تاريخ ص۳۹۰ الی ص۳۹۴.

## باب طواف الصدر معنا د رخصت طواف

طواف الصدر هو واجب على الحاج الافاقي المفرد و المتمتع و القارن ولا يجب على المعتمر و لا على اهل الحرام و الحل و المواقيت و فائت الحج و المحر و المجنون و الصبي و الحائض و النفساء و من نوي الاقامة الا بدية بمكة قبل حل النفر الاول من اهل الافاق و شرائط صحته اصل نيته الطواف لا التعيين و ان يكون بعد طواف الزيارت و اتيان اكثره و كونه بالبيت و اما وقته فاوله بعد طواف الزيارت فلو طاف بعد الزيارت طوافا يكون عن الصدر و لو في يوم النحر و لاخر له فلو اتي به و لو بعد سنة يكون اداء لا قضاء و يستحب ان يجعله اخر طوافه عند السفر و لو اقام بعده و لو اياما او اكثر فلا باس و الافضل ان يعيده و لا يسقط عنه هذا الطواف بنية الاقامة ولو سنين و يسقط بنية الا ستيطان بمكة او بما حولها ان نواه قبل حل النفر الاول و لو نواه بعده لا يسقط و ان نوي قبل النفر ثم بدا له الخروج و لم يجب كالمكي اذا خرج لا يجب عليه.

متن و بعده شرح ملا علي القاري

طواف صدر يا په بل عبارت چې ورته طواف رخصت وايي څکه دا اخري د کعبې شريفې څخه د رخصت طواف دی او دا طواف پر افاقي خلقو واجب دی نه پر مکي او ميقاتي سړي باندې عامه خبره ده که حاجي قارن وي يا حاجي متمتع وي يا حاجي مفرد وي پر عمره کونکي اګر که افاقي وي نسته او نه هم پر خلقو د مکې سته نه هم پر هغه کسانو سته چې په حرم کې يې کورنه داخل وي لکه منا يا خارج وي لکه جده او نه هم پر هغه چا سته چې حج ورڅخه خراب سي معنا ورڅخه فوت سي او نه پر هغه چا سته چې د حج څخه يې يو دښمن منع کړي او راګرځولی وي د حج څخه او نه پر لېوني او کوچني سته څکه دغه دوه مکلفه نه دي او پر حيضي او نفاسي نسته څکه دوی معذوره دي او که چا په مکه کې دا قامت نيت وکړی چې دلته به اوسېږم او دا نيت يې د افاقيانو تر روانېدو وو بيا نو دی د مکې څخه وګرځېدی اګر که ابو يوسف رحمه الله وايي زه يې د مکي دپاره هم خوښوم څکه دا دپاره د ختمولو د حج د افعالو څخه دی.

او شرطونه د طواف رخصت دپاره چې صحت د طواف راولي نيت د طواف نه دا چې

د رخصت تعين به غواړي څكه وخت يې متعين دى د ده د روانېدو په وجه سره او بل شرط د صحت يې دا دى چي دا طواف رخصت به تر طواف زيارت وروسته وي او بل شرط د صحت يې اكثره شوطونه او كيدل د طواف يې پر بيت الله شريفي دى او وخت يې د طواف زيارت څخه بعد شروع كيږي تر طواف زيارت كه يې بعد طواف وكړى هغه بس د طواف صدر څخه شمېرل كيږي نيت يې د رخصت كړى وي او كه يې نه وي كړى اگر كه د اختر په ورځ وكړي لا صحت لري علاوه لا دا ده چي نور افعال د حج لاهم پاته وي او د طواف رخصت دپاره اخيره اندازه نه ده معلومه د ده تر عمره پوري پر واجب دى هر وخت چي يې وكړى جواز لري او كه يې پر كال دا طواف وكړى هم قضا نه ورته ويل كيږي بلكې ادا ورته ويل كيږي بدائع ليكلي دي چي جواز لري د اختر په ورځو كي او بعد د اختر تر ورځو او تولو وخت كه د اختر او كه بعد وي ورته ادا وايي قضا نه ورته وايي او كه چيري يو كس طواف رخصت وكړي باره په مكه كي مقيم سو طواف يې جواز لري اگر كه يو كال دلته مقيم وي ليكن افضله دا ده چي په اخرو ورځو كي د اختر تر ورځو بعد يې وكړي په اجماع سره د علماؤ مستحب دا ده چي د وطن د سفر اراده وكړي باره دي طواف رخصت وكړي لكه د امام شافعي رحمه الله چي هم دغسي مذهب دى خو امام صاحب ورته مستحب دا وخت بولي څكه امام اعظم رحمه الله وايي كه يې طواف وكړى باره تر ماخوستنه پاته سو نو زه دا خوښوم چي بيا د رخصت دپاره بل طواف وكړي څكه چي د ده د طواف او سفر تر مابين پرده واقع نه سي او كه چيري يو كس طواف رخصت وكړى باره دري يا زياتي ورځي دلته وو پروا نه لري ليكن افضله يې راگرځول دي او د افاقي څخه چي انه يوالان يې روان سوه نه ساقطيږي اگر كه په مكه كي د مقيم والي اراده وكړي اگر كه ډېر كلونه هم پاته سي او كه يې مكه د خان دپاره وطن وگرځول او د وتلو اراده يې هيڅ بيا نه وه نو طواف رخصت ورڅخه ساقط دى اگر كه يې تر ميقاتو پوري لا د وطن كيدو اراده وي خو په اتفاق د علماؤ دا شرط په كتبي دى چي د ده ملگري به لا نه وي روان سوي او كه يې د ملگرو تر روانېدو وروسته مكه وطن وگرځوى بيا طواف رخصت نه ورڅخه ساقطيږي د امام اعظم رحمه الله او امام محمد رحمه الله پر مذهب باندي اگرچي د ابو يوسف رحمه الله پر مذهب ورڅخه ساقطيږي طواف رخصت.

او كه چيري يو كس مكه وطن وگرځوى ليكن چي ملگري يې لا نه وه روان سوي بيرته يې اراده وكړه چي څم به خپل وطن ته بياهم نه پر واجبيږي لكه پر مكي سړي چي نه واجب كيږي طواف رخصت چي د مكي څخه وزي.

| | |
|---|---|
| هو الحبيب ترجي شفاعته | لكل هول من اهوال مقتلحم |
| مولاى صل و سلم دائما ابدا | على حبيبك خير خلق كلهم |

# فصل چي طواف رخصت و نه کړي بيرته به د لاري څخه ورته راګرځي

يجب عليه العود بلا احرام مالم يجاوز الميقات فان جاوزه لم يجب الرجوع و يجب الدم و ان عاد فعليه الاحرام بعمرة او حج فان رجع بدا بطواف العمرة ثم بالصدر و لا شئ عليه بالتاخير و يكون مسيئاً و الاولي ان لا يرجع بعد المجاوزة و يبعث دما لانه انفع للفقراء. و اذا طهرت الحائض قبل ان تفارق بيناء مكة يلزمها طواف الصدر و ان جاوزت ثم طهرت لم يلزمها و لو طهرت في اقل من عشرة و هي حائض ثم طهرت فرجعت الى مكة قبل مجاوزة الميقات لزمها الطواف و النفساء كالحائض و ليس على الخوارج الى التنعيم وداع.

متن و بعده ترجمة و شرح ملا علي القاري

که چيري حاجي د مکې مکرمې څخه ووتی او طواف رخصت ورڅخه پاته سو نو پر دغه حاجي واجب ده چي بيرته راوګرځي طواف رخصت وکړي باره روان سي خو ياد ساته يو به دا وي چي تر ميقات به نه وي تېر سوی او بل دا خبره ياد لره چي طواف رخصت ته بل احرام بيا ضروري نه دی هغه پخوانی اصلي احرام يې کافي دی او که تر ميقات تېر سو بيا دم پر واجب دی خو بيرته راګرځيدل پر واجب نه دی ځکه يو خو به د ده څخه تکليف ليري سي او بل به مسکينانو ته د ده نفع ورسيږي او که چيري د ميقاتو د شا څخه بيرته راوګرځېدی دپاره د طواف صدر بيا نو دم ورڅخه ساقط دی ليکن احرام به د عمرې يا د حج تړي باره به مکې ته راځي ځکه هر څوک چي اراده د مکې د ننوتلو وکړي خامخا به د دغه نسکينو څخه د يوه دپاره احرام تړي عمره يا د حج دپاره نه داسي چي طواف صدر احرام غواړي اوس که احرام بنده وو و حرم ته را ورسېدی نو به اول د عمرې طواف وکړي ځکه دا قوي دی بيا به د طواف صدر طواف وکړي دغسي بدائع فتاوا وغيره ليکلي دي اوس نو هيڅ شی نسته وربانديي نه دم به هم خيرات ځکه طواف رخصت چي پر واجب وو هغه خو يې ادا کړی په دويم وار راتلو سره ځکه طواف صدر معنا د رخصت طواف اخير نه لري صرف د سنت يا مستحب عمل د پرېښولو په خاطر ګناهګاره دی مګر هر څوک چي تر ميقاتو تېر سو غوره ورته دا ده چي بيرته را و نه ګرځي ليکن دم به ورته راليږي مکې ته ځکه د دم نفع مسکينانو ته رسيږي او د ده څخه هم تکليف ليري کيږي او که ښځه دا وخت د حيض څخه پاکه سوه چي د مکې تر آباديو لا نه وه تېره سوې بيا طواف رخصت پر لازم دی او که تېره سوې وه بيا راګرځيدل وربانديي نسته او نه هم دم پر لازميږي او که چيري يوه ښځه تر ميقات لا نه وه رسېدلې چي پاکه سوه د حيض څخه او بيرته راوګرځيده نو طواف رخصت وربانديي لازم دی ځکه اوس داسي سوه لکه وتلې چي نه وي د مکې څخه او کوم کسان چي د حج څخه

خې د تنعیم خوا ته چې د حرم څخه وتلی خای دی طواف رخصت نسته وربانديې او که څوک اراده وکړي د میقاتو څخه د حج یا عمرې بیا نو احرام پر لازم دی.

## فصل د طواف رخصت بنوونه

و اذا دخل المسجد بدا بالحجر الاسود فيستلم ثم يطوف سبعا بلا رمل و لا اضطباع و لا سعي بعده ثم يصلي ركعتين خلف المقام او غيره ثم ياتي زمزم فيشرب منه ويصب على راسه و وجهه و جسده و يستقي بنفسه ثم ياتي الملتزم و ياتي الباب و يقبل العتبة ويدعو و يدخل البيت ان تيسر وصفة الالتزام ان يضع صدره وخده الايمن على الجدار و يرفع يده اليمني الى عتبة الباب و يتعلق باستار البيت و يتشبث بها ساعة متضرعا متخشعا داعيا باكيا مكبرا مصليا على النبي عليه السلام حامدا ثم يستلم الحجر و يرجع ووجهه الى البيت متباكيا متحسرا على فراقه حتى يخرج من اسفل المسجد قيل من باب العمرة و قيل ينصرف و يمشي و يلتفت الى البيت كالمتحزن على فراقه و الحائض تقف عند باب المسجد و تدعو و تمضي و يستحب خروجه من الثنية السفلي من اسفل مكة و يتصدق عند الخروج بشئ و يسير الى مدينة رسول ﷺ.

متن و بعده ترجمهٔ د شرح ملا علي القاري

هرکله چې حاجي د مکې مکرمې څخه روانېدی نو د طواف رخصت طریقه یې داسې ده چې اراده یې وکړه چې مسجد الحرام ته ور داخل سي نو د ده اوله شروع به تر نیت وروسته د حجر اسود څخه وي نو به حجر اسود مسحه کړي باره به طواف شروع کړي اووه شوطه به پوره کړي خو اوږې بنورول او وږه لڅول به کښې نسته او نه هم د صفا او مروا تر مابین سعیه په کې سته چې اووه شوطه طواف یې پوره کړی مقام ابراهیم ته به راسي یا بل ځای د مسجد حرم ته که وخت د کراهت نه وو دوه رکعته لمونځ به ادا کړي باره به د زم زم اوبو ته راسي ورڅخه و به یې چښي مخامخ به قبلې ته ولاړ وي یا به ناست وي نو درې واره به چښل وکړي هر وار چې چښل کوي بیت الله ته به ګوري په هر وار به داسې وايي:

بسم الله والحمدلله و الصلاة و السلام على رسول الله.

معنا شروع کوم د خدای په نامه ثناوې خدای لره دي درود او سلام پر ﷺ دی.

په دریم وار چې دا اخیري وار د چښلو دی دا دعا به کوي:

اللهم اني اسالک رزقا واسعا وعلما نافعا و شفاء من داء.

معنا یا الله ستا څخه حلال او پراخه رزق علم نافع او جوړوالی د هر قسمه درد څخه غوارم.

نو به د زمزم اوبه پر سر مخ او بدن د برکت دپاره توی کړي هرڅونه چې یې چښلای

سي و دې چنبې باره دې ملتزم ته راسي دعاګاني دې وکړي او بيا د کعبې شريفې دروازې ته دې ورسي چار چوبونه دې يې مچ کړي او دعاګاني دې وکړي او که يې په اسانۍ کولای سوه بيت الله ته دې ور ننوځي او دغسي ترتيب چې موږ بيان کړی دا مشهور روايت دی او اصح قول همدغسي دی لکه زيلعي او کرماني چې تصريح يې کړې ده او بدائع يې تائيد کړی دی نو کرخي د امام اعظم رحمه الله مذهب همدغسي ذکر کړی دی اګرچې قيل ترتيب بل قسم ذکر کړی دی او طريقه د ملتزم د زيارت داسي ده چې خپل ځيګر او راسته طرف د مخ به پر دېواله کښېږدي راسته لاس به هغه چارچوب ته د کعبې وغزوي او د کعبې په پردو پسې به ځان داسي پيوست کړي لکه د خپل بادار نو يو څه زمانه به دلته ودرېږي په ظاهر او باطن کي به عاجزه وي الله اکبر او درود ويونکی او دعا کونکی به په ژړا سره وي بيا به حجر اسود مسحه کړي نو به تر شا ورځخه روان سي بيت الله ته به ګوري ژړېدونکی او غم کونکی به وي پر جدا کيدو ورځخه باره به د مسجد الحرم د کښته طرف څخه ووزي دا مستحب طريقه ده بعضي وايي د باب العمرة څخه دي ووزي ليکن اصح دا ده چې د باب الحزورة څخه دي ووزي لکه عام عمل چې هم پر دغه دی او تائيد يې د ترمذي او ابن ماجه حديث هم کوي چې نبي ﷺ پر حزورة ودرېدی باره يې وويل چې قسم په خدای دی چې غوره او خير د خدای د مځکي څخه ته او محبوبه مځکه يې و الله رب العالمين ته که چيري زه قريشو د دغه ځايه څخه نه وای مهاجر کړی زه نه درڅخه تلم. التمهيد ج۱۰ ص۱۶۸، ميزان الاعتدال نمبر ۱۵۱۱-۲۲۹۹، لسان الميزان ج۲ ص۴۸۸ ص۵۹۴، کشف الخفاء ج۱ ص۱۴۷، اتحاف السادة المتقين ج۲ ص۲۲۳، تلخيص اللحبير ج۴ ص۱۹۰.

ارشاد الساري ليکلي دي د دغه حديث څخه معلوم سو چې مؤمن مسلمان لره مناسب نه ده چې د مکې څخه ووزي مګر که يې حقيقي يا حکمي وتل کول بيا جواز لري معنا يا يې ديني يا دنياوي ضرورت درلود ځکه ويل سوي دي چې د سعادت ځای مکه ده، انتهي.

ويل سوي دي چې د مکې مکرمې څخه به روان سي غم کونکی او بيت الله ته به ګوري لکه غمګين چې وي نو دا طريقه د اختلاف څخه وتلې ده او جمعه کونکې د ټولو دلايلو ده لکه مځکي چې تېر سوه هدايه او الکافي وغيره کتابو هم دغه خوښه کړې ده او که ښځه حايضه وه بيا به د مسجد حرم د هري دروازي سره چې ودرېده ليکن غوره حزوره دروازه ده باره به دلته دعاوي وکړي نو به روانه سي ورځخه د حاجي وتل تر طواف رخصت بعد د مسجد حرم څخه مستحب دا دی چې د ثنية السفلي څخه د مکې پر لاندي لاره ووزي او د وتلو په وخت کي خيرات هم وکړي پر مسکينانو او بيا مدينې منورې ته د نبي

ﷺ زيارت ته ولاړ سي چي د حج مشک او عطر هم بيا دغه زيارت کول دي او بل به د ده زيارت د دواړو حرمينو څخه وسي د خدای جل جلاله او د نبي ﷺ د دواړو زيارت به هم وسي او دا دلالت پر کلمه شهادت هم کوي پر وحدانيت د الله او پر رسالت د محمد رسول الله ﷺ خو ياد لره چي کوم سړي ته اساني وي.

## باب القِران

القِران افضل من الافراد و المتمتع وهو ان يجمع الافاقي بين الحج و العمرة متصلا او منفصلا قبل اكثر طواف العمرة و لو من مكة و يؤديهما في اشهر الحج معا من صفته ان يحرم بالعمرة و الحج معا من الميقات او قبله وهو الافضل و يقول اللهم اني اريد العمرة و الحج فيسرهما لي و تقبلهما مني نويت العمرة و الحج و احرمت بهما لله تعالى لبيك بعمرة و حجة الى اخره و يقدم العمرة على الحج في النيته و التلبيته و الدعاء استحبابا و ان قدم الحج في الذكر جاز و ان قدمه احراما كره و لو اكتفى بالنية و لو بذكرهما في التلبية جاز و يستحب ذكرهما فيها و لو مرة و لو كان نسكاه عن الغير يقول اللهم انی اريد العمرة و الحج عن فلان.

متن و بعده ترجمة و شرح ملا علي القاري

حج قِران په لغت کي جمع کېدو ته ويل کيږي او په شريعت کي د عمرې او حج يوځای کېدو ته ويل کيږي په يوه نيت سره متصل يا يو ځل د عمرې وروسته بيا د حج نيت وکړي يا احرام د عمرې بيا وروسته د حج احرام وتړي لکه مثلا د عمرې احرام يې وتړی يو څه طوافونه يې ورته وکړه باره يې احرام د حج ورسره ملګری کړی نو دا حج قِران سو اګر که احرام د حج د مکې څخه وتړي خو شرط په کښې دا دی چي د حج مياشتي به وي که چيرې يو کس په روژه کي د حج تر مياشتو دمخه د عمرې اکثره طوافونه وکړي بيا نو د حج احرام نه په ګډيږي طريقه د حج قِران داسي ده چي د ميقاتو څخه يا د خپل وطن يا کوره څخه چي فضيلت هم دغه لري د عمرې او حج احرامونه يوځای يا پرله پسې وتړي باره داسي نيت وکړي وايي ياالله زه اراده د عمرې او حج لرمه راته اسانه يې کړې دواړه او راڅخه قبول يې کړې دواړه او توفيق راکړې د دواړو او نيت مي دی د عمرې او حج او احرام مي ستا درضا دپاره تړلي دي د دواړو په خدمت يو وار بيا وروسته بل وار ولاړ يم په عمره او حج سره باره به تولہ تلبيه ووايي عمره به په نيت او تلبيه کي دمخه کوي همدا رنګه په دعا کي او دغه مستحب طريقه ده او که يې حج په تولو کي دمخه ووايه جواز لري ځکه دلته فرض پر مستحب دمخه کيږي په هغه مخکي طريقه کي مستحب دمخه کيږي لکه د سهار سنت چي پر فرضو دمخه دي او بل که حج دمخه پر عمره ياد کړي موافقت د قِران سره هم راځي

په ذکر کي الله فرمايي:
واتموا الحج والعمرة لله. بقره ۱۹۶
او که احرام د حج اول وتړی او بيا د عمرې دپاره بيا داسي عمل مکروه دی ځکه د سنتو څخه مخالفت دی او که يې د حج او عمرې ذکر په تلبيه او دعا کي وکړی جواز لري ليکن خلاف الاولی کار خو دی مستحب دی ذکر کول د عمرې او حج دواړو په نيت کي اگر که په تلبيه کي يې يو وار ذکر وکړی او که چيري يې حج قِران د بل چا دپاره کوی نو به داسي وايي چي زه اراده د عمرې او حج لرم د فلانکي سړي دپاره او يا عمره کوم د فلانکي سړي دپاره يا حج کوم د فلاني دپاره.
حج قِران يوازي د افاقي سړي دپاره جواز لري نه د مکي او ميقاتي دپاره او بل حج قِران زموږ پر مذهب تر حج تمتع او حج افراد فضيلت زيات لري مالک او شافعي رحمهما الله افراد غوره بولي.

## فصل هغه شرطونه چي حج قِران په صحيح کيږي

شرائط صحت القران الاول ان يحرم بالحج قبل طواف العمرة كله او اكثره فلو احرم به بعد اكثر طوافها لم يكن قارنا و الثاني ان يحرم بالحج قبل افساد العمرة الثالث ان يطوف للعمرة كله او اكثره قبل الوقوف بعرفة فلو لم يطف لها حتى وقف بعرفة بعد الزوال ارتفضت عمرته و بطل قرانه وسقط عنه دمه و لو طاف اكثره ثم وقف اتم الباقي منه قبل طواف الزيارة الرابع ان يصونها عن الفساد فلو افسدهما بان جامع قبل الوقوف وقبل اكثر طواف العمرة بطل قرانه و سقط عنه الدم و ان ساقه مع يصنع به ماشاء الخامس ان يطوف للعمرة كله او اكثره في اشهر الحج فان طاف الاكثر قبل الاشهر لم يصر قارنا و ان طاف الاقل قبلها و اكثره فيها كان قارنا السادس ان يكون افاقيا و لو حكما فلا قِران للمكي الا اذا خرج الى الافاق قبل اشهر الحج قيل ولو فيها فيصح منه القران لصير ورته افاقيا حكما السابع عدم فوات الحج فلوفاته لم يكن قارنا وسقط الدم.

متن ترجمة و شرح ملا علي القاري
چونکې د حج قِران دپاره د صحت شرطونه ستة هرکله چي دا شرطونه موجود سوه حج قِران يې صحيح کيږي او که دا شرطونه نه سوه موجود بيا نو حج قِران صحت نه لري:
۱: اول شرط يې دا دی چي احرام د حج به د عمرې تر تولو يا اکثره شوطو دمخه وي اکثره شوطونه څلور دي او که يو شخص د حج احرام د عمرې تر طواف يا تر اکثره شوطو بعد وتړی نو دا حج قِران نه دی شرعاً بلکې صرف د لغت په اعتبار ورته قِران ويل کيږي اوس که چيري د عمرې احرام ده د حج په مياشتو کي تړلی وو نو يې حج تمتع دی او که د

عمرې احرام او طواف يې تر مياشتو د حج دمخه ترلى وو بيا نه تمتع او نه قِران دى.

۲: دويم شرط دا دى چې د حج احرام به تر فساد د عمرې دمخه وي په اجماع سره د علماؤ معنا دا ده که يو شخص د عمرې احرام وتړى طواف يې لا نه وو کړى د عمرې دپاره د بنځې سره يې وطي وکړې تر طواف دمخه باره يې د حج احرام هم ورپسې وتړى نو دا حج نه قِران او نه تمتع بلل کيږي حج يې صحت لري ليکن د عمرې قضا پر لازمه ده بل دغه عمره به هم پوره کوي.

۳: دريم شرط دا دى چې د عمرې طواف ټوله يا اکثره شوطونه به د عرفات تر درېدلو دمخه وي او که چيري يې د عمرې دپاره طواف و نه کړى تر زوال وروسته پر عرفات ودرېدى عمره يې ماته سوه او حج قِران يې باطل سو او د قِران دم هم ورڅخه ساقط سو خو د عمرې قضا پر لازمه سوه تر اختر بعد به د تشريق تر ورځو بعد قضا د عمرې راوړي او بل د اولي عمرې د ماتوالى دم پر لازم دى او که چيري يې اکثره شوطونه د عمرې تر عرفات دمخه کړي وه باره پر عرفات ودرېدى نو حج يې قِران دى ليکن د عمرې هغه باقي شوطونه به تر طواف زيارت دمخه کوي.

ځکه حق د عمرې د شوطو دمخه دى د دغه سړي پر غاړه او د عمرې شوطونه واجب او د طواف زيارت دا فرض دى مسئله که چيري يو کس اکثره شوطونه د عمرې دپاره کړي وه باره ورځ د عرفات سوه عرفات ته روان سو آيا د ده عمره ماتيږي او که نه ماتيږي؟

جواب دا دى چې په ظاهره روايت کې نه ماتيږي چې روايت صاحب د هدايې الکافي ذکر کړى دى شرعاً او استحساناً هم دغه مسئله ده او کوم روايت چې الحسن او الطحاوي د امام اعظم صاحب څخه د عمرې د ماتوالي کړى دى هغه قياس دى چې الفتح کتاب صحيح او ظاهره روايت بللى دى.

۴: څلورم شرط د قِران حج دا دى چې د عمرې احرام به د فساد څخه ساتي معنا دا چې تر طواف د عمرې دمخه وطي و نه کړي يا مرتد نه سي العياذ بالله او که يو کس د عمرې او حج معنا د قِران احرام ترلى وو خو تر طواف دمخه يا تر اکثره شوطو دمخه يې وطي وکړې نو حج قِرانَ يې باطل سو او دم د قِران هم ورڅخه ساقط سو ځکه دواړه احرامه فاسد سوه علاوه لا دا ده چې حج يې فاسد سو دا به پوره وکړي پر بل کال به يې قضا راوړي او که هديه ورسره وه هغه به هم حلاله کړي.

۵: پنځم شرط يې دا دى چې د عمرې طواف او يا اکثره شوطونه د طواف د عمرې به د حج په مياشتو کې داخل وي اوس که چيري يې د حج تر مياشتو دمخه د عمرې دپاره اکثره طواف کړى وو بيا نو قارن حاجي نه بلل کيږي او که يې لږ طواف د حج تر مياشتو

دمخه کړي وو او زيات طواف يې د حج په مياشتو کي وکړی د عمرې دپاره بيا نو حاجي قارن بلل کيږي.

٦: شپږم شرط يې دا دی چي دا حاجي قارن به د مکې نه وي بلکې افاقي به وي اگر که حکما افاقي گرځيدلی وي لکه مثلا يو شخص د مکې وي نو د حج تر مياشتو لا د ېر دمخه و اطرافو ته ولاړ سي باره د هغه اطرافو ځخه د قِران احرام وتړي نو دی هم په حکم کي د افاقي سو نه د مکي همدارنگه مثلا که يو سړی مکې ته د مشرق ځخه راغلی او دلته يې د سکونت نيت وکړی نو دی حکماً مکي سو حج قِران ورته جواز نه لري خو ياد لره چي د حج قِران مسنون دپاره مطلب دا سو چي مکي سړی د حج او عمرې عقد وکړي هم صحت لري او عمره هم په مياشتو د حج کي پر حج دمخه کولای سي.

٧: اووم شرط دا دی چي حج ورځخه فوت نه سي معنا دا سوه که حج ورځخه پاته سو بيا نو قارن نه دی او دم هم ورځخه ساقط سو.

## فصل هغه اعمال چي پر حاجي قارن لازم نه دي

و لا يشترط للصحت القران عدم الالمام فيصح من کوفي رجع الی اهله بعد طواف العمرة و من مکي خرج الی الافاق و لا احرامه من الميقات فلو احرم بهما او باحدهما بعد الميقات و لومن مکة يصير قارنا و لکن مع الا سائة و لا تقديم احرام العمرة علی الحج فان قدمه عليه قبل طواف القدوم يصير قارنا مسيئا و عليه دم الشکر و قيل جبر و يستحب له رفض العمرة و کذا ان کان بعد الطواف او اکثره و عليه دم جبر و قيل شکر و ان ادخلها بعد الوقوف لم يکن قارنا و عليه دم رفضها او لا وعليه رفضها حتما سوا احرم بها قبل الحلق او بعد و لو في ايام التشريق.

متن و بعده شرح ملا علي القاري

کوم شيان چي حاجي قارن لره لازم نه دي هغه دا دي چي د حج قِران د صحت دپاره دا شرط نه دی چي احرام بنده به خپل کور ته نه سي تلای بلکې تلای سي علاوه لا دا ده که چيري يو سړی د کوفي ځخه د حج قِران دپاره راغلی د عمرې دپاره يې طواف وکړی بيرته و خپل کور ته ولاړی خو مياشتي هم د حج وې نو حج قِران يې صحيح دی ليکن دم پر لازميږي چي بيرته په هغه احرام کي حج هم وکړي او که چيري د مکې ځخه يو شخص اطرافو ته ترميقاتو خارج سو د حج تر مياشتو دمخه هرکله چي د حج مياشتي داخلي سوې د ميقات ځخه يې احرام د حج قِران وتړی مکې ته راغلی د عمرې دپاره يې طواف وکړی باره احرام بنده خپل کور ته ولاړی بيرته احرام بنده بيت الله ته د حج دپاره راغلی جواز لري د ده حج قِران يې ځکه دی احرام بنده کور ته ولاړی بيرته په هغه احرام کي راغلی او حج يې هم په دغه احرام کي وکړی چي په عربي

ژبه کې ورته الهام وايي فاسد بل الهام دی چې ورته الهام صحيح وايي چې هغه مبطل دی لکه يو شخص چې د تمتع حج اراده وکړي هرکله چې ئې احرام د عمرې وتړی او عمره ئې ادا کړه باره کور ته ولاړی نو د ده دا تګ ته الهام صحيح او مبطل وايي معنا د ده په تګ سره د کور ته د ده تمتع حج خراب سو نو به حج افراد وکړي او دغه تمتع کونکی حاجي کور ته د عمرې په احرام کي ولاړی او بيرته په هغه احرام کي مکې ته راغلی بيا ئې تمتع صحيح ده ځکه د ده الهام صحيح نه وو بلکې فاسد وو تمتع ته نقصان نه رسوي او بل پر حاجي قارن بلندي دا شرط نه دی چې خامخا به د ميقاتو څخه د حج قِران احرام تړي لکه د بعضي کتابو لو متنو څخه چې پام کيږي که چيري حاجي قارن تر ميقاتو تېر سو باره ئې د قِران دپاره احرام وتړی لو يا ئې د حرم څخه وتړی هم جواز لري عامه خبره دده د عمرې احرام ئې د ميقات څخه تړلی وي لو که ئې نه وي تړلی ليکن ګناهګاره دی چې مخالفت ئې د سنت څخه وکړی او دم پر لازم دی او بل پر قارن حاجي دا شرط نه دی چې ضرور به د عمرې احرام د حج پر احرام دمخه تړي او که يو حاجي مکې ته راغلی د حج احرام ئې تړلی وو باره ئې د طواف قدوم دپاره اراده کړې وه ليکن شروع ئې لا نه وه کړې چې د عمرې احرام ئې وتړی چې حج ئې قِران سي نو صحت لري معنا د ده حج قِران ګرځي ليکن عمل ئې مکروه په دغه وجه دی چې د سنت کار څخه چې احرام د عمرې پر احرام د حج دمخه دی مخالفت وکړی ګناهګاره کيږي او دم د شکر د دواړو دپاره پر سته د علماؤ په اتفاق سره او که چيري يو کس د ميقات څخه د حج احرام وتړی مکې ته چې راغلی په طواف قدوم ئې شروع وکړه اګر که ئې يو شوط هم وي خو بيا ئې احرام د عمرې وروسته وتړی حج قِران خو ئې صحيح دی او دم د شکريې پر سته ځکه دواړو عبادتونو ئې صحت پيدا کړی صرف د هغه مخکي مسئلې څخه دونه فرق لري چې د دې ګناه تر هغه ډېره ده ځکه دلته د عمرې په احرام کي ډېر ځنډ سوی دی دم دوه قسمه دی يو د شکريې چې ده لره ئې هم خوراک جواز لري بل د جبر دم دی چې حاجي لره ئې خوراک جواز نه لري لهذا دلته صاحب د هدايې لو فخر الاسلام ليکلي دي چې د دغه دم څخه به حاجي خوراک نه کوي دا دم د جبر دی لو د علامه سندي او شمس الائمه مذهب دا دی چې دا د شکريې دم دی خوراک ئې ورته جواز لري او دغه قول صحيح قول دی او که چيري يو کس طواف قدوم پوره کړي او يا ئې اکثره طواف ورته کړی وي باره ئې د عمرې دپاره احرام وتړی نو عمره پر لازمه ده او دم هم پر لازم دی او حج قِران ئې هم صحت لري ليکن دلته بيا هغه اختلاف دی چې آيا هغه دم د ده جبري دی او که د شکريې دی حکم ئې مخکي معلوم سو او که حاجي پر عرفات ودرېدی باره ئې د عمرې احرام وتړی دلته ئې حج قِران نه ګرځي ليکن د عمرې پوره کول پر لازم دی ځکه عمره ئې ماته کړه علاوه لا دا ده چې عمره ماته نه کړي هم دم پر لازميږي او که چيري ئې طواف زيارت نه وکړی او سر

بې هم نه وو خریلی د عمرې احرام بې ورګډ کړی او یا بې د تشریق په ورځو کې د عمرې احرام وتړی او یا بې تر طواف زیارت بعد عمره وکړه هم دم پر لازمیږي ځکه ده دوه عبادتونه جمع کړه په احرام کې یا په باقي پاته افعالو کي د حج دلته یو سوال یو چا کړی دی چې دلته خو دغه حاجي د حج افعال پوره کړه نو بیا څنګه دی حاجي قارن کېدای سي نو جواب دا دی چې تر اوسه خو لا یو څه افعال د حج واجب پاته دي نو دی جامع ګرځېدلای سي اګر که بې احرام یو نه دی او دم هم د دغه وجهې پر لازمیږي اوس دلته دا مسئله ده چې د تشریق په ورځو کي خو عمره نسته نو به څنګه عمره کوي بحر الرائق وايي چې زموږ مشائخ وايي چې د عمرې احرام دي نه ماتوي هر کله چې د حج افعال پوره سوه باره دي عمره وکړي او که بې وکړه عمره هم پروا نه لري ځکه ادا بې واجب سوه لیکن دم پر لازم دی په دغه جه چې پر حج بې احرام د عمرې ګډ کړی نه په دغه جه چې د تشریق په شپو کي بې عمره وکړه لیکن اصح قول دا دی چې عمره دې ماته کړي بیا دې د تشریق تر ورځو بعد قضا راوړي او که بې ماته کړه قضا او دم دواړه پر واجب دي.

## فصل د حج قِران د کولو طریقه

اذا دخل مكة بدأ بافعال العمرة و ان اخرها في الاحرام فيطوف لها سبعا و يضطبع و يرمل في الثلاثة الاول ثم يصلي ركعتين و يسعي بين الصفا و المروة ثم يطوف للقدوم و يضطبع فيه و يرمل ان قدم السعي ثم يقيم حراما و لو طاف طوافين و سعي سعيين للعمرة و الحج ولم ينوى الاول للعمرة و الثاني للحج او نوى العكس او نوى مطلق الطواف و لم يعين او نوى طوافا اخر تطوعا او غيره و يكون الاول للعمرة و الثاني للقدوم و كره له ذلك.

متن و بعده ترجمة و شرح ملا علي القاري

هر کله چې حاجي قارن مکې مکرمې ته ورغلی نو به افعال د عمرې شروع کوي اګر که بې د حج احرام د عمرې پر احرام دمخه تړلی وي او یا بې په نیت او تلبیه کي وروسته کړی وي نو به د عمرې دپاره اووه شوطه طواف وکړي او اضطباع به هم وکړي معنا په دړې اولو شوطو کي به ورِه لځه کړي او په دړې سره کي به اوږې هم ښوروي بیا به تر طواف بعد دوه رکعته لمونځ وکړي د طواف نو صفا او مروا ته به ولاړ سي سعیه به وکړي چې عمره بې پوره سي په کامله طریقه سره لیکن ځان به نه حلالوي ځکه د ده حلال هلته دی چې حج هم پوره کړي بیا به راسي د قدوم طواف به وکړي چې دا طواف سنت دی او په دغه طواف کي به هم ورِه لځوي او هم به اوږې ښوروي وجه دا ده چې د طواف قانون دا دی چې وروسته تر طواف د صفا سعیه غواړي په هغه طواف کي دا دوه کارونه لازم دي او دا مذهب د جمهورو علماؤ دی کرماني او خزانة الاکمل تصریح په کړې ده هر کله چې بې دا دواړه طوافه او سعیه د عمرې او طواف قدوم پوره کړي نو به احرام بنده په مکې کي ګزاره کوي ځکه د ده د حلال

ورځ د اختر ده او که یې عمره وکړه او سر یې وخرییي دوه جنایته ورځخه وسوه پر دوو احرامو لکه منتقي او محیط چي لیکلي دي د محمد رحمه الله ځخه او دوه دمه هم پر لازمیږي او د عمرې ځخه هم په سر خریلو نه حلالیږي لکه حاجي متمتع چي په باقي افعالو کي نه حلالیږي حاصل د مطلب دا دی چي پر حاجي قارن دوه طوافه او دوې سعي لازم دي لیکن سنت طریقه یې دا ده چي پرله پسې به وي معنا اول به د عمرې طواف او سعیه کوي دویم به د طواف قدوم طواف او سعیه کوي او بیا به د حج افعال کوي ځکه د نبي علیه السلام سره موافقت هم پر دغه طریقه راځي او که یې دوه طوافونه پرله پسې وکړه بیا یې وروسته دوې سعي د صفا او مروا وکړې د عمرې او طواف قدوم دپاره خو معلوم یې نه کړه چي اول د عمرې او دویم د حج دی او یا یې اول نیت د قدوم د طواف وکړی او یا یې مطلق نیت وکړی تعین یې و نه کړی او یا یې د سنت یا نفلي طواف نیت وکړی او یا یې د نذري طواف یا د رخصت طواف یا د فرضي طواف نیت وکړی په دغه ټوله صورتو کي اول طواف د عمرې او دویم د طواف قدوم ګرځي اګرچي مخالفت خو د سنت ځخه راځي ګناهګاره کیږي په ډیرو وجهو سره.

## فصل پر حاجي قارن او متمتع شکریه واجب ده

یجب علی القارن و المتمتع هدی شکرا لما وفقه الله تبارک و تعالی للجمع بین النسکین في اشهر الحج بسفر واحد و ادناه شاة و کل ما هو اعظم فهو افضل و الافضل لهما سوقه معهما و لکل منهما ان یاکل من هدیه و یطعم من شاء غنیا او فقیرا و یستحب ان یتصدق بالثلث و یطعم الثلث و لا یجب التصدق بشئ منه و یسقط بالذبح فلو سرق بعد الذبح لم یجب غیره و شرائط وجوبه القدرة علیه و صحة القِران او التمتع و العقل و البلوغ و الحریة فیجب علی المملوک الصوم لا الهدی و یختص بالمکان و هو الحرم و الزمان وهو ایام النحر و اول وقته طلوع الفجر من یوم النحر فلا یجوز قبله و اخره من حیث الوجوب غروب الشمس من اخر ایام النحر و في حق السقوط لا اخر له والوقت المسنون بعد طلوع الشمس یوم النحر و یجب ان یکون بین الرمي و الحلق و یسن الذبح في ایام النحر بمنی و یجوز بمکة و الحرم کله و لو مات قبل الذبح فعلیه الوصیة به فان لم یوص سقط و ان تبرع عنه وارث صح.

متن و بعده شرح ملا علي القاري

پر حاجي قارن او حاجي متمتع باندي قرباني معنا شکریه واجب ده ځکه چي حق تعالی رب العالمین د حج په میاشتو کي په یوه سفر کي د دوو عبادتو توفیق ورکړی لکه عمره او حج دا زموږ مذهب دی او د شافعي رحمه الله پر مذهب دا شکریه نه ده چي خوراک یې ورته جواز ولري بلکې دا دم د جبر دی خوراک یې ورته جواز نه لري په دغه دلیل سره

چي الله فرمايلي دي:
ذٰلک لمن لم یکن اهله حاضری المسجد الحرام. بقره ۱۹۶
هغه ادنا ترين د شکريې دپاره پسه دی په اجماع سره د ټوله فقهاؤ ليکن اوبښ تر غويي او غويي تر پسه بهتره دی او هر څونه چي غټ او چاغ وي هغه غوره دی ځکه د خدای جل جلاله په لاره کي يې مصرف دی او حاجي قارن او حاجي متمتع لره غوره طريقه دا ده چي د ځانه سره خپله شکريه د کوره څخه بوزي او دوی لره مستحب طريقه دا ده چي د خپلو شکريو څخه يو څه خوراک وکړي عامه خبره ده که سړی فقير يا غني وي فرق نه لري او بل مستحب ورلره دا ده چي دري حصې يې کړي يوه حصه وخوري دويمه ذخيره کړي دريمه و مسکينانو ته خيرات کړي اګر که غني وي علاوه لا دا ده چي پر ده واجب نه ده که قارن وي که متمتع چي ضرور به خيرات کوي مسکينانو او قريبانو ته او بل وجوب د دم ورڅخه ساقطيږي چي شکريه حلاله کړي او که يې شکريه حلاله کړه باره ورڅخه غلا سوه بله نه ده پر واجب او د شکريې د وجوب شرط قدرت دی پر حيوان يا قيمت باندي او بل د قِران او تمتع دپاره شرط عقل بلوغ او حُريت دی پر مريي او کوچني نه واجبيږي بلکې پر مريي روژې واجب دي لس داني دري په حج او اووه په کور کي ځکه دی ملکيت د مال نه لري.
ليکن که يې روژې و نه نيولې هرکله چي آزاد سو بيا شکريه پر واجب ده او بل د شکريې د حلال دپاره تخصيص د مکان سته چي حرم دی بل ځای يې حلالول جواز نه لري مبسوط ليکلي دي چي سنت طريقه د حلال يې د شکريې دپاره منا ده د اختر په ورځو کي او بغير د دې څخه بيا يې ځای د حلالولو مکه مکرمه ده او بل تخصيص د زمانې لري چي د اختر په ورځو کي به يې حلالوي که يې ترمخ حلاله کړه جواز نه لري په اجماع سره د علماؤ او که يې د اختر تر ورځو بعد حلاله کړه بيا جواز لري ليکن واجب عمل ورڅخه پاته سو اول وخت د حلال د جواز دپاره د اختر د ورځي سهار دی په اتفاق د علماؤ مخکي جواز نه لري او اخير وخت د حلال يې د وجوب په اعتبار د امام اعظم رحمه الله او د سنت په اعتبار سره د يارانو پر مذهب باندي د دولسم د ورځي تر لمر لوېدو دی ليکن افضله وخت يې د اختر ورځ ده او په حق د سقوط کي بيا اخير نه لري په زمانه کي هر وخت چي حلاله کړه جواز لري ليکن مکان يې خامخا د حلال دپاره مکه مکرمه ده او پر سنت طريقه يې اول وخت د حلالولو چي د اختر د ورځي لمر راوخيژي او پر قارن او متمتع حاجي واجب دی چي اول به ځلي شيطاني ولي بيا به شکريه حلالوي بيا به سر خريي او بل سنت طريقه دا ده چي د شکريې ذبح په منا کي د اختر په ورځو کي وکړي او په مکه بلکې په ټول حرم کي ذبح کولای سي که چيري هغه قارن يا متمتع حاجي وفات کېدی چي پر شکريې يې قدرت

درلود نو لازم پر ده وصیت دی چې بیا به د ده د دریمې حصې د مال څخه شکریه کوي او که يې وصیت و نه کړی بیا پر وارثانو یې شکریه نه ده واجب او که وارث د ځانه څخه د ثواب په نیت د ده دپاره وکړه جواز لري.

## فصل د شکریې په بدل کي روژې نیول

اذا عجز القارن او المتمتع عن الهدی بان لم یکن في ملکه فضل عن کفاف قدر ما یشتري به الدم و لاهو في ملکه وجب الصیام علیه عشرة ایام فیصوم ثلاثة ایام قبل الحج و سبعة بعده و شرائط صحت صیام الثلاثة ان یصوم الثلاثة بعد الاحرام بهما في القارن و بعد احرام العمرة في المتمتع في ان یکون في اشهر الحج و ان یقع قبل یوم النحر و ان ینوي من اللیل و ان یکون عاجزا عن الهدی في ایام النحر فلا یعتبر قدرته قبلها و لا بعدها فلو صام الثلاثة وهو قادر ثم عجز یوم النحر جاز صومه و لو صام فقیرا ثم ایسر یوم النحر جاز صومه فان کان قبل الحلق بطل الصوم و ان کان بعده صح الصوم و ان لم یتحلل حتی مضت ایام النحر فایسر لم یجب الهدی و اجزا صومه و اما صوم السبعة فشرط صحتها تثبت النیة و تقدیم الثلاثة و ان یصوم بعد ایام التشریق و یستحب ان یصوم الثلاثة متتابعة اخرها یوم عرفة و لایجب التتابع فیها و لا في السبعةً و لکن یستحب و یجوز صیام السبعة بمکة والافضل ان یصومها بعد الرجوع الی اهله.

متن و بعده شرح ملا علي القاري

که چیري حاجي قارن او حاجي متمتع د شکریې د قیمت او حلالولو څخه عاجزه سو معنا تر خپل کفایت زیات شی نه وو ورسره چې قرباني په وکړي بیا پر دوی لس روژې نیول واجب دي درې د حج په ورځو کي چې دریمه روژه به یې د عرفات په ورځ وي او باقي أووه روژې به چې د حج د ټولو افعالو څخه فارغه سو د امام اعظم رحمه الله پرمذهب به یې نیسي هغه هر ځای چي وو لیکن امام شافعي رحمه الله وایي چي خاص به یې په خپل کور کي نیسي او هغه درې روژې چي د حج په شپو کي نیسي حاجي قارن او حاجي متمتع اته ۸ شرطونه د صحت لري که چیري دا شرطونه پوره وه روژې یې صحت لري که نه وه پوره بیا یې روژې درې سره صحت نه لري:

۱: اول شرط یې دا دی چې د قارن روژې به تر احرام وروسته وي که چیري یې درې روژې ونیولې باره یې د قِران نیت وکړی دلته د ده روژې په اجماع سره د علماؤ جواز نه لري او که یې یو احرام تړلی وو درې روژې یې ونیولې باره یې د حج احرام په ګډ کړی بیا هم ظاهره دا ده چې جواز نه لري او بعضي وایي چي اختلاف په کښي دی لکه په حج تمتع کي او د متمتع حاجي روژې به د عمرې تر احرام بعد وي.

۲: دویم شرط دا دی چي دغه درې روژې به د حج په میاشتو کي وي نو مطلب دا سو چي که یو کس د حج تر میاشتو دمخه احرامونه وتړل او روژې یې ونیولې بیا جواز نه لري او که د حج په میاشتو کي داخل وه جواز لري پوه سه چي قانون دا دی هر هغه شی چي د قارن حاجي د روژو دپاره وو بس هغه شی د تمتع دپاره هم شرط دی بې له خلافه لیکن صرف دلته د حج د احرام په مسئله کي اختلاف سته خو ظاهره مذهب د اکثره علماؤ دا دی چي د متمتع حاجي د روژو دپاره د حج احرام شرط نه دی بلکې د عمرې تر احرام بعد صحت لري خو لازمه دا ده چي عمره به د حج په میاشتو کي وي د حج قِران دپاره د روژو د صحت دپاره لازمي موجودیت د احرام دی چي روژې یې جواز پیدا کړي او د متمتع حاجي دپاره چي د حج په میاشتو کي تر عمرې بعد روژې جواز لري زموږ پر مذهب اګرچي لا یې احرام د حج دپاره نه وي تړلی لیکن احوطه او د اختلافه وتلې خبره دا ده چي د حج احرام وتړي که قارن وي که متمتع وي باره دي درې روژې ونیسي او دا قول د قرآن کریم د آیت سره هم موافق دی:

فمن تمتع بالعمرة الی الحج فما استیسر من الهدی.

معنا څوک چي احرام د عمرې د احرام سره د حج ګډوي شکریه بیا وړباندي ده که ورته اسانه وه نو تمتع سبب د شکریې سو او د شکریې بدل بیا روژې دي او بل دا قول د امام المهدي ابو منصور ماتریدي رحمه الله د قول سره هم موافق سو چي هغه وایي چي قیاس دا وایي چي د حج احرام یې نه وي تړلی روژې یې جواز نه لري لکه په قِران کي نو په قِران کي خو هیڅ اختلاف نسته چي روژې به د حج تر احرام بعد وي او هرکلَه چي قِران بیا پر تمتع قیاس کړي نو په آیت کي ثابته سوه چي په تمتع کي به هم درې سره روژې د حج په احرام کي وي نو د قِران او تمتع حکم یو سو چي د روژو دپاره د عمرې او حج احرامونه دواړه ضروري دي او څوک چي فرق کولای سي هغه دي بیان وکړي.

که څوک سوال وکړي چي دلته خو سببونه دوه سره مرکب دي تر یو جز بعد هم کیدای سي نو دا قول ماتیږي په کفارة الیمین معنا چي یو سړی قسم واخلي پر کار باندي چي دا کار زه کوم لوس خو د کفارې دپاره چي درې روژې دي مثلا اول سبب قسم دی او بل ځان حانث کول دی نو که چیري سړی د ځان حانث کولو دمخه روژې ونیسي نو دا روژې یې عبث دي که یې ځان حانث کړی او هغه کار یې وکړی نو بیا روژې وړباندي لازمیږي ځکه دلته دا حکم دی چي روژې به تر قسم او ځان حانث کولو بعد وي همدارنګه د قارن او متمتع حاجي د روژو دپاره چي دوه سببه دي یو احرام د عمرې بل د حج نو روژې به هم تر دواړو احرامو بعد وي.

او زموږ د مذهب علماؤ اتفاق کړی دی چې مستحب دا دی چې درې سره روژې به پرله پسې وي د حج تر احرام بعد او اخیره روژه به يې د عرفې وي او که چیرې سړی ډېر ضعیف وو د اتم او نهم د ورځو افعال او دعاګاني او اذکار يې نه سوه پوره کولای بیا ورته مستحب طریقه دا ده چې یا خو دا روژې پريږدي او یا يې لا تر دغه ورځو دمخه ونیسي علاوه لا دا ده چې قیل وایي په دغه ورځو کې د حج روژې مکروه دي که ضعیف وو خکه خطر دی چې په یو حرام کاری کې اخته نه سي عطاء روایت کوي چې د عرفې په ورځ سړی روژه و نه نیسي د دې دپاره چې پر دعاؤ بنه قادر سي د روژې ثواب الله تعالی هم ورکوي علامة ملا علي القاري رحمه الله وایي چې په حدیث کې خو الطّيلة فرمایلي دي چې د مؤمن نیت د ده تر عمل خیر دی لهذا په دغه ورځ د عرفې چې د کارو او د خپلو ضعیفه ورونو په خدمت کې مشغول وي روژه نیونکې يې نسي کولای نو د نه روژه نیونکو ثواب به زیات وي ډېر لکه په یو روایت کې چې راغلي دي چې وړاندي (مخ ته ولاړه) خوړونکې کسان (د روژې) په اجر او ثواب کې.

۳: دریم شرط د روژو دا دی چې د اختر تر ورځې به دمخه وي درې سره او که چیرې یو کس یوه یا دوې روژې نیولي وې چې اختر سو او یا يې ګرسره نه وې نیولي نو دلته هغه وخت د روژو تېر سو بیرته خپل اصل ته رجوع کیږي چې شکریه ده نو بیا نه ورځخه ساقطیږي د ده تر عمره پوري بیا چې هر وخت قدرت پیدا کړي په مکه کې به يې حلالوي بیا نو روژې خو د اختر د ورځې سره په څلورو ورځو کې نه سي نیولای منع دي وروسته بیا د حج وخت تېر دی ارشاد الساري لیکلي دي چې هر وخت د شکریې قدرت پیدا کړي دوه پر لازمیږي یو خو د شکریې دی بل دغه سړي ځان حلال کړی دی تر شکریې دمخه نو دم پر لازم دی او مثل د دغه عبارت زیلعي او شرح نقایې ذکر کړی دی لیکن دلته دا خبره د غور وړ ده چې ځان حلالول خو د عذر په وجه سوی دی او ترتیب چې واجب دی په عذر ساقطیږي لهذا یو دم پر لازمیږي، حباب.

۴: څلورم شرط د روژې نیت د شپې څخه دی که يې تر لمر لوېدو دمخه نیت وکړي او یا يې سهار نیت وکړی جواز نه لري لکه دا حکم چې د ټوله کفاراتو د روژو دی په حج لو غیر د حج څخه چاره نسته بل چې خامخا به د شپې نیت کوي.

۵: پنځم شرط يې عجز دی د شکریې څخه د اختر په شپو کې علاوه لا دا ده چې د سر خریلو یا لنډولو په وخت کې به پر شکریې قدرت نه لري او که يې ځان حلال کړی بیا يې قدرت پیدا کړی نو يې روژې هم جواز لري لکه چې دا خبره به په تصریح سره درته راسي هغه قدرت لره اعتبار نسته چې تر اختر دمخه يې نه درلود او یا يې تر اختر بعد

قدرت نه درلود اوس که یو شخص درې روژې ونیولې او بیا یې قدرت پیدا کړی پر شکریې باندي په مابین کي د روژو یا وروسته تر روژو نیولو لیکن د اختر په ورځ بیرته ورڅخه عاجزه سو د شکریې څخه هغه روژې یې صحت لري او که یو فقیر سرې روژې ونیولې او بیا د اختر په ورځ پر شکریې قادر سو نو به دلته تفصیل وکړو که یې تر سر خریلو دمخه قدرت پیدا کړی روژې یې باطلي سوې ځکه لوس یې پر اصل قدرت پیدا کړی مخکي تر بدل لکه مثال یې داسي دی چي یو سړی تیمم ووهي لمونځ یې لا نه وي کړی اوبه د اوداسه پیدا کړي نو اودس پر لازم دی او که چیري حاجي سر خریلی یا لنډ کړی وو د اختر په ورځو کي بیا نو د ده هغه روژې کفایت کوي شکریه نسته ځکه بل خپل ځای ونیو دواړه نو نه پر لازمیږي او که یې ځان نه وو حلال کړی او د اختر ورځي هم تیري سوي وې چي قدرت یې پیدا کړی بیا هم شکریه ورباندي نسته هغه روژو خپل ځای نیولی دی او دا روایت حسن د امام اعظم رحمه الله څخه کړی دی چي حلالول د شکریې د اختر په ورځو پسې تعلق لري چي وخت یې تېر سو مقصود حاصل سو بې له شکریې ځان حلالولای سي نو بیا داسي مثال لري لکه ده چي ځان حلال کړی وي او بیا شکریه حلالوي .. الخ حاصل د عبارت دا دی چي روژه د شکریې څخه بدل ده نه د دم څخه چي جبري دی او دا کلیه قاعده یاد لره په هر حکم کي او بل شرط دا دی چي دغه روژې به د حج په میاشتو کي وي د دغه کال نه د بل کال د حج میاشتي او کوم چي احرام د قِران او تمتع دی دا شرط نه ده چي ضرور به د حج په میاشتو کي وي که یې ترمخه احرام وتړی د حج تر میاشتو او افعال یې د حج په میاشتو کي وکړه بیا جواز لري او هغه باقي اووه روژې به شرط دا ولري چي تر هغه درې روژو به وروسته وي او بله به یې هم نیت د شپې څخه کوي لکه د کفارې روژې چي د شپې څخه نیت غواړي ارشاد الساري چي کومه حاشیه ډېره غټه کړې ده هغه هم د ملا علي القاري د تائید دپاره ده.

۶: شپږم شرط یې دا دی چي هغه اووه روژې به د تشریق معنا د اختر د ورځي سره تر څلورو ورځو بعد نیسي ځکه بدائع فتاوا او بحر الزاخر لیکلي دي چي په دغه څلورو ورځو کي روژې نیول حرام کار دی او جواز نه لري او بل په هغه مخکي درې روژو کي پرله پسې والی مستحب کار دی چي دریمه ورځ به د عرفې وي لکه چي دا مسئله تېره هم سوه علاوه دا ده چي پرله پسې والی په دغه درې روژو کي هم واجب نه دی بلکې مستحب دی او په هغه باقي اووه روژو کي هم واجب نه دی بلکې مستحب دی هر کله چي د حج د مراسمو څخه فارغه سو هغه اووه روژې نیول ورته جواز لري لیکن مخکي په اتفاق سره د علماؤ جواز نه لري عامه خبره ده که دا اووه روژې په مکه کي نیسي چي لا کور ته رسېدلی نه وي زموږ پر مذهب لیکن مستحب

طريقه دا ده چي خپل کور ته ورسيدی باره بې ونيسي خکه د شافعي رحمه الله د خلاف څخه به هم خبره ووزي علاوه لا دا ده زموږ پر مذهب چي نيت په مکه کي د اقامت و نه کړی لاهم ورته جواز لري او که بې په مکه کي د اقامت نيت وکړي بيا خو په اجماع سره د ټولو علماؤ هلته دا اووه روژې نيولای سي که چيري مريي د حج تمتع او يا قِران نيت وکړی پوره بې کړي او روژې بې هم و نه نيولې د اختر په ورځ بې ځان حلال کړی نو پر ده دوه دمه لازميږي هر کله چي آزاد سو يو دم د قِران يا تمتع دی هغه د ده د حلال دی تر ذبحي مخکي هم دا مسئله الکبير ذکر کړې ده علاوه لا دا ده چي دا مسئله په مريي پوري خاص نه ده د حُر سړي هم دغسي حکم دی چي دوه دمه پر لازميږي د يادولو وړ ده دا مسئله که يو شخص د شکريې څخه د قِران او تمتع عاجزه سو لو قدرت بې د روژو هم نه درلود شيخ فاني او اتيا کلن شرح الزيادات د عتابي ليکلي دي چي شکريه بې پر ذمه پاته ده د روژو فديه بې صحت نه لري ليکن په دغه مسئله کي دا بحث سته چي هر کله د قرباني څخه عاجز سو حکم رانقل سو روژو ته او بيا چي د روژو څخه عاجز سو نو قيلس وايي چي فديه دي ورکړي لکه د نورو فرضي روژو فديه چي ورکوي او که داسي نه سي نو بيا د دې خبري معنا څه ده چي پر غاړه بې پاته ده شکريه بلکې مناسب خو دا ده چي روژې هم ورڅخه ساقطي سي لکه علماؤ چي ويلي دي چي هر کله حاجي هغه درې ورځي روژې په حج کي ونيسي او بيا دا اووه روژې و نه نيسي وفات سي دم ورڅخه ساقط دی والله اعلم لوس زموږ د مذهب علماؤ اختلاف کړی دی د غني سړي په تعريف کي په باب د کفارې کي بعضي علماؤ ويلي دي چي د يوې مياشتي نفقه ولري شکريه به حلالوي او که تر دغه کمه وه بيا روژې ورته جواز لري او محمد ابن مقاتل وايي چي د يوه شوا روز نفقه ولري لا د ده روژې جواز نه لري په دې شرط که دغه مقدار قرباني جوړولای سوه او دغه قول د امام اعظم رحمه الله هم موافق دی چي ابو يوسف رحمه الله کړی دی که يو سړی دونه اندازه روپۍ درلودې چي صرف شکريه په کېدله او بل بې هيڅ شي هم نه درلود بيا نو روژې ورته جواز نه لري او بعضي علماؤ ويلي دي چي د کسب کاره دپاره د يوې ورځي نفقه او د بې کسبه سړي دپاره د يوې مياشتي نفقه معتبره ده معنا دا سوه چي کسب کاره به د يوې ورځي نفقه ځان ته راګرځوي په باقي به کفاره د شکريې ادا کوي او بې کسبه سړی به د يوې مياشتي نفقه راګرځوي دا تفصيل هلته دی چي په لاس کي لوس نه وي که ورسره وي او پور پر باندي وو او زياتي نوري نه وې هم روژې ورته جواز لري دا مذهب د امام اعظم او ابو يوسف رحمهما الله دی چي بدائع او خلاصې هم دغسي ليکلي دي.

## فصل د مکي سړي دپاره د قِران حج کول

لا قِران لاهل مكة و لا لاهل المواقيت وهم الذين منزلهم في نفس الميقات و لا لاهل الحل وهم الذين بين المواقيت و الحرم فمن قرن منهم كان مسيئاً و عليه دم جبر

ویلزمه رفض العمرة فاذا رفضها فعلیه دم الرفض و ان لم یرفض قدم الجمع و لو دخل الافاقي في مکة في اشهر الحج بعمرة فافسدها ثم احرم بمکة بعمرة و حجة رفض العمرة لانه صار کالمکي و لو خرج الی الافاق فقرن کان قارنا و لو خرج المکي الی الافاق قبل اشهر الحج ۔ قیل ولو فیها صح قِرانه و لزمه دم شکر.

متن و بعده ترجمة و شرح ملا علي القاري

پر مکي سړي قِران حج نسته که اصلي د دغه مکې وي او که یې وطن د ځان دپاره ګرځولی وي او نه هم پر هغه کسانو سته چې د میقاتو سره یې کورونه وي یا د میقاتو سره برابر او نه هم پر هغه کسانو قِران سته چې د میقاتو او حرم تر مابین واقع وي چې دې ته زمین حل وایي ځکه په قرآن کي الله تعالی فرمایلي دي:

ذلک لمن لم یکن اهله حاضری المسجد الحرام. البقره ۱۹۶

معنا دا قِران حج د هغه چا دپاره دی چي مکې ته حاضر کورونه یې نه وي دلته خو په آیت کي اشاره تمتع ته ده لیکن قِران د تمتع په معنا کي داخل دی او که په دغه اشخاصو کي یوه حج قِران وکړي ګناهګاره دی کفاره یې دم جبر پر لازم دی حتی ځکه د ده قِران مسنون عمل نه دی چي شکریه پر لازم سي علاوه دا ده چي پر ده لازمه دا ده چي عمره ماته کړي دپاره د دې چي د سنت عمل څخه مخالفت را نه سي او که یې ماته کړه هم دم جبر پر لازمیږي دم جبر هغه ته وایي چي خوراک یې ده ته جواز نه لري او که یې عمره ماته نه کړه هم دم جبر پر لازمیږي سره د ګناهګارۍ یې او که یې جنایت وکړی بیا یې جزا دونه ده لکه د افاقي قارن جزا چي څونه ده که چیري افاقي سړی راغلی و مکې ته د حج په میاشتو کي عمره یې وکړه خو فاسده یې کړه تر احرام بعد او تر طواف یې دمخه وطي وکړې دا خو یې پوره کړه بیرته یې د مکې څخه د عمرې او حج احرامونه وتړل یو ځای یا پرله پسې نو عمره دې ماته کړي بیا دې قضا راوړي او دم هم پر لازم دی وجه دا ده چي دی هم اوس لکه د مکې څخه چي وي د قِران حج څخه منع دی او بیا د مکې څخه اطرافو ته ولاړی او د قِران حج نیت او احرامونه یې وتړل راغلی جواز ورته لري که د حج میاشتي وي او مکي سړي د مکې څخه د حج تر میاشتو دمخه مثلا په روژه کي د مکې څخه ووتی تر میقاتو تېر سو او بیا د حج په میاشتو کي یې د میقاتو څخه د حج قِران نیت او احرام وتړی جواز لري هیڅ اختلاف دلته نسته او که د حج په میاشتو کي خارج ته ولاړی او احرام یې د حج قِران وتړی حج قِران یې صحت لري دم د شکریې پر لازم دی حاصل د مطلب دا دی چي مکي سړی د حج قِران څخه منع دی او که اطرافو ته ووتی د حج تر میاشتو دمخه یا د حج په میاشتو کي تر میقاتو تېر سو او د حج قِران نیت او احرام یې وتړی حج قِران یې صحت لري او علاوه دا

ده چي په المام معنا کور ته په ورتګ سره د ده حج ته نقصان نه رسيږي ځکه د حج قِران دپاره دا شرط نه دی چي کور ته به نه ځي لکه د کوفې یا بل د لیري منطقې سړی چي راسي مکې ته عمره وکړي باره بیرته خپل کور ته ولاړ سي حج قِران یې نه باطلیږي دا هم دغسي حکم لري او محبوبي او صاحب د مبسوط دا قید لګولی دی چي د مکې سړي قِران هلته صحت پیدا کوي چي تر میقاتو ووزي مثلا کوفې ته ولاړ سي د حج تر میاشتو دمخه او که د حج په میاشتو کي ووتی بیا نو د ده حج قِران صحت نه لري ځکه دی د حج په میاشتو کي داخل په حرم کي وو معنا په مکې کي وو نو شرعاً دی د حج قِران څخه منع دی نو بیا دا شرعي حکم د ده په وتلو نسي متغیر کېدای دا روایت د محمد رحمه الله څخه سوی دی لو سنجاري ورته صحیح ویلي دي او صاحب د هدایې او الکافي او المجمع وغیره کتابو مطلق عبادت ذکر کړی دی که د مکې څخه کوفې ته معنا خارج ته د میقات مکي سړی ووتی او د حج قِران احرام یې وتړی حج قِران یې صحت لري بحر الرائق لیکلي دي چي د صاحب د هدایې وغیره کتابو مطلق عبارت حمل کیږي د مبسوط پر عبارت باندي چي د مکي سړي وتل د حج تر میاشتو دمخه اعتبار لري نه د حج په میاشتو کي لیکن ابن الهمام وايي چي هر سړی یو مکان ته ورسیدی حکم د هغه ځای اخلي لکه کوفي سړي چي قصد وکړي د تجارت مثلاً بني عامر د باغو دتجارت د میوو نو دا خو حرم ته نږدې ځای دی کولای سي چي مکې ته بې له احرامه څخه ورسي لکه د هغه کلي خلق چي ورځي نو لهذا د صاحب د هدایې مطلق عبارت معتبر دی چي مکي که د حج په میاشتو کي خارج ته د میقات ووزي هم حج قِران کولای سي، انتهي او د امام اعظم رحمه الله او یارانو هم دغه مذهب دی او صحیح قول هم دغه دی او البحر الرائق د المنسک الفاري عبارت هم پر دغه حمل کړی دی چي مکي سړی خارج ته ولاړ سي د قِران احرام راوړي د عمرې احرام دي مات کړي معنا که د حج په میاشتو کي تللی وو.

## باب التمتع

وهو الترفق باداء النسكين في اشهر الحج في سنة واحدة من غير المام بينهما الماما صحيحا وهو افضل من الافراد و شرائطه الاول ان يطوف للعمرة كله او اكثره في اشهر الحج الثاني ان يقدم احرام العمرة على الحج الثالث ان يطوف للعمرة كله او اكثره قبل احرام الحج الرابع عدم الفساد العمرة الخامس افساد الحج السادس عدم الالمام بالاهل الماما صحيحا و هو ان يرجع الى وطنه حلالا فان حل من عمرته و رجع الى اهله ثم حج لم يكن متمتعا و لو رجع قبل الطواف او بعده قبل الحلق ثم عاد كان متمتعا و هذا هو الالمام الفاسد و هو ان يرجع حراما الى وطنه و الرجوع الى داخل الميقات بمنزلة مكة و الى خارجه

غير بلده قيل هو كمكة و قيل هو كمصره السابع ان يكون طواف العمرة كله او اكثره و الحج في سفر واحد فلو رجع الى اهله قبل اتمام الطواف ثم عاد و حج فان كان اكثر الطواف في السفر الاول لم يكن متمتعا و ان كان اكثره في الثاني كان متمتعا و هذا الشرط على قول محمد خاصة على مشاهير الثامن اداؤهما في سنة واحدة فلو طاف للعمرة في اشهر الحج و ان لم يلم بينهما او بقي حراما الى الثانية التاسع عدم التوطن بمكة فلو اعتمر ثم عزم على المقام بمكة ابدا لا يكون متمتعا و ان عزم شهرين و حج كان متمتعا العاشر ان لايدخل عليه اشهر الحج و هو حلال بمكة او محرما و لكن قد طاف للعمرة اكثره قبلها الا ان يعود الى اهله فيحرم بعمرة الحادي عشر ان يكون من اهل الافاق و العبرة للتوطن فلو استوطن المكي في المدينة مثلا فهو افاقي و لو استوطن الافاقي بمكة فهو مكي و من كان له اهل بمكة و اهل بالمدينة فليس بمتمتع و ان كانت اقامة في احداهما اكثر لم يصر حرا به قال صاحب البحر و ينبغي ان يكون الحكم لكثير و اطلق في خزانة الاكمل بالمنع.

متن و بعده ترجمة و شرح ملا علي القاري

تمتع په اصلي لغت کي خوند او نفع اخيستلو ته وايي او په شريعت کي نفع اخيستلو ته د حج د دوو عباداتو وايي چي هغه دوه عبادتونه حج او عمره ادا کول دي په مياشتو کي د حج په دغه کال افاقي سړي لره نه مکي لره علاوه دا ده چي د عمرې او حج تر مابين به المام صحيح نه کوي المام په عربي کي دوه قسمه دی يو صحيح بل فاسد صحيح هغه المام ته وايي چي د عمرې څخه ځان حلال کړي باره کور ته ولاړ سي د حج په احرام بې شروع لا نه وي کړې او بل فاسد چي د عمرې په احرام کي کور ته ولاړ سي چي تفصل بې په را روان عبارت کي درته راځي.

بعضي علماؤ ليکلي دي چي حج تمتع به په يوه سفر کي وي لکه صاحب د هدايې چي ويلي دي او نورو بيا دا ور زياته کړې ده چي احرام به د مکي وي حج لره او وجه د دغه نوم چي ورته تمتع وايي اوله خو هغه ده چي مصنف ذکر کړې ده او بله دا ده چي دغه حاجي په تمتع حج سره الله ته ځان نژدې کوي په دوو عبادتو سره او يا ده نفع واخيستل هغه زمانه چي د عمرې د احرام څخه بې ځان حلال کړی لو پر هغه شيانو اوس نفع اخلي کوم چي په احرام کي ورڅخه منع سوي وو او يا نفع اخلي پر نه تللو ميقاتو ته او يا په خپل ژوند کي د حج تر وختنه پوري پر خپل حيات نفع اخلي او دا حج تمتع تر افراد حج فضيلت لري په اجماع سره د ټولو احنافو په ظاهره روايت کي او زموږ د مذهب مشهور روايت هم صحيح دي والله اعلم.

اوس د دغه حج تمتع دپاره شرطونه سته که چيري دا شرطونه موجود سوه نو حج تمتع بې صحت لري او که نه سوه موجود بيا بې تمتع حج صحت نه لري او هغه يولس

شرطونه دي:

۱: اول شرط يې دا دی چې د متمتع حاجي د عمرې تول طواف يا اکثره طواف به د حج په میاشتو کې وي که چیرې یو کس په روژه کې د عمرې طواف په جنابت یا په بې اودسی سره وکړی او بیا يې د دغه عمرې د طواف قضا په میاشتې کې د اختر وکړه او بیا په دغه کال کې حج هم وکړی نو حاجي متمتع نه ورته ویل کیږي په اتفاق سره د علماؤ اوس علماؤ د دغه مسئلې دلایل مختلف رنګه ویلي دي کرخي او د ده موافقینو ویلي دي چې وجه دا ده چې د ده تمتع صحت نه لري دغه حاجي خو د روژې عمره نه ده ماته کړې هغه يې اوس د اختر په میاشتو کې وکړه او ابوبکر الرازي رحمه الله او د ده موافقینو بیا ویلي دي هرکله چې ده اوله عمره د روژې ماته کړه او اوس يې اعاده وکړه متمتع نه ګرځي امام محمد رحمه الله په مبسوط کې په دغه تصریح کړې ده د هغه شخص دپاره چې په روژه کې عمرې ته ولاړ سي لو بیا اراده وکړي چې سږ کال به زه یا تمتع او یا حج قِران کوم طریقه د حل او جواز يې دا ده چې د عمرې دپاره به طوافونه کوي ترڅو چې د حج میاشتې داخلیږي هرکله چې کوچنی اختر تیر سو د کوچني بعد به د عمرې دپاره طواف وکړي نو که يې اراده د تمتع وه ځان به حلال کړي او که يې اراده د قِران وه تر حجه پورې به احرام بنده په مکې کې ژوند کوي او که يې په روژه کې د عمرې دپاره طواف مکمل وکړی او یا يې اکثره طواف وکړی باره د حج میاشتې داخلې سوې بیا د عمرې دپاره داخل په میقات کې احرام د عمرې وتړی متمتع یا قارن حاجي نه سي کیدای پر مذهب د ټولو علماؤ ځکه دی اوس په حکم کې د مکې د خلقو وګرځیدی ځکه د ده د حج میقات داسې دی لکه د مکې د سړي احرام کرماني وایي که چیرې ولاړ خپل وطن یا خپل میقات ته بیا نو د ده حج قِران یا تمتع صحت لري، انتهي.

او ظاهره دا حکم نسبت افاقي ته دی هغه افاقي چې په حکم د مکي سړي داخل سوی وي او کوم چې پخپله حقیقي مکي وي او د حج په میاشتو کې خارج ته ووزي پر سنت طریقې متمتع حاجي نه سي جوړیدای ځکه دا بیان تیر سوی دی او بل به د المام مسئله هم درته راسي د متمتع حاجي په باره کې او بل ظاهره ده چې متمتع حاجي د عمرې څخه فارغ سي بیاهم د نورو عمرو څخه نه دی منعه ځکه دا خو زیاتی عبادت دی او مکي سړی هم د عمرې څخه منع نه دی چې دا سوال پیدا نه سي چې متمتع خو په حکم کې د مکي سړي وګرځیدی بلکې مکي سړی د حج تمتع څخه منع دی لکه بیان چې يې تیر سو.

۲: دویم شرط د تمتع دا دی چې احرام د عمرې به د حج پر احرام دمخه وي.

۳: دریم شرط دا دی چې د عمرې ټول یا اکثره طواف به په میاشتو د حج کې د حج پر احرام دمخه وي او که چیرې یو کس د عمرې دپاره د حج تر احرام دمخه طواف و نه کړی او

یا یې لږ طواف وکړی هرکله چې یې د حج دپاره احرام وتړی باره یې د عمرې طواف وکړی تړوله یا اکثره نو بیا حاجي متمتع نه سي جوړېدلای بلکې قارن جوړېدای سي او که یې اکثره طواف د عمرې د حج تر احرام دمخه وکړی بیا نو حاجي متمتع کېدای سي هغه باقي طوافونه د عمرې به د حج په احرام کي پوره کړي.

۴: څلورم شرط دا دی چي هغه عمره چي تر حج دمخه ده فاسده کړې به یې نه وي اوس که یې د عمرې دپاره احرام وتړی د حج په میاشتو کي باره یې فاسده کړه خو پوره یې هم کړه پر دغه فساد باندي نو یې ځان حلال کړی باره یې په دغه کال د حج احرام وتړی مخکي تر دې چي د عمرې قضاء راوړي نو بیاهم دا حاجي متمتع نه سي ګرځیدلای او که یې اول د عمرې قضا راوړه او باره یې د حج احرام وتړی په دې مسئله کي تفصیل ډېر دی ځای یې د فقهي کتابونه دي.

۵: پنځم شرط دا دی چي عمره ادا کړي او ځان حلال کړي بیا به خپل کور ته د مکې څخه نه ځي مثلاً افاقي سړی وو چي د عمرې څخه یې ځان حلال کړی باره خپل کوټ لو وطن ته ولاړی بیرته په دغه کال حج ته راغلی نو حج تمتع یې صحت نه لري د شریعت په کتابو کي دغسي تګ ته المام صحیح وایي او که یې د عمرې طواف نه وو کړی په احرام کي وو او یا یې کړی وو ځان یې نه وو حلال کړی معناً سر یې نه وو خریلی په احرام کي خپل کور ته ولاړی چي دې ته په عربي کي المام فاسد وایي او بیرته د عمرې په احرام کي مکې ته راغلی نو بیا متمتع کیدای سي ځکه د ده المام معنا د کور تګ پوره په صحیح معناً نه دی سوی نو حاصل د مطلب دا سو چي المام صحیح حج تمتع باطلوي او المام فاسد یې نه باطلوي د المام صحیح حکم په اتفاق سره د علماؤ دی او د باطل المام حکم پر مذهب د امام اعظم رحمه الله او ابو یوسف رحمه الله پر مذهب دی لکه چي بیان یې تېر سو او رجوع داخل ته د میقاتو پر منزله د مکې دی لکه بیان یې چي تېر سو او که بل وطن ته ولاړی نه وخپل وطن ته دلته بعضي علماؤ ویلي دي چي دا هم په حکم کي د مکې دی او بعضي علماؤ یې حکم د ده د وطن بللی دی.

۷: اووم شرط دا دی چي طواف د عمرې ټوله او یا اکثره به د حج سره یوځای په یوه سفر کي وي نو که چیري یو کس طواف پوره نه کړي خپل کور ته ولاړي او بیرته راغلی حج ته نو که ده اکثره طوافونه په اول سفر کي کړي وه حاجي متمتع نه دی ځکه ده دوه عبادتونه په دوو سفرو کي وکړه او که یې اکثره طواف په دویم سفر کي وکړی بیا متمتع ګرځي دا مسئله قاضیخان ذکر کړې ده او محیط او مبسوط ذکر کړې ده چا مخالفت هم نه دی په کتبي ځرګند کړی لو پر مشهور قول باندي دا خاص مذهب د محمد رحمه الله دی او د امام اعظم

رحمه الله او ابو یوسف رحمه الله پر مذهب تصریح داسي ده که یې د عمرې طواف پوره کړی لیکن سر یې نه وو خریلی چي حلال سي ولاړی خپل کور ته او بیرته په دغه احرام کي راغلی حج یې وکړی د دوی پر مذهب یې تمتع صحت لري او که دا سوال وسي چي د تمتع په تفسیر کي علماؤ داسي ویلي دي چي دواړه عبادتونه به په یوه سفر کي وي لکه صاحب د هدایې هم ذکر کړي دي لیکن بیاهم صاحب د هدایې لیکلي دي که خپل کور ته احرام بنده ولاړی تمتع یې صحت لري نو اوس معلوم سوه چي یو سفر دواړو لره شرط نه دی لکه الکبیر هم دغسي حکم کړی دی نو ظاهره داده چي دا سفر حقیقتاً وي او که حکماً فرق نه لري.

۸: اتم شرط دا دی چي عمره او حج به دواړه په یوه کال کي ادا کوي پر قول د اکثره علماؤ اوس که چیري یو کس د حج په میاشتو کي عمره په یوه کال وکړه او حج یې په بل کال وکړی متمتع حاجي نسي ورته ویل کېدای لکه زیلعي چي دا مسئله ذکر کړې ده اگر که دا سړی خپل کور ته ولاړ نه سي په دغه ټوله کال کي او یا ګرسره د عمرې د احرام څخه تر کاله پوري څان حلال نه کړي لا د ده تمتع حج صحت نه لري فتاوٰی التاتارخانیه د تفرید په حکم لیکلي دي که یوه سړي په روژه کي د عمرې احرام وتړی باره په مکه کي مقیم سو دا بل کال یې د حج په میاشتو کي د عمرې او بیا د حج دپاره طوافونه وکړه حاجي متمتع نه بلل کیږي، انتهي او بعضو علماؤ بیا ویلي دي لکه ابن الهمام چي د متمتع حج دپاره د عمرې طواف په یوه کال کي معتبر بولي نه احرام په دغه دلیل سره چي په نوادرو کي ابن سماعة د محمد رحمه الله څخه نقل کړي دي که یو شخص په روژه کي د عمرې احرام وتړي او بیا په مکه کي مقیم سي پر دغه احرام باندي د دا بل کال د اختر تر میاشتي باره یې د کوچني اختر په میاشت کي طواف د عمرې هم وکړی د حج طواف یې هم وکړی نو دغه حاجي متمتع بلل کیږي څکه دی پر خپل احرام باقي پاته دی او افعال د عمرې او حج یې هم پوره کړه د حج په میاشتو کي نو داسي سو لکه په دغه کال کي چي یې احرام هم تړلی وي د سره څخه د حج په میاشتو کي.

۹: نهم شرط دا دی چي مکه به ده وطن د څان دپاره نه وي ګرځولې د همیشه دپاره که یې عمره وکړه باره یې قصد دا وکړی چي زه به دلته همیشه یم دغه مکه به زما وطن وي بیا نو دا حاجي متمتع نه سي کیدای وجه یې شاید دا وي چي اول سفر خو د ده قطع سو چي ده مکه د څان دپاره وطن وټاکله نو د ده عمره او حج په یوه سفر کي نه سوه جمع او که یې د دوو میاشتو د اقامت اراده کړې وه او حج یې وکړی متمتع حاجي ګرځي.

۱۰: لسم شرط دا دی چي دی به حلال نه وي د احرام څخه چي هرکله د حج میاشتي پر را داخلي سوې عامه خبره ده چي دی د مکې وي یا یې مکه وطن ګرځولې وي یا مسافر

وي بلکې د ده د تمتع دپاره دا شرط ده چې د عمرې دپاره به يې اکثره طوافونه مخکې کړي وي او يا به احرام بنده وي او که د مکې څخه ولاړی خپل کور ته د حج په مياشتو کې د حج تمتع دپاره بيا د ده حج تمتع دی په اتفاق سره.

۱۱: يولسم شرط دا دی چې دا متمتع حاجي به د اطرافو څخه وي ځکه د مکې سړي تمتع صحت نه لري او افاقي هغه چا ته ويل کيږي چې تر ميقاتو به د ده کور خارج وي او اعتبار وطن لره دی نه اقامت لره مثلا يو افاقي سړي لکه د مدينې سړي مکه د ځان دپاره وطن وټاکله ده ته مکي وايي او که د مکې سړي مدينه ځان ته وطن وټاکله بيا مکي نه دی بلکې مدني ورته ويل کيږي معنا افاقي سو او که چيري يو کس دوه کوره درلودل يو په مکه او بل په مدينه کې وو په دواړو ځايو کې يې برابره ګزاره کوله بياهم دی مکي دی علاوه لا دا ده که يې اکثره ګذاره په مکه کې وه خو بلکل مکي دی او که يې اکثره ګذاره په مدينه کې وه بيا نو مدني دی ځکه کليه قاعده دا ده چې حکم اکثر لره دی.. الخ.

## فصل د مکي سړي دپاره حج تمتع

ليس لاهل مكة و اهل المواقيت و من بينها و بين مكة تمتع فمن تمتع منهم كان عاصيا و مسيئا و عليه لا ساءته دم و لو خرج الى الافاق المكي في اشهر الحج او قبلها لا يكون متمتعا سواء ساق الهدي او لم يسقه.

متن و بعده ترجمة و شرح ملا علي القاري

کوم کسان چې د مکې بلشنده ګان دي او يا اهل د ميقاتو دي يا ميقاتو او حرم تر مابين واقع دي حج تمتع ورلره نسته او که بياهم دغه اشخاصو حج تمتع وکړی ګناهګاره عاصي دي دم د جبر لازميږي او دا د ده د جنايت کفاره ده په بدائع کې راغلي دي چې په عمره کې د مکي سړي پاته کيدل د حج په مياشتو کې معصيت او ګناه ده او مخالفت د حديثو څخه دی که يې اراده د حج درلودل په دغه کال کې لکه په تحفه کې هم دغسې راغلي دي او پر دغه حال که حج تمتع وکړي تحفه وايي جواز خو لري ليکن ګناهګاره دی او دم د جبر وربانديږي لازميږي او کرماني بيا ليکلي دي چې جواز نه لري چې عمره په حج يا حج په عمره ګډه کړي نو د دغه عبارتو څخه دا معلومه سوه چې مکي سړی خو عمره کولای سي د حج په مياشتو کې چې د حج احرام ورسره ګډ نسي عامه خبره ده که د عمرې په مابين يا په اخير کې د عمرې حج ورګډ کړي او دا عبارت د علامه عمر النسفي د عبارت سره چې ده په تفسير التيسير کې کړی دی منافات او مخالفت نه لري ځکه هغه داسې ويلي دي چې کوم کسان د مکې بلشنده ګان وي مناسب ورلره دا ده چې عمره د حج د مياشتو څخه ماسوا په نورو مياشتو کې وکړي او د حج مياشتې تنها وکړي يوازې د حج دپاره نو علامه

عمر النسفي په خپل عبارت کې د مکې خلقو ته دا آګاهي ورکړه چې په دغه وخت کې تاسي عمره مه کوئ چې د تمتع په ممنوعاتو کې واقع نه سي او بل دا ګمان پر مکي خلقو غالبه نسي چې د میانې میاشت خو فضیلت د عمرې په باب تر نورو میاشتو زیات لري ځکه چې نبي ﷺ څلور عمرې کړې دي او ټولې یې په دغه میاشت کې د میانې کړې دي نو د دې دلیل دفع دا ده چې دا فضیلت د میانې د میاشتې د عمرې عام و هر چا ته نه دي بلکې دا فضیلت د هغه چا دپاره مقید دی چې باشنده به د مکې مکرمې نه وي لکه د نسفي صاحب په تفسیر کې چې ورته اشاره سوې ده او کوم چې په نهایه کې ذکر دی چې مکي سړي لره کراهت نه لري چې عمره وکړي د حج په میاشتو کې لیکن د تمتع د فضیلت مقام ته نه سي رسېدلای دا عبارت هم حمل دی پر هغه تېر حکم باندې ځکه غالبه مکي سړي لره چې د حج څخه هم ځان نه سي بندولای او که چیري حج هم ورسره ګډ کړي بیا خو تمتع سوه لیکن پر سنت طریقه نه سوه ګناهګاره هم سو او کوم قول چې نهایې کړی دی چې د مکې سړی زموږ پر مذهب باندې اهل د حج قِران او حج تمتع دی لیکن د تمتع دپاره شرط دا دی چې کور ته بې په مکه کې نه وي ځکه دی و کور ته ځي یا په احرام یا چې ورڅخه حلال سو نو ملا علي القاري رحمه الله وایې د ده د قول مطلب دا دی چې صحت خو لري او یا یې مراد دا دی چې د مکې او د میقاتو څخه خارج سي نو هرکله چې تر میقاتو تېر سو بیا مکي نه دی بلکې په حکم کې د افاقي دی لهذا بیا ورته حج قِران او حج تمتع دواړه جواز لري او د صاحب د هدایې هم دغسي مطلب دی د عبارت یې چې ابن الهمام د هدایې عبارت داسي نقل کړي دي چې مکي سړي لره تمتع او قِران جواز نه لري نو دا عبارت د هدایې دوه احتماله لري یو دا چې په شرع کې هیڅ وجود نه لري او بل احتمال دا هم لري چې صحت نه لري او دا یې هم لیکلي دي چې مکي سړي احرام د عمرې د حج په میاشتو کې او یا د عمرې او حج دواړه احرامونه وتړي او طوافونه یې پوره کړل نه ورته حج تمتع صحت لري او نه ورته حج قِران صحت لري، انتهی.

نو د ده دا قول په اجماع سره د علماؤ مردود دی ځکه د ټوله علماؤ اجماع پر دغه ده چې د مکي سړي عمره او قِران حج صحت لري او دی متمتع او قارن حاجي دی لیکن ګناهګاره دی لهذا که مکي سړی د حج په میاشتو کې عمره وکړه او په دغه کال یې حج هم وکړی او یا یې دواړه یوځای وکړه حاجي متمتع او حاجي قارن ورته ویل کېږي ګناهګاره ځکه دی چې ده دا دواړه عبادتونه د شرعي څخه پر منع طریقه ادا کړه او دا عبارت د غایة البیان سره موافق دی او بیا یې دا هم لیکلي دي چې دم جبري پر لازمېږي چې دی به خوراک نه ورڅخه کوي او بیا د تحفة څخه نقل کړي دي چې هرکله پر مکي سړي د تمتع یا قِران په

وجه دم جبر لازم سو نو دا ورڅخه ثابته سوه چي حج تمتع او حج قِران یې صحت لري وجه دا ده چي جبيره خو د هغه شي کيږي چي موجود سي او نقصان په کښي وسي نو يې په دم هغه نقصان وباسي پوره يې کړي او ظاهره ده چي کوم شی په شريعت کي وجود و نه لري هغه جبيره هم نه لري اوس که څوک سوال وکړي چي دا دم خو د تمتع یا قِران د صحت دليل نه دی بلکې دا دم خو د دې په خاطر دی چي د حج په مياشتو کي مکي د عمرې څخه منع دی او کوم چي افاقي خلقو لره جواز لري هغه په دې وجه سره چي د عمرې دپاره بيا نوی سفر ورته سخت دی او دا علت خو مکي سړي لره نسته او نه هم هغه کسانو ته چي د مکي سړي په حکم کي داخل وي نو لهذا د مکي سړي دپاره د حج په مياشتو کي عمره مشروع نه سوه بلکې يو معصيت او ګناه سوه جواب دا دی چي عام د متونو کتابونو دا حکم کړی دی چي عمره په ټوله کال کي جواز لري صرف د عرفې او د اختر او د تشريق په ورځو کي مکروه ده نو د متونو دا مطلق عبارتونه مکي او غير مکي ټولو ته عام دي علاوه لا دا ده چي يو کس هم داسي تصريح نه ده کړې چي د مکي سړي د عمرې څخه هم منع دی لکه دا بيان چي تېر سو بلکې د مکي دپاره خو منع د تمتع حج څخه راغلې ده هغه په آيت کي چي تېر سوی دی او کومو کسانو چي ويلي دي چي د مکي سړي عمره د حج په مياشتو کي معصيت دی نو دا قول د قرآن او حديث او علم او عقل څخه مخالفت دی ځکه صاحب د نهايې ليکلي دي چي مکي سړي لره د حج په مياشتو کي عمره هيڅ کراهت نه لري نو دا څوک دی چي د عمرې څخه د مکې خلق منع کوي او حال همداسي دی چي حق تعالی په قرآن کي حکم مطلق ذکر کړی دی چي خپلې عمرې او حج پوره کړئ:

واتموا الحج و العمرة لله البقره ۱۹۶

اګر که يې سبب خاص دی چي ورود يې د افاقي خلقو دپاره دی خو اعتبار عموم د عبارت لره دی نه خصوص د سبب لره او څوک چي دا وايي چي عمره کول د حج په مياشتو کي غټ فاجر کار دی نو دا عبارت د اهل جاهليت د خلقو دی چي دوی به ډېر مبالغه په دې قول کي کوله نو نبي ﷺ د دغه فاسدي عقيدې د ختمولو دپاره اصحاب کرامو ته وفرمايل او علاوه دا ده چي اصحاب کرام يې امر کړه د حج احرام فسخه کړي د عمرې احرام ته او بل يې ورته وفرمايل چي عمره د حج په مياشتو کي داخله ده او دلته هيڅ قيد په حديث کي د افاقي او يا د مکي نه دی لګېدلی همدا وجه ده چي الفتحه فتاوای ليکلي دي تر دغه حديث بعد چي کوم کسان مکي خلق د حج په مياشتو کي د عمرې څخه منع کېدل دا حکم خطاء او غلط دی بې له شکه څخه الخ.

حاصل د مطلب دا دی چي يوازي عمره کول د مکي سړي مکروه نه ده بلکې هلته

مکروه ده چي حج ورسره ملګری سي بیا دم پر لازمیږي چي بیان یې تېر سو نو اصلي
خلص مطلب د مشائخو او د مذهب د امامانو د ټولو د موافقت دپاره دا لاره ده او د اعتبار
وړ همدا لاره ده چي کوم کسان وايي چي د مکي سړي تمتع باطله ده د دوی مراد دا دی چي
سنت طریقه یې باطله ده نه اصلي تمتع د لغت په اعتبار سره ځکه د دې ځخه هیڅوک
انکار نه کوي بې له شکه او بل چي کوم شرط دوی لګولی دی هغه هم د مطلق تمتع دپاره نه
بلکې د سنت طریقې دپاره دی او بل دا مسئله چي یې کړې ده چي مکي سړي کور ته ولاړ
سي تمتع یې باطلیږي جواب دا دی چي مکي سړي لره د کور تګ او د اهله سره لیدل نقصان
نه کوي اوس که افاقي سړی د ځان سره خپل اهل حج ته راولي او په اتفاق سره د ټولو علماؤ
د ده تمتع صحت لري او تګ خپل کور ته هلته مضر تمامیږي چي د عمرې ځخه فارغه سي
باره سفر وکړي خپل ښار او کلي لکه مثلاً د کوفې یا بصرې سړی نو دا غایت تحقیق دی و
قول ته ګوره و قائل ته مه ګوره او د مکي سړي چي تمتع یا قِران حج وکړي صحت لري او
ګناهګاره هم دی او دم هم د دوی د ګناه په وجه پر لازمیږي لهذا خوراک یې دوی ته جواز نه
لري اګر که مسکین هم وي، کذا في التاتار خانية... الخ.

ارشاد الساري د مکي سړي د تمتع په مسئله کي په خپله حاشیه کي ډېر زیات
تفصیل کړی دی حتی چي ده یوه مستقله رساله دلته نزهة المشتاق في حل عمرة المکي
نقل کړې ده او بل یې دا هم ویلي دي چي دا مسئلې ټولي په شرح د ملا علي القاري کي
ذکر سوي دي زه یې ښه تفصیل په دې وجه کوم چي ښه وضاحت راسي اګر که تکراریږي او
په خلص مطلب کي یې د ټوله علماؤ درې قوله را اخیستي دي چي یو مشهور قول هغه دی
چي متن د جمهورو علماؤ ځخه را نقل کړی دی او صاحب د العناية و التحفة و غاية البيان
او محیط او الجوهره او کرماي او الاسبجاني نقل کړي دي او دا یې مذهب دی او دویم قول
چي عمره مکي سړي لره د حج په میاشتو کي مکروه ده اګر که حج هم و نه کړي په دغه کال
کي او دغه قول ته صاحب د بدائع او ابن الهمام میلان کړی دی او دریم قول دا دی چي مکي
سړي لره عمره مکروه نه ده د حج په میاشتو کي اګر که په دغه کال هم حج ورسره وکړي
لیکن دونه فضیلت د دغه تمتع نسته او دم هم نه پر لازمیږي دې قول ته میلان صاحب د
نهایې او قاضي ابو زید الدبوسي کړی دی. الخ.

## فصل د حج تمتع دپاره د احرام تړل د میقات ځخه شرط نه دی

و لا يشترط لصحة التمتع احرام العمرة من الميقات و لا احرام الحج من الحرم
فلواحرم للعمرة داخل الميقات و لو من مكة او للحج من الحل و لم يلم بهما الماما صحيحا
يكون متمتعا و عليه دم لترك الميقات ولا يشترط ايضا ان يحرم بالعمرة في اشهر الحج

و لا ان يكون النسكان عن شخص واحد حتى لو امره شخص بالعمرة و اخر بالحج جاز
متن و بعده ترجمة و شرح ملا علي القاري

د حج تمتع دپاره داشرط نه دی چې احرام به د ميقات څخه تړي د عمرې دپاره لکه بعضو روايتو چې وهم خلقو ته پيدا کړی دی چې د ميقات څخه احرام تړل د تمتع حج د صحت دپاره شرط دی او نه هم دا شرط دی چې د حج احرام به د حرم څخه خامخا تړي ځکه احرام د ميقات د جملې څخه د واجباتو څخه دی لهذا که يو شخص احرام د عمرې دپاره د داخل څخه د ميقات وتړي علاوه لا دا چې د مکي څخه يې وتړي او د حج احرام يې د زمين حل څخه وتړی اگر که يې د عرفات څخه وتړي او بل يه الامام صحيح و نه کړی معنا د عمرې د احرام څخه فارغه سو کور ته ولاړی نو دا تمتع حج د ده پر سنت طريقې سو ليکن دم پر لازم په دې وجه دی چې يو خو يې د عمرېد احرام ځای خطا کړی چې ميقات دی او بل يې د حج د احرام ځای خطا کړی چې حرم دی او بل د تمتع حج دپاره دا شرط نه دی چې د عمرې احرام به خامخا د حج په مياشتو کي وي بلکې شرط په کښې دا دی چې اکثره طواف د عمرې به د حج په مياشتو کي وي او بل دا په کښې شرط نه دی چې عمره او حج به دواړه د يو شخص دپاره وي ځکه جواز ورته لري چې مثلاً حج د ځان دپاره وکړي عمره يې د بل چا دپاره وي علاوه دا ده که يو سړی امر کړي چې زما دپاره عمره وکړه او بل سړي ورته وويل چې زما دپاره حج وکړه او اجازه يې د تمتع حج ورکړه جواز لري ليکن هغه شکريه بيا د کونکي د ماله څخه کيږي که يې قدرت نه درلودی بيا به روژې نيسي چې طريقه د روژو مخکي تېره سوې ده.

## فصل حج تمتع دوه قسمه دی

المتمتع على نوعين متمتع يسوق الهدى و متمتع لا يسوقه و الاول افضل فا احرم بالتلبية ساق هديه و هو افضل من القود الا ان ينساق فيقوده و يقلد البدنة بمزادة لو نعل او لحاء شجرة و التقليد افضل من التجليل و ان جلله مع التقليد محسن و تركه لا يضر و يجوز الاشعار و قيل يكره و هو ان يطعن بالرمح اسفل سنام البدنة من قبل اليسار حتى يخرج الدم ثم يلطخ بذلک الدم سنامه ثم اذا دخل مكة طاف وسعي لعمرته و اقام محرما و لو حلق لم يتحلل من احرامه و لزمه دم و ان بدا له ان لا يحج صنع بهديه ما شاء و لا شئ عليه و لو اراد ان يذبح هديه و يلحجُ لم يكن له ذلک و ان نحره ثم رجع بعد الحلق الى اهله ثم حج لا شئ عليه و لو رجع الى غير اهله من الافاق يكون متمتعا و عليه هديان هدى التمتع و هدى الحلق قبل لوقت و اما المتمتع الذي لم يسق الهدى اذا دخل مكة طاف لعمرته وسعي و حلق و ان قام حراما جاز و ليس عليه طواف القدوم و يطوف بالبيت ما بدا له

و لا يعتمر قبل الحج فاذا كان يوم التروية احرام بالحج و قبله افضل فان كان ساق الهدى يصير محرما باحرامين و الا فباحرام واحد و كلما قدم الاحرام على يوم التروية فهو افضل ساق الهدى اولا و الافضل ان يحرم من المسجد و يجوز من جميع الحرم و من مكة افضل من خارجها و يصح ولو خارج الحرم و لكن يجب كونه فيه الا اذا اخرج الى الحل لحاجة فاحرم منه لا شئ عليه بخلاف ما لو خرج بقصد احرام و لو اراد تقديم السعي تنفل بطواف واضطبع و رمل فيه ثم سعي بعده ثم راح الى عرفات.

متن و بعده ترجمة و شرح ملا علي القاري

حج تمتع پر دوه قسمه دى اول دا دى چي د ځان سره هدى معنا غويي يا اوبن بوزي د اول احرام سره يې د ځانه سره يې روان او دويم قسم دا دى چي د ځان سره هديه نه بوزي ليکن غوره په کښي اول قسم دى ځکه دلته د صدقې او خيرات ډېروالى په کښي راځي نو طريقه دا ده چي احرام يې وتړى تلبيه به وايي او په خپل هدي به ورپسې سي چي تر کشولو يې ثواب زيات دى که سرکښنه نه وو او خپل هديه که اوبن وي که غويى نشاني به کړي مثلاً وړه دي ور پوري موړي لانده يا دي يوه چوټه ور په غاړه کړي يا دي د درختي يو پټه ور په غاړه کړي ځکه دا نشاني د دې دپاره ده چي خلق په دې پوه سي چي دا هديه ده نو به څوک نقصان نه ورته رسوي ځکه په قرآن کي الله تعالى فرمايي:

يايها الذين امنوا لاتحلوا شعائر الله و لا شهر الحرام و لا الهدى و لا القلائد و لا امين البيت الحرام يبتغون فضلا من ربهم و رضوانا. المائده ۲

معنا اې مؤمنانو تاسي ځانو ته حلال مه بولئ هغه د دين شعائر د الله تعالى او مه روا بولئ بې عزتي د عزتمنده مياشتو او مه حلال بولئ هدى د حاجيانو او مه هغه نشاني سوى هديې او مه هغه کسانو ته ازار رسول کوئ چي پناه يې د امن و بيت الله ته راوړي وي او د خداى جل جلاله رضا طلبوي.

تر ځلوولو يې يو شى ور په غاړه کول فضيلت لري او که دواړه وي خو فضيلت يې لا نور هم زيات دى او پرېښول يې تاوان نه لري ځکه سنت نه بلکې ښه کار دى اِو زخمي کول يې هم جواز لري چي د اوبن د چپه طرف په لاندي طرف کي د بوک نېزه ووهي باره يې په وينو د ده بوک ولړي چي معلوم داره وي او خلق يې ښه وپېژني.

او بعضي کسانو زخم پر جوړول مکروه بعضو بدعت بللى ليکن اصح مذهب ورته سنت ويلي دي.محيط ليکلي دي چي صحيح مذهب همدغه دى ځکه حديثونه په کښي وارد سوي دي او الطحطاوي او الشيخ ابو منصور الماتريدي ويلي دي چي امام اعظم رحمه الله ورته مکروه عمل نه دي ويلي څنګه مکروه عمل ورته وويل سي چي حديث په

کنبي وارد سوی دی او کوم چا چي ورته مکروه ويلي دي دا د هغه چا دپاره چي ډېره مبالغه په کنبي کوي خصوصا د گرمو علاقو دا د حجاز خلقو به ډېر کوشش په کنبي کوی بلکې د حيوان د هلاک خطره به په کنبې وه نو ظاهره ده چي داسي عمل خو سنت نه بلکې مکروه دی د سنت عمل څخه مخالف کار دی لهذا ابو يوسف او محمد رحمهما الله ورته مکروه ويلي دي او فتوا هم پر دغه ده هغه حاجي متمتع چي هديه ورسره وي چي هرکله و مکې ته ور داخل سو نو به طواف او سعيه د عمرې وکړي احرام بنده به په مکې کي مقيم سي څکه حاجي ته هديه او ځان حلالول د اختر تر ورځي پوري منع دی او که سر وخريي هم نه حلاليږي د احرام څخه نه وزي بلکې دا يې يو جنايت پر احرام وکړی حال هم دا چي د حج په احرام کي لا داخل هم نه دی او دم پر لازميږي لکه داسي تصريح چي زيلعي کړې ده په محيط فتاوٰی کي ليکلي دي که يې خپله هديه ذبح کړه باره ولاړی خپل کور ته نو بيا جواز ورته لري چي بيا را نه سي و حج ته ځکه د ده څخه خو صرف د حج نيت سوی دی نو حج نه دی پر لازم سوی او که يې اراده وکړه چي ځان حلال کړي هديه حلاله کړي او بيا را نسي پر بل کال حج وکړي جواز نه لري وجه دا ده چي ده کلک عزم کړی دی د تمتع نو د ده هديه دی د حلال څخه منع کوي او که وطن ته ولاړی هديه يې حلاله کړه مگر بيرته راغلی حج يې وکړی هيڅ شی نه پر لازميږي ځکه دلته دی متمتع حاجي نه دی او که يې په مکه کي ځان حلال کړی او هديه يې هم حلاله کړه او حج يې تر تگ و خپل کور ته دمخه وکړی پر دغه يو دم د تمتع او بل د ځان حلالولو د اختر تر ورځي دمخه لازميږي نو دوه دمه پر لازم سوه که يو سړي د ځانه سره هديه بيولی وه نيت يې د حج تمتع وو کله چي فارغه سو د عمرې څخه باره يې قصد وکړی چي تمتع حج نه کوم نو جواز نه لري چي تمتع و نه کړي په هديه دي هغه څه وکړي چي خوښه يې وي او که يې قصد وکړی چي هديه حلاله کړي او حج وکړي بيا نو د هدی حلال ورته جواز نه لري ځکه قصد يې پوخ کړی دی او که يې هديه حلاله کړه باره تر سر خريلو بعد وطن ته ولاړی نه بلکې بل طرف ته ولاړی هم دی متمتع دی دوه دمه پر لازميږي يو د تمتع شکريه دويم د سر خريلو تر وخت دمخه او هغه متمتع حاجي چي د ځانه سره يې هديه نه وي راوستلې چي مکې ته ور داخل سو د عمرې دپاره به فرضي طواف وکړي د حج په مياشتو کي او بل به واجب سعيه وکړي د صفا او مروا تر مابين او سر به وخريي چي مستحب عمل دی او که احرام بنده په حرم کي اوسيدی جواز ورته لري زيلعي ذکر کړي دي چي د ده خوښه ده که ځان حلالوي په سر خريلو باندي او که د حج احرام تر حلال دمخه تړي د ده سره ابن الهمام هم موافق دی پر حاجي متمتع طواف قدوم نسته په اتفاق سره د علماؤ لکه د کرماني وغيره تصريح هم دغسي ده ځکه دی په حکم کي د مکي

د خلقو سره مګر که یې اراده د سعي د صفا او مروا وکړه بیا نو طواف قدوم وربانديي سته اګر که نفلي طواف وي دپاره د دې چي سعیه د ده صحت پیدا کړي او په هدایه کي وایي که دغه متمتع حاجي وروسته تر احرام د حج طواف او سعیه وکړه چي منا ته لا نه وو تللی نو بیا په طواف زیارت کي د اوږو ښورول او بل د صفا سعیه نسته مصنف چي دا حکم کړی دی چي پر حاجي متمتع باندي طواف قدوم نسته د ده څخه قوام الدین مخالف دی ځکه ورته طواف نافلة ویلي دي او مختصر الکرخي او کرماني طواف نفلي بللی دی ملا علي القاري رحمه الله وایي چي د متن قول چي وایي پر متمتع حاجي طواف قدوم نسته مراد ورڅخه هغه حاجي دی چي قصد د سعي د صفا نه لري او یا خو متمتع حاجي د عمرې فرضي فرضي طواف کوي نو طواف قدوم په دغه فرضي طواف داخل سو لکه د مثال په ډول چي مسجد ته د خپل کلي سړی ورسي که د نفلو وخت وو نو سنت طریقه دا ده چي دوه رکعته د مسجد ورتګ د توفیق په شکریه کي سړی دوه رکعته لمونځ وکړي او که چیري د فرض لمانځه وخت وو او امام درېدی ورغلی بیا دا دوه رکعته تحیة المسجد ورڅخه ساقط سو په هغه فرضي لمانځه هم د دغه جبیره وسوه هم دلته چي د عمرې فرضي طواف یې وکړی نو بیا که یې سعیه نه کوله طواف نسته دا وو د متن د قول مجمل.

علاوه لا دا ده چي علماوو دا قول کړی دی چي متمتع حاجي چي عمره ادا کړه د ده مثال د حاجي مفرد دی نو دا قول هم د دې دلیل دی چي متمتع به طواف قدوم کوي او بل دا قول چي بعضي کسانو کړی دی چي پر مکي سړي طواف قدوم نسته دی چي دي خو د مکې څخه احرام تړي نو متمتع هم د مکي سړي په حکم کي داخل دی دی هم د مکې څخه د حج دپاره احرام تړي د دې جواب دا دی چي د متمتع حاجي تعریف دا دی چي متمتع حاجي هغه دی چي په یوه سفر سره دوه عبادتونه کوي لکه حج او عمره نو لهذا په دغه وجه دی په حکم کي پوره د مکي سړی نه سو اګر که د حج احرام د مکې څخه تړي نو هرکله چي دی په حکم کي د مسافر سو په هر فعل د حج کي نو پر ده طواف قدوم په حج کي لازم دی لکه پر حاجي قارن باندي او بعضي کسانو چي نفلي یا تطوع ورته ویلي دي هغه د دې سره مخالف نه دی چي دا دي نو طواف قدوم نه سي بلکې طواف قدوم خو سنت دی د نفلي یا تطوع اطلاق پر سنت کېدای سي حاجي متمتع چي هر وار کعبه شریفه ووینې طواف به پر کوي ځکه طواف مستقل عبادت دی تکرار او ډېروالی یې فضیلت لري او کوم چي سعیه د صفا ده تکرار نسته په کښې معنا نه مکرر کیږي.

مصنف لیکلي دي چي حاجي متمتع به تر حج دمخه عمره یوازي نه کوي ورڅخه منع دی علامه ملا علي القاري په شرح کي ورته لیکلي دي چي دا قول صحیح نه دی بلکې

افاقي متمتع حاجي لره جواز لري چي هر څونه عمرې كوي كولاى يې ځكه سې چي دا خو مستقل عبادت دى لكه طوافونه چي كولاى سي په دغه معنا ارشاد الساري ليكلي دي چي د مصنف عبارت حمل دى پر مكي سړي باندي چي منع دى د عمرې څخه بلكې دا قول هم صحيح نه دى علاوه لا دا ده چي مكي سړي د حج تمتع او قِران څخه منع دى او كوم چي افاقي سړى دى ده لره هرڅونه عمرې چي كوي ورته جواز لري ځكه دا خو عبادت مستقلة دى لكه طوافونه چي كولاى سي او كوم عبارت چي په حاشية المدني كي راغلي دي چي لباب مسلم ذكر كړي دي چي متمتع حاجي عمره نه سي كولاى هغه ورڅخه مراد هغه متمتع دى چي د ځانه سره هديه معنا شكريه نه وي بېولې د هغه حكم جلا دى زموږ د مذهب د ټوله امامانو او فقهاؤ پر دې اتفاق دى چي عمره په ټوله كال كي جواز لري بغير د كراهت څخه مگر په پنځو ورځو كي يې نه سي كولاى چي د عرفات ورځ د اختر ورځ درې د تشريق ورځي دي چي د اختر تر ورځو بعد دي او په دغه حكم كي د مكي او غير مكي فرق هيڅ نسته لكه دا صراحت چي مبسوط او البحر او النهايه او علامه قاسم وغيره علماؤ كړى دى او كوم كسان چي معلمين دي او جاهلان دي هغوى دا غريب مسافر حاجيان چي د ځان سره يې هديه شكريه هم نه وي راوستلي منع كوي د عمرې څخه دا زموږ د احنافو د مذهب څخه مخالفت دى او د غريبانو مسكينانو حاجيانو د عبادت څخه بندېدل دى چي دا يو لوى عظيم عبادت دى چي داسي موقع بيا نه ورته په لاس ورځي ځكه تر حج بعد دونه وخت دلته نسي پاته كېداى چي بيا عمرې وكړي، ولاحول و لا قوة الا بالله العلى العظيم.

حاجي متمتع دواړه قسمه كه هديه ورسره وي او كه نه چي ورځ د اتم سوه د حج احرام به وتړي لو تر اتم ورځي لا دمخه ثواب ډېر لري ځكه د عبادت ورځي يې ډېرېږي نو هغه متمتع چي د ځانه سره يې شكريه بېولې ده نو د ده دوه احرامه سره يوځاى سوه نو كه جنايت ورڅخه وسي هغه دوه دمه كوي ځكه جنايت يې په دوه احرامه كي واقع كيږي او كه شكريه نه وي ورسره بيا نو يو دم د جنايت كولو په وخت كي پر لازمېږي د احرام د تړلو ځاى فضيلت منده مسجد حرم دى او ډېر فضيلت د حطيم شريف سره دى علاوه دا ده چي ټول حرم د احرام دپاره ځاى دى په هر ځاى كي جواز لري ليكن د فضيلت ځايونه مكه دى چي درته تېر سوه او كه يو سړى د عذر په وجه د حرم څخه وتلى وو زمين حل بيا ورته جواز لري بې له څه جرمه چي د هغه ځايه څخه احرام وتړي او كه عذر نه وو بيا واجب دا ده چي حرم ته به د احرام دپاره ځان را رسوي اگر كه يې د هغه ځايه څخه هم احرام جواز لري لكه مكي سړى چي ولاړ سي زمين حل كي احرام وتړي او حال همدا دى چي د مكي سړي ميقات او د احرام تړلو ځاى حرم دى او اجماع د علماؤ هم پر دغه ده چي جواز لري او كه متمتع حاجي

اراده وکړه چې زه سعیه دمخه کوم نو به اول طواف وکړي او راسته وروسته به هم په دریو اولو شوطو کې لځه کړي او اوږې به هم وښوروي باره به د صفا او مروا سعي ته ولاړ سي بیا به عرفات ته ولاړ سي ابن العجمي وایي چې بعضي علماوٴ دا ویلي دي چې متمتع حاجي اراده د سعي وکړه اول دې مسجد حرم ته راسي اووه شوطه طواف دې وکړي باره دې دوه رکعته لمونځ وکړي باره دې د نوي احرام دوه رکعته سنت لمونځ هم وکړي لکه بیان چې تېر سوی دی، والله اعلم.

## باب الجمع بين النسكين المتحدين

الجمع بين النسكين المتحدين او اكثر احراما او افعالا وهو مكروه مطلقا و كذلك اضافة احرام الحج في حق الافاقي اسائة بخلاف اضافة احرام الحج الى احرام العمرة فانه يجوز له بلا كراهة دون المكي.

متن و بعده ترجمة و شرح ملا علي القاري

د حج د دوو عبادتو یا ډیرو د یوه قسمه څخه لکه مثلا د دوو حجو احرامونه تړل یا د دوو عمرو احرامونه تړل او بیا یې افعال هم یوځای ادا کول مکروه عمل دی عامه خبره ده که د مکې وي سړی که افاقي وي او کوم چې افاقي سړي په حج تمتع کې چې هدیه ورسره وي یا یې حج قِران وي د عمرې و احرام ته د حج احرام ورګډوي دا خو جواز لري و افاقي ته نه و مکي سړي ته ځکه دا ته مکروه دی په بحر الرائق کې وایي چې دوه احرامه د حج یوځای کول یا دوه احرامه د عمرې یوځای کول بدعت او ناروا دی زموږ د مذهب د علماوٴ په اتفاق سره په جامع الصغیر کې د عتابي په قول ورته حرام کار ویل سوي دي ځکه دا د غټو لا د غټو ګنهو څخه بلل سوي دي د اسنجاري هم دا حکم دی ارشاد الساري دلته څلور صورتونه لیکلي دي د حج پر احرام د عمرې احرام تړل د عمرې پر احرام د حج احرام تړل د عمرې پر احرام د عمرې احرام تړل د حج پر احرام د حج احرام تړل من ردمحتار.

## فصل د دوو حجو احرامونه یو ځای تړل

اما الحج احراما فهو ان يهل بهما معا او على التعاقب مع بقاء وقت الوقوف بعرفة فاذا اهل بحجتين معا فصاعدا كعشرين او بحجة ثم بحجة لزمه جميع ذلك غير انه يرفض احداهما في المعية و في التعاقب الثانية و انما يرتفض اذا صار الى مكة او شرع في الاعمال كالطواف او الوقوف بعرفة الخلاف تظهر فيما اذا جني قبل السير او الشروع فلو لم يسر اياما ولم يشرع في عمل فهو محرم باحرامين فيلزمه جزاآن بارتكاب الجناية كالقارن و لو احصر فدمان و لو جامع فعليه ثلاثة دماء دم للرفض و دمان للجماع و بعد الارتفاض بالسير او الشروع في العمل جزاء واحد ثم اذا ارتفضت احدهما لزمه دم الرفض و قضاء

الحج المفروض من قابل و عمرة و لو فاته الحج فعليه حجتان و عمرة ثم ان فاته هذا الرفض لزمه دم الرفض او قبله فكذلك فيما يظهر قلت و لو اهل بهما بعرفة في وقت الوقوف ارتفضت احداهما بلا فصل و كذا في ليلة المزدلفة بعد الوقوف لا قبله كما لا يخفى والله اعلم و اما الجمع افعالا فهو ان يحرم بالثاني بعد فوات وقت الوقوف فلو احرم باالحج و وقف بعرفة ثم احرم الحج اخر يوم النحر فان كان بعد الحلق للاول لزمه الثاني و لاشئ عليه لا دم و لا رفض و يبقى محرما الى قابل و ان كان قبل الحلق لزمه ايضا و عليه دم الجمع و يمضي في الاول و هو دم جبر و يلزمه دم اخر سواء حلق للاول بعد الاحرام للثاني اولا و لو حلق بعد ايام النحر فعليه دم ثالث و من فاته الحج فاهل بحجة اخرى لزمه رفضها و دم و عمرة و حجتان.

متن و بعده ترجمة و شرح ملا علي القاري

په دغه فصل کې هغه بيان دی چې يو شخص دوه حجه په يو احرام سره جمع لو يا يو ځل يو د حج احرام وتړي وروسته بل د حج احرام وتړي او د عرفات د دريدو وخت لا نه وي نو كه چيري دغه شخص دوه يا زيات مثلاً د شلو حجو يا ديرشو حجو احرامونه وتړل دغه ټوله پر لازميږي ليکن دلته دوه صورت ذکر سوه يو دا چې ټوله حجونه په يوه تلبيه او احرام کې سره جمع کړي نو لازميږي خو ټوله که شل وي که سل وي ليکن دلته اوس په دغه کال کې يو کېدای سي هغه نور به هر يو په مستقل مستقل کال کې ادا کوي لهذا په دغه صورت کې به يو پوره کړي هغه باقي به مات کړي او په دويم صورت کې چې يو يې په بل پسې تړلی وي اول به پوره کړي هغه باقي به مات کړي معنا پرې به يې ږدي.

د باقي حجو ماتول هلته کيږي چې هر كله مكې ته ورسيدى په ظاهره روايت كې د امام اعظم رحمه الله ځخه لكه تصريح چې په مبسوط كې پر سوې ده او قدوري هم ذكر كړې دَه په شرحي د مختصر الكرخي كي او بل مشهوره روايت هم دی د امام اعظم رحمه الله ځخه او په بل روايت كي د امام اعظم رحمه الله ځخه هلته د باقي حجو ماتوالی راځي چې د حج په افعالو يې شروع وكړه لكه طواف يا پر عرفات درېدل اوس كه څوک سوال وكړي چې د دې دوو روايتو خو موږ ته فرق نه معلوميږي څه فرق لري جواب دا دی چې فايده د اختلاف دلته معلوميږي چې تر احرام بعد چې روان سوی لا نه وي نو دی احرام بنده دی په دوو احرامو سره پر مذهب د امام اعظم رحمه الله لوس كه چيري يو جنايت ورځخه وسي دوه دمه پر لازميږي يا چې يې د هر څو حجو احرام تړلی وي او كه دښمن د حج ځخه را بند كړی هم به د هر حج دپاره دم حرم ته د حلال دپاره ليږي او كه يې يو احرام وتړی باره يې د ښځي سره وطي وكړې بيا يې بل احرام وتړی بيا نو د ماتوالی كه يې د دوو حجو احرام تړلی وو دري دمه پر لازميږي ځكه چې يو حج يې مات كړی

او بل پوره کوي او د بل قضا د حج او عمرې راوړي نو د دوو احرامو پر جنايت دوه دمه لازميږي او هرکله چي يې باقي مات کړل بيا نو پر يوه احرام جنايت راغلی يو دم پر لازميږي په اتفاق سره د احنافو علماؤ او هرکله چي يې يو احرام د حج مات کړی دم هم پر لازميږي او د مات سوي حج قضا او عمره هم پر لازميږي او که د سره څخه ورڅخه پاته سوه بيا دوه حجه او يوه عمره پر واجبيږي الفارسي او طرابلسي او صاحب الحبر العميق ذکر کړي دي که يو کس د دوو حجو احرامونه وتړل او حج يې و نه کړی پر بل کال پر ده دوه حجه او دوې عمرې پر لازميږي لو که چيري هغه پاته سوی حج ورڅخه مات سو بيا يو دم پر لازميږي مصنف وايي که پر عرفات ودرېدی لو احرام بنده وو پر عرفات باندي يا پر مزدلفه باندي په اتفاق سره د امام اعظم او ابو يوسف رحمه الله يو حج ورڅخه مات سو علامه ملا علي القاري وايي چي دا قول د امام اعظم رحمه الله د قول څخه اخيستل سوی دی چي حاجي شروع وکړه باره يې هغه بل حج مات سو حاصل د مطلب دا دی که يو حاجي مفرد پر عرفات باندي د بل حج احرام وتړی په دغه ورځ يا په شپه کي د امام اعظم او ابو يوسف رحمه الله پر مذهب پر لازميږي نه د محمد رحمه الله پر مذهب باندي ځکه د ده پر مذهب د حاجي ولاړه پر عرفات د بل حج د احرام څخه منع کوي لو د امام اعظم او ابويوسف رحمه الله پر مذهب خو يې احرام صحيح دی ليکن بيرته مات سو لهذا بل حج به پر کال کوي او دم د ماتوالی هم پر لازميږي او که پر مزدلفه د بل حج احرام وتړي هم يې دغسي حکم دی او بل جمع د دوو حجو په افعالو کي د حج داسي ده چي اول حج پوره کړي د اختر په ورځ د سر تر خريلو بعد د بل حج احرام وتړي نو بيا د تولو پر مذهب دويم حج پر لازم دی د کاله به احرام بنده وي ترڅو چيې پوره کوي په دغه صورت کي نه دم سته د ماتوالی نه د جنايت د جمع کولو د دوو حجو او که چيري يې تر سر خريلو دمخه د بل حج احرام وتړی بيا خو دويم پر لازم دی ليکن د دوو احرامو د حج د جمع د جنايت دم پر لازميږي په اتفاق سره د ټوله علماؤ لو اول به پوره کوي او دغه دم د جبر دی چي دی خوراک ورڅخه نه سي کولای او بل دم هم پر لازم دی په اتفاق سره برابره خبره ده چي سر خريل يې تر دويم احرام بعد کړي وي او که يې لوس سر و نه خريي پر کال چي حج يې وکړی سر وخريي نو د امام اعظم رحمه الله پر مذهب دم ځکه پر لازم دی چي سر خريل يې وځنډوی او پر مذهب د يارانو هيڅ شی ورباندي نسته لو که د اختر ورځي تيري سوې باره يې سر وخريي بيا درې دمه پر لازميږي د امام اعظم پر مذهب باندي کرماني وايي که يې د اختر په ورځ بل احرام وتړی د امام صاحب پر مذهب که يې د اول حج تر طواف زيارت سر وخريي دويم احرام يې لازم دی او دم نسته او که سر و نه خريي لو يا يې طواف زيارت و نه کړی بيا دم پر لازم دی ځکه دوه حجه جمع سوه ځکه د اول دپاره خو ده طواف زيارت و نه کړی نو جامع د دوو سو که اول حج ورڅخه فاسد سو لو د بل احرام يې وتړی هم پر لازم دی چي

دویم به ماتوي قضا او دم پر لازم دی۔

## باب ګډول د عمرې احرام حج لره يا د حج احرام عمرې لره

اضافة احد النسكين الى الاخر و الجمع بينهما معا مسنون للافاقى و مكروه للمكى فان جمع المكى بينهما فرض العمرة و مضى ف الحج اما الاضافة فعلى قسمين الاول اضافة الحج الى لعمرة و هو ان يحرم بالعمرة او لا ثم بالحج قبل ان يطوف لها او بعد ما طاف لها و الثانى اضافة العمرة الى الحج و هو ان يحرم بالحج اولاثم بالعمرة قبل ان يطوف طواف القدوم او بعده فالاول جائز بلا كراهة للافاقى مكروه للمكى و الثانى مكروه لهما اما تفريعات القسم الاول فالافاقى اذا ادخل الحج على العمرة قبل ان يطوف لها اكثره او لم يطف شيئا فقارن و عليه دم شكر و ان كان بعد ما طاف لها اربعة اشواط فى اشهر الحج فهو متمتع ان حج من عامه ذلك بلا المام و الافمفرد بهما و اما حكم المكى و من بمعناه اذا اخل الحج على العمرة ان كان قبل ان يطوف لها يرفض عمرته و عليه دم الرفض و ان مضى فيهما جاز و عليه دم الجمع و لو كان بعد ما طاف الاقل فكذلک و عليه دم و حجة و عمرة و ان قضى الحج من سنته تلك بان احرم به بعد الفراغ من العمرة فلا عمرة عليه و لو مضى فيهما جاز مع الاسائة و عليه دم الجمع و لو ان كوفيا دخل مكة بعمرة فاسدها و اتمها ثم احرم بمكة بعمر و حجة يرفض عمرته وعليه دم و قضاؤ ها لانه صار كالمكى و لا فرق فى حق المكى بين ان يجمع بينهما فى اشهر الحج او غيرها فلو اهل المكى بعمرة فطاف لها اكثره فى غير اشهر الحج ثم اهل بحجة فعليه دم و لو فعل ذلك افاقى لم يجب عليه شئ و اما تفريعات القسم الثان مكيا اهل او لا بالحج ثم بالعمرة فعليه رفضها و ان مضى عليها جاز و لزمه دم و ان كان افاقيا ادخل العمرة على الحج قبل ان يشرع فى طواف القدوم فهو قارن مسئ و ان كان بعد ما شرع فيه او بعد اتمامه وهو بمكة لو عرفة فكذلک هو قارن مسئ اكثر اسائة من الاول و يستحب له رفض العمرة و لو اهل بها فى اياه النحر و التشريق قبل الحلق وجب الرفض والدم و القضاء و كذلک بعد الحلق و لو لم يرفض فى الصورتين اجزاه و عليه دم الجمع و لو فاته الحج فاحرم بعمرة قبل ان يتحلل فعليه رفض العمرة.

متن وبعده ترجمة و شرح ملا علي القاري

دوه عبادتونه و افاقي سړي لره جواز لري چي سره جمع يې کړي علاوه دا ده چي افاقي سړي لره سنت طريقه دا ده چي د عمرې تر احرام بعد يا ورسره د حج احرام يوځای وتړي او پوره يې کړي عامه خبره ده که حقيقتاً افاقي وي او که حکماً افاقي وي لکه د مکې سړی چي يو طرف ته ووزي بيان يې تېر سوی دی دوی لره سنت عمل دی او خاص مکي

سړي لره يې جمع کول مکروه کار دی دا بيان هم تېر سوی دی او که چيري يو مکي سړی د عمرې او حج دواړه احرام وتړل بيا خو به عمره وکړي پر فرض سوه او د حج افعال به هم پوره کړي دوه عبادتونه سره جمع کول دوه قسمونه لري يو دا چي اول د عمرې دويم د حج احرام ورګډ کړي او دويم قسم دا دی چي اول د حج دويم د عمرې احرام ورګډ کړي دريم نه لري لوس که چيري يو شخص د عمرې احرام وتړی بيا يې د حج احرام وتړی يا د عمرې تر طواف دمخه يا وروسته دا قسم افاقي سړي لره جواز نه بلکې مستحب او سنت عمل دی ځکه نبي ﷺ سره جمع کړي دي علاوه دا ده چي د حديثو ذخيره ورڅخه ډکه ده لکه ابن حزم چي دا تحقيق کړی دی د يادولو وړ خبر دا ده چي د مکي سړي لره داسي قسم حج مکروه دی او دويم قسم چي اول د حج بيا د عمرې احرام وتړي تر طواف قدوم مخکي يا وروسته نو دا قسم جمع کول مکي او افاقي دواړه لره مکروه دی علاوه لا دا ده چي مکي سړي لره تر افاقي کراهت او ګناه ډېره لري اګرچي شافعي رحمه الله داسي قسم جمعي ته هم جواز ورکړی دی د نبي ﷺ فعل يې داسي قسم ته هم شامل بللی دی. والله اعلم.

اوس هغه حاجي چي د عمرې احرام وتړی طواف يې لا نه وو ورته کړی او يا يې لږ کړی وو چي د حج احرام يې هم ورپسې وتړی نو حج قارن بلل کيږي او دم د شکريې پر لازميږي که چيري يې د عمرې دپاره پوره يا اکثره طوافونه کړي وه د حج په مياشتو کي بيا حاجي متمتع دی که يې په دغه کال کي حج هم وکړی او که يې په دغه کال حج و نه کړی او يا تر عمرې بعد کور ته ولاړی بيا نو حاجي متمتع نه بلکې حاجي مفرد بلل کيږي دلته دا سوال پيدا کيږي چي د عمرې تر طواف بعد افاقي سړی کور ته ولاړ سي نو بيا څنګه دی حاجي مفرد بلل کيږي ارشاد الساري په حاشيه کي دا سوال د مصنف څخه رد کړی دی او د القاضي عيد د شرحي څخه يې دا طريقه د حل نقل کړې ده چي د مصنف مراد داسي دی چي د عمرې دپاره څلور شوطه طواف وکړي او بيا ځان حلال کړي ځکه ده ته ځان حلالول هم جواز لري چي اکثره طوافونه يې د عمرې کړي وي نو يې تګ هم صحيح دی لهذا نو په دغه صورت کي دی حاجي مفرد ګرځي علاوه لا دا ده چي بيا د عمرې هغه باقي درې شوطونه کوي د حج احرام ورباندي راګډ کړي او بيا د عمرې سعيه وکړي، والله الحمد او حکم د مکي سړي يا هغه سړي چي د ده په معنا کېدی لکه ميقاتي يا افاقي چي په مکه کي مقيم سي چي د حج په مياشتو کي عمره په حج کي ورګډه کړي دا ځان ته درې قسمونه لري اول قسم دا دی چي که يې د عمرې احرام تړلی وو او طواف يې نه وو کړی چي د حج احرام يې هم وتړی نو په اتفاق د علماؤ به خپله عمره ماته کړي دم پر لازميږي.

د عمرې د ماتوالی په وجه او دويم قسم يې دا دی چي دواړه افعال معنا عمره او حج

دويم به ماتوي قضا لو دم پر لازم دی۔

## باب ګډول د عمرې احرام حج لره يا د حج احرام عمرې لره

اضافة احد النسكين الى الاخر و الجمع بينهما معا مسنون للافاقي و مكروه للمكي فان جمع المكي بينهما فرض العمرة و مضى ف الحج اما الاضافة فعلى قسمين الاول اضافة الحج الى لعمرة و هو ان يحرم بالعمرة او لا ثم بالحج قبل ان يطوف لها او بعد ما طاف لها و الثانى اضافة العمرة الى الحج و هو ان يحرم بالحج اولاثم بالعمرة قبل ان يطوف طواف القدوم او بعده فالاول جائز بلا كراهة للافاقي مكروه للمكي و الثاني مكروه لهما اما تفريعات القسم الاول فالافاقي اذا ادخل الحج على العمرة قبل ان يطوف لها اكثره او لم يطف شيئا فقارن و عليه دم شكر و ان كان بعد ما طاف لها اربعة اشواط فى اشهر الحج فهو متمتع ان حج من عامه ذلک بلا المام و الافمفرد بهما و اما حكم المكي و من بمعناه اذا اخل الحج على العمرة ان كان قبل ان يطوف لها يرفض عمرته و عليه دم الرفض و ان مضى فيهما جاز و عليه دم الجمع و لو كان بعد ما طاف الاقل فكذلک و عليه دم و حجة و عمرة و ان قضى الحج من سنته تلک بان احرم به بعد الفراغ من العمرة فلا عمرة عليه و لو مضى فيهما جاز مع الاسائة و عليه دم الجمع و لو ان كوفيا دخل مكة بعمرة فاسدها و اتمها ثم احرم بمكة بعمر و حجة يرفض عمرته وعليه دم و قضاؤ ها لانه صار كالمكي و لا فرق فى حق المكي بين ان يجمع بينهما فى اشهر الحج او غيرها فلو اهل المكي بعمرة فطاف لها اكثره فى غير اشهر الحج ثم اهل بحجة فعليه دم و لو فعل ذلک افاقي لم يجب عليه شئ و اما تفريعات القسم الثان مكيا اهل او لا بالحج ثم بالعمرة فعليه رفضها و ان مضى عليها جاز و لزمه دم و ان كان افاقيا ادخل العمرة على الحج قبل ان يشرع فى طواف القدوم فهو قارن مسئ و ان كان بعد ما شرع فيه او بعد اتمامه وهو بمكة او عرفة فكذلک هو قارن مسئ اكثر اسائة من الاول و يستحب له رفض العمرة و لو اهل بها فى ايام النحر و التشريق قبل الحلق وجب الرفض والدم و القضاء و كذلک بعد الحلق و لو لم يرفض فى الصورتين اجزاه و عليه دم الجمع و لو فاته الحج فاحرم بعمرة قبل ان يتحلل فعليه رفض العمرة.

متن و بعده ترجمة و شرح ملا علي القاري

دوه عبادتونه و افاقي سړي لره جواز لري چي سره جمع يې کړي علاوه دا ده چي افاقي سړي لره سنت طريقه دا ده چي د عمرې تر احرام بعد يا ورسره د حج احرام يوځای وتړي او پوره يې کړي عامه خبره ده که حقيقتاً افاقي وي او که حکماً افاقي وي لکه د مکې سړی چي يو طرف ته ووزي بيان يې تېر سوی دی دوی لره سنت عمل دی او خاص مکي

سړي لره يې جمع کول مکروه کار دی دا بيان هم تېر سوی دی او که چيري يو مکي سړی د عمرې او حج دواړه احرام وتړل بيا خو به عمره وکړي پر فرض سوه او د حج افعال به هم پوره کړي دوه عبادتونه سره جمع کول دوه قسمونه لري يو دا چي اول د عمرې دويم د حج احرام ورګډ کړي او دويم قسم دا دی چي اول د حج دويم د عمرې احرام ورګډ کړي دريم نه لري اوس که چيري يو شخص د عمرې احرام وتړی بيا يې د حج احرام وتړی يا د عمرې تر طواف دمخه يا وروسته دا قسم افاقي سړي لره جواز نه بلکي مستحب او سنت عمل دی ځکه نبي ﷺ سره جمع کړي دي علاوه دا ده چي د حديثو ذخيره ورڅخه ډکه ده لکه ابن حزم چي دا تحقيق کړی دی د يادولو وړ خبر دا ده چي د مکي سړي لره داسي قسم حج مکروه دی او دويم قسم چي اول د حج بيا د عمرې احرام وتړي تر طواف قدوم مخکي يا وروسته نو دا قسم جمع کول مکي او افاقي دواړه لره مکروه دی علاوه لا دا ده چي مکي سړي لره تر افاقي کراهت او ګناه ډېره لري اګرچي شافعي رحمه الله داسي قسم جمعي ته هم جواز ورکړی دی د نبي ﷺ فعل يې داسي قسم ته هم شامل بللی دی، والله اعلم.

اوس هغه حاجي چي د عمرې احرام وتړی طواف يې لا نه وو ورته کړی او يا يې لږ کړی وو چي د حج احرام يې هم ورپسې وتړی نو حج قارن بلل کيږي او دم د شکريې پر لازميږي که چيري يې د عمرې دپاره پوره يا اکثره طوافونه کړي وه د حج په مياشتو کي بيا حاجي متمتع دی که يې په دغه کال کي حج هم وکړی او که يې په دغه کال حج و نه کړی او يا تر عمرې بعد کور ته ولاړی بيا نو حاجي متمتع نه بلکي حاجي مفرد بلل کيږي دلته دا سوال پيدا کيږي چي د عمرې تر طواف بعد افاقي سړی کور ته ولاړ سي نو بيا څنګه دی حاجي مفرد بلل کيږي ارشاد الساري په حاشيه کي دا سوال د مصنف څخه رد کړی دی او د القاضي عيد د شرحي څخه يې دا طريقه د حل نقل کړې ده چي د مصنف مراد داسي دی چي د عمرې دپاره څلور شوطه طواف وکړي او بيا ځان حلال کړي ځکه ده ته ځان حلالول هم جواز لري چي اکثره طوافونه يې د عمرې کړي وي نو يې تګ هم صحيح دی لهذا نو په دغه صورت کي دی حاجي مفرد ګرځي علاوه لا دا ده چي بيا د عمرې هغه باقي درې شوطونه کوي د حج احرام ورباندي راګډ کړي او بيا د عمرې سعيه وکړي. والله الحمد او حکم د مکي سړي يا هغه سړي چي د ده په معنا کېدی لکه ميقاتي يا افاقي چي په مکه کي مقيم سي چي د حج په مياشتو کي عمره په حج کي ورګډه کړي دا ځان ته درې قسمونه لري اول قسم دا دی چي که يې د عمرې احرام تړلی وو او طواف يې نه وو کړی چي د حج احرام يې هم وتړی نو په اتفاق د علماؤ به خپله عمره ماته کړي دم پر لازميږي.

د عمرې د ماتوالي په وجه او دويم قسم يې دا دی چي دواړه افعال معنا عمره او حج

دواړه پوره کړي خو دم د جمعي پر لازمیږي په اتفاق سره د علماؤ او که افاقي سړي دا طریقه حج او عمره وکړي حاجي متمتع بلاشکه بلل کیږي او دریم قسم یې دا دی مکي لره چي د عمرې یې لږ طوافونه کړي وي چي د حج احرام ورباندي راګډ کړي بیاهم د امام اعظم رحمه الله پر مذهب حج ماتوي نو په دغه صورت حج عمره دم معنا قضا یې پر لازمه ده که یې په دغه کال کي حج و نه کړی او که یې حج په دغه کال کي وکړی تر فراغه بعد د عمرې څخه بیا عمره نسته ورباندي او که یې حج او عمره دواړه پوره کړه جواز لري لیکن ګناهګاره دی او دم د جمعي پر لازمیږي او که د کوفې سړی مثلاً د عمرې احرام وتړي خو طواف یې لا نه وو کړی چي د خپلي زوجې سره یې وطي وکړی عمره یې فاسده کړه خو طواف او سعیه د عمرې یې پوره کړه او بیرته یې د مکې څخه د عمرې او حج احرامونه وتړل نو به عمره ماته کړي او دم پر لازمیږي د عمرې د ماتوالي په وجه سره او د عمرې قضا به هم بیا راوړي څکه پر ده د عمرې ماتوالی لازم دی چي دی خو اوس په حکم کي د مکي سړی دی داخل په مکه کي دی او د مکې او مقیم د مکې حکم یو دی او که د مکې سړي د حج تر میاشتو دمخه د عمرې احرام وتړی او اکثره طوافونه یې هم ورته وکړه چي د حج میاشتي پر را داخلي سوې باره یې د حج احرام هم وتړی نو دم پر لازم دی د جمعي څکه ده خو لا عمره د حج تر میاشتو دمخه نه وه پوره کړې چي د حج احرام یې ورګډ کړی او که دغسي طریقه حج او عمره افاقي سړی وکړي هیڅ شی نه پر لازمیږي او کوم چي تفریعي مسائل د دویم قسم دی هغه دا دی دا د هغه قسم مسائل بیانیږي چي اول د حج احرام وتړي او بیا د عمرې احرام وتړي نو اوس که سړی د مکې وو د عمرې احرام ماتول پر لازمیږي او که یې دواړه پوره کړه جواز لري لیکن دم پر لازمیږي او که افاقي سړی د حج پر احرام د عمرې احرام را ګډ کړی بیا نو تفصیل غواړي اوس که افاقي د حج احرام وتړی بیا یې د عمرې احرام وتړی تر طواف قدوم مخکي نو داحاجي قارن دی لیکن ګناهګاره دی دم پر لازمیږي د شکریې څکه پر ده د عمرې ماتوالي واجب نه دی او که افاقي سړي د حج پر احرام د عمرې احرام هلته راګډ کړي چي د طواف قدوم دپاره یې اکثره یا ټوله طوافونه کړي وه هم حاجي قارن دی لیکن ګناه یې تر اول قسم چي تېره سوه ډېره ده لهذا دم جبر پر لازمیږي او مستحب ورلره ماتول د عمرې دی چي عمره ماته کړي حج پوره کړي حاصل د کلام دا دی چي داسي قسم حج قران داسي نه دی لکه عمره چي اول وي بیا د حج احرام ورپسې وي څکه داسي قسم حج ډېر ثوابونه لري اوس دا قسم چي د حج احرام پر احرام د عمرې دمخه وي دا صرف حج قران دی لیکن ثواب یې دونه نه دی که چیري یو حاجي د اختر په ورځو کي تر سر خریلو دمخه د عمرې احرام وتړی بیا هم واجب دا ده چي د عمرې احرام مات کړي او دم او قضاء پر لازمیږي همدا رنګه که یې سر وخریی باره یې د عمرې احرام وتړی

واجب دا ده چي عمره ماته کړي دم او قضا یې راوړي پر اصح مذهب باندي په شرح زيعلي کي راغلي دي چي دا هم جمع ده په احرام کي یا په باقي افعالو کي د حج دلته یو سوال پیدا کيږي چي اوس خو ده دا افعال د حج پوره کړه سر یې وخریي یا یې طواف زیارت وکړی جواب دا دی چي اوس خو لاهم بعضي واجبات د حج د احرام وربانديي پاته دی لکه د جمراتو ویشتل لهذا دی په افعالو کي د دواړو جمع کونکی سو نه جمع کونکی د احرامو هم د دغه وجهي دم پر لازميږي دلته یې د سعي ذکر و نه کړی چي دا هم پاته دی ځکه چي سعيه گای گای تر طواف زیارت دمخه گای وروسته وي.

زيلعي وایي اصل قانون دا دی چي د عمري ماتول ځکه پر لازميږي چي د منهي کاره څخه ځان وساتل سي ځکه په دغه ورځو کي عمره منع ده او قيل د مبسوط عبارت نقل کړی دی چي عمره دي نه ماتوي د دې عبارت څخه دا مسئله فايده کيږي چي تر ورځو د اختر بعد بیا عمره ورته اسانه ده او گناه یې هم لږ ده او که چیري یو کس د اختر په ورځو کي د عمرې احرام وتړی د سر خريلو بعد یا دمخه نو واجب خو دا دی چي عمره ماته کړي او که یې ماته نه کړه بیا دم د جمعي پر لازميږي او که حج ورڅخه فوت سو نو یې د عمرې احرام وتړی مخکي د حج تر حلالولو نو په دغه صورت کي هم د عمري ماتوالی واجب دی.

## فصل د حج او عمرې د جمعي څخه يو ماتول

کل من لزمه رفض الحجة فی البایین فعلیه لرفضها دم و قضاء حجة و عمرة و کل من لزمه رفض العمرة فعلیه دم و قضاء عمرة و کل من لزمه الرفض و لم يرفض فعلیه دم الجمع و کل من علیه الرفض یحتاج الی نیته الرفض الا من جمع قبل السعی للاولی ففی هاتین الصورتین تر تفض احداهما من غیر نیته رفض لکن اما بالسیر الی مکة او الشرع فی اعمال احداهما کما مر و کل من جمع بین الاحرامین فجنی قبل الرفض فعلیه مثلا ما علی المفرد و بعد الفرض فعلیه جزاء واحد.

متن و بعده ترجمة و شرح ملا علي القاري

اوس په دغه فصل د تېرو فصلو د ټولو اقسامو احکام ذکر کيږي کوم چي دوه عبادتونه سره جمع کړي اوس که يو شخص د دوو حجو يا د دوو عمرو يا په حج کي د عمرې احرام ورسره جمع کړل نو که يې حج مات کړی يا يې عمره ماته کړه په دواړو صورتو کي قضا او دم پر لازميږي او که پر يو حاجي د عمرې د احرام ماتول واجب وه او مات يې نه کړی احرام لکه مثلاً يا يې د دوو حجو احرامونه سره جمع کړه يا يې دوې عمرې سره جمع کړې او يا يې د حج او عمرې احرامونه گډ کړه نو په دغه ټولو صورتو کي دم پر لازميږي ځکه ده دوه عبادتونه سره جمع کړه او بل قانون داسي دی پر کوم سړي چي د حج يا د عمرې د احرام

ماتول واجب وي نو ضرور د ماتوالی دپاره نیت غواړي لیکن هغه شخص بیا د ماتوالي نیت ته ضرورت نه لري چي دوه حجه سره یوځای کړي او پر عرفات د یوه دپاره هم نه وي دربدلی نو چي پر عرفات ودربدی هغه بل په خپله بې له نیته څخه ماتیږي او یا بې د دوو عمرو جمع کول وکړه نو چي هرکله بې شروع وکړه هغه بله ماتیږي او که یوسړي جمعوالی د دوو احرامو وکړه د حج او عمرې او یا د دوو حجو یا د دوو عمرو باره بې تر ماتوالی دمخه جنایت وکړی او یا بې یو احرام مات کړی وو باره بې جنایت وکړی نو جزا د مفرد پر لازمیږي علامه ملا علي القاري نور کُلي مسایل هم زیات کړي دي هغه دا چي هر هغه دم د دوو احرامو د جمع کولو په وجه پر لازم سو یا د یو احرام د ماتولو په وجه پر لازم سو نو دغه دم ته دم جبر او د کفارې دم وايي چي حکم بې دا دی چي روژه بې پرځای نه دریږي اګرکه مسکین وي او بل ده ته او غني سړي ته بې خوراک جواز نه لري او کوم چي شکریه ده د هغې حکم تېر سوی دی چي خوراک بې جواز لري.

او پوه سه حاجي صاحب چي کوم حاجي دوه حجه یا دوې عمرې یا حج او عمره سره ګډ کړل او لازم ورباندي ماتوالی وي د یوه نو ده هم مات کړه نو د ماتوالي دم خو پر لازم دی اوس سوال دا دی چي ده خو اول جمع کړې وه آیا هغه هم دم پر لازموي او که نه نو جواب دا دی چي عامو کتابو دا مسئله را اخیستي ده چي د جمعي دم هلته پر لازمیږي چي مات بې نه کړي یو احرام په کښي علاوه دا ده چي د دوی د عبارتو څخه صراحتاً معلومیږي چي دم د جمعي پر لازمیږي او په بحر الرائق کي راغلي دي که یو شخص دوه حجه جمع کړه او یا بې دوې عمرې جمع کړې بیا بې یو احرام په کښي مات کړی یو دم د ماتوالی د بل د جمعوالی پر لازمیږي او په وجوب کي د دم په سبب د جمعي په مابین کي د دوو احرامو دوه روایتونه راغلي دي چي اصح روایت دا دی چي دوه پر واجبیږي او د بحر الرائق تابع ابو النجا په خپل مناسک کي همدغسي وینا کړې ده چي دوه دمه پر لازمیږي یو د ماتوالی د احرام او بل د جمعوالی د دوو احرامو.

## د احرام فسخ کول څنګه حکم لري؟

د حج احرام عمرې ته فسخ کول معنا ور اړول د احنافو او شوافعو او مالک رحمه الله پرمذهب جواز نه لري صرف احمد رحمه الله وايي چي کیدای سي نو هرکله چي بې یو فسخه کړی او ټوله مذاهب اربعه وايي چي په دغه صورت کي بې د عمرې احرام ماتیږي احرام بې د حج بلل کیږي.

## باب د حاجي څخه چي جنایت وسي جزا پر لازمیږي

المحرم اذا جنى عمدا بلا عذر یجب علیه الجزا و الاثم و ان جنى بغیر عمل او بعذر فعلیه الجزا دون الاثم و لا بد من التوبة على كل حال ثم لا فرق في وجوب الجزاء فیما اذا

جنی عامد او خاطئا مبتدئا او عائدا او ناسیا عالما او جاهلا طائعا او مکرها نائما او منتبها سکران او صاحیا مغمی علیه او مفیقا معذورا او غیره موسرا او معسرا بمباشرته او بمباشرة غیره به بامره او بغیره ففی هذه الصور اجمعها یجب الجزا. و هذا هو الاصل لا یتغیر غالبا فاحفظه ثم الجنایات باعتبار جنسها علی انواع النوع الاول فی حکم اللبس اذا لبس المحرم المخیط علی الوجه المعتاد فعلیه الجزا و تفسیره ان یحصل بواسطة الخیاطته اشتمال البدن و استمساک فایهما انتفی لبس المخیط فاذا لبس مخیطا یوما کاملا او لیلة کاملة فعلیه دم و فی اقل من یوم او لیلة صدقة و کذا لو لبس ساعة فصدقة و فی اقل من ساعة و لو ایاما فعلیه دم واحد فان اراق لذلک ثم ترکه علیه یوما اخر فعلیه دم اخر و لو لبس یوما مثلاً ثم نزعه ثم لبسه ثم ترکه فان کان نزعه علی عزم الترک فعلیه کفارة اخری و الا لا و لو جمع اللباس کله معا من قمیص و قباء و عمامة و قلنسوة و سراویل و خف ولبس یوما او ایاما فعلیه دم واحد و هذا اذا اتحد سبب اللبس فان تعدد السبب کما اذا اضطر الی لبس ثوب فلبس ثوبین فان لبسهما علی موضع الضرورة نحو ان یحتاج الی قمیص فلبس قمصین او قمیصا وجبة او یحتاج الی قلنسوة فلبسها مع العمامة فعلیه کفارة واحدة و یتخیر فیها و ان لبسهما علی موضعین مختلفین موضع الضرورة و غیر الضرورة کما اذا اضطر الی لبس العمامة فلبسها مع القمیص مثلا او لبس قمیصا للضرورة و خفین من غیر ضرورة فعلیه کفارتان کفارة الضرورة یتخیر فیها وکفارة الاختیار لا یتخیر فیها و لو کان به حمی غب فجعل یلبس المخیط یوما و ینزعه یوما او حصره عدو فاحتاج الی اللبس للقتال ایاما یلبسها اذا خرج علیه و ینزعها اذا رجع او لم ینزع اصلا او لم یرجع و لکن یلبس فی وقت و ینزع فی وقت او کان به ضرورة اخری لاجلها یلبس فی النهار و ینزع فی اللیل للاستغناء عنه او فعل بالعکس لبرد او غیره او لم ینزع و لو مع الاستغناء عنه و العلة لازمة فما دام العذر فاللبس متحد فی جمیع ذلک و علیه کفارة واحدة یتخیر فیها فان زال العذر الذی لاجله لبس بیقین فنزع او لم ینزع وحدث عذر اخر او لم یحدث عذر و لکن دام علی اللبس فعلیه کفارة اخری الا اذا کان علی شک من زال العذر فاستمر فعلیه کفارة واحدة مالم یتیقین زواله علی منکبیه و زره یوما فعلیه دم و ان لم یدخل یدیه فی کمیه و کذا لو لم یزره و لکن ادخل یدیه فی کمیة و لو القاه و لم یزره و لم یدخل یدیه کمیة فلا شئ علیه سوی الکراهة و لو لم یجد سوی سروال فلبسه من غیر فتق فعلیه دم غیر انه یجوز له لبس و لو عصب شیئا من جسده سوی الرّاس و الوجه فلا شئ علیه و یکره ان کان بغیر عذر و لا یجب علی المرأة یلبس المخیط شی (تنبیه) قد یتعدد الجزاء و فی لبس واحد بامور الاول التکفیر بین اللبسین بان لبس ثم کفر و دام علی لبسه و لم ینزعه و الثانی تعدد السبب و

الثالث الاستمرار على اللبس بعد زوال و الرابع حدوث عذر اخر و الخامس لبس المخيط المصبوغ بطيب للرجل و يتحدد الجزاء مع تعدد اللبس بامور منها اتحاد السبب و عدم العزم على الترک عند النزع و جمع اللباس کله فی مجلس او يوم و حکم الليل کاليوم فيجب بلبسه ليلة کاملة دم انتهى.

متن وبعده ترجمة و شرح ملا علي القاري

دا باب په بيان کي د هغه شيانو کي دی چي کړه يې پر حاجي حرام يا ناروا دي يا د احرام په خاطر ورته حرام دي يا د حرم محترم په اعتبار سره ورته حرام وي ځکه د جنايت ترجمه همداسي ده په شريعت کي هر هغه فعل په نفس او اندامو سره کول چي حرام وي چي د حج فاسدونکي او د واجبو پرېښول په کښي داخل دی ارشاد الساري دلته يوه په زړه پوري حاشيه کړي ده چي وايي هرکله چي د اقسامو او احکامو څخه د حج فراغت راغلی نو اوس هغه عوارض بيانيږي چي احرام ته يا د حرم محترم په اعتبار سره جنايت بلل کيږي يا د حج فوت کېده راولي او يا د حج څخه سړی بندوي لهذا دلته د جناياتو بيان مخکي کيږي ځکه قاصره اداء تر پرېښولو غوره ده لکه د مثال په ډول چي په حج کي يو جنايت ورڅخه وسي او پوره يې کړي حج نو دا حج ناقص ادا سو او بل چي د حج څخه بند سي يا ورڅخه فوت سي نو دلته بيا حج پاته سو ځکه يې اول بيان د جناياتو مخکي راوړل او د جنايت ترجمه تېره سوه اوس د احرام په وجه سره چي ناجائزه عمل پېښيږي علامه الشيخ قطب الدين رحمه الله په خپل نظم کي خلص اووه دانې شمېرلي دي خريل د سر، نوکان لنډول، کالي اغوستل، وطي کول، د وطيو دپاره اشارې کول، خوشبويي لګول، ځان غوړول، ښکار کول د وچي مځکي.

بيتونه دا دي:

| | |
|---|---|
| محرم الاحرام يا من يدری | ازالة الشعر و قص الظفر |
| واللبس و الوطوء مع الدواعی | والطيب و الدهن وصيد البر |

او بحر الرائق اتم ۸ هم ورزيات کړی دی چي پرېښول دي د واجب د حج تر دغه ځايه هغه شيان ذکر سوه چي کوم شيان د احرام په وجه سره حرام وه اوس حاصل د هغه شيانو کوم چي د حرم په اعتبار سره حرام دي هغه دا دي چي ښکار ته تعرض کوي يا د حرم درختو ته تعرض کوي الخ يا د ښځو په حضور کي د وطيو او شهوت ذکر کوي دا اګر که دم نه لازموي مګر مطلقاً منع دي او علامه سيد احمد الطحاوي رحمه الله وايي چي دا خبره د يادولو وړ ده چي د خپلو ښځو سره د شهوت خبري جواز لري او د نامحرمه سره جواز نه لري اګر که شی نه ورباندي لازميږي اهـ.

ملا علي القاري وايي که محرم سرې جنايت وکړی قصداً بې له عذره څخه جزا پر لازميږي دا جزا د ده د فعل ده چي کفاره پر لازميږي او گناهگاره هم دی او د گناه رڅول بې په توبه کنبل دی د گناه څخه او که بې له قصده بې جنايت وکړی په خطا يا هيره يا په زوره او جهل سره هغه شيان چي علم بې پر واجب وي او په عذر سره که جنايت ورڅخه وسي بيا نو گناه نسته ليکن جزاء پر لازميږي او چاره نسته چي توبه به خامخا کاږي پر هر حال توبه پر لازمه ده او مقصود داسي دی که يو چا په قصد سره بې له عذره څخه جنايت وکړی او بيا بې جزا هم ورکړه نو دا خيال دې څوک نه کوي چي گناه به خامخا راڅخه پورته وي او توبه به هم نه وي پر واجب ابن جماعة د څلورو امامانو څخه داسي ذکر کړي دي چي يو حرام کار په قصده وکړي نو دی د فديې او جزا څخه خلاص سومه نو گناهگاره به هم نه يمه علامه نووي رحمه الله وايي چي د عوامو خلقو دا گمان دی چي زه نه گناهگاره کيږم نو په حرامو کارو کي مبتلا سي وايي زه خو بې فديه ورکوم دا جهل صريح او قبيح دی او فديه نه ده داسي چي سړی د گناه څخه خلاصيږي مثال بې داسی دی لکه يو سړی چي شراب څښي يا زنا کوي چي بيا حد راباندي لازميږي هغه زما گناه ورڅوي پاک به سم د گناه څخه او چا چي داسي کارونه کوله حج بې مبرور نه گرځي معنا د قبول درجې ته نه رسيږي انتهى او زموږ احناف دا وايي چي حد د گناه څخه سړی نه خلاصوي الخ په واجبولو کي د جزا او دم فرق نسته که بې جنايت په قصداً کړی وي او که بې په خطا سره کړی وي اولاً بې دا کار کړی وي يا بې دويم وار راگرځيدل ياد بې وي او يا بې هېر وي قصداً او يا جاهل وي خوشحاله وي که په زوره کړی وي بيده وي که وينس مدهوشه وي که پرسد په وخت د جنايت کولو کي معذوره وي مسکين وي که مالدار بماشرة د ده وي او که بل دا کار په وکړي په دا ټوله صورتو کي جزا پر لازميږي بې له خلافه زموږ د احنافو علماؤ او دا زموږ د احنافو اصل دی غالباً دا اصل نه مغاير کيږي علامة ملا علي القاري رحمه الله اشاره ده و دې ته چي سړی ځان خوشبويه کړي تر احرام دمخه هيڅ شی نسته نو دا اصل به سړی ضرور يادوي نو اوس د حج جنايات پر څو قسمو باندي دي ارشاد الساري وايي پر اووه قسمه دی نو اوس به هر قسم په تفصيل سره ذکر سي.

اول قسم دا دی چي احرام بنده د حج يا د عمرې گنډلي کالي واغوندي او يا بې يو اندام په گنډلې جامه کي سو او يا پر خپل عادت کالي واغوندي نو جزا پر لازميږي تفصيل د مخکي بيان دا دی چي د احرام بنده پر بدن گنډلي کالي راوگرځي يا بې پر ځان ونيسي او ور پوري ومنبلي اوس دا سوال پيدا کيږي چي کراسته خو گنډلي نه ده نو که يو چا پر ځان راوگرځوله څه حکم لري؟ جواب دا دی چي د گنډولو څخه مراد د يو بل سره ضم سوي کالي

مراد دي چې کراسته په کښي داخله ده او که حاجي ګنډلي کالي يوه ورځ د سهاره څخه بيا تر لمر لوېدو واغوستل او يا يې مکمل شپه واغوستل نو د علماؤ په اتفاق سره دم پر لازمېږي ارشاد الساري ليکلي دي چې معلومه خبره دا ده چې کامل جنايت خو دا دی چې سړی پوره نفع واخلي نو پوره نفع په دوام سره حاصلېږي ځکه يوه ورځ يا شپه چې سړي کالي واغوستل نو ښه نفع يې حاصله کړه ځکه د ځانه څخه يې ګرمي يا يخ دفع کړی نو دم پر لازم سو او تر ورځي کم اغوستل بيا يې جنايت کم دی نو بيا خيرات پر لازمېږي امام شافعي رحمه الله وايي چې ماسپښين په پښو کړي او بيرته يې وکاږي دم پر واجب دی بحر الرائق او عيني دا ليکلي دي کذا في حباب.

علامه ملا علي القاري ليکلي دي چې ظاهره دا ده چې د مکمل ورځي څخه يا د پوره شپې څخه مراد مقدار د يوې ورځي دی لکه مثلاً يو سړی د ورځي په نيمايي کي ګنډلي کالي واغوستل او بيا يې د شپې په نيمايي کي وکښل دم پر لازمېږي همدا رنګه چې د شپې په نيمايي کي يې واغوندي او د ورځي په نيمايي که يې وکاږي دم پر لازمېږي ارشاد الساري د ملا علي القاري د دغه حکم کتل د شيخ حنيف الدين المرشدي په قول کي ذکر کړی دی چې د ملا علي القاري دا حکم ما هيڅ په بل کتاب کي ليدلی نه دی چې هر څونه مناسکونه ما کتلي دي وغيره کتابونه او ارشاد الساري وايي چې عبارت يې ما د ابن عابدين په کتاب ردمحتار کي ليدلی دی ليکن د حکم څخه چې دم پر لازمېږي هغه سکوت کړی دی ليکن ظاهره دا معلومېږي چې پر لازمېږي علاوه دا ده چې په عامو کتابو کي د يوې کاملي ورځي ذکر راغلی دی او فتح القدير ليکلي دي چې وجه د ورځي د ذکر دا ده چې عادتاً د ورځي کالي خلق د شپې بدلوي کاږي يې الخ او د بدائع عبارت داسي دی چې عام خلق د ورځي دپاره يو قسم او د شپې دپاره بل قسم کالي لري نو د ورځي کالي چې په نيمه ورځ کي واغوندي نفع يې پوره نه سوه نو کفاره يې هم ناقصه ده چې صدقه ده لکه مثلاً يو نوک چې پرې کړي نو د بدائع مقتضي دا ده چې د ورځي په نيمايي کي کالي ګنډلي واغوندي د شپې تر نيمايي پوري هر يو يې ځان ته تنها صدقه غواړي نه دم چې دم پر لازم سي لکه يوه کامله ورځ چې يې واغوندي د دغه وجه صرف د محمد رحمه الله د قول څخه په اشاره معلومېږي که حاجي تر کاملي ورځي کم ګنډلي کالي واغوستل اګر که يو ساعت کم وي او يا يې په شپه کي يو کم ساعت واغوستل بيا نو خيرات پر لازمېږي خو ياد لره چې خيرات نيمه پيمانه غنم دي او که يې په ورځ يا شپه کي فقط يو ساعت واغوستل هم يې جزا نيمه پيمانه غنم دي دلته د يوه ساعت مقدار څخه نجومي ساعت مراد دی لکه زموږ په اصطلاح کي چې ورته يو ساعت وايو چې اندازه يې دا ده شولروز څلورويشت ساعته دی نو شپه او ورځ چې سره برابره

سي لکه د حمل يا د ميزان اول شواروز نو بيا ورځ دولس ساعته کيږي نو لهذا د ساعت څخه د دغسي ورځي دولسمه حصه مراد ده ارشاد الساري هم د الشيخ حنيف الدين المرشدي په قول د متن پر عبارت د ملا علي القاري رحمه الله د عبارت تائيد کړی دی د فقهاؤ او ردمحتار او بحر الرائق او ابو العباس الناطفي او الخزانة او المناسک کالفارسي او العلامة الرافعي په اقوالو کي انتهي او که يې تر ساعت کم واغوستل بيا يو موټ قدر غنم به خيرات کوي يا دوې قبضې معنا يوه غبرګه اوريشي به خيرات کړي د امام ابو يوسف رحمه الله قول داسي دی چي په مقدار د نيمي ورځي ګنډلي کالي واغوندي لا دم پر لازميږي امام صاحب هم دغه ته ميلان کړی دی ليکن بيرته يې هغه قول ته رجوع کړې ده چي اول حکم يې تېر سو چي دم نه پر لازميږي بحر الرائق هم دغسي قول کړی دی او د محمد رحمه الله څخه هم دغسي روايت دی چي په بعضي حصې کي د ورځي که ګنډلي کالي واغوندي ورځي ته به حساب وکړي د ورځي د اندازې په مقدار به صدقه ورکوي او که يو حاجي ډيري ورځي ګنډلي کالي واغوستل هيڅ يې په مابين کي و نه کښل هم يو دم پر لازميږي که عذر لري او که يې نه لري او که يو څه په عذر سره وو او يو څه بې له عذره څخه وو بيا يې جزا متعدده ده معنا د عذر په صورت کي اختيار لري او د بې عذرۍ په صورت کي بيا دم پر لازميږي او که چيري يو کس ګنډلي کالي اغوستي وه دم يې هم حلال کړی ليکن لا يې کالي نه وه کښلي چي بله ورځ هم پر تېره سوه بيا بل دم پر لازميږي ځکه چي دا بل جنايت بلل کيږي او پر دغه حکم د علماؤ اتفاق دی لو همدغسي حکم د هغه حاجي دی چي د حلال په وخت کي د دم کالي وکاږي او تر حلالولو بعد يې بيرته واغوندي او که يو حاجي قميص واغوستی يوه ورځ مثلاً يا يوه شپه او يا په مقدار د ورځي بيا يې وکښي بيرته يې بيا واغوستی بيا يې بيرته وکښي اوس دلته دوې خبري دي که يې دويم وار د بدلولو اراده وه او يا يې د نه اغوستلو اراده وه د دويم ولر په اغوستو سره بله کفاره معنا دم پر لازميږي او که يې و نه کښي په قصد د غورځولو او يا يې دا کالي وکښل چي بله جوړه واغوندم اوس که يې وا نه غوستل بله کفاره نه پر لازميږي ځکه حکم يې يو دی او که يو حاجي خپل د اغوستلو ټوله سامان معنا قميص او پرتوګ او لنګوټه او موزې يې په پښنه کړې ځان يې پوره کړی په کالو کي نو که يوه يا ډيري ورځي يې اغوستي وه يو دم پر لازميږي اګرچي د شپې به يې کښل د ورځي به يې اغوستل ليکن که يې يو ولر کښل په دې نيت سره چي بيا يې نه اغوندم مګر دا بله ورځ يې بيرته واغوستل بيا نو بل دم پر لازميږي اګرچي د اولي ورځي دم يې حلال کړی هم وي لا هم بل دم پر لازميږي په اتفاق سره د علماؤ او که يې د اول دپاره دم نه وو حلال کړی بيا نو دوه پر لازميږي د امام اعظم رحمه الله او ابو يوسف رحمه الله پر مذهب او د محمد رحمه الله پر مذهب يو پر لازميږي کما في البدائع.

او که یو حاجي و یو شي ته ضرورت د اغوستلو پیدا کړی مثلاً قمیص ته محتاجه سو د ضرورت په وجه او ده پر توګ هم ورسره واغوستی او یا یې دوه قمیصان واغوستل او یا یې د قمیص سره کوټ هم واغوستی یا یې رخچینه او لنګوټه هم پر سر کړه په دا ټوله صورتو کي یو دم پر لازمیږي ځکه محل د جنایت یو دی او د کار همرنګوالي او ډیروالي ته نظر نسته خو دا په هغه صورت کي خبره ده چي ضرورت یو شي ته وي بل پر سربیره واغوندي لکه یو قمیص کفایت کوي دی بل پر سربیره واغوندي او که چیري داسي پېښه وه چي د ده ضروت لنګوټې ته وو او بلا ضرورته یې قمیص هم واغوست او یا یې مثلاً قمیص ته ضرورت وو خو موزې یې بې له ضرورته په پښه کړې نو دلته دوې کفارې پر لازمیږي یوه د غیر اختیاري ضرورت په وجه سره چي د ده خوښه ده چي دم جلالوي او که نه او بل دم د هغه بې ضرورته شي په وجه پر لازم دی اختیار د نه کولو ورته نسته معنا خامخا پر لازم دی او طرابلسي بیا مخالفت کړی دی چي یو دم پر لازمیږي او بله فدیه معنا څه قدري خیرات به کوي او کوم چي تېر سو داسي حکم د هغه چا هم دی چي د عذر په وجه یو څه سر وخریي او یو څه بیا بې له عذره وخریي اګر که یې پر یوه ځای وخریی لا دوې جزاوي پر لازمیږي او که پر یو حاجي یوه ورځ نه بلکه ورځ تبه راتله نو ده به د تبې په ورځ قمیص اغوستی او کومه ورځ چي به یې تبه نه وه نه به یې اغوستی نو داسي حاجي چي هر څونه ورځي قمیص د تبې په ورځ اغوندي نو دا د یو عمل حکم لري یو دم پر لازمیږي او یو وار یې تبه سوه ده قمیص ورته واغوست بیا جوړ سو بله پېره بیا تبې ورته پیدا سوې بیا یې قمیص واغوست نو د امام اعظم رحمه الله او ابو یوسف رحمه الله پر مذهب دوې کفارې معنا دوه دمه پر لازمیږي او د محمد رحمه الله پر مذهب یو دم پر لازمیږي که یې د اول دپاره دم نه وو حلال کړی او که یې حلال کړی وو بیا د ده پر مذهب هم دوه پر لازمیږي او یو حاجي دښمن په لاره کي محاصره کړی نو جنګ ته او د کالو اغوستلو ته مجبوره سو ډیري ورځي نو هر کله چي به دی یا د ده دښمن جنګ ته ځان تیاروی کالي به یې اغوستل او چي ورڅخه فارغه سو بیا به یې احرام تړی کالي به یې کښنل او یا یې ګرسره کالي و نه کښنل ډیري ورځي په کښني تیري سوې خو دا یو قسم دښمن د ده مقابله کوله نو یو دم پر لازمیږي او که دا ورڅخه ولاړې بل ورته راغلی هغه ته یې هم کالي واغوستل بیا بل دم پر لازمیږي که چیري احرام بنده ته ضرورت پیدا سو د ضرورت په وجه یې د ورځي کالي واغوستل او د شپې یې ضرورت نه درلود بیا یې وکښنل او یا یې برعکس معامله وه او یا چي یوازي یې د ورځي ضرورت ورته درلود نه د شپې لیکن ده هیڅ کښنل نه بلکې د ضرورت د ورځو په اندازه یې مسلسل ورځي او شپې په کښني تیري کړې نو حاصل دا سو چي ترڅو پوري : ده ضرورت

دی دا تولہ یو عذر بلل کیږي نو لهذا پر ده یو اختیاري دم لازمیږي او که هغه عذر ورڅخه زایل سو چي ده ګنډلي کالي ورته اغوستي وه په یقین سره دا کال یې وکنبل او یا یې کنبلې لا نه وه چي بل عذر ورته پیدا سو او یاعذر نه وو لیکن کالي یې اغوستي وه ډېره مُده بیا بله کفاره معنا دم پر لازمیږي.

اصلي قانون په دې باب کي دا دی چي د کالو اغوستل اعتبار نه لري بلکې اعتبار یې جهت ته دی چي آیا په یو عذر تا اغوستي دي او که په دوه عذره سره او یا یې له عذره که یې عذر دوه یا دري واره سو او یا یې بې له عذره کالي یو وار وکنبل بیا یې بله پلا واغوستل نو د اغوستلو په شمېر سره دمونه پر لازمیږي او که پېښه داسي وه چي په یقین سره د ده خو عذر ختم وو لیکن ګمان لا کېده چي عذر به نه وي ختم سوی بیاهم که یې کالي واغوستل دم احتیاطاً پر لازم دی او که یو حاجي کوټ یا چپنه پر اوږو واچوله وې ترله یوه ورځ دم په اتفاق د علماؤ پر لازمیږي اګر که یې لاسونه نه وي ور داخل کړي لکه شمس الائمه الاسبجابی بدائع او نهایې چي داسي تصریح کړې ده او که یې و نه تړله بلکې لاسونه یې ور داخل کړه هم دم پر لازمیږي او که یې نه تړلې وه او نه یې لاسونه ور اچولي وه دغسي یې پر اوږو اچولې وه بیا هیڅ نه پر لازمیږي علاوه دا ده چي داسي عمل د سنت څخه مخالف دی او مکروه کار دی او که یو حاجي د پرتوګ ماسوا بل کالي نه درلوده د لنګ دپاره نو ده هم د لنګ په رنګه وتړی وا یې نه غوستی او سره څیری یې هم نه کړی هم دم پر لازمیږي په مشهوره روایتو کي اګرچي علامه رازي حکم کړی دی چي دم نه پر لازمیږي ځکه ضرورت موجود دی موږ جواب ورکوو چي د سر خریل خو هم د ضرورت په وجه کیږي نو ولي دم پر لازمیږي یا کالي اغوستل د تبې په وجه سره سړی واغوندي ولي دم پر لازمیږي او بل د اغوستلو د اباحت مسئله خو د دم سره نه ده مخالف او نبي ﷺ هم دغسي فرمایلي دي او زموږ د امام اعظم او ابو یوسف او محمد رحمهم الله همدغسي مذهب دی.

او که یو حاجي د سر او مخ څخه ماسوا پر بل ځای ګنډلي کالي د زخم په وجه سره پر تپ ومښلول هیڅ باک نه لري او که بې له عذره وو بیا یې عمل مکروه دی دا تېر مسایل د نر په باب کي وو او د ښځي دپاره د کالو په باب کي احکام جلا دي و من الله التوفیق و السداد.

که چیري ښځي ګنډلي کالي اغوستي وه بیا هیڅ شی نه پر لازمیږي دونه قدر خبره ده چي عطر یې ولګول بیا دم پر لازمیږي او یا یې په زعفرانو یا بل داسي ګل سره رنګ کړي کالي واغوستل چي خوشبویي ورڅخه پورته کېدله که یې یوه پوره ورځ واغوستل دم پر لازمیږي که کم وو بیا خیرات نیمه پېمانه غنم پر لازمیږي که یو حاجي یوه ورځ لنګوټه پر

سره کړه بله ورځ يې قميص واغوستى بله ورځ يې موزې په پښه کړې پر هر يوه يې يو دم لازميږي پوره.. الخ.

## فصل د سر يا مخ پټول

و لو غطى جميع رأسه او وجهه بمخيط او غيره يوما و ليلة فعليه دم و فى الاقل من يوم صدقة و الربع منهما کالکل و لو عصب من رأسه او وجهه اقل من الربع فعليه صدقة و لو حمل على رأسه مما يقصد به التخطية لزمه الجزاء. و ان کان مما لا يقصد به ذلک کاجانة او عدل او جوالق او مکتل او طاسة او حجر او مدر او صفر او حديد او زجاج او خشب و نحوها فلا بأس به و لا شئ عليه و لو غطى رأسه بطين لزمه الجزاء و ان خضبه بالحناء فعليه فديتان فدية للتغطية و لو لبد راسه فعليه الجزاء. و ليس للمرأة ان تنقب و تغطى وجهها فان فعلت يوما فعليها دم و فى الاقل صدقة.

متن و بعده ترجمه و شرح ملا علي القاري

که يو حاجي سر او مخ دواړه يا يو په کښې پټ کړى او نر د پټولو څخه منع دى د پټولو څخه د سر او مخ او د سر پټول په اجماع سره پر ده حرام دى لکه پر ښځه چې د مخ پټول حرام دى زموږ پر مذهب باندې او د مالک او امام احمد صاحب هم دغه مذهب دى په يوه روايت کې او که حاجي يو شواروز ټوله سر او مخ پټ کړى وو بيا دم پر لازميږي او که چيرې تر ورځې يې کم پټ کړى وو يا تر شپې کم بيا نيمه پيمانه غنم پر لازميږي او بل د يادولو وړ خبره دا ده چې څلورمه حصه د سر يا مخ پټول هم حکم د ټول سر يا مخ لري لکه مثال يې د سر مسحه ده چې زموږ پر مذهب يې څلورمه فرض ده اګرچې امام ابو يوسف رحمه الله بيا اعتبار اکثر لره ورکوي لکه صاحب د هدايې الکافي او مبسوط وغيره کتابو چې نقل کړي دي او زيلعي بيا د محمد رحمه الله قياس نقل کړى دى چې په سر يا مخ پټولو کې اعتبار و اندازې ته دى چې د ورځې اندازه به د دم سره برابره وي باره به يې د وخت په مقدار سره هغونه صدقه او خيرات پر لازموي ليکن د امام اعظم رحمه الله مذهب دا دى چې ربع معنا څلورمه حصه د ټوله سر حکم لري دم پر لازميږي لکه پر ټوله سر باندې چې لازميږي او صحيح مذهب همدغه دى بلا شبهې سره او که يې پر سر يا مخ تر څلورمې حصې کم پټے ولګوله يوه ورځ يا يوه شپه بيا د علماؤ په اتفاق سره نيمه پيمانه غنم خيرات پر لازميږي او که يې پر سر يو شى اخيستى وو د عادت يا د خوند دپاره نو دم په پوره ورځ سره پر لازميږي لو که پوره نه وه بيا نيمه پيمانه غنم پر لازميږي او که يې قصد هيڅ نه وو ليکن يو جوال يا غليبل يا تالى يا خم يا ډبره يا لوټه يا اوسپنه يا شيشه يا لرګى يا زر يا مثلاً سره زر يا سپين زر يا بلګونه چې ټوله يا بعضې سر يې پټوى بيا هيڅ پروا نه لري ليکن ځان ساتل

ورځخه بهتره او د سنت طريقې عملي کار دی او شی هم نه پر لازميږي نه دم نه خيرات ارشاد الساري په حاشيه کې ليکلي دي چې قاضي عيد په خپله شرح کې ليکلي دي که يې قصد د سر پټولو وو په دغه شيانو کې بيا نو هيڅ شبه نسته چې دم پر لازم دی او که يې قصد نه وو کړی ده د سر پټولو بيا نسته ورباندي انتهی.

او که يو حاجي سر په ختمو سره گل کړی دم پر لازميږي او که يې په نکريزو گل کړی بيا دوه دمه پر لازميږي يو د پټولو او بل د خوشبويي په وجه سره ارشاد الساري ليکلي دي د شيخ حنيف الدين المرشدي په قول چې نکريزي خوشبويي لري اوس که يې يو شواروز دوام وکړی دوه دمه پر لازميږي او که يې تر ورځې کم ولگول بيا نيم غنم پر لازميږي ځکه دلته جنايت لږ دی انتهی، خو دا حکم هلته پر لازميږئ که وچې وي او که لندې نکريزي چې بوی ولري نو باره دوه پر لازميږي او که يو حاجي خپل وبېنتان په کونډورو سره يا په بل شي سره ومښلول چې ببر نه سي نو جوامع الفقه ليکلي دي چې جزاء پر لازمه ده او ښځې لره دا نسته چې نقاب پر مخ هوار کړي او مخ په پټ کړي او که يې يوه ورځ مخ په پټ کړی دم پر لازميږي او که تر ورځې کم وو بيا نيمه پيمانه غنم پر لازميږي ارشاد الساري د العلامه السيد محمد يس ميرغني قول په حاشيه کې را نقل کړی دی که ښځې پر خپل مخ يو شی معنا تو کر راوځړوی او د مخ ځخه هم آزاد وو دا جواز لري بلکې مستحب يا واجب عمل ذی لکه الکبير مناسک او نهايې چې دا حکم کړی دی ليکن مناسب ورلره دا دی چې خلق وي پر مخ يې راوځړوي او که خلق نه وي د مخ ځخه يې ليري کړي او روی بند ورلره مکروه دی ځکه دا د مخ سره پيوسته کيږي او که يوه ورځ يې دوام وکړی يا د ورځې په اندازه سره بيا دم پر لازميږي او که لږ يو گړی او لږ بل گړی او لږ بل گړی يې مخ پټوی په داسي تو کر سره چې پر مخ لگېدی، او پټوی يې نو دلته اندازه لگول پر لازم دی که يوه ورځ په پوره کېده بيا دم او که نه پوره کېده نيمه پيمانه غنم پر لازميږي خو ياد لره که يې هره پېره ليري کول او ېنخي يې د ليري کولو معنا ايسته کولو اراده نه درلودل او که يې هره پېره ليري کوی په دې نيت سره چې بيا يې نه پټوم بيا يې د جزا د بدل په شمير د پټولو سره الخ.

## فصل د موزو په پښه کول او خوشبويي لگول

اذا لبس الخفين قبل القطع فدم ان لبسهما يوما فعليه دم و فی اقل من يوم صدقة و ان لبسهما بعد القطع اسفل من موضع الشراک و لو وجد النعلين بعد لبسهما يجوز له الاستفادة علی ذلک و يجوز لبس المقطوع مع وجود النعلين النوع الثانی فی الطيب الطيب ما تطيب به و يکون له رائحة مستلذة و يتخذ منه الطيب کالمسک و الکافور و العنبر و العود و العالية و الصندل و الورد والورس و الزعفران و العصفر و الحناء و الخيری و الکاذی

و البان و البفسج و الياسمين و الزنبق و ماء الورد و الريحان و النرجس و النسرين و الزيت الخالص و الشيرج البحت و الخطمى و القسط و اما التطيب فهو الصاق الطيب ببدنه او ثوبه فلا يجب شئ بشم الطيب و الفواكه الطيبة و ان كان مكروها لعدم الالصاق و المحرم رجلا كان او امراة ممنوع من استعمال الطيب فى بدنه و ازاره و ردائه و جميع ثيابه و فراشه و مسه و شمه فاذا طيب عضوا كاملا فعليه دم و فى اقله صدقة و العضو كالراس و اللحية و الشارب و اليد و الفخذ و الساق و العضدو نحو ذلک ثم ان كان الطيب قليلا فالعبرة بالعضو و ان كان كثيرا فالعبرة بالطيب و الكثير ككفين من ماء الورد و كف من الغالية و كف من المسک و القليل ككف من ماء الورد فلو طيب بالقليل عضوا كاملا فعليه دم و لو طيب باكثير اقل من عضو فعليه دم و لو طيب اقل من عضو بطيب قليل فعليه صدقة فالصدقة مشروطة بشرطين و الدم بواحد و لو طيب جميع اعضائه فى مجلس واحد فعليه دم و ان كان فى مجالس فلكل طيب كفارة على حدة و لو طيب مواضع متفرقة يجمع ذلک فان بلغ عضوا فعليه دم والا فصدقة.

متن و بعده ترجمه و شرح ملا علي القاري

د حج د احرام د جناياتو څخه يو دا دى چي حاجي موزې په پښه کړي لهذا که حاجي يوه ورځ پوره موزې په پښه کړي دم پر لازميږي او که تر ورځي يې کم په پښه کړي بيا نيم من قندهاري غنم پر لازميږي او د شپې هم دغسي حکم دى او که حاجي خپلې موزې تر هغه ځايه وکي لاندي پرې کړي چي د پښې د چمبې په مابين کي دى معنا هغه چي د چوټي يا د چپلې تسمه پر راځي باره يې په پښه کړي زموږ پر مذهب هيڅ نه پر لازميږي او په يو روايت کي چي طبري د امام اعظم رحمه الله څخه کړى دى که حاجي پر نعلينو قدرت درلود بيا نو د موزو په پښه کول ورته جواز نه لري علاوه لا دا ده چي قرطبي په بل روايت کي فديه لازمه کړې ده پر هغه کس چي پرېکړې موزې هم په پښه کوي نو دا دواړه روايته اصل نه لري که چيري يو حاجي موزې پرېکړې په پښه يې کړې او بيا يې نعلين هم پيدا کړې بياهم زموږ پر مذهب جواز لري چي پر دغه موزو دوام وکړي معنا نعلين په پښه کړي اوس معلومه سوه چي په دې مسئله کي د علماؤ اختلاف سته ابن الهمام وايي زموږ مشائيخو مطلقاً جواز ورکړى دى او مقتضي د نص دا ده چي دا مقيد دى معنا دا ده چي پر نعلينو قدرت نه لري نود پرېکړو موزو استعمال ورته روا دى او که يې قدرت د نعلينو نه درلودى بيا د موزو په پښه کېدل جواز لري ملا علي القاري رحمه الله وايي چي اصلي مسئله داسي ده که يې موزې نه وي پرې کړې او نعلين يې پيدا کړل نو بيا د موزو پرېکول جواز څکه نه لري چي د مال ضياع کېده راځي او که يې نعلين نه وي پيدا کړي بيا موزې چي پرې سوي وي

جواز ورته لري لهذا مصنف دا حكم كړى دى چي پر نعلينو قدرت ولري هم د پړبکړو موزو استعمال ورته جواز لري لكه داسي تصريح چي ابن العجمي كړې ده اګرچي د سنت عمل څخه مخالفت هم كيږي نو د كراهت څه بوى ورسره پيدا كيږي.

دويم قسم جنايت احرام بنده لره استعمال د خوشبويه شي دى داسي قسم چي سرى خوند پر اخيستلاى سي لكه مشك، كافور، عنبر او اګربتي او عاليه چي د مخكي څلور قسمو څخه مركب كيږي يا صندل چي وې ګروي بوى كوي او ګل ورس چي داسي دانې لري لكه د كنجدو چي په يمن كي دا شنه كيږي چي وې كري شل كاله دوام كوي قاموس يې دا ترجمه كړې ده يا زعفران يا ګل عصفر يا نكريزي يا خيرى چي دې ته په بله اصطلاح غوړي د ګلي خطمي وايي او الكاذى بيا يو قسم غوړي دي چي د يو قسم درختي څخه وزي قاموس وايي البان هم يو قسمه درخته ده چي د دانو څخه يې غوړي وزي بنفسج لو الياسمين دا دواړه ګلان دي زنبق د الياسمين غوړي دي او بل د ګل ګلاب اوبه د ګل ريحان اوبه نرجس او نسرين هم ګلان دي او بل خالص غوړي چي بوى نه لري هم حاجي ته يې استعمال جواز نه لري شيرج د كنجدو غوړو ته وايي خطمي ګل دى قسط ګل دى د هند د علاقي نو اوس استعمال د خوشبويه شي و حاجي لره داسي كيږي چي په بدن يا احرامو پوري يې ومږي عامه خبره ده حاجي نر وي او كه ښځه دواړه د استعمال څخه د مخكي خوشبويه شي څخه منع دي په بدن كي په لنګ په پټو په ټوله كالو او فرش كي او ځان د خوشبويه سره مُبتلول يا خوشبويه شى بويول اګر كه سيب يا مالته وي نو اوس كه حاجي خپل يو اندام كامل يا زيات خوشبويه كړي دم پر لازميږي او كه تر اندام كم وو بيا قندهاري نيم من غنم خيرات پر لازميږي او دا صحيح قول دى چي ټوله د متونو او شروحو كتابو لكه هدايه الكافي او المجمع او بدائع وغيره كتابو دا مسئله صحيح او د عمل لاره بللې ده او المنتقي بيا ليكلي دي چي د يوه اندام څلورمه حصه خوشبويه كړي دم پر لازميږي لو محمد رحمه الله بيا وايي د لاس مثلاً د اندازې په مقدار سره يې جزا اندازه كيږي په هغه مقدار به جزا وركوي معنا خيرات كوي به يې د اندام مثال لكه سر يا ږيره يا برېتونه يا لاس يا وررون يا پونډى او ليڅي وغيره اوس كه چيري خوشبويي لږ وه ليكن يو اندام يې پوره خوشبويه كړى نو اعتبار و اندام لره دى معنا دم پر لازميږي او كه خوشبويه شى تر اندام خوشبويه كېدو ډير وو ليكن ده د يوه اندام لږ حصه په خوشبويه كړه بيا اعتبار دلته خوشبويي لره دى معنا بياهم دم پر لازميږي او دا صحيح قول دى چي شيخ الاسلام وغيره ذكر كړى دى چي دا حكم د ټوله متفرقه اقوالو جمع والى هم راولي چي بعضي علماؤ ډېر والى د خوشبويي ته اعتبار وركړى دى او بعضي د اندام و ډېروالي ته اعتبار وركوي اوس

دا فیصله کول غواړي چې لږ څونه وي او ډېر څونه وي؟ نو حاصل دا دی چې دوه ورغوي د گل گلاب په اوبو خوشبویه سي دا ډېر بلل کیږي او که یو ورغوی په خوشبویه سي دا لږ بلل کیږي او په مشکو او الغالیه خوشبویي کي یو ورغوی ډېر بلل کیږي نو اوس که په لږ خوشبویي یو اندام خوشبویه کړي دم پر لازمیږي او که په ډېره خوشبویي کم تر اندام خوشبویه کړي هم دم پر لازمیږي لکه بیان چي یې تېر سو او که په ډېره خوشبویي تولہ اندام خوشبویه کړي ضرور دم پر لازمیږي او که یې له لږ خوشبویي نیم یا لږ اندام خوشبویه کړی بیا قندهاري نیم من غنم پر لازمیږي نو خلص مطلب دا دی چي نیم من غنم خیرات دوه شرطه لري یو دا چي په لږ خوشبویي سره کم تر اندام خوشبویه کړي او بل شرط یې دا دی چي لږ خوشبویي استعمال کړي او د دم دپاره دا شرط دی چي کامل اندام خوشبویه کړي اگر که خوشبویي لږ وي او یا ډېره خوشبویي ولگوي لهذا که چا حجر اسود مسحه کړی او لاس یې خوشبویه سو که پوره اندام وو دم پر لازمیږي او که کم وو بیا خیرات پر لازمیږي او که چیري حاجي خپل ټوله اندامونه پر یو ځای خوشبویه کړه یو دم پر لازمیږي او که یې ځایونه بدلول او یو یو اندام یې خوشبویه کول بیا نو د هر اندام پر سر یو یو دم پر لازمیږي او که یو شخص لږ لږ ځایونه خوشبویه کول چي ټوله دي سره جمع کړي وای یو اندام ورځخه جوړېدی نو دم پر لازمیږي او که پوره اندام نه ورځخه جوړېدی بیا خیرات پر لازمیږي.

## فصل حاجي ته د سترگو تورول

ان اکتحل بکحل فیه طیب فان کان مرارا کثیرة قیل وهی ثلاث فعلیه دم و ان کان مرة او مرتین فعلیه صدقة و لو اکتحل بکحل لیس فیه طیب فلا بأس به و لا شئ علیه.

متن و بعده شرح ملا علي القاري

که حاجي په خوشبویه شي سترگي توري کړې نو که چیري یې مکرره کړه ډېر وارونه دم پر لازمیږي نو قیل وایي چي درې واره یې مکرره کړه دا ډېر دي او که یو وار یا دوه واره وو بیا نو خیرات پر لازمیږي لکه الحاوي چي دا تصریح کړې ده او په دغه مسئله کي دا څرگنده سوه چي دوه واره ته ډېر ویل په کار دي ځکه مبسوط او جوامع الفقه او عام روایات پر دغه دي الخ او که یې په داسي رنجو سترگي توري کړې چي خوشبویي یې نه درلودل بیا هیڅ شی نه پر لازمیږي نه دم نه خیرات اگر که غوره دا ده چي ځان ورځخه وساتي ځکه بنایست خو پیدا کوي مگر که ضرورت وو دا هم پروا نه لري.

## فصل خوشبویه شی خوړل یا څښل

و لو اکل طیبا کثیرا و هو ان یلتصق باکثر فمه یجب الدم و ان کان قلیلا بان لم یلتصق باکثر فمه فعلیه الصدقة هذا اذا اکله کما هو اما اذا خلطه بطعام قد طبخ فلا شئ

عليه سواء مسته النار اولا الا انه يكره و ان وجد ريحه و ان خلطه بما يؤكل بلا طبخ كالزعفران بالملح فالعبرة بالغلبة فان كان الغالب الملح غير انه اذا كان رائحته موجودة كره اكله و لو خلطه بمشروب فان كان الطيب غالبا ففيه الدم و ان كان مغلوبا ففيه الصدقة الا ان يشرب مرارا فعليه الدم قيل و الفرق بين الغالب و غيره ان وجد من المخالط رائحة الطيب كما قبل الخلط وحس الذوق السليم بطعمه فيه حسا ظاهرا فهو غالب والا فهو مغلوب.

متن و بعده ترجمه و شرح ملا علي القاري

که چيري يو حاجي خوشبويه شی ډېر وخوړی چې ټوله خوله يې په ډکه سوه دم پر لازميږي د امام اعظم رحمه الله پر مذهب باندي او که يې لږ وخوړل چې په ټوله خوله پوري نه مبنتل بيا د امام اعظم رحمه الله پر مذهب په قندهاري کاني نيم من غنم خيرات پر لازميږي خو دا حکم هلته دی چې دغه خوشبويه شی تنها وخوري د بل شي سره نه وي ګډ سوی او د امام ابو يوسف او محمد رحمه الله پر مذهب که ډېر وو او که لږ وي هيڅ شی نه پر لازميږي لکه په الکافي او المجمع کي چي راغلي دي او که يې دا خوشبويه شی د بل شي معنا طعام سره خلط کړی چي ورسره پوخ سوی وي او که نه وي پوخ سوی بيا نو په اتفاق سره هيڅ شی نه پر لازميږي په محيط کي داسي بيان دی چي هر هغه خوشبويه شي چي عادتاً خوړل کيږي او بيا دي د بل شي سره ګډ او خلط کړی نو دا خوش بويه شی و هغه بل شي لره تبعه ګرځي نود خوشبويه حکم ساقط سو ليکن د داسي شي خوړل هم مکروه کار دی اګرچي پوخ هم سي او زيلعي بيا ليکلي دي که يې زعفران د طعام سره خلط کړه او په اور سره يې پوخ نه کړي دم پر لازميږي لو که يې په اور سره پوخ کړه نو بيا هيڅ شی نه پر لازميږي ځکه هغه خوشبويه شی په کښي هلاک سو.

او علماؤ بيا فرمايلي دي که يې زعفران د مالګي سره ګډ کړه او زعفران پر ډېر وه نو کفاره پر لازميږي او که مالګه پر ډېره وه بيا هيڅ نه پر لازميږي او په المنتقي فتاوا کي راغلي دي که احرام بنده سري لاسونه په بوروزه پرېولل او خوشبويي په کښي وه نو دی دي ورته وګوري که خوشبويي پر ډېره وه او خلقو هم ورته وويل چي دا خو خوشبويي ده دم پر لازميږي او که يې ورته وويل چي بوروزه ده خيرات پر لازميږي انتهي.

او که يې خوشبويه شی د اوبو سره خلط کړی لکه زعفران نو که غالبه خوشبويي وه په اعتبار د اجزاؤ سره دم پر لازميږي او که په کښي ورکه سوه يا مغلوبه سوه بيا هيڅ شی ورباندي نسته مګر څو واره يې وچښي بيا الفتح کتاب وايي دم پر لازميږي ابن امير الحاج وايي فرق د غالب او مغلوب دا دی چي خلط سوي شي ته به وګورو که د خوشبويي داسي

اثر لا تر خلط کولو بعد هم داسي موجود وو لکه ترمخ چي خلط سوی نه وو او یا يې په خوله کي هغه خوند موجود وو سالم طبیعته سړي لره نو دا شی غالب دی او که يې تر خلط وروسته هغسي بوی یا خوند نه درلودی بیا نو خوشبويي مغلوبه ده ځکه اعتبار ډېروالی لره د اجزاؤ دی په الطرابلسي وغیره کتابو کي راغلي دي چي چښل د دوا چي خوشبويي په کښي وي داسي نه دی لکه د خوراک شی چي خوشبويي په کښي وي وجه يې دا ده چي بعضي خوشبويي دپاره د چښلو وي نو بل شی چي ورسره ګډ سي نه ورته تبعه کیږي مګر هغه شی پر غالبه وي لکه ډېر و شیدو ته چي لږ اوبه ورګډي کړي او کوچني ته يې ورکړي دا ښځه چي شیدې يې د اوبو سره ګډي سوي هم دا يې لا مور ګرځي رضاع په ثابته سوه او د دې مسئلې تائید دا مسئله هم کوي چي د ګل ګلاب اوبه د اوبو سره ګډي کړي نو که چیري بوی ورځخه تلی او د ګل ګلاب اوبه ډېري وې نو اعتبار خوشبويي لري او که کمي وې بیا د خوشبويي د حکم ځخه وزي لیکن خیرات پر لازمیږي او که چیري د خوړلو د شي سره ګډي سوې او په کښي ورکي سوې بیا نو هیڅ شی نه پر لازمیږي دا فرق سو تر مابین د چښلو او خوړلو د شي.

## فصل په خوشبويه شي سره دوا کول

ولو تداوی بالطیب او بدواء فیه طیب فالتصق جراحته تصدق الا ان یفعل ذلک مرارا فیلزمه دم ثم ما دام الجرح باقیا فعلیه کفارة واحدة و ان تکرر علیه دواء و کذا اذا خرجت قرحة اخری قبل ان تبرأ الاولی فدا و اهامع الاولی تکفیه کفارة واحدة مالم تبرا الاولی فان برات الاولی ثم داوی الثانیة فعلیه کفارتان.

متن و بعده ترجمه و شرح ملا علي القاري

که چیري حاجي په خالص خوشبويي سره دوا وکړه او یا يې داسي دوا وکړه چي غالبه په کښي خوشبويي وه خو په اور نه وه پخ سوې او دا دوا د زخم سره ونښتل نو که د زخم ځای یو اندام نه وو پوره یا يې اکثره حصه هم نه وه او یا خو تر اندام لږ ځای وو لیکن ده ډېر وارونه دا دوا پوري ولګوله نو دم پر لازمیږي ځکه چي اکثره حصه د ټوله اندام پر ځای دریږي اوس که چیري دغه دوا چي خوشبويه ده د ټپ تر جوړولو پوري يې دوام درلوډی او یا يې په کراتو مراتو دا خوشبويه دوا لګوله او یا تر اولي دانې چي لا نه وه جوړه سوې بله پر هغه ځای راوختله نو ده دغه خوشبويه دوا ور پوري لګوله نو یو دم پر لازم کیږي ځکه دا بلي دانې هم د اولي حکم واخیستی او که اوله جوړه سوه بیا دویمه دانه راپورته سوه بیا نو دوې کفارې پر لازمیږي عامه خبره ده چي د اولي دانې دپاره يې مخکي دم کړی وي او که يې نه وي کړی د امام اعظم او ابو یوسف رحمهما الله پر مذهب دوې کفارې پر لازمیږي او د

محمد رحمه الله پر مذهب که يې د اولي دانې کفاره نه وه ادا کړې بيا نو يوه کفاره پر لازميږي معنا دم.

## فصل په خوشبويي کي دوام شرط نه دی

لا يشترط بقاء الطيب فی البدن زمانا لوجوب الجزاء و يشترط ذلک فی الثوب فلو اصاب جسده طيب کثير فعليه دم و ان غسل من ساعته و ينغبی ان يامر غيره فيغسله و ان اصاب ثوبه فحکه او غسله فلا شئ عليه و ان کثر و ان مکث عليه يوما فعليه دم والا فصدقة.

متن و بعده شرح ملا علي القاري

که حاجي پر بدن خوشبويي ولګوي بيا د وخت اندازه نه لري د دم د لزوم په خاطر چي مثلاً يوه ورځ به په کښي شرط وي علاوه دا ده که چيري ټول بدن يا يو اندام ته اکثره يا لږ ته خوشبويي ورسېدله ډېره نو دم پر لازميږي اګر که يې فوري پرېولي عامه خبره ده چي دا خوشبويي پخپله ولګوي او که يې بل ور پوري وموږي او پريولل يې خپله وکړي او که بل ښوک امر کړي ليکن مناسب دا ده چي حلال سړی امر کړي چي خوشبويي ورځخه پرېولي ځکه چي د پرېولو په وخت کي د ليري کېدو په صورت کي ګناهګاره نه سي او که اوبه پر تويه سوې او بس خوشبويي ورځخه ورکه شوه بياهم کفايت کوي په منتقي کي د ابراهيم راغلي دي چي محمد رحمه الله وويل که د محرم و اندام ته خوشبويي ورسېده دم پر لازميږي نو ما ورته وويل که يې دستي پرېولی ده راته وويل چي دستي يې پرېولي هم دم پر لازميږي.

او که خوشبويي يې پر کالو ولګوله بيا زمانه په کښي شرط ده اوس که کالي ته خوشبويي ورسېده او دستي يې وګرول او زائل يې کړه او يا يې پرېولل هيڅ شی نه پر لازميږي اګرچي ډېره هم وي ليکن که يې يوه ورځ دوام وکړی دم پر لازميږي او که تر ورځي کم وو بيا نيم من غنم خيرات پر لازميږي په المنتقي د هشام کي راغلي دي د محمد رحمه الله ځخه که احرام بنده ته د کوټې يا قبره ځخه خوشبويي ورسېدله او دستي يې وګرول شی نه پر لازميږي اګر که ډېره هم وي او که د محرم بدن ته ډېره ورسېده بيا دم پر لازميږي.

## فصل د کالو خوشبويي لګول

اذا کان الطيب فی ثوبه شبرا فی شبر فهو داخل فی القليل فان مکث يوما فعليه صدقة او اقل منه فقبضة و لو لبس مصبوغا بعصفر او ورس او زعفران مشبعا يوما فعليه دم و فی اقله صدقة و لو علق بثوبه شئ کثير من خلوق البيت فعليه دم و ان کان قليلا فعليه صدقة و لو دخل بيتا قد اجمر فيه فعلق بثوبه رائيحة فلا شئ عليه و لو اجمر ثوبه فعلق به کثير فعليه دم او قليل فصدقة و ان لم يعلق به شی فلا شی عليه و کان المرجع فی الفرق

بين القليل و الكثير العرف ان كان و الافما يقع عند المبتلى و لو اجمر ثيابه قبل الاحرام و لبسها ثم احرم لا شئ عليه لانه لا باس ببقاء الطيب الذى طيب به قبل الاحرام و كذا لا باس بشمه و انتقاله من مكان الى اخر.

متن و بعده شرح ملا علي القاري

كه چيري د حاجي پر كالو يوه لويشت په اوږدو او بله لويشت په بره خوشبويي ولګېدله نو دا لړ بلل کيږي او که يې يوه ورځ دوام وکړی نيم من غنم پر لازميږي او که تر ورځې کم وو بيا يو موټ غنم پر لازميږي لکه په الفتح او المجرد کي چي دغسي حکم سوی دی او که حاجي د ګل عصفر او يا د ګل ورس يا د زعفرانو خوشبويه کالي يوه ورځ پوره واغوستل دم پر لازميږي او که تر ورځي کم وو بيا خيرات پر لازميږي لکه خزانة الاکمل او الولواجي وغيره کتابو چي دا حکم کړی دی او په مبسوط کي هم ورته اشاره سوې ده او که حاجي په يوه کوټه کي کښېنستی خوشبويي ډيره ور پوري ومبنتله محيط کتاب وايي دم پر لازميږي او که لږ وو خيرات پر لازميږي او که يو کوټې ته ورغلی هوا يې دی خوشبويه کړی بدائع او الفتح او بحر زاخر وايي شی نه پر لازميږي او که سری ځان خوشبويه کوي ډېر ور پوري ومبنتل دم پر لازميږي او که لږ وو بيا خيرات پر لازميږي د لږ او ډېر تر مابين فرق اصطلاح او عادت او عرف کوي که چيري عرف وو او که نه وو بيا يې فيصله پر هغه سړي ده او که حاجي خپل احرامونه تر احرام ترلو دمخه خوشبويه کړه او باره يې احرام وتړی هيڅ شی نه پر لازميږي علاوه دا ده چي ده لره تر احرام دمخه لا مستحب کار دا دی چي پر بدن خوشبويي ولګوي اګرچي امام مالک رحمه الله ورځخه مخالف دی نو که چيري هغه خوشبويي تر احرام بعد هم موجود وي هيڅ پروا نه لري صرف دونه فرق لري چي خوشبويي وجود و نه لري لکه عطر خو هيڅ پروا نه لري چي اثر يې پاته سي او که خوشبويي صورت درلود بيا يوازي محمد رحمه الله وايي چي باقي والی يې جواز نه لري اختلاف دلته دی چي تر احرام بعد ځان خوشبويه کړي او بيا دم هم حلال کړي او اثر يې باقي پاته وي نو بعضي علماؤ وايي چي پر باقي پاته کېدو يې هم دم لازميږي او بعضي وايي نه پر لازميږي او که چيري يو شخص يو اندام خوشبويه کړی وو او دم هم لازم سو او حلال يې کړی او باقي اثر چي يې پر اندام پاته وو لکه الکبير چي همدغسي بيان کړي دي او قياس دوه پر لازموي ځکه وايي دوه اندامونه په ککړ سوه هر يو ځان ته جزا لري موږ ورته وايو چي دا يې له قصده ځخه پيښه سوې ده ارشاد الساري بل جواب داهم ورکړی دی چي د حج احکام ټوله پر خلاف د عقل دي.

## فصل د خوشبويه يشي تړل او يا نکريزي لګول

و لو ربط مسكا او كافورا او عنبرا كثيرا في طرف ازاره او ردائه لزمه دم و لو قليلا

فصدقة و لو خضب رأسه او لحيته او كفه بحنا. فعليه دم ان كان مائعا و ان كان ثخينا فلبد رأسه ففيه الدمان على الرجل دم للطيب و دم اللتخطية و هذا ان دام يوما او ليلة و دم للطيب.

که چيري يو حاجي د خانه سره د عطرو شيشه يا ګل کافور يا عنبر ډېر وتړل چي خوشبويي ورڅخه پورته کېدله دا يې په لنګ يا د پټو په يو طرف پوري وتړل نو دم پر لازميږي که يوه ورځ يې مکمل تړلي وه او که لږ زمانه وه بيا نيم من غنم خيرات پر لازميږي او که خوشبويه لرګي وو لکه اګربتي چي په ګړولو سره خوشبويي پيدا کوي يا په اور لګولو سره بيا هم شک نسته چي دم پر لازموي ځکه علت خو يې بوی دی هغه لري او په بعضي مناسکو کي ليکلي دي که يې چيري ډېر مشک په لنګ پوري وتړل دم پر لازميږي لکه د خوشبويه شي په خوړلو سره چي دم پر لازميږي او په لږ کي خيرات غواړي.

او که چيري يو حاجي سر يا ږيره يا لاسونه په نرۍ نکريزو ولړل يو دم پر لازميږي او که نکريزي خټه وي او سر يې په پټ کړی نو بيا دوه دمه پر لازميږي يو د سر پټولو بل د خوشبويي په وجه سره او که ښځي د خوشبويه کېدو په وجه سره ولګولي يو دم پر لازميږي خو دا حکم هلته دی چي يوه ورځ پر تېره سي يا يوه شپه پر تېوله سر وي او که يې څلورمه وي او که تر ورځي کم وو بيا قندهاري نيم من غنم پر لازميږي ليکن دلته يو سوال پيدا کيږي چي مخکي تېر سوه چي په بدن کي استعمال د خوشبويي شرط نه لري د زماني په اعتبار سره معنا چي محضي يې ولګول دم پر لازميږي او په کالو کي زمانه شرط ده لهذا علماؤ عبارت مطلق ويلی دی په اکثره کتابو کي يې له اندازې د زماني په يوه ورځ سره لکه الخجندي چي ليکلي دي که يوې ښځي خپل ورغوی خوشبويه کړی په نکريزو سره او دا احرام بنده وه دم پر واجب دی نو دا عبارت پر دغه دلالت کوي چي ورغوی هم کامل اندام دی ځکه په خوشبويه کولو سره دم واجبيږي همدغه رنګه شرحي د قدوري ليکلي دي ارشاد الساري د الشيخ حنيف الدين المرشدي قول د جواب دپاره را نقل کړی دی چي کوم عبارت مخکي تېر سوی دی چي په بدن کي شرط د زماني نسته هغه په اعتبار د دې نه دی چي زمانه يې په خوشبويي کي شرط نه ده بلکي د هغه څخه مراد دا دی چي په سبب د پټولو سره دی نه د خوشبويه کېدو په وجه ره علاوه دا ده چي و تا ته معلومه ده چي يوه ورځ يا شپه سر پټ کړي دم پر لازميږي او که کم تر ورځي وو بيا نيم من غنم خيرات پر لازميږي، کما في البحر.

## فصل د وسمي استعمالول

الوسمة وهی نبت يصبغ به فلو خضب رأسه بالوسمة فان كانت متلبدة فعليه دم للتغطية ان دام يوما و فی اقله صدقة و ان كانت مائعة فلا شئ عليه لانها ليست بطيب و قيل فيه دم وقيل صدقة و قيل ان خاف قتل الدواب اطعم شيئا.

متن و بعده ترجمه و شرح ملا علي القاري

وسمه دا يو قسم واښه دي چې وېښتان رنګوي نو که چیري حاجي خپل سر په ووهي او سر يې په پټ کړی پوره ورځ دم پر لازمیږي د پټوالی په وجه سره او که کم تر ورځي وو بيا خيرات پر لازمیږي نیم من غنم او که چیري وسمه داسي باریک وه لکه اوبه سر يې نه پټوی بیا هیڅ شی نه پر لازمیږي ځکه دا خو خوشبويي هم نه لري ليکن قيل وايي چي قاضيخان ليکلي دي چې د امام اعظم رحمه الله پر مذهب دم پر لازمیږي بل قيل وايي چې نيم من غنم خيرات پر لازمیږي چې دا روايت حسن رحمه الله د امام اعظم رحمه الله څخه کړی دی او دريم قيل وايي که د خزندو پر مرګ بېره وه بيا دي يو شی خيرات کړي لکه داسي قول چي په بدائع او خزانة الاکمل او المنتقي کي دی او محمد رحمه الله څخه قول نقل سوی دی چې دم پر لازمیږي که يې وسمه استعمال کړه او په قياس کي د امام اعظم رحمه الله او په قول کي د ابو يوسف رحمه الله کي د خوراک يو شی پر باندي سته او مبسوط ليکلي دي که يې سر په وسمو ووهی دم پر لازم دی نه په دې وجه چې سر يې سور کړ بلکې د سر پټولو په وجه سره او دا قول صحيح دی او که يې ډيره په سره کړه بيا دم نه پر لازمیږي ليکن بېره دا سته چي يو خزنده به مړ کړي لهذا نو به د خوراک يو شی خيرات کړي انتهي او معتمد قول دغه دی ځکه وسمه خوشبويي نه لري لکه داسي تصريح چې په قاضيخان کي راغلې ده.

## فصل په ګل خطمي سر پرېولل

و لو غسل رأسه بالخطمی فعليه دم و قالا صدقة و لو لبد رأسه به و حصل التغطية لزمه دمان و لو غسل رأسه او يده باشنان فيه الطيب فان كان من راه سماه اشنانا فعليه صدقة و ان سماه طيبا فعليه دم و لو غسل راسه بالحرض و الصابون و السدر و نحوه لا شئ عليه.

متن و بعده ترجمه و شرح ملا علي القاري

قاموس ليکلي دي چې خطمي يو قسم واښه دي نو که چيري يو حاجي په احرام کي سر په ووهي د امام اعظم رحمه الله پر مذهب باندي دم پر لازمیږي او ابو يوسف او محمد رحمه الله وايي نيم من غنم خيرات پر لازمیږي او المجمع او شرح يې او بدائع او شرحي د کنز او الفتح او العنايې او البحر الزاخر وغيره کتابو همدغسي قول کړی لکه د يارانو نو دلته بعضو دا دواړه قول سره موافق کړي دي چې د ابو يوسف او محمد رحمه الله قول په شان کي د عراقي ګل خطمي کي دی چې بوی نه لري او د امام اعظم رحمه الله قول په شامي خطمي کي دی چې هغه بوی لري او ابن فرشه بيا زياته کړې ده په شرح المجمع کي چې د عراقي خطمي څخه ملسوا په بل شي کي هيڅ نه لازمیږي په اتفاق سره ځکه دا بوی نه لري او طرابلسي بيا

ليکلي دي چي په عراقي خطمي استعمال کې دم پر واجبيږي په اتفاق سره او که سر په پټ سو يا دوه دمه پر لازميږي او په غير عراقي خطمي کې په اتفاق سره هيڅ شی نه پر لازميږي او مقتضي د جصاص د کلا يا وجوب د دم دی په اتفاق سره د امام اعظم رحمه الله او يارانو او که يې سر په پټ کړی دوه دمه پر لازميږي او که يې سر يا لاس پر پولل په بوروزه سره چي خوشبويي په کښې وه نو که چا ورته کتلي واي د بوروزي حکم يې پر کوی نو خيرات پر لازميږي او که يې د خوشبويي حکم نه پر کوی ده نه پر لازميږي قاضيخان وايي اعتبار غلبې ته دی او که يې سر په بوروزه يا صابون يا په مثال د دغه پرېولی چی بوی يې نه کوی او نه هم خوشبويه شی په کښې وو يا نو د علماؤ په اجماع سره هيڅ شی نه پر لازميږي لکه اسبيجابي وغيره چي داسي تصريح کړې ده او د ابن جماعة قول چي دم پر لازميږي هيڅ صحت نه لري.

## فصل ځان غوړول

ولو ادهن و الخيرى عضوا كاملا فعليه دم و فى الاقل من عضو صدقة و ان ادهن بدهن غير مطيب كالزيت الخالص و الحل و هو دهن السمسم و اكثر منه فعليه دم و ان استقل منه فعليه صدقة و هذا اذا ستعمله على وجه الطيب و اما لذا استعمله على وجه التداوى او الا كل فلا شئ عليه فلو اكل الزيت الخالص عن الطيب لو الحل او دلوى بهما شقوق رجليه او جراه او اقطر فى اذنيه او استعط فلا شئ عليه و لو ادهن بسمن لو شحم لو الية او اكله فلا شئ عليه و لا فرق بين الشعر والجسد فى الدهن.

متن و بعده شرح ملا علي القاري

که چيري حاجي په احرام کې ځان او يا کامل اندام په خوشبويه غوړو سره غوړ کړئ لکه د بنفسج او گل گلابو يا د گل ياسمين او يا د البان يا الخيري گلانو خوشبويي ورسره گډه وه نو دم پر لازميږي بدائع همدغسي ليکلي دي او د علماؤ اتفاق هم پر دغه سوی دی او که تر يو اندام يې کم په غوړ کړی يا د کندهار نيم من غنم خيرات پر لازم دی او بعضو علماؤ کثرت لره هم اعتبار ورکړی دی معنا که يې د اندام زياته حصه په غوړه کړه هم دم پر لازميږي برجندي دا قيد لگولی دی چي دی پخپله ورته وگوري ډېر ورته معلوم‌يدل نو بس دغه ته اعتبار دی او په نوادرو کې راغلي دي چي څلورمه حصه د سر يا د ږيري غوړه کړي دم پر لازميږي او دلته مصنف وايي چي دا مسئله پر څلورمي تفريع کول صحت نه لري او که چيري په غوړو کې خوشبويي نه وه لکه د زيتون يا د کنجدو غوړي او يو اندام يې په غوړ کړی يا يې ډېر استعمال کړه دم پر لازميږي پر مذهب د امام اعظم رحمه الله او د يارانو معنا ابو يوسف او محمد رحمه الله پر مذهب خيرات پر لازم دی نيم من غنم او ابن المبارک

وايي د امام اعظم رحمه الله څخه هم يو روايت دغسي راغلی دی لکه د يارانو او که چيري يې لږ استعمال کړه بيا د علماؤ په اتفاق سره نيم من غنم خيرات پر لازميږي نو دا تېر حکمونه د هغه چا دپاره دي چي د خوشبويه کېدو په نيت سره يې مستعمل کړي او که چيري يې د خوراک او يا دوا په نيت سره مستعمل کړه بيا د علماؤ په اتفاق سره هيڅ شی نه پر لازميږي ارشاد الساري يې د هدايې په حواله سره دا دليل ويلی دی چي دلته خو خوشبويي نسته په ذات کي د غوړو او که عارضي ورسره وي هغه په نيت پوري اړه لري الخ.

که چا د زيتون غوړي خالص د خوشبويي څخه پاک وخوړل يا د کنجدو غوړي او يا يې دوا په وکړه د پښو چاودي يا زخم يې په غوړ کړی او يا يې په غوږو کي يا په پزه کي وڅڅول بيا نو هيڅ شی نه پر لازميږي او که يې غوړي يا لم يا وازګه وخوړل ټا يې ځان په غوړ کړی هيڅ باک نه لري دلته فرق نسته که ږيره يا بدن او يا وېښتان يې په غوړ کړل چي هيڅ خوشبويي و نه لري په هرصورت کي دم نه لازموي.

## فصل په خوشبويي کښې د نر او ښځي فرق نسته

و لا فرق بين الرجل و المراة فی الطيب و لا بين العامد و الناسی و الکاره و الطائع و القاصد وغيره و لو طيب محرم محرما او حلالا لا شئ علی الفاعل و يجب الجزاء علی المعمول النوع الثالث فی الحلق و ازالة الشعر و قلم الاظفار اذا حلق رأسه کله او ربعه فعليه دم و ان کان اقل من الربع فعليه صدقة و ان بلغ شعره ربع راسه فعليه دم و فی اقل منه صدقة و لو حلق لحيته او ربعها فعليه دم و فی اقل من الربع صدقة و ان بلغت لحيته الغاية فی الخفة ان کان قدر ربعها کاملة فعليه دم والا فصدقة و لو حلق رأسه و لحيته وابطيه و کل بدنه فی مجلس واحد فعليه دم واحد و ان اختلفت المجالس فلکل مجلس موجبه و لو حلق راسه فاراق دما ثم حلق لحيته في مجلسه لزمه دم اخر و لو حلق راسه فی اربعة مجالس فی کل مجلس ربعا فعليه دم واحد و يجمع المتفرق فی الحلق کما فی الطيب فلو حلق ربع راسه من مواضع متفرقة فعليه دم.

متن و شرح ملا علي القاري

په خوشبويي لګولو کي د نر او د ښځي فرق نسته د قصد کونکي او هيرونکي فرق نسته او نه د هغه چا چي په زوره يې خوشبويه کړی يا د ده په رضا سره وغيره پر هغه تقدير دم پر هغه کس لازميږي چي فايده د خوشبويي څخه اخلي اګر که قياس دا وايي چي پر فعل کونکي دي دم لازم سي لکه يو احرام بنده چي د بل احرام بنده سر وخريي جزا يې پر خريونکي ده لکه دا بيان چي درته را روان دی که يو احرام بنده حاجي بل احرام بنده حاجي يا حلال سړی خوشبويه کړی بغير د دې څخه پر ده ولګيږي بيا پر فاعل د دغه کار هيڅ شی

نه لازمیږي مثال یې داسې دی لکه یو احرام بنده چي په بل ګنډلي کالي واغوندي اګرچې په واقع کې ده ته دا کار حرام دی چي پر بل مسلمان تکلیف راولي دم پر لازمولو دا خو دوې نوعې بیان وسو اوس دریمه نوعه دا ده چي یو حاجي خپل سر وخریي تو له یا څلورمه یا زیاته اندازه یا نوکان پرې کړي یا وینبتان په بل شي سره زایله کړي لکه موی پاک استعمال کړي یا وینبتان لنډ کړي نو دم پر لازمیږي او که تر څلورمي حصې کم وو بیا کندهاری نیم من غمن خیرات پر لازمیږي.

ارشاد الساري لیکلي دي که تر څلورمي حصې کم وو نو دا خو یوه وینبته ته هم شمول کوي معنا دا ده چي دلته به هم بیا نیمه پیمانه غنم خیرات کوي ځکه عبارت مطلق ویل سوي دي لکه بحر چي ویلي دي لیکن قاضیخان لیکلي دي که یې د سر یا ږیرې یا بریت څخه یو څه وینبتان وکښل نو بیا به د هر وینبته پر ځای یو موټ غنم خیراتوي الخ تو له جمهور علماؤ پر دغه قول دي چي څلورمه د سر و خریي خیرات پر لازمیږي او دا قول صحیح او غوره قول زمونږ د احنافو دی او الطحاوي په خپل مختصر کې د ابو یوسف او محمد رحمهما الله مذهب بیان کړی دی چي تر هغه وخته پوري دم نه پر لازمیږي ترڅو چي تو له سر و نه خریي او که د سړي سر وینبتان نه درلودل اصلع وو لکه بعضي خلق د سر د مخ طرف ته وینبتان کم لري نو اوس که ده د مخ طرف سر وخریي بیا د ده وینبتان د باقي سر د وینبتانو ره اندازه کیږي که یې څلورمي حصې ته رسېدل نو دم پر لازمیږي او که نه رسېدل خیرات پر لازمیږي او که یې ږیره تو له یا څلورمه وخریله دم پر لازمیږي او که تر څلورمي یې کمه وخریله نیمه پیمانه چي نیم من غنم کیږي خیرات یې پر لازمیږي لکه په الفتحه کتاب کې چي راغلي دي.

او که یو حاجي سر او ږیره او تیخرګونه او تو له بدن وخریي په یوه مجلس کي بیا نو یو دم پر لازمیږي او که یې ځایونه بدلول بیا به د هر یوه دپاره یوازي یوازي په حساب سره دم حلالوي اګرچي محمد رحمه الله وایي چي د اول دپاره یې دم نه وي حلال کړی تر اخیره بیا د تو لو دپاره یو دم کفایت کوي او که چیري یو حاجي خپل سر په څلورو مجلسو کي وخریي او په هر مجلس کي یې څلورمه څلورمه خریل بیا نو د تو له علماؤ په اتفاق سره یو دم پر لازمیږي ترڅو چي یې اول ته مخکي دم نه وي حلال کړی ځکه سر خریل څلور سره ځایه یو جنس دی اګر که یې مجلسونه ورته څلور کړي دي لکه په الفتحه او الفارسي مناسک وغیره کتابو کې چي راغلي دي او په الکافي او د کنز په شرحه او البحر الزاخر کي اشاره ورته سوې ده چي په اجماع د علماؤ سره یو دم پر لازمیږي او که یې لږ یوځای د بدن څخه لږ د بل ځایه څخه لږ د بل ځایه څخه وخریل چي جمع کړي دي وای څلورمه د اندام

جوړ بدله نو دم پر لازمیږي.

## فصل برېتونه یا تیخرګونه یا د حجامت ځایونه خریل

ان اخذ من شاربه او اخذه کله او حلقه علیه صدقة و لو حلق الرقبة کلها فعلیه دم و لو حلق بعضها فصدقة و لو حلق مواضع المحاجم فعلیه دم و لو حلق الابطین او احدهما او نتف او کلی بنورة فعلیه دم و فی اقل من ابط صدقة و لو حلق الصدر او الساق او الرکبه او الفخذ او العضد او الساعد فعلیه دم و قیل صدقة و ان حلق اقله فصدقة و لا یقوم الربع من هذه الاعضاء مقام الکل.

متن و بعده ترجمة و شرح ملا علي القاري

که چیري یو حاجي خپل برېتونه لنډ کړه ټوله معنا وې خریل نو خیرات پر لازمیږي او که یې ټوله مغزی وخریی دم پر لازمیږي په اتفاق سره د علماؤ او که یې یو څه وخریل خیرات پر لازمیږي اګر که یې څلورمه حصه وي ځکه په شرحي د کنز کي وایي چي د دغه شیانو څلورمي حصې ته اعتبار په عادت کي نه ورکول کیږي ځکه پر څلورمه یې سړی نفع نه سي اخیستلای پوره حتی که یو تیخرک وخریي نو صدقه پر سته او طرابلسي وایي چي اکثره لره حکم د ټوله اندام دی نو لهذا دم پر لازمیږي د ټولو پر قول بدائع او قاضیخان او الجامع شرحي هم دغه ته اشاره کړې ده او که چیري یو حاجي د حجامت ځایونه وخریل یا د امام اعظم رحمه الله پر مذهب دم او د یارانو پر مذهب نیم من غنم خیرات پر لازمیږي دا اختلاف په هغه صورت کي دی چي د حجامت دپاره وي او که د حجامت په وجه یې نه خریل یا په اتفاق سره نیم من غنم خیرات پر لازمیږي خو یاد لره چي څلورمي ته خریل نه ورسیږي او که څلورمه یې وخریل یا د امام اعظم رحمه الله پر مذهب دم پر لازمیږي او که احرام بنده دواړه یا یو تیخرګ وخریل یا یې ویښتان ورڅخه وکښل او یا یې په داسي دوا ووهل چي ویښتان یې شوه کړه دم پر لازمیږي او که تر یوه تیخرګ یې کم وخریل یا نیم من خیرات پر لازمیږي ابن الهمام وایي دا عبارت مطلق دی او معروف دی او په فتاوی قاضیخان کي راغلي دي که یې تیخرګ ډېر ویښتان درلودل نو څلورمه چي یې وخریي دم پر لازمیږي او که یې ویښتان کم وه یا نو اکثره لره حکم دی چي دم پر لازموي او په شرح د کنز کي راغلي دي که یې اکثره حصه د تیخرګ وخریل دم نه پر واجبیږي بلکي خیرات پر لازمیږي د سر یا ږیري سره دا نه برابریږي په حکم کي انتهي او علت او دلیل د دغه مسئلې تېر سوی دی او بدائع د دغه تائید هم کړی دی چي یو کس د خپل تیخرګ ویښتان وکاږي اکثره حصه یې نیم من غنم خیرات پر لازمیږي نه دم او محیط هم دغه حکم ذکر کړی دی او که یو حاجي خپل ځیګر او یا پونډۍ یا زنګون یا ورون یا د لاس مړوند یا موټ و خریل دم

پر لازمیږي لکه دا چي مختاره کړې ده فخر الاسلام او صاحب د هدایې او ډیرو مشائخو لو قیل وایي چي نیم من غنم خیرات پر لازمیږي لکه و دغه ته مبسوط اشاره کړې ده چي هر وخت یو اندام وخریي دم پر لازمیږي او که یې په خریلو کي فایده نه وه او ده وخریل یا خیرات پر لازمیږي او بیا ده ویلي دي چي د کومو اندامو خریل مقصود نه دی لکه پونډۍ یا څیګر او کوم اندامونه چي خریل یې مقصود دی لکه سر یا تیخرګونه او مثل د دغه عبارت بدائع او تمرتاشي او النخبة ذکر کړي دي او د مبسوط قول صحیح بلکې اصح دی او د برجندي د قول څخه معلومیږي چي خیرات پر لازم دی په اتفاق سره او داسي تصریح په الخزانة کتاب کي هم راغلې ده انتهي.

او دعامو کتابو حکم دا دی چي په دواړو کي دم واجب دی او ابن الهمام لیکلي دي حق دا دی چي د څیګر او پونډۍ په خریلو کي خیرات لازمیږي او که تر څلورمي په دغه اندامو کي یې وخریل نو دلته څلورمه حصه پر ځای د ټول اندام نه دریږي لهذا خیرات پر لازمیږي او تر نامه لاندي خریلو کي دم پر لازمیږي څکه د دې خریل مقصود دی لکه بدائع الکافي وغیره کتابو چي لیکلي دي لکه المجمع الفتح او منسک الفارسي او الخزانة شمني زیلعي قاضیخان الخ.

## فصل د سر یاږیري لنډول

حکم التقصیر حکم الحلق فی وجوب الدم به والصدقة فلو قصر الرأس او ربعه فعلیه دم و فی اقل من الربع صدقة و لو قصرت المراة قدر انملة من ربع شعرها فعلیها دم.

متن و بعده ترجمة و شرح ملا علي القاري

حاجي لره د سر او ږیري لنډول حکم د خریلو لري معنا دا سوه که یې ټوله سر یا څلورمه د سر یا ږیري لنډ کړل دم پر لازمیږي او که تر څلورمي حصې کم وه بیا نو خیرات پر لازمیږي او که ښځي د ګوتي د یو بند په اندازه سره ویښتان لنډ کړه یا زیات تر دغه چي د څلورمي اندازې ته رسیدل دم پر لازمیږي لکه داسي تصریح چي الکافي او کرماني کتابو کړې ده او په الکفایه شرح د هدایې کي راغلي دي او کفایې بیا لیکلي دي چي لنډول هیڅ شی نه لازموي.

## فصل د ویښتانو شوه کیدل

و لو سقط من رأسه او لحیته ثلاث شعرات عند الوضوء او غره فعلیه کف من الطعام او کسرة او تمرة لکل شعرة و ان خبز عبد فاحترق شعر یده فعلیه صدقة اذا اعتق ولوتناثر شعره بالمرض فلا شئ علیه و لو نبتت شعرة في عینه فلا شئ علیه بازالتها و لو خلع جلده من راسه بشعرها لم یلزمه شئ و لو حلق او نتف خصلة من رأسه فعلیه صدقة.

متن و بعده ترجمة و شرح ملا علي القاري

دا خبره د يادولو وړ ده چې پخپله د يو حاجي د سر څخه ويښتان شوه سي بغير د ده د مداخلې څخه هيڅ شی نه پر لازميږي علاوه دا ده که چيري د محرم د سر يا ږيري څخه درې ويښتان د اوداسه يا غسل په وخت کي يا د ځان موښلو يا ګرولو په وخت کي وختل نو يوه لپه غنم خيرات پر لازميږي لکه د محمد رحمه الله څخه چي روايت سوی دی چي پر يوه ويښته يوه لپه غنم پر لازميږي انتهى يا به د لپې غنمو پر ځای نيمه ډوډۍ يا يوه خرما ورکوي او قاضيخان د محمد رحمه الله څخه مخالف دی که محرم د برېتو څخه يا سر څخه او يا يې ږيره مسحه کوله نو ويښتان ورڅخه شوه سوه نو به يوه مسکين ته ډوډۍ ورکوي او په بدائع کي بيا ليکلي دي که يو شخص د سر يا ږيري څخه ويښتان او يا يې لاس پر تېر کړ ويښتان ورڅخه شوه سول بيا خيرات معنا نيم من غنم پر لازميږي همدا رنګه تمر تاشي ليکلي دي الخ که مريې ډوډۍ پخوله مثلاً نو ويښتان يې وسوځېدل خيرات هلته پر لازميږي چي هر وخت آزاد سو علاوه دا ده که د يوه لاس يې پوره ويښتان وسوځيدل اګرچي قياس دم پر واجبوي په جوامع الفقه کي راغلي دي که يې ډوډۍ پخوله او يو څه ويښتان يې وسوځېدل خيرات پر لازميږي او په المحيط کي راغلي دي که احرام بنده مريې ډوډۍ پخوله او لاس چي يې تناره ته ور دننه کړی د لاس څخه يې يو څه ويښتان وسوځيدل نو التنور کتاب ليکلي دي چي خيرات پر لازميږي هلته چي هرکله آزاد سو او که يې يې له څه موجبه د لاس ويښتان په يوه شي شوه کړه دم پر لازميږي هرکله چي آزاد سو او که عذر وو بيا روژه فوري پر لازميږي په الحاوي کي هغه د المنتقي څخه روايت د محمد څخه کړی دی که ويښتان د لسو دانو په اندازه د سر يا ږيري څخه شوه کړي نو دم پر لازميږي الخ قاضيخان ليکلي دي که يې د سر يا ږيري څخه يو څه ويښتان وکښل پر هر ويښته يوه لپه (غبرګه) غنم پر لازميږي او که لس ويښتان پوره سوه بيا نو دم پر لازميږي الخ او د پزي ويښتان د سر يا ږيري سره په حکم کي برابري نه لري او که مرض يې د سر يا ږيري څخه ټول ويښتان شوه کړل هيڅ شی نه پر لازميږي ځکه د ده هيڅ اختيار نسته په کښي او که يې په سترګو کي ويښتان شنه سوه او ده زايل کړه هيڅ شی نه پر لازميږي لکه يو درنده چي حمله پر کوي او حاجي يې ووهي او مړ يې کړي هيڅ نه پر لازميږي لکه سروجي او ابن امير الحاج چي حکم کړی دی او که يې يوه چمبه ويښتان د سر څخه وخريل او يا يې وکښل نو نيمه پيمانه غنم پر لازميږي لکه خزانة الاکمل چي ليکلي دي.

## فصل محرم چي د بل محرم يا حلال سر وخريي

اذا حلق محرم رأس محرم او حلال فعليه صدقة سواء حلق بامره او بغيره و ان حلق

الحلال رأس محرم فلا شی علی الحالق الحلال و قيل عليه صدقة و ان اخذ المحرم من شارب محرم او حلال او قص اظفاره فعليه صدقة و قيل اذا حلق او اخذ من شعر حلال او قلم اظفاره اطعم ما شاء.

متن و شرح ملا علي القاري

که چيري يو احرام بنده حاجي د بل محرم يا حلال سړي سر وخريي عامه خبره ده هغه شخص راضي وي او که دی په زوره سر ور وخريي نيم من غنم خيرات پر خريونکي حاجي لازميږي او که حلال سړي د محرم سر ورخريي هيڅ شی نه پر لازميږي لکه بدائع او الکرماني او عنايې چي دا مسئله ليکلې ده او قيل وايي چي خيرات پر لازميږي او دغه ته زيلعي او ابن الهمام او شمني تګ کړی دی وجه يې نه ده معلومه ځکه حلال سړي خو د حج په ممنوعاتو کي نه داخليږي نو آيا پر حلال سړي دا فعل حرام يا ورته مباح او که مکروه دی نو ظاهره دا ده چي ورته مکروه خو دی ځکه په قرآن کريم کي الله تعالی فرمايلي دي:

ولا تحلقوا رؤوسکم.

معنا تاسي سرونه مه خرياست نو حاصل دا سو چي تاسي خلق مه امر کوئ چي سرونه وخريي او يا دا معنا چي تاسي د يو بل سرونه مه خرياست او شايد چي پر حلال سړي دي د خيرات کولو وجه هم دا وي علاوه دا ده چي پر خريونکي لا دم يا خيرات لازميږي ظاهره ده چي د کوم حاجي سر خريل سوی وي نو پر هغه خو ضرور دم لازميږي او که په زوره يې د ده سر ور خريلی وي بيا هم دی پر هغه زورور سړي تاوان د دم نه سي لازمولای اګرچي زفر او ابو جازم وايي تاوان دي ورځخه واخلي ملاعلي القاري صاحب وايي دلته تفصيل غواړي که د حاجي رضا او اختيار وو خو رجوع د تاوان نسي پر کولای او که دی بيده وو او يا يې په زوره سر ورځخه وخريي نو بيا تاوان ورځخه اخيستلای سي الخ او صريح عبارت د مبسوط داسي دی همدا رنګه د الکافي که چيري د محرم سر حلال سړي وخريل خيرات پر حلال سړي لازم دی او که محرم د بل محرم سر د هغه په رضا يا بې له رضا وخريل پر خريونکي خيرات او پر هغه بل چي سر يې خريل سوی دی دم پر لازميږي او که احرام بنده حاجي د بل محرم يا حلال سړي بريتونه يا نوکان ور لنډ کړه خيرات پر لازميږي لکه المحيط او المبسوط او تائيد يې الفتاوی السراجية کړی دی چي محرم د بل محرم ځخه ويښتان يا نوکان واخلي خيرات پر لازميږي او قيل ويلي دي چي که حاجي د حلال سړي سر وخريي يا يې نوکان ور لنډ کړه بيا دي محرم يو شی خيرات کړي لکه هدايې او الکافي او الجامع الصغير وغيره چي ليکلي دي ارشاد الساري په خپله حاشيه کي د هغه حلال سړي په باره کي چي د محرم سر وخريي او پر ده خيرات لازميږي ډېر خوندور دلائل

بيان کړي دي چي حاصل يې دا دی چي حلال سړي د محرم سر وخريي نو ده هغه امن پورته کړی چي پر ده لازم وو چي تاسي د حرم محترم درختي مه کاږئ او نقصان مه ورته رسوئ نو هرکله چي د حرم درختي لا امن غواړي ظاهره ده چي د محرم سر هم په امن کي داخل دی لهذا پر ده خيرات لازم دی او که محرم سړي د حلال سړي سر وخريي بيا خو محرم دا نفع ځان ته حاصله کړه چي د هغه د خيري او بدبويي څخه يې ځان وساتی همدغه حکمت دی چي : جمعې په ورځ غسل سنت دی چي بل ته ستا د بوی ضرر نه ورسيږي نو چونکې د بل د بوی ضرر د ځان د بوی تر ضرر کم دی لهذا پر ده خيرات لازميږي الخ.

## ضروري خبرداری

هيڅ پته دي نه وي چي دم لازمول يا خيرات لازمول دا هلته چي حاجي د بل حاجي يا حلال سړي سر وخريي او پر خريونکي خيرات لازميږي او پر محرم سړي چي سر يې خريل سوی وي دم پر لازميږي چي د سر خريلو زمانه نه وي او کوم چي وخت يې راغلی وي چي د حج يا عمرې د ټوله افعالو څخه فارغه سو لکه د مثال په ډول د اختر په ورځ چي جمره وولي او قرباني ذبحه کړي نو اوس د سر خريلو زمانه ده نو دلته يو محرم د بل محرم سر وخريي هيڅ پروا نه لري او ارشاد الساري وايي چي ډېر خلق ما ليدلي دي چي په دغسي غلطي کي واقع سوي دي او فتوا يې پر خريونکي داسي کړې ده چي خيرات پر لازميږي.

## فصل د نوکانو پرېکول

اذا قص اظافير يديه و رجليه او يد او رجل واحدة فی مجلس واحد فعليه دم واحد و ان قلم اقل من يد او رجل فعليه صدقة لکل ظفر نصف صاع الا ان يبلغ ذلک دما فينقص منه ما شاء و قيل ينقص نصف صاع و لو قلم فی اربعة مجالس فی کل منها طرفا من اربعة فعليه اربعة دماء کفر للاول او لم يکفر و ان قلم خمسة اظافير يد او رجل ثم قلم اظافير يده او رجله الاخری فان کان فی مجلس فعليه دم او مجلسين فدمان و ان قص خمسة اظافير متفرقة او قلم من کل يد و رجل اربعة اظافير فبلغ جملتها ستة عشر ظفرا فعليه صدقة لکل ظفر نصف صاع الا اذا بلغت قيمة الطعام دما فيقص منه ماشاء و ان اختار الدم فله ذلک و لو انکسره ظفره او انقطع شظية منه فقطعها او قلعها لم يکن عليه شئ و قيل ذلک اذا کان بحيث لا ينمو ولو کان بحيث لو ترکه ينمو فعليه صدقة و لو قطع کفه و فيه اظافيره لم يلزمه شئ.

متن و بعده ترجمة و شرح ملا علي القاري

که چيري محرم د خپل دواړه لاسو يا دواړو پښو څخه نوکان واخيستل يا يې د يوه لاس او يوې پښې څخه لنډ کړه په يوه مجلس کي يو دم پر لازميږي ځکه مجلس يو دی په

اول صورت کي او په دويم کي يې نفع کامله ده په يوه اندام کي ارشاد الساري په يو حاشيه کي د اول قسم دپاره دا دليل ويلی دی چې د دواړو لاسو يا دواړو پښو نوکان اخيستل يوه نوعه شميرل کيږي مثال يې دا دی چې يو سړي د يوې ښځي سره نکاح وکړه نو په شپه کي ورسره همبستر سو او س ده څو واره خپل اندام د هغې ښځي اندام ته ور داخل کړی هر څونه وارونه چي يې ورداخل کړی يو مهر پر لازميږي او په بله حاشيه کي يې د دويم صورت دپاره دا دليل ويلی دی چي يو کس د يوه لاس نوکان واخلي يا د يوې پښې په يوه مجلس کي دم ځکه پر لازميږي چي د لاسو او پښو نوکان شل دي او د يوه لاس يا د يوې پښې نوکان پنځه دي او ظاهره ده چي څلورمه يې کيږي د ټولو نوکانو پر څلورمه حصه هم دم لازميږي احتياطاً لکه څلورمه حصه چي د سر څخه وخريي يا د ږيري څخه او علت جامع تر مابين نسته هغه نفع اخيستل دي په سر يا نو نوکانو کي نه عادت، حباب.

او که يو محرم د يوه لاس يا پښې څخه تر پنځو کم نوکان پرې کړه بيا به د هر نوک پر ځای نيم من غنم خيرات کوي د امام اعظم او بو يوسف او محمد رحمهم الله پر مذهب باندي خو دا هلته که ټوله غنم د دم قيمت ته نه رسېدل او که دم په رانيول کېدای سو بيا دي يو څه غنم ور کم کړي لکه بدائع چي ليکلي دي او قيل وايي چي نيم من غنم دي ورڅخه کم کړي بحر الزاخر بيا داسي ليکلي دي نو شايد د ده مطلب دا وي چي تر نيم من غنمو به زيات کموالی نه کوي علاوه دا ده که دم حلال کړي خو دا هم ښه کار دی او زفر رحمه الله وايي چي دري نوکان واخلي دم پر لازميږي ځکه اکثر خو حکم د ټوله لري او د امام اعظم رحمه الله هم اول قول دغسي دی او محمد رحمه الله وايي پر هر نوک پرېکولو باندي د دم پنځمه حصه جزا پر لازميږي شايد په دې مسئله کي د امام صاحب څخه دوه روايته سوي دي ارشاد الساري د امام محمد رحمه الله پر قياس رد کړی دی چي د يوه لاس پر پنځه نوکانو پرې کولو خو په دې وجه دم لازميدی چي دا پنځه د شلو نوکانو څلورمه ده نو دلته دا امکان نه لري چي د يوه لاس دري نوکان دي بيا د يوه لاس د پنځو نوکانو پر ځای ودريږي ځکه دلته بيا قياس پر بل شي سره راځي دلته هغه سمون نه خوري الخ.

که چيري يو محرم د لاسو او د پښو نوکان د څلورو طرفو څخه پرېکړل مثلاً د يو لاس راسته د کوچني ګوتي څخه شروع د دا بل لاس تر کوچني ګوتي پوري د چپه لاس او د پښو نوکان يې د چپې پښې څخه شروع و راستې پښې ته يې ورسول سره رد او بدل يې کړه څلور قسمه نو بيا څلور دمه پر لازميږي د اول دپاره يې دم حلال کړی وي او که نه دا يې حکم دی او د محمد رحمه الله مذهب دا دی چي د اول دپاره يې دم نه وي حلال کړی بيا نو يو دم پر لازميږي که يو شخص د يوه لاس پنځه نوکان پرې کړه او بيا يې د بل لاس يا پښې

بیان کړي دي چي حاصل يې دا دی چي حلال سړي د محرم سر وخريي نو ده هغه امن پور ته کړی چي پر ده لازم وو چي تاسي د حرم محترم درختي مه کاږئ او نقصان مه ورته رسوئ نو هرکله چي د حرم درختي لا امن غواړي ظاهره ده چي د محرم سر هم په امن کي داخل دی لهذا پر ده خيرات لازم دی او که محرم سړي د حلال سړي سر وخريي بيا خو محرم دا نفع ځان ته حاصله کړه چي د هغه د خيري او بدبويي څخه يې ځان وساتی همدغه حکمت دی چي د جمعې په ورځ غسل سنت دی چي بل ته ستا د بوی ضرر نه ورسيږي نو چونکې د بل د بوی ضرر د ځان د بوی تر ضرر کم دی لهذا پر ده خيرات لازميږي الخ.

## ضروري خبرداري

هيڅ پته دي نه وي چي دم لازمول يا خيرات لازمول دا هلته چي حاجي د بل حاجي يا حلال سړي سر وخريي او پر خريونکي خيرات لازميږي او پر محرم سړي چي سر يې خريل سوی وي دم پر لازميږي چي د سر خريلو زمانه نه وي او کوم چي وخت يې راغلی وي چي د حج يا عمرې د ټوله افعالو څخه فارغه سو لکه د مثال په ډول د اختر په ورځ چي جمره وولي او قرباني ذبحه کړي نو اوس د سر خريلو زمانه ده نو دلته يو محرم د بل محرم سر وخريي هيڅ پروا نه لري او ارشاد الساري وايي چي ډېر خلق ما ليدلي دي چي په دغسي غلطي کي واقع سوي دي او فتوا يې پر خريونکي داسي کړې ده چي خيرات پر لازميږي.

## فصل د نوکانو پر پېکول

اذا قص اظافير يديه و رجليه او يد او رجل واحدة في مجلس واحد فعليه دم واحد و ان قلم اقل من يد او رجل فعليه صدقة لكل ظفر نصف صاع الا ان يبلغ ذلک دما فينقص منه ما شاء و قيل ينقص نصف صاع و لو قلم في اربعة مجالس في كل منها طرفا من اربعة فعليه اربعة دماء كفر للاول او لم يكفر و ان قلم خمسة اظافير يد او رجل ثم قلم اظافير يده او رجله الاخرى فان كان في مجلس فعليه دم او مجلسين فدمان و ان قص خمسة اظافير متفرقة او قلم من كل يد و رجل اربعة اظافير فبلغ جملتها ستة عشر ظفرا فعليه صدقة لكل ظفر نصف صاع الا اذا بلغت قيمة الطعام دما فينقص منه ماشاء و ان اختار الدم فله ذلک و لو انكسره ظفره او انقطع شظية منه فقطعها او قلعها لم يكن عليه شئ و قيل ذلک اذا كان بحيث لا ينمو ولو كان بحيث لو تركه ينمو فعليه صدقة و لو قطع كفه و فيه اظافيره لم يلزمه شئ.

متن وبعده ترجمة وشرح ملا علي القاري

که چيري محرم د خپل دواړه لاسو يا دواړو پښو څخه نوکان واخيستل يا يې د يوه لاس او يوې پښې څخه لنډ کړه په يوه مجلس کي يو دم پر لازميږي ځکه مجلس يو دی په

اول صورت کي او په دويم کي يې نفع کامله ده په يوه اندام کي ارشاد الساري په يو حاشيه کي د اول قسم دپاره دا دليل ويلی دی چي د دواړو لاسو يا دواړو پښو نوکان اخيستل يوه نوعه شميرل کيږي مثال يې دا دی چي يو سړي د يوې ښځي سره نکاح وکړه نو په شپه کي ورسره همبستر سو او س ده څو واره خپل اندام د هغې ښځي اندام ته ور داخل کړی هرڅونه وارونه چي يې ورداخل کړی يو مهر پر لازميږي او په بله حاشيه کي يې د دويم صورت دپاره دا دليل ويلی دی چي يو کس د يوه لاس نوکان واخلي يا د يوې پښي په يوه مجلس کي دم ځکه پر لازميږي چي د لاسو او پښو نوکان شل دي او د يوه لاس يا د يوې پښې نوکان پنځه دي او ظاهره ده چي څلورمه يې کيږي د ټولو نوکانو پر څلورمه حصه هم دم لازميږي احتياطاً لکه څلورمه حصه چي د سر څخه وخريي يا دږيري څخه او علت جامع تر مابين نسته هغه نفع اخيستل دی په سر يا نو نوکانو کي نه عادت، حباب.

او که يو محرم د يوه لاس يا پښې څخه تر پنځو کم نوکان پرې کړه بيا به د هر نوک پر ځای نيم من غنم خيرات کوي د امام اعظم او بو يوسف او محمد رحمهم الله پر مذهب باندي خو دا هلته که ټولنه غنم د دم قيمت ته نه رسيدل او که دم په رانيول کېدای سو بيا دي يو څه غنم ور کم کړي لکه بدائع چي ليکلي دي او قيل وايي چي نيم من غنم دي ورڅخه کم کړي بحر الزاخر بيا داسي ليکلي دي نو شايد د ده مطلب دا وي چي تر نيم من غنمو به زيات کموالی نه کوي علاوه دا ده که دم حلال کړي خو دا هم ښه کار دی او زفر رحمه الله وايي چي درې نوکان واخلي دم پر لازميږي ځکه اکثر خو حکم د ټوله لري لو د امام اعظم رحمه الله هم اول قول دغسي دی او محمد رحمه الله وايي پر هر نوک پرېکولو باندي د دم پنځمه حصه جزا پر لازميږي شايد په دې مسئله کي د امام صاحب څخه دوه روايته سوي دي ارشاد الساري د امام محمد رحمه الله پر قياس رد کړی دی چي د يوه لاس پر پنځه نوکانو پرې کولو خو په دې وجه دم لازميدی چي دا پنځه د شلو نوکانو څلورمه ده نو دلته دا امکان نه لري چي د يوه لاس درې نوکان دي بيا د يوه لاس د پنځو نوکانو پر ځای ودريږي ځکه دلته بيا قياس پر بل شي سره راځي دلته هغه سمون نه خوري الخ.

که چيري يو محرم د لاسو او د پښو نوکان د څلورو طرفو څخه پرېکړل مثلاً د يو لاس راسته د کوچنۍ ګوتي څخه شروع د دا بل لاس تر کوچنۍ ګوتي پوري د چپه لاس او د پښو نوکان يې د چپې پښې څخه شروع و راستې پښې ته يې ورسول سره رد او بدل يې کړه څلور قسمه نو بيا څلور دمه پر لازميږي د اول دپاره يې دم حلال کړی وي او که نه دا يې حکم دی او د محمد رحمه الله مذهب دا دی چي د اول دپاره يې دم نه وي حلال کړی بيا نو يو دم پر لازميږي که يو شخص د يوه لاس پنځه نوکان پرې کړه او بيا يې د بل لاس يا پښې

نوکان پرې کړه نو که چیرې یې په یوه مجلس کې پرې کړې وه یو دم او که یې په دوه مجلسه کې پرې کړې وه دوه دمه پر لازمیږي او که یې څلور نوکان د څلورو اندامو څخه یو یو پرېکړی وو او یا یې د هر اندام څخه څلور څلور پرې کړې وه چې ټول شپاړس کیږي یا نو د هر نوک په عوض کې نیم من غنم پر لازمیږي چې ټوله اته منه غنم کیږي او که چیرې په دغه اته منه غنم دم معنا پسه رانهول کېدی یا دي د غنمو څخه یو څه کم خیرات کړي لکه مخکې چې تېر سوه چې نیم من دي ورڅخه کم کړي محمد رحمه الله په خپل مذهب کې پنځو نوکانو ته اعتبار ورکوي هغه چې د هر اندام څخه پرې کړې او امام اعظم او ابو یوسف رحمهما الله و محل ته د نوکانو اعتبار ورکوي معنا دا چې د یوه اندام څخه وي او که چیرې د سرې نوک مات سوی وو بیا یې پرې کړی هیڅ شی نه پر لازمیږي قیل وایې چې دا هلته شی نه پر لازمیږي که دا نوک غټ کېدای نه سو لکه مبسوط او بدائع چې لیکلي دي او که غټېده بیا نو خیرات پر لازم دی مبسوط وایي او که یې د لاس چمبه پرې کړه هیڅ شی نه پر لازمیږي او که یو محرم د بل محرم د لاس نوکان واخیستل داسې حکم یې دی لکه د سر حکم چې تېر سو او د محمد رحمه الله څخه روایت دی چې هیڅ شی نه پر لازمیږي او بدائع لیکلي دي چې یو محرم د بل محرم نوکان یا د حلال نوکان واخلي نو حکم یې د سر دی چې بیان یې تېر سو.

## فصل که دم وي که خیرات عیناً پر حاجي لازم دي

و ما ذکرنا من لزوم الدم و الصدقة عینا فی الانواع الثلاثة انما هو و فی حالة الاختیار بان ارتکب المحظور بغیر عذر اما فی حالة الاضطرار بان ارتکبه بعذر کمرض و علة فهو مخیر بین الصیام و الصدقة و الدم و من الاعذار الحمی والبرد و الحر و الجرح و القرح و الصداع و الشقیقة و القمل و لا یشترط دوام العلة و لا اداؤها الی التلف بل وجودها مع تعب و مشقة یبیح ذلک و اما الخطاء و النسیان والاغماء و الا کراه و الرق و عدم القدرة علی الکفارة فلیست باعذار فی حق التخییر و لو ارتکب المحضور بغیر عذر فواجبه الدم عینا او الصدقة فلا یجوز عن الدم طعام و لا صیام و لا عن الصدقة صیام بقی فی ذمته و اذا تطیب او اکتحل بکحل مطیب او لبس او حلق او قلم لعذر فهو مخیر ان شاء ذبح شاة و ان شاء تصدق علی ستة مساکین بثلاثة اصوع من بر لکل مسکین نصف صاع و ان شاء صام ثلاثة ایام و هذا فیما یجب فیه الدم و اما ما یجب فیه الصدقة ففیه یخیر بین الصوم و الصدقة فان شاء تصدق بنصف صاع او ما وجب علیه من الصدقة و لو اقل من نصف صاع علی مسکین او صاع عنه یوما و کل صدقة فی جنایة الاحرام غیر مقدرة فهی نصف صاع من بر او صاع تمر او شعیر الاما یجب بقتل القملة او الجرادة و ازالة شعرات قلیلة و اللبس

اقل من ساعة و نحو ذلک و اما الصدقة المقدرة فهی ثلاثة انواع الجنایة فاللبس جنس و الطیب جنس و الحلق و قلم الاظفار جنس فان جمع بین الاجناس المختلفة فی مجلس واحد لم یتحد الجزاء بل یتعدد لکل جنس موجبه.

متن و بعده ترجمه و شرح ملا علي القاري

دا تېر سوي جنايات كه د سړي څخه وسي چي يا دم پر لازم سي يا خيرات پر لازم سي دا به خامخا هغه جنايت كونكي حاجي كوي دى ورته معين دى معنا دا چي بل څوك يې د ده پر ځاى نه سي كولاى خصوصي بيا دري شيان لكه چي ګنډلي كالي واغوندي يا خوشبويي ولګوي يا سر وخريي او نوكانو د پرېكولو هم دغه حكم دى كه يې د عذر په وجه پرې كړي وه لكه را به سي نو دا مطلق حكم دى او كه يې په خپل اختيار سره يو ممنوع كار وكړى يې له عذره څخه او كه په حالت د ضرورت كي يا مرض كي يو ممنوع كار ورڅخه وسو بيا نو ده ته اختيار دى كه دري روژې نيسي او كه دري منه غنم قندهاري پر شپږو مسكينانو تقسيموي او كه دم حلالوي او د عذرو څخه تبه ده هر قسم تبه چي وي او يا يخ وي يا ګرمي وي او يا زخم وي يا دانه وي يا سر درد وي يا چاودي وي يا سپږو په عذاب كړى وي په سر كي لكه كرماني او الفارسي او الحدادي چي بيان ورڅخه كړى دى او شرط په كښي دا نه دى چي د مرض علت به هميشه وي او نه هم دا ضروري ده چي مرض سړى مرګ ته قريب كړي باره نو عذر ورته ويل كيږي بلكي د مرض وجود بس دغه قدري دى چي سړي په تكليف كي وي نو جواز ورته لري لكه الحدادي چي دغسي تصريح په كړې ده نو الفارسي د سلاح اخيستل د دښمن د بيري څخه هم په عذر كي داخل كړى دى او مصنف رحمه الله زور عذر نه دى بللي معنا چي په يو محرم سړي په زوره بل شخص يو ممنوع كار وكړي ځكه دا د بندګانو د طرفه څخه دى انتهي.

او كه په خطا او يا په هيزه سره يا د بېسدى په حالت كي يا د زور په حالت كي يا د مريي توب په حال كي يو ممنوع كار ورڅخه وسي او يا د دم قدرت نه لري دا بيا د اختيار په صورت كي عذر نه دى كه چيري يو ممنوع كار بې له عذره څخه ورڅخه وسو نو كه دم پر واجب وو دم به حلالوي او كه خيرات پر لازم وو خيرات به دى پخپله كوي نو د دم پر ځاى د خوراك شى نه دريږي او نه يې روژې پر ځاى دريږي او نه د خيرات پر ځاى روژې دريږي او كه يې پر دم يا خيرات وس كار نه كوى نه يې سوه پيدا كولاى بيا نو د ده تر قدرته پوري يې پر غاړه پاته دي او كه يې ځان خوشبويه او يا يې يو شى خوشبويه وخوري يا يې وچښي او يا يې سترګي په خوشبويه رنجو توري كړې او يا يې ګنډلي كالي واغوستل او يا يو اندام وخريي او يا يې د يوه لاس نوكان واخيستل دا ټول ه ممنوع كارونه د عذر په وجه ورڅخه

وسول نو بیا ورته اختیار سته په دغه درې شیانو کې اختیار لري یا دې پسه په حرم شریف کې حلال کړي یا دې و یو چا ته ژوندی ورکړي او که پر شپږو مسکینانو د حرم شریف درې پیمانې غنم خیرات کول او که یې خوښه وه درې روژې دې ونیسي نو دا درې قسمه شیان په هغه صورت کې چې پر ده دم واجب وي د اختیار په صورت کې او پر کوم محرم چې خیرات لازم سوی وي په وجه سره د هغه ممنوع کار چې عذر ولري مثلاً تر یوه اندام کم خوشبوېه کړي یا تر ورځې کم کالي واغوندي بیاهم ورته اختیار دی که خیرات کوي که روژې نیسي معنا دا ده که د نیم من غنمو پر ځای روژه نیسي او که هغه شی چې پر واجب دی هغه کوي او که تر نیم من غنمو کم پر لازم وه د ده خوښه ده که دغه غنم خیرات کوي او که یې پر ځای روژه نیسي الفارسي د ابو یوسف رحمه الله څخه روایت کوي چې محرم یو ممنوع کار وکړی په احرام کې چې اندازه یې دم ته نه رسیږي بیا یې روژې نیول جواز نه لري لکه یې له ضرورته څخه چې یو کار ورڅخه وسي او مثل د دغه عبارت په البرجندي کې چې هغه د الظهیریة څخه نقل کړي دي او په امالي د حسن کې د امام اعظم رحمه الله څخه روایت دی چې روژې نیول ورته جواز لري او دا قول د ابو یوسف رحمه الله دی او هر خیرات چې په جنایاتو کې نه وي اندازه سوی نو بیا نیم من غنم او یا یو من خرما یا یو من اوربشې به خیراتوي مگر که یې سپږه یا ملخ وژلی وي بیا خو د دې جنایت معلوم دی او یا لږ ویښتان پرې کړي یا لږ گړی کالي واغوندي یا مثل د دې لکه د یوې گوتې نوک چې پرې کړي او کوم چې د خیرات اندازه یې معلومه وي په هغه خیرات کې چې اختیار لري په کنبې نو درې پیمانې غنم دي ورباندي او بله خبره دا ده چې یوه جزا معنا یو دم د ډیرو جنایاتو په وجه هلته لازمیږي چې جنس یې یو وي د کالو اغوستل یو جنس دی او خوشبویي بل جنس دی سر خریل بل جنس دی او د نوکانو پرېکول بل جنس دی او که ټول جنسونه سره جمع سوه په یوه مجلس کې بیا به د هر جنس دپاره تنها تنها دم حلالوي یا که خیرات پر لازمېدی هغه به هم د هر جنس دپاره تنها تنها کوي.

## فصل که یو محرم په بل محرم کالي واغوستل

و اذا البس المحرم محرما او طيبه او غطى رأسه او وجهه فلا شئ على الفاعل و على المفعول الجزا النوع الرابع فى حكم الجماع و دواعيه و هو اغلظ الجنايات يفسد به الحج و العمرة وحده التقاء الختانين و تغييب الحشفة و شرائط كونه مفسد خمسة الاول ان يكون الجماع فى القبل او الدبر حتى لو وطئ فيما دونهما او لمس او عانق او باشر بشهوة فانزل لم يفسد الثانى ان يكون فى الادمى فلا يفسد بوطء البهيمة و ان انزل الثالث ان يكون قبل الوقوف بعرفة فلا يفسد ان كان بعده و هذا فى الحج و فى العمرة قبل اكثر

الطواف فلو طاف اکثره ثم جامع لا تفسد عمرته الرابع التقاء الختانین فلا یفسد قبله الخامس ان لا یکون حائل بین الفرجین یمنع الحرارة و الا یفسد و لو احرم مجامعا فسد و قیل هذا ان لم ینزع فی الحال و ان نزع فی الحال لم یفسد و یتحقق الجماع من الصبی المجنون فیفسد نسکهما الا انه لاجزاء و لا قضاء علیهما و لا فرق فیه بین العامد و الناسی و الطائع و المکره و ایقظا و النائم و الحج و العمرة و الفرض و النفل و الرجل و المراة و الحر و العبد و لا یجب الافتراق فی القضاء علی الرجل و المراة الا اذا خافا المواقعة فیستحب ان یفترقا عند الاحرام.

متن و بعده ترجمه و شرح ملا علي القاري

که چیري یو احرام بنده حاجي په بل احرام بنده حاجي کالي واغوستل او یا یې خوشبویه کړې او یا یې سر ور پټ کړې او یا یې مخ ورڅخه پټ کړې نو پر فاعل او کونکي حاجي هیڅ نه لازمیږي ځکه دی خو منع نه دی د داسي کارو څخه لیکن پر هغه چي کالي یې اغوستي دي او یا خوشبویي ورڅخه ده پر هغه یې جزا سته که احرام بنده وو ځکه چي ده نفع پر واخیستل اگر که د بل دطرفه څخه ورته رسېدلې وي څلورمه نوعه په حکم کي د وطیو د اعمالو ده او دا هغه اغلظه د جنایاتو څخه هم دی په گناه او فساد کي د حج او د عمرې او وطي دې ته وایي چي لږ په لږه د نر د ذکر سر د ښځي په کوس یا کونه کي پټ سي او د وطیو شرطونه چي د سرې حج فاسدوي پنځه کارونه دي:

۱: اول شرط دا دی چي وطي په فرج یا دبره کي وکړي او که بل ځای یې ځان انزال کړی لکه ورنونه یامثل د دغه او یا یې ښځه مسحه کړه او یا ورسره غاړه په غاړه سي او یا یې ځانونه لږ په لږه سره ومښل په شهوت سره په ټولو کي او انزال سو نو د ده حج نه فاسدیږي د علماؤ په اجماع سره ځکه دا ټوله شیان د مقدماتو څخه د وطیو دي اگرچي وطي خو نه دي نو شرط د فساد هم نه دي ارشاد الساري لیکلي دي په اوله حاشیه کي چي په انزال سره لا حج نه فاسدیږي نو په نه انزال سره خو په طریق اولی سره نه فاسدیږي په دویمه حاشیه کي یې لیکلي دي چي داسي اعمال خو په ظاهره وطي نه بلل کیږي او صاحب د هدایې ورته معنوي وطي ویلي دي ځکه نفع اخیستل په کښي رائحي لهذا که وطي وای نو حج یې هم فاسدوی نو علماؤ هم د حج د فساد دپاره وطي شرط د فساد بللې ده ظاهري او معنوي نو لهذا دا وطي نه دي نو ځکه فساد د حج نه په رائحي او په دریمه حاشیه کي یې لیکلي دي چي د فساد دپاره یې دا شرط لگولی دی چي دا وطي به د انسان سره وي علاوه دا ده چي شرط د انسان وطي نه دی ځکه بحر الرائق د معراج الدرایة څخه نقل کړي دي که د خره ذکر ښځه په ځان کي داخل کړي او یا یې پرې کړي ذکر اگر که د انسان هم نه وي په

خپل فرج کې داخل کړي او ځان یې پر انزال کړی حج یې فاسد دی په اجماع سره د علماؤ ځکه العلامة حباب لیکلي دي چې د نر او ښځې فرق سته د نر په شان کې شهوت نه پوره کیږي او د ښځې شهوت په کامله درجه د حیوان په ذکر سره هم پوره کیږي تعلیق الشیخ عبدالحق نو دغسې فرق او علاوه دا چې د ښځې شهوت پر غالب دی او بل ښځه چې د خره ذکر خپل فرج ته داخل کړي پوره خوند وربانډې اخلي دا مسئله صاحب الدرالمختار العلامة طاهر سنبل صاحب البحر د معراج الهدایة څخه او عیني په النهایة کې مبسوط محیط بدائع او الفتح کتاب ډېر تفصیل په کښې کړی دی.

۲: دویم شرط د حج د فساد وطي کول دي د انسانه سره عامه خبره ده که هغه حلال وي که په احرام کې وي ظاهره ده چې مړه ښځه محرم وطي کړي یا داسې کوچنۍ وي چې د شهوت درجې ته نه وي رسېدلې بیا نو حج نه فاسدوي او د ښځې د جانب مسئله د ارشاد الساري په عبارت کې لږ مخکې په تفصیل سره درته بیان سوه او د نر په شان کې داسې مسئله ده که یې د حیوان په فرج کې خپل ذکر پټ کړی اګر که انزال هم سي حج نه فاسدوي لکه قاضي خان چې لیکلي دي او کوم چې د خپلې ښځې په فرج کې ذکر پټ کړي خو په اجماع سره د علماؤ یې حج فاسد دی او که په کونه کې یې ور داخل کړی بیا هم د امام اعظم رحمه الله په اصح روایت کې او د ابو یوسف رحمه الله او محمد رحمه الله پر مذهب حج فاسدوي که د ښځې دبر وي او که د نر په دبر کې یې پټ کړی خپل ذکر.

۳: دریم شرط د حج د فساد دا دی چې تر عرفات دمخه وطي وکړي او که د عرفات تر درېدلو پس یې وطي وکړې بیا یې حج نه دی فاسد اګر که یو ساعت قدري پر عرفات درېدلی وي خو یاد لره دا په حج کې دا حم د فساد دی او عمره بیا هلته فاسدیږي چې تر اکثره طوافو دمخه وطي وکړي وجه دا ده چې اکثره طوافونه د عمرې دپاره رکن او فرض دي او که یې اکثره طوافونه د عمرې دپاره کړي وه بیا یې وطي وکړې عمره یې نه فاسدیږي.

۴: څلورم شرط د حج د فاسد کولو دا دی چې د نر او د ښځې اندامونه سره یوځای سي او د نر دا په کښې پټ سي یا یې سر محضې په کښې پټ سي او که یې سر د ذکر د ښځې په فرج کې پټ نه کړی بیا هم فساد نه راولي.

۵: پنځم شرط په کښې دا دی چې د دواړه فرجونو تر مابین به پرده نه وي چې د بدن حرارت او ګرمي او شهوت بند کړي او که یې پر ذکر تو کران راوګرځول چې هیڅ حرارت د ښځې د فرج د ده و ذکر ته نه رسېدی بیاهم حج نه فاسدوي لکه نخبة لو الغایة کتاب چې لیکلي دي لو که یې احرام تړي په داسې حال کې چې د ده ذکر د ښځې په فرج کې وو ځان

يې احرام بنده کړي احرام يې صحيح دی او حج يې فاسد دی نو پر ده لازمه ده چي دغه حج
په پوره کولو او قيل ويلي دي چي دا حکم هلته دی که يې دستي في الحاله ورڅخه و نه
کښي او که يې دستي ورڅخه وکښی بيا يې حج نه فاسديږي ځکه دا مسئله قياس ده پر
روژه باندي که د روژې په شپه کي نر د ښځي په فرج کي خپل ذکر دننه کړی وو او سهار
کېدی ځان يې انزال نه کړی چي وي کتل سپېدې کېدلې دستي يې ورڅخه خارج کړی روژه
يې نه ده خرابه سوې لکه ابن الجماعة چي د حنفيه وو څخه نقل کړي دي او که داسي کوچني
چي بلوغ ته رسېدلی وو او يا ليوني وطي وکړې هم يې حج فاسد دی پر هغه قول چي د
ليوني احرام صحيح بولي او يا پر هغه تقدير چي د صحت په وخت کي احرام وتړي وروسته
ليونی سي لکه دا تصريح چي ابن جماعة کړې ده چي دغسي ليونی په حکم کي د صحت
منده او قصد کونکي داخل دی او ارشاد الساري هم د دغه حکم تائيد کړی دی چي د لمانځه
او د روژې په فاسدولو کي خو مکلف او غيرمکلف نسته نو دا هم دغسي حکم او فعل
اسلام او رکن اسلامي دی او کوم قول چي الفتح کتاب کړی دی چي د کوچني په وطيو سره
حج نه فاسديږي دا قول علامة نجيم په بحر الرائق کي ضعيفه کړی دی او مثل د دغه
عبارت ردمختار هم ذکر کړی دی کما في الحباب.

ليکن پر کوچني او ليوني جزا نسته لکه دم او کفاره لکه اسبيجابي چي ليکلي دي
او علاوه دا ده چي حج ورڅخه فاسديږي هم نه او بل د دغه حج پوره کېدل هم نه دی پر لازم
ځکه چي مکلف هم نه دي دواړه.

فايده: فرق نسته په فاسدولو کي د حج اگر که يې گناه نابالغه ته نسته که په زور
سره وي که يې رضا وي نر وي که ښځه کوچني وي که ليونی ياد يې وي که يې هېر وي
ويښ وي که بيده وي او که بل کال يې قضا راوړه دا نه ده لازمه چي مېړه به د ښځي څخه
جلا کيږي او که بيا خطره وه مستحب ده چي احرام جلا جلا ځايونه وتړي.

## فصل که حاجي تر عرفات دمخه وطي وکړي مفرد حاجي

فاذا جامع فی احد السلبين قبل الوقوف فسد حجه و عليه شاة و يمضی فی حجه
حتما فيفعل جميع ما يفعله فی الحج الصحيح و يجتنب ما يجتنب فيه و ان ارتکب
محضورا فعليه ما علی الصحيح و عليه قضاء الحج من قابل و لا عمرة عليه کان مفردا.

متن و بعده ترجمه و شرح ملا علي القاري

که چيري يو حاجي د عرفات تر درېدلو دمخه وطي وکړي په يو کي د دغه دوو
شيانو لکه د ښځي د مخ د طرف اندام يا يې د شا د طرف په اندام کي نو حج يې فاسد سو
پسه حلالول پر واجب سو او علاوه دا ده چي دا باقي افعال به د حج لکه رمي او سر خريل

طواف زیارت دا به ټوله پوره کوي حتماً معنا پوره کول يې واجب دی داسې به يې پوره کوي لکه د ده حج چې صحيح وي او د هر ممنوع شي څخه د احرام به هم پرهېز کوي او بل حج د قضا به پر بل کال کوي اگر که دا اوس حج چې ورڅخه فاسد سوی دی دا نفلي وي ځکه چې احرام يې ورته وتړی نو بس پر فرض سو اوس چې فاسد سو بيا به پر بل کال د دغه حج قضا وکړي که يې حج افراد وو نو عمره نسته وربانديې په قضا کې الخ.

## فصل که حاجي قارن حج فاسد کړی

و ان كان المفسد قارنا فان جامع قبل الوقوف و قبل طواف العمرة فسد حجه و عمرته و عليه المضى فيهما و عليه شا تان و سقط عنه دم القران و ان جامع بعد ما طاف لعمرته كله او اكثره فسد حجه دون عمرته و سقط عنه دم القران و عليه دمان دم لفساد الحج و دم للجماع فى احرام العمرة و عليه قضاء الحج فقط و ان جامع بعد طواف العمرة و بعد الوقوف قبل الحلق لم يفسد الحج و لا العمرة ولا يسقط عنه دم القران و لو لم يطف لعمرته ثم جامع بعد الوقوف فعليه بدنة للحج و شاة لرفض العمرة و قضاؤها و لو طاف القارن قبل الحلق ثم جامع فعليه شا تان.

متن و بعده ترجمه و شرح ملا علي القاري

که چېري حاجي قارن د عرفات تر درېدلو دمخه وطي وکړي او د عمرې تر اکثره طوافو هم دمخه وطي ورڅخه وسوې نو حج او عمره دواړه فاسد سوه ليکن دواړه به پوره کوي او دوه پسونه به حلالوي په حرم کې ځکه دوه جنايته ورڅخه وسوه په دوو احرامو کې او پر بل کال به د دواړو قضا هم راوړي او بل هغه شکريه چې ده د خپل عبادت دپاره کوله د اختر په ورځ هغه ورڅخه ساقط سوه ځکه چې شکريه خو پر صحيح عبادت وي اوس خو دا پېره ورڅخه فاسد سوی دی او که يې وطي داسې وخت وکړې چې د عمرې د طواف څخه فارغه سوی وو يا يې اکثره طوافونه ورته کړي وه نو بيا د ده څخه حج فاسد سو نه عمره ځکه د عمرې رکن معنا فرض خو څلور شوطه دي هغه سوي دي ليکن دوه دمه پر لازم دي يو د فساد د حج په وجه سره او بل د عمرې په احرام کې ممنوع عمل ورڅخه وسو د قِران دم معنا شکريه ورڅخه ساقط سوه ځکه حج يې فاسد سو اوس نو پر ده په بل کال کې يوازې د حج قضا واجب ده ځکه عمره يې صحيح سوه لکه بدائع چې ليکلي دي او که طواف د عمرې وکړي او پر عرفات هم ودرېدی سر يې لا نه وو خريلی چې وطي يې وکړې اگر که پرعرفات هم وي نه حج او نه يې عمره فاسده ده بلکې دواړه صحيح دي ځکه د دواړو رکنونه پوره سوي دي د حج رکن د عرفات درېدل دي د عمرې رکن طواف دی او اوس به نو شکريه د خپل قِران حج دپاره هم کوي ځکه صحت يې پيدا کړی خو ياد لره چې د حج دپاره

به اوبښ حلالوي او د عمرې دپاره به پسه حلالوي او که پر عرفات د پدلی وو لیکن د عمرې دپاره یې طواف نه وو کړی بیا نو د حج دپاره د اوبښ حلالول پر واجب دی او پسه حلالول د عمرې د ماتوالي په وجه پر لازم دی او قضا د عمرې هم پر لازمه ده او که حاجي قارن طواف زیارت وکړی لیکن صرف سر یې نه وو خریلی او وطي یې وکړې دوه پسونه حلالول پر لازم دی ځکه چي ممنوع اوس هم پر حرام واقع سو ځکه ده خو ځان نه دی حلال کړی.

## فصل که یو حاجي ډېر وارونه وطي وکړي

و لو جامع مرار قبل الوقوف فی مجلس واحد مع امراة او نسوة فعلیه دم و ان اختلف المجالس یلزمه لکل مجلس دم علی حدة و لو جامع فی مجلس اخر و نوی به رفض الفاسدة فعلیه دم واحد و کذا لو تعدد الجماع کما فی الفتح.

متن و بعده ترجمه و شرح ملا علي القاري

که چیري یو حاجي د عرفات تر دربدو دمخه ډېر وارونه د خپلي یوې یا ډېرو ښځو سره په یوه مجلس کي وطي وکړي نو یو دم پر لازمیږي او که یې د وطي ځایونه بدلول د یوې ښځي سره وي او که د ډېرو ښځو سره وي بیا نو د هر مجلس په عوض کي یو دم پر لازمیږي او د محمد رحمه الله پر مذهب یو پر لازمیږي که یې د اول دپاره دم نه وو حلال کړی او که یو شخص د ښځي سره یو ځل وطي وکړي او حج یې فاسد سو او بل وار یې وطي د دې دپاره وکړې چي هغه فاسد حج هم راڅخه ساقط سي بیا هم پر ده یو دم لازمیږي په اجماع سره د علماؤ لکه دا مسایل چي په النخبة او خزانة الاکمل کي راغي او الفتح کتاب هیره او یا قصدًا او زور تپوله سره برابر بولي په فاسدوالي کي د حج اوس که د ښځي سره په زوره وطي وسوې د ښځي حج فاسد سو او دم پر لازم دی او بدائع وایي چي دغه زوجه د تاوان پر زوج هم حق نه لري او هیڅ خلاف هم ده نه دی ذکر کړی.

## فصل که حاجي تر عرفات بعد وطي وکړي

و ان جامع بعد الوقوف بعرفة قبل الحلق و قبل طواف الزیارة کله او اکثره لم یفسد حجه و علیه بدنة سواء جامع عامدا او نلسیا او لو جامع بعد طواف الزیارة کله او اکثره قبل الحلق فعلیه شاة و لو جامع بعد الطواف و الحلق لا شئ علیه و لو جامع قبل الحلق و الطواف ثم جامع ثانیا بلا قصد الرفض فان کان فی مجلس فعلیه بدنة واحدة و ان کان فی مجلسین فعلیه للاول بدنة واحدة و للثانی شاة.

متن و بعده ترجمه و شرح ملا علي القاري

که چیري یو حاجي د عرفات تر دربدو بعد وطي وکړي اګر که یو ساعت بعد وي او تر سر خریلو دمخه وي او تر طواف زیارت هم دمخه وي تر ټول طواف او یا تر اکثره طوافو

دمخه وي حج يې نه فاسديږي ځکه ده د حج غټ رکن ادا کړی دی چې د عرفات درېدل دی او هرڅوک چې پر عرفات ودرېدی نو حج يې پوره سو ځکه نبي ﷺ فرمايي چې حج عرفات دی معنا درېدل پر عرفات دی او پر ده اوبښ حلالول لازم دی ځکه ده تر سر خريلو دمخه وطي کړې ده او علاوه دا ده چې د ده سره ډېره اساني وسوه چې د فساده څخه د ده حج را ناګاه سو او بل د ده جنايت هم غټ جنايت دی برابره خبره ده که په زوره او يا په رضا يا په هيره دا وطي ورسره وسي نو پر ده اوبښ حلالول لازم دی لکه په عامو کتابو کي چې راغلي دي او الحدادي په شرحي د قدوري کي راغلي دي چې اوبښ پر قصد کونکي دی او پسه پر هغه شخص دی چې ورڅه هېر وي انتهي.

او دا قول د حدادي خلاف دی د مشهوره روايتو څخه ځکه په نورو جناياتو کي يې فرق نسته نو دلته څنګه فرق راغلی او قاضي خان ليکلي دي چې يو کس د خپلي ښځي سره تر عرفات بعد وطي وکړي که په قصده يې وکړې او که يې په هېره وکړې جزا يې اوبښ حلالول دی پر دواړو باندي او که يو حاجي طواف زيارت وکړی تر توله او يا يې اکثره طوافونه کړي وه خو د سر تر خريلو دمخه وي نو پسه حلالول پر لازميږي دا مسئله يې په البحر الزاخر وغيره کتابو کي راغلې ده او که حاجي طواف زيارت وکړی سر يې هم خريلی وو باره يې وطي وکړې هيڅ شی نه پر لازميږي اګر که يې تر سعي د صفا دمخه وکړي او که حاجي تر سر خريلو او طواف زيارت دمخه وطي وکړې دويم وار يې بيا وطي وکړې په نيت سره د ماتولی د احرام هم نه وي نو که په يوه مجلس کي يې وطي وکړې دواړه واره نو يو اوبښ پر لازم دی چې حلالوي به يې او که يې په دوه مجلسه کي وطي وکړې بيا د اول وار د وطي پر ځای اوبښ پر لازميږي او پر دويم وار يې پسه لازميږي د امام اعظم رحمه الله او ابو يوسف رحمه الله پر مذهب باندي او که يې دويم وار په وطيو سره نيت د احرام د ماتوالی په اراده وکړي چې حلال سي نو بيا د ټولو علماؤ پر مذهب يو دم پر لازم دی په يوه مجلس کي وي که په دوه مجلسه کي وي.

## فصل د حاجي قارن وطي کول

اول مرة بعد الحلق قبل الطواف فعليه شاة.

متن و بعده شرح ملا علي القاري

که حاجي قارن اول وطي وکړي تر سر خريلو بعد او تر طواف زيارت دمخه نو بيا پسه پر لازميږي لکه په هدايه الکافي او المجمع کي بغير د خلاف څخه د هيڅا او که چيري سر يې و نه خريی او د طواف زيارت دپاره يې څلور شوطه کړي وه او باره يې وطي وکړي نو دم پر لازم دی هدايه وايي او قيل وايي اوبښ پر لازميږي لکه الغاية کتاب چې د مبسوط او

بدائع او لاسیجابي څخه دا مسئله را اخیستې ده چي حاجي قارن اول وار وطي وکړي تر سر خرلو بعد تر طواف زیارت دمخه نو اوښ حلالول پر لازمیږي د حج په وجه او د عمرې د بې عزتۍ په وجه بیا پسه پر لازمیږي ځکه حاجي قارن چي ځان حلالوي هغه د دوو احرامو څخه ځان حلالوي په خریلو د سر سره صرف د ښځو څخه منع دی ځکه د ښځي په شان کي دی احرام بنده دی د عمرې او حج د دواړو احرامو او ابن الهمام وایي چي دا تېر عبارت د قدوري د عبارت څخه مخالف دی ځکه عام کتابونه تر سر خریلو بعد پسه پر لازموي او تېر بیان ظاهر کړه چي اوښ پر لازمیږي او الغایة کتاب مخالفت رفع کړی دی علاوه دا ده چي دلته تخصیص تر تعمیم بعد سوی دی او داسي عبارتونه ډېر راغلي دي نو الغایه د وبری څخه داسي نقل کړي دي چي قارن حاجي تر سر خریلو بعد او تر طواف زیارت دمخه وطي وکړي نو اوښ حلالول پر واجب دی او د عمرې دپاره شی نسته ورباندي ځکه چي سر وخریی د عمرې څخه ووتی او د حج په احرام کي لا داخل دی په حق د ښځو کي او شارح د کنز بیا دا مشکله بللې ده چي د حج په احرام کي داخل دی نو د عمرې په احرام کي هم داخل دی په شان کي د ښځو او ملا علي القاري وایي دوبر قول ظاهره او ثواب ځکه دی چي د عمرې حلال خو په سر خریلو سره راځي داسي خو هیڅ کتاب نه ده راخیستي چي د ښځو په شان کي لا د ده احرام باقي پاته دی علاوه دا ده چي سر بې وخروی بس مطلق دی حلال دی په شان کي د هر هغه څه چي په احرام د عمرې کي وړته ممنوع وه او کوم چي احرام د حج دی چي تر طواف زیارت پوري د ښځو په شان کي باقي پاتیږي دا د حج د احرام خصوصیت دی او که د حج د احرام سره د عمرې احرام ګډ سي نو هر یو پر خپل ځای کار کوي تر هغه تجاوز نه سي کولای هم دغسي تحقیق ابن الهمام کړی دی او المسعودي هم عبارت مطلق ویلی دی چي حاجي قارن تر سر خریلو بعد او تر طواف زیارت دمخه وطي کړې د اوښ حلالول پر واجب دی او دا مطلق عبارت ظاهره دی ځکه د ده سر خریل د وطیو په شان کي داسي دی لکه هیڅ چي بې ځان نه وي حلال کړی نو په دغه حکم کي قارن او مفرد حاجي سره برابر دي ابن الهمام وایي چي دا قول چي اوښ پر لازمیږي دا د ظاهره روایت هم دغه حکم دی چي تر عرفات بعد وطي اوښ لازموي او دا قول ډېر قوي قول دی.

## فصل د اوښ د وجوب شرطونه څلور دي د وطیو په وجه سره

و شرائط وجوب البدنة بالجماع اربعة الاول ان یکون الجماع بعد الوقوف و الثاني ان یکون ان قبل الحلق و الطواف و الثالث العقل و الرابع البلوغ.

متن و شرح بعده

پر هغه حاجي چي د وطيو په وجه اوبن پر لازميږي هغه څلور شرطونه دي اول شرط يې دا دی چي وطي به د عرفات تر درېدلو بعد وي او دويم شرط يې دا دی چي تر سر خريلو او طواف زيارت دمخه به وي په نزد د جمهورو علماؤ او د محققينو په نزد تر طواف دمخه که يې وطي وکړې دم د اوبن پر لازميږي عامه خبره ده چي سر يې خريلی وي او که نه او په حقيقت کي وطي چي سبب د وجوب د اوبن ګرځي هغه تر عرفات بعد برابره خبره ده چي تر طواف زيارت دمخه وي او تر سر خريلو دمخه وي موجب د اوبن د حلالولو ګرځي داسي نه ده چي ورلره شرط دی د وجوب دپاره او دريم شرط د وجوب عقل دی پر لېوني نشته او څلورم شرط د وجوب د اوبن د حلالولو د سړي بالغ کېدل دی هيڅ شک نشته چي دا دواړه د وجوب شرطونه دي علاوه دا ده چي دا دواړه د ټولو کفاراتو دپاره د وجوب شرطونه دي.

## فصل که يې طواف زيارت په جنابت کي وکړی

و لو طاف للزيارت جنبا ثم جامع ثم اعاده طاهرا فعليه دم و لو طافه علی غير وضوء او طاف اربعة اشواط طاهرا ثم وطئ لا يلزمه شئ سواء اعاد او لم يعد ولو طاف اربعة اشواط من طواف الزيارت في وجوف الحجر او فعل ذلک فی طواف العمرة ثم جامع فسدت عمرته و عليه قضاؤها و شاة و عليه في الحجة بدنة و من فاته الحج اذا جامع فعليه المضی فی احرامه و عليه دم و قضاء النائت و ليس عليه قضاء العمرة التی يتحلل بها و لو ان قارنا فانه الحج فطاف لعمرته و لم يطف لما فاته من الحج حتی جامع فعليه کفارتان و کذلک لو فعل ذلک بعد ما طاف للعمرتين جميعا الا انه لم يحلق راسه و انه حين فاته الحج ظن انه قد بطل حجه فعليه للحق و عليه لکل ما جامع دمان و لا يجب عليه اکثر من دمين لانه فعل ذلک علی قصد الرفض و لو اهل بحجة او عمرة و جامع فيها ثم احرم باخری ينوی قضاءها قبل ادائها فهی هی و اهلاله بالثانی لم يصح مالم يفرغ من الفاسد و کانت نيته لغوا و العبد اذا جامع مضی فيه و عليه هدی و حجه اذا اعتق سوی حجة الاسلام.

متن و بعد د ترجمه و شرح ملا علي القاري

که چيري حاجي د جنابت په حال کي طواف وکړی او بيا يې وطي هم وکړې او بيرته يې ځان پاک کړی طواف يې راوګرځوی دم پر لازم دی ځکه د ده طواف نه دی کامل سوی او قياس وايي چي طواف يې صحيح دی او شی نه پر لازميږي ځکه امام محمد رحمه الله وايي چي په قياس کي پر ده هيڅ شی نه لازميږي ليکن امام اعظم رحمه الله وايي چي په استحسان کي دم پر لازميږي همدا رنګه د ابو يوسف رحمه الله مذهب دی الخ تحقيق داسي دی چي وخت د دويم طواف په پاکي کي وو او پر واجب هم دغسي وه نو اول طواف يې نفلي او دويم يې فرضي وګرځېدی نو ظاهره ده چي د اول دپاره دم پر واجب دی او شک نشته چي نفلي

طواف په جنايت کي وکړي دم پر واجبيږي نو فرق به دونه راسي چي مثال به يې داسي سي لکه وطي چي يې تر طواف کامل وروسته کړې وي الخ او هيڅ سوال نسته چي راګرځېدل به پر واجب نه وي ځکه هر عبادت چي د مکره تحريمي سره ادا، سي لکه مثلاً لمونځ راګرځېدل پر لازم دی نه داسي چي يو فرض دوه واره مکرره کيږي بلکې د ده د غاړي ځخه هغه اول نه دی ساقط سوی.

او که يې طواف زيارت ټوله يا اکثره په بې اودسۍ کي وکړي او باره يې د ښځي سره وطي وکړې هيڅ شی نه پر لازميږي برابره خبره ده طواف راوګرځوي او که يې را و نه ګرځوي ځکه چي فرق معلوم سي د بې اودسۍ او جنابت دواړو تر مابين په سخت والی او سپک والی کي.

او که يې څلور شوطه طواف وکړې طواف زيارت د حطيم شريف دننه او يا يې په عمره کي داسي وکړه راګرځېدل يې پر لازم دی که يې وطي بيا وکړې ځکه نو عمره يې فاسده سوه نو به يو خو قضا راوړي او بل به پسه حلالوي او د حج دپاره به اوبن ذبح کوي د ابن عباس ﷺ څخه پوښتنه وسوه چي يو سړي په منا کي د خپلي ښځي سره وطي وکړې نو ده امر وکړی چي اوبن دي حلال کړي رواه مالک و ابن ابي شيبة.

ابن ابي شيبه بل روايت وايي چي يو کس ورته راغلی ويل يا ابا عبدالرحمن يو کس دی ډېر جاهل په سنتو سره او بې قدرته هم دی او ټول مناسک يې پوره کړه ليکن طواف زيارت يې نه دی کړیاو د خپلي ښځي سره يې وطي وکړې نو ده ورته وويل چي اوبن دي حلال کړي پر کال دي بل حج وکړې. ځکه ده بعضي شيان پرينبودلي دي او ابن الهمام يې وجه دا ويلې ده چي شايد دا حکم په دې بناء ورته کړی وي چي حج يې کامله درجه ادا سي، او که د چا څخه حج فوت سو نو يې وطي وکړې نو لازمه پر ده دا ده چي د دغه حج ټوله افعال به پوره کوي او نوی احرام هم نه غواړي دغه احرام هم کفايت کوي علاوه دا ده چي عمره خو به کوي دم پرلازم دی سره د قضا د حج او د عمرې قضا ورباندي نسته ځکه مقصود د دغه عمرې څخه پوره کېدل د حج د احرام دی چي د هغه څخه ځان حلال کړي تبعاً نه اصلاً د مستقلي عمرې حکم تنها دی او دا مسئله الحاوي او متنقي د محمد رحمه الله څخه نقل کړې ده او که چيري د حاجي قارن څخه حج فوت سو نو يې د عمرې دپاره طواف وکړې او سر و نه خريي او د حج دپاره يې طواف و نه کړی بلکې د ښځي سره يې وطي وکړې نو بيا دوې کفارې پر واجب دي ولي چي دی لا تر اوسه په دوو احرامو کي دی همدغسي حکم دی د هغه چا چي حاجي قارن د دوو عمرو دپاره طوافونه وکړي ليک سر يې نه وي خريلی او لنډ کړی يې هم نه وي او د حاجي قارن دا ګمان سو چي حج خو راڅخه

باطل سو ځکه عرفات ته نه وو ورغلی نو بې د عمرې دپاره طواف او سعیه وکړه او سر بې وخریی وطي يې وکړې ډېر وارونه نو د ده د سر خریلو په وجه دوه دمه پر لازميږي چې پر دوو احرامو برسيره يې ممنوع کار وکړی او هره پیره چې یې وطي کړې وي د هر وار دپاره به دوه دمه حلالوي که په ډېرو مجلسو کي وطي ورځخه سوې وي او که په یوه مجلس کي یې وطي کړې وي بیا نو د ټولو وارو دپاره دوه دمه کافي دي زیات نه پر لازمیږي ځکه ده دا باقي وطي پر دې بناء کړي دي چې د ده احرام مات سو او دی اوس حلال دی او دا قول د امام اعظم او ابو یوسف او محمد رحمهم الله دی انتهي.

او که یو کس د حج یا عمرې احرام وتړی او په مابين کي يې وطي وکړي باره يې بل احرام وتړی چې دا خو خراب سو په دا بل به یې قضاء راوړمه نو دی د اول احرام ځخه تر هغه وخته نه وزي ترڅو چې ده اول فاسد سوی حج یا عمره نه وي پوره کړې دا دويم احرام یې بې ځایه دی هیڅ فایده نه ورته کوي او نیت یې لغوه دی د دويم دپاره او که حاجي مریی وي او احرام یې تړلی وي د حج دپاره عرفات ته لا نه وو ورغی چې وطي یې وکړې او یا تر عرفات بعد تر سر خریلو دمخه نو دا حج به پوره کړي هرکله چې آزاد سو نو به د حج د فساد دپاره اوبن او د عمرې د فساد دپاره به پسه حلال کړي او قضا به هم راوړي او بل به بیا حجة الاسلام هم کوي.

## فصل د وطیو بلونکي کوم شیان دي

حک دواعي الجماع قبل الوقوف او بعده او باشر او عانق او قبل او لمس بشهوة فانزل او لم ينزل فعليه دم و لايفسد حجه بشئ من الدواعی و لو قبل امراته مودعا لها ان قصد الشهوة فعليه الفدية و الا فلا و ان كان قال ما قصدت هذا و لا ذلک لا يجب شئ نظر الى فرج امرة فامنى او تفكر او احتلم فانزل لا شئ عليه و لو استمنى بالكف ان انزل فعليه دم و ان لم ينزل فلا شئ عليه و لو جامع بهيمة فانزل فعليه دم و لا يفسد حجه و ان لم ينزل فلا شئ عليه النوع الخامس فی الجنايات فی افعال الحج كالطواف و السعی و الحلق و الرمی و الوقوفين و الذبح.

متن و بعده ترجمه و شرح ملا علي القاري

هغه شیان چي وطیو ته سرې رابولي که حاجي تر عرفات دمخه او یا بعد تر عرفات وکړي او یا یې لڅ په لڅه سره یوځای سول او یا غاړه په غاړه سوه لڅ او یا یې مچه واخیستله او یا یې مسحه کړل په شهوت سره انزال سو یا نه سو انزال په دغه ټولو کي نو دم پر لازمیږي لکه په مبسوط او هدایه او الکافي او بدائع او شرحي د المجمع وغیره کتابو کي چي راغلي دي او په جامع الصغیر کي د انزال شرط لګېدلی په مسح کي چي دم پر

لازميږي او دا قول ته قاضيخان صحيح ويلي په خپله شرحه کې او د محمد بن الفضل څخه نقل سوي دي چې پر مېړه دم لازمیږي که يې خپله زوجه مچ کړه که يې خوند پر واخيستی او شهوت ورسره موجود وو نو حج يې نه فاسد يږي په يو شي کې د دغه شيانو بې له خلافه څخه د چا برابره خبره ده که انزال سي او که انزال و نه سي او دا افعال تر عرفات دمخه وي که وروسته وي لکه په دغه چې ډېرو عمده کتابو خبري کړي دي او شافعي رحمه الله او احمد رحمه الله هم په يوه روايت کې او ابن المنذر وايي چې د اهل علمو اجماع پر دغه ده چې حج يې له وطيو په بل هيڅ شي نه فاسد يږي انتهي او په الفتاوی السراجيه کې راغلي که چيرې يو کس يوې ښځې ته لاس ور وړی باره انزال سو حج يې فاسد دی او دغسې حکم دی که انزال هم نه سي او مبسوط و منهاج المصلين و منية المفتي وايي چې دا مخکې روايت شاذ دی او ډېر ضعيف دی لکه السروجي چې ورته هم دغسې ويلي او په المنافع کې وايي چې د فساد څخه مراد نقصان دی انتهي او دا عبارت د مخکې سره منافي دی.

او که يو کس د خپلې ښځې څخه تر احرام بعد رخصت اخيستې مچه يې ورڅخه واخيسته که په شهوت يې ورڅخه واخيسته نو فديه يې پر لازم ده او که صرف د رخصت غرض وو او بل غرض د شهوت نه وو په کښې بيا فديه هم نه پر لازميږي او که ده وويل چې زما خو نه شهوت او نه رخصت غرض وو يوه مچه مې ورڅخه واخيستله بياهم شی نه پر لازميږي ځکه شرط په کښې تحقق د شهوت دی او چې قصد نه سو موجود شبه راغله بيا نو هيڅ شی هم نه پر لازميږي که يو سړي د ښځې فرج ته وکتل انزال سو او يا يې په وطيو کې فکر بند سو او يا يې شيطاني خوب وليدی لا شی نسته ورباندې لکه په عامو کتابو کې چې راغلي او په ځان انزالولو کې هم شی نسته ځکه دا وطي نه ده د امام اعظم رحمه الله څخه روايت دی چې دم پر لازم دی که يو انسان خپل ذکر په لاس کې ومُښی نه يې قصد د شهوت وو نه د نه شهوت خو انزال سو نو دم پر لازميږي او که انزال نه سو بيا هيڅ شی نه پر لازميږي دا مسئله الفتح وغيره کتابو او په بحر الزاخر کې او خزانة الاکمل کې وايي که يې په لاس کې ځان انزال کړی دم پر لازم دی د امام اعظم رحمه الله پر مذهب باندې انتهي، نر لو ښځه په دغه کې سره برابر دي.

او که يې د چار پايانو سره ځان انزال کړی دم پر لازم دی او حج يې نه فاسد يږي او که انزال نه سو بيا هيڅ شی نه پر لازميږي همدغسې حکم د هغه چا دی چې په ورنو کې د ښځې ذکر بند کړي او انزال نه سي حج يې د ټول مذاهبو امامان وايي نه فاسد يږي پنځمه نوعه دا ده په جناياتو د حج په افعالو کې لکه طواف زيارت وغيره يا سعيه د صفا او سر خريل لو يا د جمراتو ويشتل او پر عرفات او مزدلفې دربدل ليکن د عرفات دربدلو حکم تېر سوی دی

او د ذبحې په دغه ټولو کې حاجي د جناياتو څخه منع دی.

## فصل د جناياتو حکم په طواف زيارت

و لو طاف للزيارت جنبا او حائضا او نفساء كله او اكثره و هو اربعة اشواط فعليه بدنة و يقع معتدا به فی حق التحلل و يصير عاصيا و عليه ان يعيده طاهرا حتما فان ادا سقطت عنه البدنة و لو رجع الى اهله و جب عليه العود لا عادته ثم ان جاوز الوقت يعود باحرام جديد و ان لم يجاوزه عاد بذلک الاحرام فان عاد باحرام جديد بان احرم بعمرة يبدا بطواف العمرة ثم يطوف للزيارة و لو لم يعد و بعث بدنة اجزاه ثم ان اعاده فی ايام النحر فلا شئ عليه و ان اعاده بعد ايام النحر سقط عنه البدنة و لزمه شاة للتاخير و لو طاف اقله جنبا فعليه لكل شوط صدقة نصف صاع و ان اعاده سقطت و لو ترک الطواف كله او طاف اقله و ترک اكثر فعليه حتما ان يعود بذلک الاحرام و يطوفه و لا يجزئ عنه البدل اصلا وا ذا اعاد الطواف طاهرا و قد طافه جنبا فالمعتبر هو الاول و الثانی جبر له و لو طاف للزيارة كله او اكثره محدثا فعليه شاة و عليه الاعادة استحبابا و قيل حتما فان اعاده سقط عنه الدم سواء اعاده فی ايام النحر او بعدها و لا شئ عليه للتاخير لان النقصان فيه يسير بخلاف الجنب حيث يجب فيه عليه الدم للتاخير و لا شئ عليه ههنا للتاخير و قيل يجب عليه للتاخير و قيل صدقه لكل شوط و لو طاف الاقل محدثا فعليه صدقة لكل شوط و لو ترک من طواف الزيارت اقله و هو ثلاثة اشواط فما دونها او طاف كله راكبا او محمولا او رحفا من غير عذر او عاريا او منكوسا او فی وجوف الحجر فعليه دم و ان اعاده سقط و لو عاد الى اهله بعث شاة و ان اختار العود يلزمه احرام جديد ان جاوز الوقت و لو طاف راكبا او محمولا او زحفا بعذر كمرض او كبر غلا شئ عليه و لو اخر طواف الزيارت كله او اكثر عن ايام النحر فعليه دم و لو اخر اقله فعليه صدقه لكل شوط.

متن و بعده ترجمه و شرح ملا علي القاري

دا فصل په بيان کي د هغه جناياتو دی کوم چي د حاجي څخه په طواف زيارت کي واقع سي مثلا يو شخص په جنابت سره يا ښځه په حيض کي يا په نفاس کي ټوله يا اکثره طوافونه وکړي نو د اوښ حلالول پر لازم دی او دا طواف هم اعتبار لري د ښځو د حلال په شان کي معنا ښځه ورته روا ده چي اوس وطي ورسره وکړي پروا نه لري او ګناهګاره دی خکه په ناپاکی سره يې د بيت الله طواف کړی دی او پر ده واجب دی چي بل طواف به د پاکی په حالت کي کوي الغ هدايه وايي امر دي سي په راګرځولو سره په بې اودسۍ کي استحبابا او په جنابت کي چي طواف يې کړی وو وجوبا دي طواف په پاکۍ کي کوي او که يې د پاکۍ په حال کي بيرته راوګرځاوه د اوښ حلالول ورڅخه ساقط سوه او کومه ګناه چي

ورځخه وسوه هغه توبه غواړي هر وخت چي يې توبه وکښل نو به ورته معافي وسي اگر که اوبښ هم حلال کړي او که يو شخص په جنابت کي طواف وکړی باره کور ته ولاړی بيرته به د هغه ځايه ځخه ورته راځي او طواف به په پاکۍ کي کوي دا پر واجب دی لکه هدايې او الکافي زيلي بدائع چي دا حکم کړی دی او علت يې زياته فاحشي د ده ويلې ده او اشاره يې دې ته هم کړې ده چي بې اودسه که يې طواف کړی وو او تللی وو بيا راگرځيدل د کوره ځخه نه دی پر لازم اوس که داسي شخص چي په جنابت کي يې طواف زيارت کړی وو او بيا تللی وو تر ميقات تېر سوی وو نو که راگرځيدی چي طواف په پاکۍ کي ادا کړي نو لازم ورته دا ده چي نوی احرام به تړي اکثره علماء. دا وايي ليکن قيل ويلي دي چي هغه زوړ احرام يې هم کفايت کوي او الکافي د ده ملگري کړې ده او که چيري تر ميقات نه وو تېر سوی بيا نو هغه زوړ احرام هم کافي دی په اتفاق سره د علماوو.

ارشاد الساري يې دليل دا ويلي چي دی لا تر اوسه پوري په حکم کي د مکي سړي دی الخ او که د دغه زمين حل ځخه يې د عمري احرام وتړی نو چي مکې ته را ورسېدی اول به د عمري طواف وکړي باره به طواف زيارت وکړي لکه الفتحه وغيره کتابو چي دا فيصله کړې ده ځکه دليل دا دی چي اوس نو د عمرې طواف قوي دی اگر که طواف زيارت دمخه دی ورياندي لکه په فرضيت کي چي ورسره برابر دی او که را و نه گرځيدی اوبښ يې را ولېږی چي په حرم کي يې حلال کړي بيا هم جواز خو لري ليکن راگرځيدل يې غوره کار دی لکه هدايې او الکافي کتابو چي ليکلي دي او بدائع او محيط ليکلي دي چي افضله دا ده چي اوبښ حرم ته استول غوره دی ځکه چي دا د فقراؤ فايده په کښي ده او که يې د اختر په ورځو کي اوبښ حرم ته واستوی بيا خو هيڅ شی نسته ورباندي او که يې د اختر له ورځو بعد ور واستوی هم جواز لري په اتفاق سره ليکن د ځنډېدو په وجه يو پسه هم پر لازم دی په نزد د امام اعظم رحمه الله او که يې لږ طواف د جنابت په حال کي وکړی بيا د هر شوط دپاره نيم نيم من غنم پر لازميږي او که يې شوطونه راوگرځول بيا هيڅ شی نه پر لازميږي معنا خيرات نه پرلازميږي او گناه يې پر پاته ده او که يو حاجي طواف زيارت پرېښودی او يا يې اکثره طواف پرېښود او لږ يې وکړی او خپل وطن ته ولاړی نو بيا حتماً پر واجب دی راگرځيدل چي طواف به کوي په اتفاق سره د ټوله علماؤ او په دغه زاړه احرام کي به طواف زيارت کوي بدل يې صحت نه لري ځکه ده رکن د حج پري اينبی دی پر ځای يې هيڅ شی نه دريږي او د ښځو ځخه اوس هم بند دی ځکه دی په احرام کي دی او بل د عمرې احرام هم نه ورياندي صحيح کيږي چي د ميقات ځخه د عمرې احرام راوړي.

او که چيري يو سړي دويم وار په پاکۍ کي طواف زيارت وکړی او اول يې په جنابت

کي کړی وو نو د ده اصلي طواف هغه اول دی دا دویم د پاکۍ طواف یې صرف جبیره ده ځکه نقصان ورځخه سوی دی د واجب عمل په پرېښودولو کي او دغه ته کرخي هم تګ کړی دی او صاحب د ایضاح یې تائید کړی دی ځکه چي شک نسته چي اصلي د اعتبار طواف یې اول دی همدا وجه ده چي د ښځي سره وطي ورته روا وي په اتفاق سره د علماؤ او کرخي دا دلیل ویلی دی که یو شخص په رمضان کي د عمرې طواف په جنابت یا بې اودسۍ کي وکړی او بیا یې د حج په میاشتو کي راوګرځوی دغه حاجي متمتع نه بلل کیږي او ابوبکر رازي بیا وایي چي د جنب طواف کونکي دپاره دویم طواف معتبره دی اول طواف په دویم طواف فسخه سو او دا حکم شمس الائمه السرخسي صحیح بللی دی دلیل یې دا ویلی دی چي دغه طواف د اختر ورځو بعد په پاکي کي راوګرځوي دم پر لازمیږي اوس که دویم طواف لره اعتبار نه وای نو دم نه پر لازمېدی لکه اول طواف چي د اختر تر ورځو بعد وکړي دم نه پر لازمیږي نو معلومه سوه چي جبیره یې دویم طواف دی کرماني وایي چي اول مذهب نژدې علم ته دی ابن الهمام وایي د کرخي مذهب غوره دی بحر زاخر وایي چي د دواړو مذهبو ثمره داسي راوزي چي پر اول مذهب چي اول طواف د جنابت ته اعتبار ورکوي نو د سعي راګرځېدل نه دی پر واجب او پر دویم مذهب سعیه پر واجب ده ملا علي القاري وایي چي د اول مذهب تائید دا مسئله کوي چي را و نه ګرځي او اوبش حرم ته را ولېږي نه سعیه پر سته او نه یې دم پر سته په اتفاق سره د علماؤ او که یې طواف زیارت ټوله یا اکثره په بې اودسۍ سره وکړی پسه پر لازمیږي او د طواف راګرځېدل ورته مستحب کار دی ترڅو چي په مکه کي وي که یې را وګرځوی هیڅ شی نسته وربانديي برابره خبره ده چي د اختر په ورځو کي یې راګرځوی او که بعد تر اختر ځکه نقصان یې لږ دی او قیل ویلي دي چي راګرځېدل یې ضرور کار دی او دم د ځنډېدو په وجه پر لازمیږي او بل قیل وایي چي خیرات پر لازمیږي د هر شوط دپاره لکه خلاصة الفتاوٰی او قاضیخان وغیره چي حکم کړی دی او که یو حاجي لږ طواف په بې اودسۍ وکړی نو د هر شوط په عوض کي نیم من غنم خیرات پر لازمیږي په اتفاق سره د علماؤ لکه په بحر زاخر کي چي راغلي دي.او د طواف راګرځېدل ورځخه ساقط سو په اجماع سره د علماؤ لیکن الوبري ویلي دي که یې لږ طوافونه په بې اودسۍ سره وکړه او بیا یې د اختر تر ورځو بعد هم راوګرځول لا خیرات د هر شوط نه ورځخه ساقطیږي په نزد د امام اعظم رحمه الله او که چیري یو حاجي د طواف زیارت ځخه لږ شوطونه پرېښودل مثلا درې شوطه یا کم تر دغه او یا یې ټوله طواف په سپرتیا سره وکړی او یا د بل په شا وو او یا یې په خاپوړو یا په ځکېدو یې وکړی او یا یې په لڅه سره وکړی بې له عذره او یا یې سر لاندي پښې یې لوړي وې طواف یې وکړی او یا یې په

حطیم شریف کي دننه وکړي نو دم پر لازمیږي خیرات یې جواز نه لري که یې را و نه ګرځوی او که یې راوګرځوی بیا دم هم ورڅخه ساقط سو او که خپل وطن ته ولاړی پسه یې حرم ته را ولیږی جواز لري معنا راګرځیدل ورباندي نسته او که چیري بیر ته راګرځیدی نو نوی احرام پر واجب دی چي تر میقات را تیریږي الحاوي فتاوا وایي چي سر لاندي پښي پر باندي طواف مکروه دی او شی همورباندي نسته نو دا مذهب د جمهورو علماؤ څخه مخالفت دی کرماني وایي شاید دا د کاتب څخه سهوه سوې وي او که یو کس عذر درلودی نو یې طواف په سپرتیا یا د بل په شا یا په څکېدلو وکړي چي مریض یا بوډا یا لېونی وو یا شل یا فلج وو بیا نه دم او نه خیرات پر لازمیږي او که یو شخص طواف زیارت د اختر تر ورځو وځنډوی تول یا اکثره نو د امام اعظم رحمه الله پر مذهب دم پر لازمیږي او که یې لږ وځنډوی خیرات پر لازمیږي.

## فصل چي طواف زیارت یې په جنابت او طواف صدر یې په پاکۍ کي وکړي

و لو طاف للزیارت جنبا و طاف للصدر طاهرا فان طاف للصدر فی ایام النحر فعلیه دم لترک الصدر و لانه انتقل الی الزیارة و ان طاف للزیارت ثانیا و ان طاف للصدر بعد ایام النحر فعلیه دمان دم لترک الصدر و دم لتاخیر الزیارة و ان طاف للزیارت محدثا و للصدر طاهرا فان حصل الصدر فی ایام النحر انتقل الی الزیارت ثم ان طاف للصدر ثانیا فلا شئ علیه و الا فعلیه دم لترکه و ان حصل الصدر لا ینتقل الیها و علیه دم لطواف الزیارت محدثا و لو طاف للزیارت محدثا و للصدر جنبا فعلیه دمان و لو ترک من طواف الزیارت اکثره فطاف للصدر کمل منه طواف الزیارت و علیه دمان دم لتاخیر الزیارت و دم لترک اکثر الصدر و ان طاف لکل واحد منهما اقل یکمل طواف الزیارت من طواف الصدر ثم ینظر فی الباقی من الزیارة ان کان اکثره فعلیه اتمامه فرضا و لا ینوب عنه دم و علیه دم لتاخیره و ان کان الباقی من الزیارة اقله فعلیه دم لترک الاقل منه و صدقة لتاخیره و علیه دم لترک الصدر.

متن و بعده ترجمه و شرح ملا علي القاري

که چیري یو حاجي طواف زیارت په حال د جنابت کي او طواف صدر په پاکۍ کي وکړي او طواف صدر یې هم په ورځو د اختر کي وو دم پر لازمیږي ځکه د ده د اختر د ورځو طواف و طواف زیارت ته نقل سو او طواف صدر وځنډېدی لهذا دم پر لازمیږي طواف صدر معنا طواف رخصت ځکه طواف رخصت و طواف زیارت ته نقل کیږي یو خو قوي دی او بل یې اول نمبر د ده دی او که یې په دغه د اختر په ورځو کي طواف زیارت هم وکړي

بیا نو هیڅ شی وربانديې نسته او که یې د اختر تر ورځو بعد طواف رخصت وکړی بیا نو دوه دمه پر لازمیږي یو د طواف رخصت د پرېښولو دی ولې چې هغه د اختر د ورځو طواف رخصت د طواف زیارت دپاره سو او بل دم د طواف زیارت د ځنډېدو دی دا مذهب د امام اعظم رحمه الله دی او ابو یوسف رحمه الله او امام محمد رحمه الله وايي یو دم پر لازمیږي د طواف رخصت د پرېښولو او د ځنډ دپاره دوی دم لازم نه بولي او که یې طواف رخصت دویم وار وکړی دم ورڅخه ساقط سو همدا رنګه که یې نفلي طواف وکړی هم دم ورڅخه ساقطیږي ځکه نفلي و واجب ته نقل کیږي او که چیري یې طواف زیارت په بې اودسۍ سره وکړی او طواف رخصت یې په اوداسه کي وکړی نو که چیري یې طواف رخصت د اختر په ورځو کي وکړی و طواف زیارت ته نقل کیږي دا طواف نو اوس که یې بل طواف د رخصت دپاره وکړی شی نه پر لازمیږي او که په دغه ورځو کي نفلي طواف وکړي هم شی نه پر لازمیږي او که یې دویم طواف د اختر په ورځو کي و نه کړی دم پر لازمیږي د طواف رخصت د پاته کېدو په وجه سره په اتفاق د علماؤ ځکه دا طواف واجب دی په اتفاق سره د علماؤ او که یې طواف رخصت د اختر تر ورځو وځنډوی بیا نو و طواف زیارت ته نقل کیږي دم پر لازم دی په اتفاق سره د علماوو.

ارشاد الساري یې دلیل دا ذکر کړی دی چي اوس یې نقل کول فایده نه لري د امام اعظم رحمه الله پر مذهب او دم پر لازم دی د طواف زیارت په بې اودسۍ سره د کولو او ابو یوسف او محمد رحمه الله وايي اوس هم د رخصت طواف و طواف زیارت ته نقل کیږي ځکه په نقل کي یې فایده دا ده چي دم ورڅخه ساقطیږي الخ او که چیري یې طواف صدر د اختر تر ورځو بعد وکړی نو بیا و طواف زیارت ته نه نقل کیږي او دم پر لازمیږي ځکه طواف زیارت یې په بې اودسۍ سره کړی دی فرق په مابین کي د دې چي طواف زیارت په جنابت او یا په بې اودسۍ سره وکړي دا دی چي په جنابت سره طواف زیارت وکړي نو د طواف رخصت طواف ور نقل کیږي د طواف رخصت په ځنډېدو سره دم پر لازمیږي په اتفاق سره او په ځنډولو سره د طواف زیارت هم بل دم پر لازمیږي او بل طواف رخصت چي پر ځای د طواف زیارت وګرځي بله فایده هم لري هغه دا ده چي د حاجي ښځه اوښ هم ساقط سو او په دا بله وجه کي چي طواف زیارت په بې اودسۍ وکړي طواف رخصت و طواف زیارت ته نه ورنقل کیږي ځکه د طواف زیارت په کولو سره په بې اودسۍ سره تنها دم لازمیږي په اتفاق سره د علماؤ نه په ځنډ سره د طواف زیارت همدا رنګه ډېرو علماؤ حکم کړی دی.

او که یو حاجي طواف زیارت په بې اودسۍ سره او طواف رخصت په جنابت سره وکړی بیا دوه دمه پر لازمیږي یو د طواف زیارت په بې اودسۍ سره او بل طواف رخصت په

جنابت سره همدا مسئله په قاضیخان کي راغلي ده او که یو حاجي د طواف زیارت اکثره شوطونه پرېښودل او طواف رخصت يې پوره کړی نو د طواف رخصت په شوطو سره طواف زیارت پوره کیږي نقصان د شوطو و طواف رخصت ته متوجه کیږي لهذا دوه دمه پر لازمیږي په اتفاق سره د علماؤ یو دم د وجهي څخه د طواف زیارت د ځنډ دی او بل دم د طواف رخصت د نقصان یا پاتېدو په وجه دی که اکثره کمیدل او که لږ کمیدل بیا خیرات پر لازمیږي د هر شوط دپاره مګر که يې خیرات و دم رسېدی بیا به یو څه ورڅخه کموي لکه دا مسئله چي په کراتو تېره سوې ده حاصل دا دی چي طواف زیارت هلته ځنډیږي چي طواف رخصت وکړي او که يې طواف رخصت کوی شوطونه يې و طواف زیارت ته نقل کیږي.

هو الحبیب الذی ترجی شفاعته

لکل هول من الاهوال مقتحم

## فصل ښځه چي د اختر په ورځو کي د حیض څخه پاکه سي

حائض طهرت فی اخر ایام النحر و یمکنها طواف الزیارة کله او اکثره و هو اربعة اشواط قبل الغروب فلم تطف فعلیها دم للتاخیر و ان امکنها اقله فلم تطف لا شئ علیه و لو حاضت فی وقت تقدر علی ان تطوف علیه اربعه اشواط فلم تطف لزمها دم التاخیر و لو حاضت فی وقت تقدر علی اقل من ذلک لم یلزمها شئ فقولهم لا شئ علی حائض لتاخیر الطواف مقید بما اذا حاضت فی وقت لم تقدر علی اکثر الطواف او حضت قبل ایام النحر و لم تطهر الا بعد مضی ایام النحر و لو انقطع دمها بدوا اولا او لم ینقطع فاغتسلت اولا و طافت ثم عاد دمها ان تعیده طاهرة.

متن و بعده ترجمه و شرح ملا علي القاري

که چیري حیضه ښځه د اختر په ورځو کي د حیض څخه پاکه سوه او لږ زمانه پاته وه چي امکان د طواف زیارت د ټوله یا د اکثره په کښبي وو چي کړي يې وای څلور شوطه تر لوېدو د لمر دمخه او دي طواف و نه کړی نو دم د ځنډ پر لازمیږي او که يې څلور شوطه نه سوه په کښبي کولای بیا نو هیڅ شی نه پر لازمیږي لیکن افضله او علاوه دا ده چي واجب وربانديِ دونه طواف دی چي امکان ورته لري او کولای چي څونه سي څکه قانون دا دی چي ټوله نه سي نیولای نو بیا دي ټوله هم نه پرېږدي لهذا ارشاد الساري لیکلي که يې د لږ طواف وخت درلودی او وه يې نه کړی نو ظاهره ده چي خیرات پرو اجب سي د هر شوط دپاره نیم من غنم په قندهاري کاني سره څکه ده ځنډ په کښبي وکړی بې له عذره څخه لکه دا مسئله چي تېره سوې ده والله اعلم.

او که ښځي لره دونه زمانه وه چي طواف يې کولای سو د دې د حيض تر وخته پوري او دې طواف و نه کړی مخکي تر حيض دم پر لازميږي د ځنډولو په وجه سره او که ښځه د حيض ځخه پاکه سوه دونه وخت وو چي لږ طواف يې کولای سو نو هيڅ شی نه پر لازميږي اګر که قياس وايي چي خيرات دي پر واجب سي نو هرکله چي تا دا تفصيل واورېدی نو دا قول د علماؤ چي مجمل دی چي شی نه پر لازميږي پر حيضي او نفاسي د طواف زيارت د ځنډ په وجه سره لکه په فتاوا سراجيه کي چي راغلي دي او وغيره کتابو کي دا قول مقيد دی په هغه حيضي ښځي پوري چي دا په داسي وخت کي دا د حيضه ځخه پاکه سي چي قدرت پر طواف نه لري او يا تر دمځه دونه قدري وخت وي چي د طواف قدرت نه په کښې لري او که د اختر په شپو کي حيضه سوه او بيا هغه وخت د حيض ځخه پاکه سوه چي د اختر ورځي تيري سوې ټولي نو حاصل چي بحر زاخر راجمع کړی دی دا دی چي هرکله ښځه حيضه يا نفاسه سوه مخکي د اختر تر ورځو او پاکه سوه د مرض ځخه هغه زمانه چي د اختر ورځي تيري سوي وې بيا نو پر دغه ښځه هيڅ شی نه لازميږي او که د اختر د ورځو په مابين کي حيض ورته پېښ سو بيا دم ځکه پر لازميږي چي دې وخت د طواف پيدا کړی ولي يې نه کوی او د ابو يوسف رحمه الله د قول ځخه همدغسي معلوميږي.

که يو ښځي د حيض وينه په دوا سره ودروله او يا يې له دوا ودرېده او يا يې هيڅ وينه و نه درېده خو غسل يې وکړی يا يې غسل هم و نه کړی او طواف يې وکړی وروسته يې وينه د عادت موافق شروع سوه نو طواف يې صحت لري مګر دم پر لازم دی اوبس او ګناهګاره هم ده په دوې وجهي سره يو خو دا چي په مرض کي و مسجد ته داخله سوه او دا ورځخه منع وه او بل دا چي دې طواف وکړی په داسي وخت کي چي ورځخه منع وو او پر دې لازمه ده چي هر وخت پاکه سوه طواف زيارت به راګرځوي او که يې طواف زيارت راوګرځوی بيا نو اوبس ورباندي نسته چي حلالوي به يې او توبه پر واجب ده د ګناه په وجه سره اګر که اوبس هم حلال کړي.

## فصل په طواف رخصت کي جنايت کول

و من ترک طواف الصدر کله او اکثره فعليه شاة و ما دام في مکة يومر بان يطوفه و ان ترک ثلاثة اشواط منه فعليه لکل شوط صدقة و لو طافه جنبا فعليه شاة و ان طافه محدثا فعليه صدقة لکل شوط.

متن و بعده ترجمه و شرح ملا علي القاري

او که چيري يې طواف رخصت ټوله يا اکثره طوافونه پرېښول د واجب د پرېښولو په وجه پسه حلالول پر لازم دی ليکن ترڅو چي په مکه کي وي په طواف کولو دي امر سي

دلته دونه خبره د یادولو وړ ده چې په مکه کې وني نو پر ده دا خبره نه صادقیږي چې طواف زيارت ورڅخه پاته سو او که درې شوطه طواف ورڅخه پاته سو بیا نو د هر شوط دپاره نیم من غنم خیرات کول پر لازم دی چې شپږو مسکینانو ته به نیم نیم من غنم ورکوي او که بې طواف رخصت په جنابت کې وکړی بیا دم پر لازمیږي پسه لکه په هدایه الکافي المجمع او تصحیح بې خزانة الاکمل کړې ده وغیره کتابو او طرابلسي او شارح د هدایې په روایت د ابي حفص الکبیر کې ویلي دي چې خیرات پر لازم دی همدا رنګه صاحب د مبسوط ذکر کړي دي چې دلیل یې دا دی د جُنُب طواف هم قابل اعتبار دی نو په سبب د جنابت سره چې طواف وکړي دا هغه شی نه واجبوي کوم چې بې نه کول واجبوي او که حاجي په بې اودسی سره طواف رخصت وکړي نو د هر شوط دپاره خیرات پر لازمیږي او په محیط کتاب کې لیکلي دي چې په جنابت سره طواف رخصت وکړي پسه پر لازمیږي همدا رنګه چې په بې اودسی سره طواف رخصت وکړي پسه پر لازمیږي په روایت د ابي حفص سره او په روایت د ابي سلیمان کې بیا خیرات پر لازمیږي ځکه د بې اودسی نقصان لږ دی نو جزا به یې هم تر دم کمه وي او په بدائع کې وایي که بې په جنابت کې طواف وکړی پسه پر لازمیږي او که بې په بې اودسی سره وکړی بیا دلته دوه روایته دي د امام اعظم رحمه الله څخه په یوه روایت کې خیرات پر لازمیږي په بل روایت کې پسه پر لازمیږي لیکن اول روایت صحیح دی او د محمد او ابو یوسف رحمهما الله همدغه مذهب دی او که بې طواف راوګرځاوی بیا هیڅ شی نه پر لازمیږي او په ځنډ سره هم هیڅ شی نه پر لازمیږي په اتفاق سره د علماؤ همدا رنګه مشهوره روایتونه راغلي دي او په المفید کې راغلي دي چې په ځنډ سره هم پسه پر لازمیږي او صحیح دا ده چې نه پر لازمیږي علاوه دا ده چې د طواف رخصت دپاره ځنډ نه متصور کیږي ځکه وخت یې نه دی معلوم هر وخت چې روانیدی هغه وخت ادا کیږي او د ده ځنډ صرف په پرېښنولو کې معلومیږي.

## فصل په طواف قدوم کې جنایت

و لو طاف للقدوم جنبا فعليه دم على ما قاله وقيل صدقة و لو طافه محدثا فعنه صدقة لكل شوط نصف صاع من بر الا ان يبلغ ذلك دما فينقص منه ما شاء و لو تركه طاهرا و في الجناية او الحدث سقط عنه الجزاء و حكم كل طواف تطوع كحكم طواف القدوم.

متن و بعده ترجمه و شرح ملا علي القاري

که یو حاجي طواف قدوم ټوله یا اکثره په جنابت کې وکړی دم پر لازمیږي لکه څنګه چې قول بعضي مشائخو د عراق کړی دی او صدر الشریعت هم دا قول مختاره کړی دی او قیل وایي خیرات پر لازمیږي لکه دا قول بیا صاحب د العنایې کړی دی او ظاهره هم

خيرات دی پر هغه چا چي طواف قدوم په جنابت سره وکړي او حق دا وه چي مصنف هم ويلي وای چي خيرات پر لازميږي او بل قيل ويلي دي چي هيڅ شی نه پر لازميږي ځکه مبسوط د شيخ الاسلام او شرح الطحاوي وايي چي طواف تحيې لره شی نسته که يې په بې اودسی سره وکړی که په جنابت سره او مثل د دغه عبارت الطحاوي په بې اودسی کي هم کړی دی او که يې په بې اودسی سره طواف قدوم وکړی خيرات پر لازميږي لکه عامو کتابو چي دا مسئله را اخيستې ده او محمد رحمه الله تصريح هم په کړې ده او قدوري هم مختاره کړې ده او صاحب د هدايې وغيره کتابو هم دغه قول ته ميلان کړی دی چي د هر شوط دپاره به نيم من غنم په قندهاري کاني و مسکين ته ورکوي که چيري تيوله و دم ته نه رسېدل او که رسېدل بيا دي نيم من ورڅخه کم کړي حکم د هر نفلي طواف داسي دی لکه د طواف قدوم حکم چي اوس درته تېر سو په بدائع کې د محمد رحمه الله څخه روايت دی چي نفلي طواف څوک کوي پر داسي طريقه چي يا جنب يا بې اودسه وي نو غوره دا ده چي بيرته يې راوگرځوي ترڅو چي په مکه کې وي او که خپل کور ته ولاړی بيا خيرات پر لازم دی بغير د هغه شخص څخه چي طواف کوي کالي يې مردار وي انتهی.

معنا دا سوه چي هيڅ شی نه پر لازميږي ځکه پاکي د کالو خو سنت ده نو طواف يې مکروه دی او شی نه پر لازميږي او کوم چي په بعضي نسخو کي د الکبير راغلي دي که يې شروع وکړه په طواف قدوم يا نفلي طواف کي تمام يې پر واجب دی او که بعضي ورڅخه پاته سوه تصريح نه ده راته معلومه نو مناسب دا ده چي حکم يې داسي سي لکه د طواف قدوم ځکه دی په شروع سره لازميږي ځکه طواف صدر واجب دی په اصل کي نو ملا علي القاري وايي دا نفلي طواف نو موږ څنگه پر واجب طواف قياس کړو ظاهره دا ده چي نظير يې نفلي لمونځ يا روژه ده چي تمام يې پر واجب دی او پر پرېښولو سره يې شی نه لازميږي بغير د توبې څخه.

ارشاد الساري په خپله حاشيه کي پر ملا علي القاري تنقيد کړی دی چي ستا فرق لره تاثير نسته ځکه چي په نفلي عبادت کي لکه لمونځ په واجباتو يې راتگ واجب دی که ورڅخه پاته سي اعاده پرلازمه ده او يا هغه شی چي جبيره د واجب په کيږي لکه واجب لمونځ چي د اول څخه پر واجب وي او دلته هم دغسي مسئله ده که يې لږ د طوافو څخه پرېښودل خيرات پر لازم دی او که يې ډېر پرېښودل دم پر لازم دی ځکه جبيره کونکي لره د واجب په طواف کي داسي مثال دی لکه په لمانځه کي سجده سهوه چي د نفلي لمانځه د واجب جبيره جوړيږي او کوم چي په طواف قدوم کي څنگه حکم دی په نفلي طواف کي هم دغسي حکم دی که يې لږ طواف په بې اودسی وکړی خيرات پر لازميږي او دا قول

مختاره قول دی په طواف قدوم کي.

## فصل د عمرې په طواف کي جنايت کول

و لو طاف للعمرة كله او اكثره او اقله و لو شوطا جنبا او حائضا او نفساء او محدثا فعليه شاة و لا فرق فيه بين الكثير و القليل والجنب والمحدث لانه لا مدخل في طواف العمرة للبدنة و لا للصدقة بخلاف طواف الزيارة و كذا لو ترک منه اقله و لو شوطا فعليه دم و ان اعاده سقط عنه الدم و لو ترک كله او اكثره فعليه ان يطوف حتما و لا يجزئ عنه البدل اصلا و لو طاف القارن طوافين للعمرة و القدوم و سعى سعيين محدثا اعاد طواف العمرة قبل يوم النحر و لا شئ عليه و ان لم يعد حتى طلع فجر يوم النحر لزمه دم لطواف العمرة محدثا و قد فات وقت القضاء و يعيد الرمل في الطواف الزيارت استحبابا و ان لم يعدهما فلا شئ عليه في الحدث و في الجنابة ان لم يعد السعي فعليه دم و لو طاف للعمرة محدثا و سعى بعده فعليه دم ان لم يعد الطواف و رجع الى اهله و ليس عليه شئ بترک اعادة السعي و لو اعاد الطواف ولم يعد السعي لا شئ عليه و قيل يجب عليه دم لترک اعادة السعي فيما اذا اعاد الطواف.

متن و بعده ترجمه و شرح ملا علي القاري

که چيري يو حاجي د عمرې ټوله يا اکثره يا لږ يا يو شوط طواف په حالت د جنابت او يا دحيض يا د نفاس يا په بې اودسۍ کي وکړی نو په دغه ټوله مسئلو کي پسه په هر حال پر لازميږي د عمرې په طواف کي د لږ او ډېر فرق نسته همدا رنګه د جنابت او بې اودسۍ فرق نسته ځکه په طواف د عمرې کي په هيڅ حال کي اوښ نه لازميږي دليل يې دا دی چي هيڅ روايت نه دی په کتبي وارد سوی او نه هم د خيرات څه دليل راغلی دی والله اعلم.

ارشاد الساري په حاشيه کي ليکلي دي چي دا عبارت د العلامة ابن نجيم الدين دی د بحر د عبارت څخه مخالف دی هغه تصريح کړې ده چي طواف د عمرې ټوله او اکثره سره برابر دي په حکم کي که چيري يې په بې اودسۍ سره طواف وکړی د هر شوط دپاره نيم من غنم خيرات پر لازميږي مګر که د خيرات غنم په دونه اندازه کېدله چي پسه پر را نيول کېدی بيا دي د خيرات د غنمو څخه نيم من غنم کم کړي نو د دغه عبارت څخه معلوم سوه چي د عمرې په طواف کي خيرات سته او مثل د دغه عبارت په السراج الوهاج کي هم راغلي دي او ردمحتار ورته بل قول مغاير ويلي دي تعليق الشيخ عبدالحق او د طواف زيارت حکم جلا دی ځکه د هغه په پرېښولو سره اوښ لازميږي دا خبره په حديث سره ثابت سوې ده نو اصل و ځان ته لري في الجمله چي صلاحيت د دليل لري د عمرې د طواف دا حکم دی چي لږ طواف اګر چي يو شوط ورځخه پاته سي دم پر لازميږي او که يې بيرته هغه

لږ طوافونه راوګرځول بیا نو دم هم ورڅخه ساقط سو او که تېوله یا اکثره طوافونه ورڅخه پاته سوي وه بیا نو پر واجب ده چي طوافونه بېرته راوګرځوي او د طوافو پر ځای بل بدل نه لري ځکه دغه طواف د عمرې اصلي رکن او فرض دی او که حاجي قارن دوه طوافونه او دوې سعي وکړي په بې اودسی سره نو د اختر تر ورځي به لازمي د عمرې طواف راګرځوي او شی نه پر لازمیږي او که یې د عمرې طواف را و نه ګرځوی ورځ وربانديي د اختر سوه نو بیا دم پر لازمیږي د عمرې د طواف چي ده په بې اودسی. کي کړی وو او اوس د قضا وخت هم ورڅخه تېر سو چي خپله ادا په کامله کړي او د اوړو بنورول به په طواف زیارت کي بېرته راګرځوي ځکه د ده طواف قدوم په بې اودسی. سره سوی دی او تر طواف زیارت بعد به سعیه هم کوي نو هیڅ شی نه پر لازمیږي چي په بې اودسی. کي یې دا اعمال کړي وي او که په جنابت کي ورڅخه سوي وي او سعیه هم را و نه ګرځوي دم پر لازمیږي او محمد رحمه الله وایي چي راګرځیدل د طواف قدوم نسته ځکه دا سنت دی او راګرځیدل یې غوره کار دی او په مبسوط کي راغلي دي چي واجب نه دی چي د عمرې طواف راوګرځوي او که یې راوګرځوی فضیلت لري او دم په هر حال که یې راوګرځوی او که یې را و نه ګرځوی طواف واجب دی ځکه تر عرفات بعد د عمرې طواف اعتبار نه لري نو هغه اول یې اعتبار لري که ناقص دی دم پر لازمیږي د امام اعظم رحمه الله او ابو یوسف رحمه الله څخه قول نه دی په کتبي نقل سوی او قیل وایي چي د دوی مبارکانو قول دا دی چي مناسب ورلره دا ده چي طواف راوګرځوي د پاکی په حالت کي بیا نو دم پر لازمیږي ځکه د عمرې د طواف نقصان بیا تر عرفات بعد په بل طواف سره رفع کیږي او صحت لري لهذا که یې طواف راوګرځوی دم نه پر لازمیږي او که یو کس د عمرې طواف او سعیه دواړه په بې اودسی. سره وکړه نو دم پر لازمیږي که ولاړل خپل کور ته او طواف یې را و نه ګرځیدی ځکه دم پر لازمیږي چي طواف یې په بې اودسی. سره کړی دی او ترڅو پوري چي په مکه کي وي بېرته راګرځول یې پر لازم دی ځکه نقصان د طواف په سعي کي هم بد اثر کوي او که یې سعیه را و نه ګرځول هیڅ شی نه پر لازمیږي که یې طواف را و نه ګرځوی په اتفاق سره او قیل وایي چي سعیه ورڅخه پاته سوه او طواف یې هم را وګرځوی لا دم پر لازمیږي او دغه قول ته ډېرو شارحینو تګ کړی دی شارحین د جامع الصغیر او قاضي خان او تمرتاشي او الحسامي او الفوائد الظهیریة بنا پر دې چي طواف اول په دویم طواف سره فسخ کیږي او که فسخ نه سي نو بیا خو دواړه فرض ګرځي او یا اول نو بیا دویم ته اعتبار نسته او د دې قول قائل نسته چي معتبر دویم دی او سعیه به تر طواف دمخه سي نو اعتبار نه لري نو واجب دم دی که ورڅخه پاته سو صحیح قول دا دی چي فرض اول دی او دویم قابل د اعتبار دی نو اوس تېول اقول

صحیح سول قابل غور سول. واللہ اعلم.

## فصل كه فرضي يا نفلي طواف په مردار بدن يا كالي كي وكړي

و لو طاف فرضا او واجبا او نفلا و علیه نجاسة اكثر من قدر الدرهم كره و لا شئ علیه و قیل علیه دم الا اذا كان قدر ما یواری عورته طاهرا و الباقی نجسا فلا شئ علیه و لو طاف فرضا او نفلا علی وجه یوجب النقصان فعلیه الجزاء. و ان اعاده سقط عنه الجزا فی الوجوه كلها و الاعادة افضل من اداء الجزاء. و لو رجع الی اهله فعلیه العود او بعث الجزاء. و كل طواف یجب فی كله دم ففی اكثره دم و فی اقله صدقة الا فی طواف العمرة فان كثیره و قلیله سواء.

متن و بعده ترجمه و شرح ملا علي القاري

او كه يې فرضي طواف لكه دوه ركنه او يا واجب طواف صدر يا د نذر طواف او يا نفلي وو لكه د قدوم طواف يا د تحيې طواف يا د تطوع طواف په داسي بدن يا كالو كي وكړي چي تر مقدار د يوه درهم زيات مردار وو نو دا كار د ده مكروه دی ځكه ده سنت عمل پرېښود چي پاكي د بدن او كالو ده او شی هم نه پر لازميږي نه دم او نه خيرات او دا قول د عامو علماؤ دی او دا مؤافق د ظاهره روايت سره دی لكه په بدائع كي چي يې دغسي تصريح كړې ده او په غيره كتابو كي چي ځان پاكول د مرداري ځخه واجب نه دی نو شی هم نه پر لازميږي او كوم چي په مناسك الفارسي كي راغلي دي چي استعمال د نجاست تر مقدار د يوه درهم زيات مكروه دی او كم نه دی مكروه دا قول محل د بحث دی ځكه ظاهره خو كراهت دی مطلقا خو په كراهت كي درجې دي په اندازه د ډېروالی او لږوالی د نجاست او زموږ دا قول منافات د دې سره هم نه لري چي كم تر مقدار د درهم عفوه دی ځكه ځان را ايستل د موضع ځخه د خلاف مستحب كار دی په اجماع سره د علماؤ او مسئله مختلف فيه ده او د اختلاف ځخه ځان ايستل مستحب عمل دی او پرېښول د مستحب مكروه تنزيهي دی او خلاف د اولی دی او مخالف د احتياط دی او قيل ويلي دي چي دم پر لازميږي په ټوله حالاتو كي مگر نه لازميږي په هغه صورت كي چي د عورت ځايونه د كالو يې پاک وي باقي يې مردار وي بيا نو هيڅ شی نه پر لازميږي او په المرغيناني كي راغلي دي چي طواف زيارت په داسي كالو كي وكړي چي ټوله مردار وه دغه او په لږه سره طواف كول سره برابر دی او كه يې د كالو ځخه دونه قدر اندازه پاک وه چي عورت يې په پټ وو او باقي يې مردار وه نو بيا يې طواف جواز لري او شی هم نه پر لازميږي او په النخبة كتاب كي راغلي دي چي طواف زيارت په نجسو كالو كي وكړي نو دا او لږ طواف سره

برابر دی نو دا طواف به راګرځوي ترڅو چي په مکه کې وي او دم نه پر لازمیږي او که د مکې څخه ولاړی هغه اشخاص چي په لڅه یې یا په نجسو کالو کي طواف وکړی نو دم پر لازمیږي انتهي او دا مسئله چي په لڅه سره په طواف کېده او په نجسو کالو کي د جمهورو علماؤ څخه مخالف قول دی او الامام ابن الهمام ویلي دي کوم حکم چي یې دا کړی دی چي کالي یې ټوله مردار وي او طواف په کښي وکړي دم پر لازمیږي دا قول هیڅ اصل نه لري په روایت کي او که یو کس دونه عورت لڅ کړی وو چي لمونځ صحت نه درلودی په کښي چي څلورمه د اندام ده بیا جواز لري طواف یې لیکن دم پر لازمیږي او که یې طواف نفلي وو خیرات پر لازمیږي او که یې یقیني او یا ظني فرض طواف او یا نفلي او سنت او تطوع طواف پر ناقصه طریقه وکړی دم پر لازمیږي یا خیرات پر لازمیږي او که یې طواف راوګرځوی بیا نو دم او خیرات ورڅخه ساقطیږي په اتفاق سره د علماؤ او راګرځیدل یې پر غوره کار دی ترڅو چي په مکه کي وي څکه جبیره کول په خپل جنس سره غوره کار دی او که ولاړی خپل وطن ته بیا لازم وربانديي بیرته راتګ دی او یا به دم ورته راولیږي که دم پر لازم وو او که خیرات پر لازم وو خیرات به رالیږي او دلته بیا نفع د مسکینانو ده دا عمل غوره کار دی په هر هغه طواف کي چي پر ټوله دم لازم کېدی پر اکثره یې هم دم لازمیږي څکه د اکثر حکم د ټول دی او په کم او لږ طواف کي بیا خیرات لازمیږي څکه جنایت کم دی صرف د عمرې د طواف حکم مخالف دی چي په ټوله او په لږ کي یې دم لازمیږي هیڅ فرق نه لري څکه لږ او ډېر سره برابر دي.

## فصل که د طواف دوه رکعته لمونځ ورڅخه پاته سو

و لو ترک رکعتي الطواف لا شئ علیه و لا تسقطان عنه و علیه ان یصلیها و لو بعد سنین.

متن و بعده ملا علي القاري

که د حاجي څخه د طواف دوه رکعته لمونځ پاته سو هیڅ یې په حرم کي و نه کړی نو شی خو نه پر لازمیږي لیکن ورڅخه ساقطیږي هم نه اګر که د حرم شریف څخه ووزي او یا د حج میاشتي ووزي او پر ده لازم ده چي ادا یې کړي هر ځای چي یې خوښه وي هلته دي ادا کړي اګر که ډېر کلونه پس وي مګر ځنډول یې مکروه عمل دی او آفت دی څکه په قرآن کي الله تعالی فرمایلي دي:

فاستبقوا الخیرات. البقره ۱۴۸

معنا تاسي د خیر په کارو کي تلوار کوئ.

## فصل که په سعیه کي جنايت ورڅخه وسي

و لو ترک السعي كله او اكثره فعليه دم و حجه تام و ان تركه لعذر فلا شئ عليه و لو ترک منه ثلاثة اشواط او اقل فعليه لكل شوط صدقة الا ان يبلغ ذلک دما فله الخيار بين الدم و تنقيص الصدقة و لو سعى كله او اكثره راكبا او محمولا بلا عذر فعليه دم و ان كان بعذر فلا شئ عليه و ان سعى اقله راكبا بلا عذر فعليه صدقة و لو سعى قبل الطواف لم يعتد به فان لم يعده فعليه دم و لو ترک السعي و رجع الى اهله فاراد العود يعود باحرام جديد و اذا اعاده سقط الدم و لو ترک السعي لعذر كالزمن اذا لم يجد من يحمله فلا شئ عليه و لو ترک الصعود على المروتين لا شئ عليه و لو اخر اسعي عن ايام النحر و لو شهورا لا شئ عليه و كذا الحكم فى سعي العمرة و لو سعى و لم يبلغ حد المروة مثلا و لكن يبقى الى ما بينه و بين المروة مقدار الثلث ثم يرجع الى الصفا يجزئه و عليه دم و لو طاف لحجته و واقع النساء ثم سعى بعد ذلک اجزاءه.

متن و بعده ترجمه و شرح ملا علي القاري

د سعي جنايات په دغه فصل کي درته ذکر کيږي که چيري يو حاجي ټوله سعيه يا اکثره پرېښوده دم پر لازم دی ځکه واجب عمل ورڅخه پاته سو او حج يې پوره او صحيح دی ليکن هغه لږ نقصان يې دم جبيره کوي مګر شافعي رحمه الله يې حج پوره نه بولي وجه يې دا ده چي شوافع سعيه د حج رکن او فرض بولي او که د صفا او مروا سعيه د عذر په وجه ورڅخه پاته سول بيا هيڅ شی نه پر لازميږي لکه نور واجبات چي د عذر په وجه ورڅخه پاته سي لکه صاحب د بدائع چي هم دغسي تصريح کړې ده او ابن الهمام د هدايې مطلق عبارت هم حمل کړی دی پر حال د عدم ضرورت چي معنا ضرورت و نه لري او که د حاجي څخه د سعي درې يا لا کم شوطونه پاته سوه بيا نو د هر شوط دپاره خيرات پر لازم دی مګر که يې خيرات د دم اندازې ته رسېدی بيا به يو څه ورڅخه کموي چي مقدار ئې نيم من غنم دي په قندهاري کانې سره او که يې ټوله يا اکثره شوطونه د سعي په سپرتيا سره وکړه يا يې د بل پر شا وو يې له عذره څخه دم پر لازميږي او که عذر وو بيا هيڅ شی نه پر لازميږي لکه‌مثلا شل چي د بل په شا سعيه وکړي اويا د شل څخه ګرسره پاته سي ځوک پيدا نه کړي هم شی نه پر لازميږي لکه په منسک السنجاري کي چي راغلي دي او که يې سعيه لږ شوطونه په سپرتيا يا د بل په شا وکړه بې له عذره څخه بيا نو د هر شوط دپاره خيرات پر لازم دی او که يې سعيه تر طواف دمخه وکړه دا سعيه نه ده شمار اعتبار نه لري او که يې دويم وار را و نه ګرځول دم پر لازميږي په اتفاق سره د علماؤ او که يې د سره څخه سعيه و نه کړه ولاړی وطن ته تر ميقاتو تېر سو نو که بيرته راګرځيدی احرام به نوی کوي ځکه هغه سعيه د حج چي تر

عرفات وروسته سي احرام په کښي شرط نه دی علاوه دا ده چي سنت نو ده لره دلته نه احرام دی همدا رنګه چي د عمرې دپاره طواف وکړي او سر وخريي نو اوس که سعيه کوي احرام نه دی ورته ضروري بلکه هلته ورلره شرط وو چي سر يې نه وای خرېلی او که د ميقاتو څخه يې احرام نوی راوړی نو اول به افعال د عمرې دمخه کوي چي طواف د بيت الله او سعيه د صفا ده باره به هغه پاته سوې سعيه د حج کوي او که د حج په ذوران کي راغلی د حج په احرام کي نو به اول طواف قدوم وکړي باره به هغه پاته سعيه وکړي او که يې سعيه راوګرځول دم ورڅخه ساقط سو او محمد رحمه الله په مبسوط کي ويلي دي چي وما ته دا خوند را کوي چي دم حلال کړي دپاره د نفعي د فقراؤ ملا علي القاري صاحب وايي چي د دنيا داره بياهم فايده دا ده چي ده په تکليف سره پيدا کړي وه خيرات يې کړه که يې سعيه اووه سره شوطه پوره کړه خو د صفا اصلي غونډۍ او د مروا اصلي غونډۍ معنا هغه اصلي مقام ته يې ځان ور و نه رسوی ورڅخه پاته سو شی خو نه پر لازميږي مګر عمل يې مکروه دی او که يو حاجي سعيه ډيري مياشتي وځنډول علاوه دا چي کلونه يې وځنډوي چي بيا يې وکړي هيڅ شی نه پر لازميږي مګر مکروه کار دی همدا رنګه د عمرې د سعي حکم دی او که يو حاجي د مروا او صفا تر مابين سعيه کوله مثلا دا منطقه فرض که دېرش ګزه وه د صفا او مروا تر مابين چي دی به د صفا څخه را روان سو شل ګزه چي به ولاړی او مروا ته به نژدې سو مګر بيرته به وګرځيدی حتی چي ټوله شوطونه يې پر دغسي طريقه وکړه جواز لري ځکه اکثره لره حکم د کُل دی او دم پر لازم دی ځکه هغه لږ ځای ورڅخه پاته دی همدا رنګه فارسي بيان کړي دي ليکن ظاهره دا ده چي خيرات پر لازم سي ځکه د پوره شوط په پرېښولو سره دم نه لازمېدی لهذا اوس دي هم دم نه سي پر لازم خيرات دي ورکړي او که يو حاجي طواف زيارت وکړی او د خپلي زوجې سره يې وطي وکړې باره يې سعيه د صفا وکړه هيڅ پروا نه لري.

فايده: د ربط دپاره ملا علي القاري رحمه الله دلته فصل ذکر کړی دی ترجمة الباب نه لري صرف يې دا خبره کړې ده چي د عرفات جنايات خو تېر سوه اوس په را روان بيان کي په ترتيب سره د جناياتو بيان د باقي شيانو کيږي. والسلام.

قلم گفت که من شاه جهانم　　قلم کش را به جنت ميرسانم

## فصل په مزدلفه کي جنايات

و لو ترک الوقوف بالمزدلفة بلا عذر لزمه دم و ان ترکه بعذر بان کانت به علة او ضعف او کانت امرأة تخاف الزحام فلا شئ عليه و لو ترک المبيت بها لم يلزمه شئ و لو فاته الوقوف بالحصار فعليه دم.

متن و بعده شرح ملا علي القاري

که پر مزدلفه و نه درېدی د اختر په سهار کي بې له عذره څخه دم پر لازمیږي او که د عذر په وجه ورڅخه پاته سو چي مریض وو یا ضعیفه وو او ښځه وه چي د لاري د تنگی په وجه یا د تکلیف په وجه سره ورڅخه پاته سو، هیڅ شی د دم او خیرات څخه نه پر لازمیږي او که د شپې تېر پر مزدلفه ورڅخه پاته سو مثلا ډېره حصه د شپې يې په کښي تېره کړه باره ولاړی هیڅ شی نه پر لازمیږي زموږ پر مذهب باندي ځکه زموږ د مذهب علماؤ په کتابو کي تصریحات کړي دي چي دلته شپه تېرول سنت عمل دی پرېښول يې مکروه کار دی بې له ضرورته څخه او په دغه مسئله کي اختلاف سته چي آیا یو لږ جز قدري پر مزدلفه درېدل په شپه کي واجب دی او که نه نو د امام اعظم رحمه الله مذهب دا دی چي واجب دی او که ورڅخه پاته سو شی نه پر لازمیږي انتهی.

ملا علي القاري رحمه الله وايي شاید وجه د وجوب يې جمعه د هغه دوو لمونځو وي پر مزدلفه باندي او د لمانځه خو د حج د افعالو سره تړون نسته همدا رنگه يې د شپې سره هم تړون نسته او که د مزدلفې درېدل ورڅخه پاته سوه په دې وجه سره چي دښمن ورڅخه منع کړی نو دم پر لازمیږي ماتن وايي او شارح وايي چي دا خو عذر دی د بنده د طرفه څخه ور پېښ دی او کوم چي دم د سرې څخه ساقطوي هغه عذر وي چي د خدای جل جلاله د جانبه څخه وي لهذا صاحب د بدائع لیکلي دي که چیري یو کس د مزدلفې د درېدو څخه منع سو لاره يې هلته ایله کړه چي د اختر شپې تیري سوې نو دم پر لازم دی یو د مزدلفې د نه درېدلو په وجه سره دویم د شیطانانو د ځلو د نه ویشتلو په وجه سره دریم د طواف زیارت د نه کولو په وجه سره یو چا سوال کړی دی چي د دښمن دخوا څخه منع کول خو غټ عذر دی جواب مخکي سوی دی چي د دښمن دخوا څخه بندیز خو عذر دی په نه کولو کي او د دم په شان کي عذر نه بلل کیږي ته نه گوري چي علماؤ د هغه شخص په شان کي څه فرمایلي دي چي یو څوک پر احرام بنده زور ولگوي یو ممنوع کار د احرام په وکړي مثلا خوشبويي ور پوري ولگوي یا گنډلي کالي په واغوندي نو دلته ده لره اختیار نسته چي دم یا به خیرات کوي کوم شی چي ورته متعین سوی دی هغه به خامخا کوي مثلا چي خوشبويي پر وپاشي دم پر لازم دی، ومن الله بالتوفیق فی البدایه و النهایة.

## فصل د قرباني او شکریې او سر خریلو نواقص

و لو ذبح شیاء من الدماء الواجبة فی الحج والعمرة خارج الحرم لم یسقط عنه و علیه ذبح اخر و لو اخر القارن او المتمتع الذبح عن ایام النحر فعلیه دم و لو حلق فی الحل او اخره عن ایام النحر فعلیه دم سواء کان مفردا او غیره.

متن و بعده ترجمه و شرح ملا علي القاري

که یو حاجي د قِران یا تمتع یا د نذر هغه دمونه چي پر واجب وه په حج یا په عمره کي یا په دواړو کي د حرم محترم د حدود څخه چي معلوم دي تر دغه حدود خارج يې حلال کړل نو دم نه ورڅخه ساقطیږي بل پر لازم دی دا مسئله متفقه مسئله ده زموږ د احنافو پر مذهب باندي او که يې نفلي هدیه یا اختری د حرم څخه خارج ذبح کړل بیا هیڅ پروا نه لري او شی هم نه پر لازمیږي او یاد لره چي د اختری پر هغه چا کیږي چي د یوې میاشتي د اقامت په نیت په مکه کي وي او که چیري حاجي قارن یا متمتع نه حاجي مفرد خپله قرباني د اختر تر ورځو وځنډوله د امام اعظم رحمه الله پر مذهب دم پر واجب دی او د ابو یوسف او محمد رحمه الله پر مذهب سنت دی او اول د جمرې ویشتل بیا قرباني حلالول بیا سر خریل دا ترتیب هم د امام اعظم رحمه الله پر مذهب واجب دی پر حاجي قارن او متمتع حاجي باندي او پر حاجي مفرد سنت دی په اتفاق سره د احنافو علماؤ او که يې سر په زمین حل کي وخریی او یا یې د اختر تر ورځو وځنډوی بیا دم پر لازمیږي د امام اعظم رحمه الله پر مذهب باندي او نوړ اختلاف د علماؤ تېر سوی دی دا حکم بیا د قارن او متمتع او مفرد حاجیانو تر مابین مشترک دی معنا دا سوه چي هر یو يې په دغه دري قسمه حج کي وځنډوی قرباني دم پر لازمیږي.

## فصل د حج د افعالو ترتیب خرابول

و لو حلق المفرد او غیره قبل الرمی او القارن او المتمتع قبل الذبح او ذبحا قبل الرمی فعلیه دم و لو طاف قبل الرمی و الحلق لا شئ علیه و یکره.

متن و بعده شرح ملا علي القاري

که چیري حاجي مفرد یا غیر د ده څخه لکه قارن یا متمتع حاجي خپل سر د دمخه تر ویشتلو د شیطان د څلي و خریی او یا حاجي قارن یا حاجي متمتع سر وخریی باره يې شکریه حلاله کړه او یا دواړو اول شکریه حلاله کړه باره يې څلي وویشتل نو پر یوه دم واجب دی لکه حاجي مفرد او پر باقي وو دوه دمه واجب دي دم د قِران یا د تمتع او بل د ترتیب خرابولو په وجه د امام اعظم رحمه الله پر مذهب دم پر واجب دی او د یارانو پر مذهب صرف د قارن دپاره یو او د متمتع دپاره هم یو لازم دی او که حاجي مفرد یا قارن یا متمتع طواف تر ویشتلو د څلي د شیطان او سر خریلو دمخه وکړي شی نه پر لازمیږي مگر مکروه کار دی څکه نه لازمیږي چي سنت عمل ورڅخه پاته سو تر مابین د دري شیانو.

## فصل د څلو په ویشتلو کي جنایات

و لو ترک رمی یوم کله و لو اکثره کاربع حصات فما فوقها فی یوم النحر او احد عشر حصاة فیما بعده او اخره الی یوم اخر فعلیه دم و ان اخره الی اللیل فلا شئ علیه و ان

ترک الاقل او اخره کحصاة او حصاتین او ثلاثة فی الیوم الاول و عشر حصیات فما دونها فیما بعده فعلیه لکل حصاة صدقة الا ان یبلغ ذلک دما فینقص منه و لو ترک رمی الایام کلها فعلیه دم واحد.

متن و بعده ترجمه و شرح ملا علي القاري

كه چيري حاجي د اختر د ورځي ويشتل و نه كړه او اووه سره ډبري يې و نه ويشتلې چي لسم ورځ ده او يا يې د دا بلي ورځي د ځلو ويشتل و نه كړه چي يويشت ډبري ويشتل كيږي ځكه درې ځلي دي هر يو په اووه اووه ډبرو سره ولي او يا يې د اختر د ورځي په ويشتلو كي ځلور پرېښول يا لا زيات او يا يولس ډبري يې و نه ويشتلې په دا نورو ورځو كي او يا يې د يوې ورځي دا بلي ورځي ته پرېښولې نو دم پر لازميږي يا د پرېښولو په وجه سره يا د ځنډولو په وجه سره او كه يې شپې ته وځنډول بيا هيڅ شی نه پر لازميږي صرف د ابو يوسف رحمه الله په يوه روايت كي راغلي دي چي په شپه كي به يې نه ولي بيا دم پر لازميږي او مشهوره هم د ابو يوسف رحمه الله څخه د تېر حكم مخالف مذهب دی چي دم نه پر لازميږي او كه يې په شپه كي هم و نه ويشتل سبا به يې ولي د امام اعظم رحمه الله پر مذهب دم پر لازميږي ځكه ځنډوالی په كښې راغلی نه د يارانو پر مذهب او كه يې د ځلورمي ورځي تر لمر لوېدو پوري تولو و نه ويشتل بيا دم پر لازميږي په اتفاق سره ځكه اوس نو ويشتل گرسره ورڅخه پاته سول حاصل د مطلب دا دی چي د ځلو ويشتل ناكه دی د امام اعظم رحمه الله پر مذهب نه د يارانو پر مذهب لهذا كه يوې ورځي ويشتل و دا بلي ورځي ته پاته سي د امام صاحب پر مذهب دم او قضا دواړه پر لازميږي او د يارانو پر مذهب قضا پر لازميږي نه دم ځكه دوی وايي دا ټوله ورځي د ويشتلو دپاره دي او كه ټوله ورځي د ويشتلو ووتلې بيا نو د ټولو پر مذهب دم پر لازميږي او دا د ټولو بلكې د شافعي رحمه الله مذهب هم دی او كه چيري يې لږ ويشتل لكه يوه يا دوې ډبري يا درې په لوله ورځ د اختر كي ورڅخه پاته سوې او يا يې دا بلي ورځي ته پرېښولې او يا لس ډبري په دا نورو ورځو كي ورڅخه پاته سوې نو بيا د هري ډبري د پاتېدو په وجه سره خيرات معنا نيم من غنم پر لازميږي مگر كه چيري دم په رانيول كيدای سو بيا نو يو څه ورڅخه كمول لازمي كار دی او كه د ټولو ورځو ويشتل ورڅخه پاته سول بيا يو دم پر لازميږي.

## فصل كه واجب د عذر په وجه ورڅخه پاته سي

و لو ترک شیئا من الواجبات بعذر الی شئ علیه واطلق بعضهم وجوبه فیها الا فیما و رد النص وهی ترک الوقوف بالمزدلفة و تاخیر طواف زیارت عن وقته و ترک الصدر للحائض و النفساء و ترک المشی فی الطواف و السعی و ترک السعی و ترک الحلق لعلة

فی راسه النوع السادس فی الصید و ما یتلعق به الصید هو الممتنع المتوحش من الناس فی اصل الخلقة فالنطبی و الفیل و الحمام المستا نسات صید و البعیر و البقر و الشاة المتوشاة لیست بصید و هو نوعان بری و هو ما یکون توالده فی البحر فالعبرة بالتوالد لا بالمعاش ثم البحری حلال اصطیاده للحلال و المحرم بجمیع انواعه سواء کان ماکولا او غیره کالسمک و الضفدع و السرطان و السلحفاة و کلب الماء و غیر ذلک و اما طیور البحر فلا یحل اصطیا دها لان توالدها فی البر و الصید البری حرام علی المحرم فی الحل و الحرم و علی الحلال فی الحرم الا ما یستثنی وهو ماکول وغیره فالماکول حرام اصطیاده کله کالظبی و حمار الوحش و بقر الوحش و الارنب و الحمام المصوتة و البط و الاوز و الجرار و النعامة و جمیع الطیور الماکولة وغیر ذلک وغیر الماکول کالفیل والاسد و النمر و الفهد و الضبع و الظب و الیربوع و السمور و الدلق و السنجاب و الثعلب و الخنزیر و القرد و الصقر و البازی و البوم و العقاب و غراب الزرع و النسر و فی ابن عرس و السنور الوحشی روایتان.

متن و بعده شرح ملا علي القاري

که چیري یو د واجبو اعمالو څخه په عذر سره ورڅخه پاته سو نو بعضي علماؤ عبارت مطلق ویلی دی چي پر مطلق د واجب په پرېښولو سره دم لازمیږي او بعضو قید لګولی دی که عذر وو بیا دم نه پر لازمیږي نو هغه واجب اعمال چي د عذر په وجه ورڅخه پاته سي یو په کښېي د مزدلفې درېدل دي لکه په هدایه او الکافي کي چي تصریح په سوې ده او دویم د طواف زیارت ځنډول دی تر خپل وخت لکه په سراجیه وغیره کتابو چي تصریح په سوې ده او دریم طواف صدر معنا د رخصت طواف پرېښول دی حیضي او نفاسي ښځي لره لکه په الطحاوي او ابو اللیث او صاحب د هدایې او الکافي او المجمع وغیره کتابو چي تصریح په کړې ده او ځلورم پیاده طواف یا سعیه نه کول دي لکه په المجمع او خلاصة وغیره کي ي تصریح په سوې ده او پنځم د سعي پرېښول دي لکه تصریح چي صاحب د بدائع کړې ده او شپږم د سر نه خریل دي د وجهي څخه د علت چي په سر کي یې موجود وي چي خریل او لنډول یې نه سي کیدای لکه په بحر زاخر کي چي تصریح په سوې ده او شپږمه نوعه په ښکار یا هغه شیان دي چي په ښکار پوري تعلق لري لکه الله تعالی چي فرمایلي دي:

احل لکم صید البحر و طعامه متاعا لکم و للسیارة و حرم علیکم صید البر ما دمتم حرما. المائده ۹٦

الله فرمایې چي و تاسي ته ښکار د دریابو طعام او سامان د دریاب درته حلال دی او تلونکو دپاره او حرام دی پر تاسي د وچي مځکي ترڅو چي تاسي احرام بنده یاست.

هغه ښکار چي منع دی هغه وحشي حیوان دی په اصلي خلقت کي عارضي وحشت
له اعتبار نسته لکه هوسۍ او فیل او کوتره او مثل د دغه شیانو لکه مرغان چي خلقو
کورني کړي وي او اوښ او غويی او پسه او مثل د دغه لکه آس چي وحشیان نه وي دا ییا
اګر که وحشي سي لا ښکار نه دی او کوم حیوان لکه هوسۍ چي کورنی سي او یو بچی
ورڅخه پیدا سي نو دا هم ښکار دی لکه تصریح چي برجندي او شرح النقایه کړې ده او
ښکار دوه قسمه دی یو په کښي د وچي ښکار دی او دا هغه دی چي پیدا ښت یې په وچه
مځکه کي سوی وي برابره خبره ده چي معاش په وچه مځکه کي کوي او که په دریابو کي
ګزاره کوي او که یې په دواړو کي کوي او بل قسم بحري او د دریاب حیوانات دي چي توالد
یې په دریاب کي وي معاش په وچه او که لنده او که دواړو کي کوي نو اصلي اعتبار توالد
له دی نه معاش له ځکه معاش عارضي دی او دا تعریف أصل او د اعتبار وړ دی لکه
الکافي بدائع او نهایه چي وایي او بعضي حیوانات داسي سته چي په بعضي ملکونو کي
کورني او په بعضي کي وحشي وي خلقةً لکه ګامیښي چي زموږ په وطنو کي کورني او په
سوډان کي وحشي دي هیڅ کورني کیږي نه اوس نو دریابي ښکار حلال سړي او هر قسمه
احرام بنده له جواز لري برابره خبره ده غوښه یې خوړل کیږي او که نه خوړل کیږي لکه
ماهي چي خوړل کیږي او چنګوښه او چنګاښ او سحلفاة چي نه خوړل کیږي او د اوبو سپي
وغیره او هغه مرغان چي په دریاب کي ګزاره کوي او پیدا ښت یې په وچه کي سوی وي
ښکار یې نه دی جائز لکه بدائع او محیط چي پر طریقه د عموم ذکر کړي دي او بعضي
علماؤ د خوراک قید ورسره لګولی دی او په منسک د کرماني او خزانة الاکمل کي لیکلي
دي چي احرام بنده له د دریاب د ښکار څخه د ماهي خوراک جواز لري او ظاهره دا ده که په
حرم کي دریاب وي لا یې د دریاب ماهي ښکار کول او خوړل جواز لري ځکه چي شمول
ورله دا قول د نبي ﷺ دی فرمایلي یې دي:

هو الطهور ماؤه و الحل میتته. ترمذي في السنن ٦٩ ابوداود في السنن ٨٣. سنن
نسائي ج١ ص٥٠ او ص١٧٦. ابن ماجه ٣٨٦. مسند احمد ج٢ ص٢٣٧، سنن کبری ج١
ص۴ ص۲۵۴، موطاء امام مالک ص۲۲ ص۴۹۵

معنا د دریاب اوبه پاکي دي او مړه چي سي په کښي هغه جواز لري.

او شوافعو خو تصریح په کړې ده چي فرق نسته که دریاب په خارج کي وي نو که په
حرم کي وي او هغه شی چي په څاه کي او یا په حوض کي ښکار کړي هم یې حکم د دریاب
دی او د وچي مځکي ښکار پر احرام بنده حرام دی په زمین حل او حرم کي او پر حلال سړي
بیا په حرم کي داخل ښکار کول حرام دی مګر نه هغه شیان چي په حدیث کي راغلي دي او د

وچي محُكي ښكار كه خوړل كيږي او كه نه خوړل كيږي كول يې حرام دی په اتفاق سره د علماؤ لكه هوسی، وحشي حمار، وحشي غويی، سويګی، كوتره، چې ښځي پر پښو لرئ او كه يې نه لري او هيلی او مرغابی، ملخ او شتر مرغ او ټوله مرغان چې غوښه يې خوړل كيږي او كه نه خوړل كيږي لكه فيل او زمری او پړانګ او كوړ يا سپمساره صرف دونه فرق ياد لره چې دا ښكار په اول شروع كي وكړي او كه يې ضرر ورسوی بيا يې مرګ جواز لري او د ذرئ ممنو قول دی يا لكه ميش خرما يا غويی بياباني، دلق او سنجاب او ګيدړه دا داسي حيوانان دي چې پوستونه يې خلق په كار راولي يا سركوزی يا څرخك يا باز يا شاهين يا كارګه يا كاغی يا نسر مرغه يا ابن عرس لكه پشي داسي حيوان دی او پشي وحشي نه ده چې دوه روايته په كښي دي د امام اعظم رحمه الله څخه يو روايت العتابي كړی دی چې د ابن عرس په وژلو كي هيڅ نه لازميږي ياران وايي چې دم پر لازميږي او په يو روايت كي ابو يوسف رحمه الله وايي چې ابن عرس ښكار نه دی بلكه دا درنده دی او طرابلسي د حسن رحمه الله د ابو حنيفه رحمه الله څخه بل روايت كړی دی چې خاني او وحشي دواړه قسمه ښكار نه دی او هشام د محمد رحمه الله څخه روايت كړی دی چې د پشي په وژلو سره دم پر لازميږي او ابن الهمام د هشام هغه د محمد رحمه الله څخه داسي روايت كړی دی چې وحشي پشي لكه ښكار داسي ده چې په وژلو كي يې دم لازميږي او په بحر الزاخر كي راغلي دي چې په وحشي پشي كي د محمد رحمه الله څخه دوه روايتونه سوي دي او اهلي كورنۍ پشي ښكار نه دی اوس پوه سه چې په فيل او بيزو او خنزير كي هم دغسي اختلاف سته په محيط كتاب كي راغلي دي چې خنزير او بيزو كه څوک يې مړه كړي نو يې د قيمت خيرات كول ورباندئ واجب دی او ياران وايي چې جزا نسته په كښي.

## فصل كه محرم ښكار مړ كړي دم پر لازميږي

اذا قتل المحرم صيدا فعليه الجزاء و لو ضرب بطن ظبية فالقت جنينا ميتا ثم ماتت فعليه قيمتها جميعا و ان عاشت الام ففيها ما نقص و فی الجنين الميت قيمته حيا و لو قتل ظبية حاملا فعليه قيمتها حاملا.

متن و بعده ترجمه

كه احرام بنده حاجي ښكار وكړی نو جزا پر لازميږي معنا مثل قيمت به خيرات كوي او كه چيري يو كس هوسی په خېټه كي كي ووهل نو بچي يې وغورځوی مړ وو او بيا دغه هوسی هم مړه سوه نو پر ده يې قيمت لازم دی چې د دواړو قيمت به خيرات كوي او كه يې مور ژوندۍ پاته سوه بيا دومره جزا پر لازمه ده چې نقصان په كښي راغلي دی او د هغه بچي قيمت به د ده د ژوند په اندازه خيرات كوي او كه يې بلاربه هوسی په قتل ورسول بيا

چي دا ژوندی فرض کړي څومره قیمت چي یې درلودی هغومره روپۍ به خیرات کوي.

## فصل د ښکار زخمي کول

و لو جرح صيدا فعليه ما نقص من قيمته و لو مات منه فعليه قيمته و لو جرحه فغاب عنه ثم وجده ميتا ان مات بسببه وجب الضمان و ان مات بسبب اخر فعليه ضمان الجرح و ان لم يعلم شيئا وجب الضمان و لم يمت فان برء و لم يبق له اثر لم يضمن شيئا و ان بقي ضمن النقصان و ان لم يعلم انه مات او برء او لا فعليه القيمة و لو جرحه مستهلكا بان قطع قوائمه او نتف ريش طائر او كسر جناحه فخرج عن حيز الامتناع فعليه قيمته كاملة فان جرحه فادى الجزاء ثم قتله لزمه جزاء اخر و ان لم يؤد حتى قتله فجزاء واحد و لو جرحه و بقي اثره او نتف شعره و لم ينبت ضمن ما نقصه و لو جز صوفه او حلبه فعليه قيمتها و لو فمرض فانتقصت قيمته لو زادت ثم مات فعليه اكثر القيمتين من قيمته وقت الجرح لو وقت الموت و لو جرحه محرما بعمرة ثم اضاف اليها حجه فجرحه فمات منهما فعليه للعمرة قيمته صحيحا و للحجة قيمته مجروحا و لو قتل صيدا مملوكا فعليه قيمته للفقراء و قيمته لمالكه.

متن و بعده ترجمه و شرح ملا علي القاري

که چیري یو حاجي د ښکار حیوان زخمي کړی او مړ نه سو نو دومره جزا پر لازمیږي څومره نقصان چي یې ښکار ته رسولی وي خو یاد لره چي نقصان داسي معلومیږي چي یو ځل دا حیوان روغ قیمت کړي او بیا به یې زخمي قیمت کړي څونه فرق چي یې وکړی هغومره به خیرات کوي او که چیري د دغه زخم څخه مړ سو وروسته بیا نو د کامل دغسي حیوان قیمت ورکول پر لازمیږي او که یې ښکار زخمي کړی او بیا ورڅخه ورک سو یا دی ورڅخه ولاړی چي بیا یې پیدا کړی مړ وو نو اوس ورته کتل کیږي که په دغه سبب مړ وو نو قیمت خیرات کول یې پر لازم دی او که په بل سبب مړ وو بیا پر ده د زخم په اندازه د نقصان تاوان پر لازمیږي او که ورته هیڅ معلومېدل نه چي زما د زخم لو که په بل سبب مړ دی بیا احتیاطاً به خیرات د کامل ښکار کوي او که زخم د ښکار جوړ سو چي سرې نه په پوهېدی بیا هیڅ تاوان نه پر لازمیږي او که یې اثر او علامه وربانديوه بیا نو د نقصان قدري تاوان پر لازمیږي او که چیري یې ښکار وویشتی خبر نه وو چي مړ سو او که ژوندی پاته سو او که جوړ سو حاصل دا چي د هیڅ معلومات یې ورته و نه سو نه د وجود نه د عدم نو شرعاً یې قیمت خیرات کول پر لازم دی اګرچي قیاس یې د تاوان د نقصان خبره کوي او که یو شخص داسي د ښکار حیوان زخمي کړی چي د هلاک سره یې مخامخ کړی مثلاً څلور سره پښې یې ور ماتي کړې او یا یې د مرغه څخه وزر وکښل او یا یې یو وزر ور مات کړی چي

دې ته اندازې ته ورسېدې چې ځان يې د هلاک څخه نه سو ساتلای نو بیاهم د کامل حیوان هر شي چي وو قیمت خیرات کول پر لازم دی که یو شخص د ښکار حیوان زخمي کړی او د زخم د اندازې قدري خیرات یې هم وکړی چي حیوان د ښکار ورڅخه مړ سو نو بیا بله جزا پر لازمیږي ترڅو چي د کامل حیوان قیمت پوره کیږي او که یې د زخم تاوان نه وو خیرات کړی چي مړ سو بیا په دویم زخم د ده سره نو یې جزا د قیمت یوه ده چي د کامل حیوان جزا به خیرات کوي او که یې یو حیوان زخمي کړی او د تاوان خیرات یې ورکړی تر مرګ دمخه خو وروسته مړ سو نو هغه خیرات سوی قدري هم اوس د باقي تاوان سره یوځای د قیمت په پوره کولو کي شمېرل کیږي لکه بدائع چي لیکلي دي وغیره کتابو او مبسوط لیکلي دي که احرام بنده حاجي ښکار زخمي کړی او بیا یې تاوان هم خیرات کړی او بیا یې بل وخت ولیدی ورپسې مړ یې کړی نو په دغه صورت کي بل د کامل حیوان تاوان خیرات کول پر لازم دی او که یې د اول زخم رسولو تاوان هم نه وو خیرات کړی چي بیا یې جوړ ولیدی ورپسې یې مړ کړی نو بیا د اول زخم تاوان خیرات ورباندي نسته بلکې د دویم وار چي یې وژلی دی د دغه کامل حیوان خیرات پر لازم دی شمس الائمه وايي چي دا په هغه صورت کي چي د جوړ حیوان قیمت یې خیرات کړی او که یې د زخمي قیمت خیرات کړی وو بیا نو د هغه باقي خیرات هم پر لازمیږي ترڅو چي د ټوله حیوان قیمت پوره کیږي او په منسک طرابلسي کي راغلي دي چي ښکاري حیوان یې زخمی کړی او دومره تاوان یې خیرات کړی او بیا یې وروسته په قتل ورسوی نو په دویم وار کي د کامل حیوان قیمت خیرات کول پر لازم دی او که یې د اول زخم خیرات نه وو کړی بیا نو دا یو ځل د ټول حیوان د قیمت خیرات کول پر لازم دی او الفتح کتاب لیکلي دي که یې د ښکار حیوان زخمي کړی او هیڅ یې خیرات نه کړه چي په دویم وار یې په قتل ورسوی نو د اول زخم د تاوان قیمت خیرات کول ورڅخه ساقط سو اوس به د کامل حیوان قیمت خیرات کړي همدا رنګه بدائع لیکلي دي چي د زخم جزاء ورباندي نه لازمیږي که یې تر جزا دمخه په قتل ورسوی ځکه اوس نو پر یوه قتل شمار سو لکه په یوه پېره چي یې په قتل رسولی وي او الحاکم په خپل مختصر کي لیکلي دي چي د زخمي ښکار جزا پر لازمیږي او که یې په دویم وار په قتل ورسوی اوس دغه جزا پر لازم سوه بله جزا ورباندي نسته انتهي حاصل د عبارت دا دی چي دوه جنایته یو په بل کي سره داخلیږي او اخیري رجعه یې یوه ته ګرځي لکه د ابن الهمام چي داسي تحقیق کړی دی او ده تابعداري د بدائع کړې ده او د اعتماد وړ هم دغه مسئله ده ښه فکر په کښې وکړه.

لو که چیرې یو حاجي حیوان د ښکار ټپي کړی او اثر د ټپ هم ورباندي وو او یا یې

د وزر وینبتان ورڅخه وکښل او بیا شنه هم نه سول دونه ضمان لو تاوان به خیرات کوي څومره چي يې حيوان ته رسولی دی او که يې د يو حيوان څخه وړی وکښلې او يا يې ولوشل نو د وړيو او يا د شيدو په اندازه تاوان به خيرات کوي لکه په بحر الزاخر کي چي راغلي دي او په بدائع کي ليکلي دي چي که حاجي د ښار حيوان ولوشی نو د شيدو د نقصان په اندازه تاوان ورباندي لازم دی چي خيرات يې کړي لکه يو جز چي ورڅخه کاټ کړي او بيا يې خيرات د دغه جز د قيمت پر لازميږي او طرابلسي دواړه روايتونه جمع کړي دي څکه ده ويلي دي که يې د ښکار حيوان ولوشی نو د نقصان او شيدو قيمت په اندازه خيراتورباندي لازميږي انتهي ملا علي القاري رحمه الله وايي شايد دا قول حمل پر هغه حال وي چي دا شيدې دغه حاجي پخپله وڅښي او که يې و بل فقير ته ورکړي بيا يې حکم داسي نه دی او که يې ښکار ووهی او مريض سو او قيمت يې کم سو او يا زيات سو باره مړ سو نو پر ده د دواړو قيمتو څخه هغه غټ قيمت لازميږي د زخم او بل د مرض د وخت او مرګ د وخت او که احرام بنده د عمرې وو چي ښکار يې زخمي کړی او بيا يې د حج احرام هم ورسره ګډ کړی بيا يې هغه حيوان د ښکار زخمي کړی او د دواړو زخمو د وجهي څخه مړ سو نو پر ده دوه قيمته د ښکار خيرات کول لازم دی د عمرې د وخت دا د کامل حيوان قيمت خيرات کول لازم دی او د حج د وخت بيا د زخمي حيوان د قيمت قدري خيرات پر لازم دی که يو حاجي د يو کس د ملک ښکار په قتل ورسوی نو پر ده يو قيمت د ښکار د حيوان لازم دی چي فقيرانو ته به يې ورکوي او بل قيمت به يې مالک او خاوند ته د حيوان د ښکار ورکوي چي په اصطلاح کي ورته تاوان وايي.

## فصل که يې د حرم ښکار و تورو ی

و لو نفر صيدا فعثر فمات او اخذه سبع او انصدم بشجر او حجر فی فوره ضمنه و يکون فی عهدته حتی يعود الی عادته فی السکون فان هلک بعد السکون فلا شئ عليه و لو نفر الصيد بغير ضمنها و لو رمی سهما الی صيد فاصا به و انفده الی اخر فقتلهما فعليه جزاؤ هما و کذا لو اضطرب السهم فی الصيد فوقع علی بيضة او فرخ فاتلفها ضمنها و لو رکب دابة او ساقها او قادها فتلف صيد بوقشها او عضها او زنبها او روثها او بولها ضمنه و لو انلفتت بنفسها فاتلفت صيدا لم يضمن

متن و بعده شرح ملا علي القاري

که چيري يو حاجي د ښکار حيوان و توروی او هغه وښوئيدی او شوه سو او مړ سو او يا په دغه وخت کي بل درنده حمله پر وکړه مثلا زمری يې مړ کړی او يا د درختي سره يا د ډبري سره ټکر سو مړ يا زخمي سو نو د نقصان رسولو قدري تاوان خيرات کول پر لازم

دی که مړ نه سو او که چیرې یې حیوان د ښکار وتوروی او هغه وغورځیدی خو هیڅ په و نه سوه لیکن چې ښه آرام سو او په اطمینان سو باره مړ سو بیا نو هیڅ تاوان نه پر لازمیږي ځکه د ښکار حیوان خپل عادي حالت ته راګرځېدلی دی باره مړ سوی دی او که حاجي د ښکار حیوان وتوروی بې له قصده او د ده د اختیار څخه او د حیوان پښه ماته سوه نو هیڅ شی نه پر لازمیږي ځکه دلته خو د ښکار حیوان د خپ طبیعت د وجهې څخه پښه ماته کړې ده او که ده لا نور پسې تېز کړی بیا نو جزا یې پر لازمیږي او که یې وتوروی نو دغه د ښکار حیوان د بل حیوان سره د ښکار ټکر سو دواړه مړه سوه نو د دواړو جزا معنا د قیمتو خیرات پر لازمیږي او که سپی په ښکاري حیوان پسې ځغاستی او حاجي نور وریسې تېز کړی او هغه یې مړ کړی ضمان پر حاجي د هغه حیوان د قیمت سته او که حاجي په ټوپک یو حیوان د ښکار وویشتی او هغه مرمی تر بل حیوان هم ووتله د دواړو د قیمتو خیرات پر لازم دی او که هغه مرمی تر حیوان ووتله پر مځکه سره ښورېدی هګۍ یې ماته کړه او یا بچی د ښکاري حیوان ووژی هم د دواړو قیمتو خیرات پر لازم دی او که حاجي پر یو حیوان سپور وو او یا یې ترمخ شړی یا یې کشوی او یا یې لکۍ ورڅخه وکښل او هغه حیوان په امبارو کې وښوېدی هلاک سو د قیمت خیرات یې پر لازم دی او که دی پر سپور وو خو په خپل طبیعت سره غوځار سو او مړ سو بیا یې جزا پر ده نه ده.

## فصل که د ښکار په وژلو کې ډېر کسان شریکان سول

صید یجنی علیه رجلان او اکثر اشترک جماعة محرمین فی قتل صید فی الحل او الحرم فقتلوه بضربة واحدة فعلی کل واحد جزاء کامل و لو کانوا محلین فی صید الحرم فعلیهم جزاء واحد و لو کان احدهم محرم والباقی محلین یقسم الجزاء علی عددهم کان لم یکن فیهم محرم و علی المحرم جزاء کامل و لو کان احدهما محرما و الاخر حلالا فعلی المحرم جزاء کامل و علی الحلال نصف الجزاء و لو کان شریک الحلال او المحرم من لا یجب علیه الجزاء کالصبی و المجنون و الکافر فعلی المحرم کامل و علی الحلال ما یخصه علی القسمة اذا قسمت علی العدد و لو کانوا قارنین فعلی کل واحد و لو قتله قارن او مفرد و حلال بضربة واحدة فی الحرم فعلی القارن جزاء ان و علی المفرد جزاء واحد و علی الحلال ثلث الجزاء و لو ضربه کل واحد ضربة و وقعت معا و علی المفرد قیمته منقوصا بها و علی القارن قیمتان منقوصا بها فان بداء الحلال و ثنی المفرد و ثلث القارن فمات من کله ضمن الحلال نقصان جنایته صحیحا و ثلث قیمته و به ثلاث جراحات و ضمن المفرد ما نقصه جرحه مجروحا بالجرح الاول و قیمته و ضمن القارن ما نقصه جرحه و هو مجروح بجرحین و قمتین و به الجراحات الثلاث و لو کانت الجنایة الاولی مهلکة بان

قطع یده او رجله او قفاء عینه ضمن الحلال قیمته صحیحا و المفرد قیمته مجروحا بالجرح الاول و القارن قیمتین مجروحا بالجرحین الاولین و لو جرح حلال صید الحرم غیر مهلک فجرحه حلال اخر مثله و مات منهما فعلی الاول و ما نقصه جرحه و هو صحیح و علی الثانی ما نقصه جرحه و هو جریح و ما بقی من قیمته فعلیهما نصفان و لو کانا محرمین ضمن الاول کل قیمته و به الجرح الثانی و ضمن الثانی کل قیمته و به الجرح الاول و لو کان احدهما محرما و الاخر حلالا ضمن الحلال نصف قیمته و به الجرح الثانی کلا قیمته و به الجرح الاول.

متن و بعده ترجمه و شرح ملا علي القاري

که چیري د یوه ښکار په وژلو کي ډېر کسان سره شریکان سول او ښکار یې مړ کړی خو ټول احرام بنده وه دا ښکار یې یا د حرم یا د حل په مځکه کي مړ کړی په یو وار سره ټولو واري پر وکړی نو پر هر یوه د هغه حیوان کامله کامله جزا سته چي هر یو حاجي به پوره قیمت د هغه ښکار د حیوان خیرات کوي ارشاد الساري یې دلیل داسي ویلی دی چي دا جنایت خو تر لاري ښودلو یا حیوان د ښکار ور ښودلو زیات دی په هغه کي لا جزا پر لازمېدله علاوه دا ده که ډېرو کسانو لاره د ښکار د حیوانانو ور ښولې وای لاهم پر هر یوه د ښکار د حیوان قیمت خیرات کول لازم وه دلته خو په طریقه اولی سره لازمیږي انتهي. کذا فی الهدایه آه ملا اخوف جان

او که چیري یې له احرامه معنا حلالو کسانو په یوه دفعه سره یو ښکار مړ کړی هر څونه کسان چي وي یوه جزا پر لازمیږي ارشاد الساري یې دا دلیل ویلی دی چي پر دوی ټولو خو واجب بدل د محل دی نه جزا د فعل نو جنایت د ټولو یو دی لهذا پر ټولو یو قیمت لازمیږي چي خیرات کوي به یې حتی چي دلته روژې هم نه سي نیول کېدای نو جزا یې هم نه سي ډېرېدلای اه حباب.

او که چیري یو کس احرام بنده او بل شخص حلال وو او دواړو په یوه دفعه د ښکار حیوان ووهی مړ یې کړی نو پر محرم سړي د حیوان کامل قیمت خیرات کول لازم دی او پر حلال یې نیم قیمت خیرات کول لازمیږي.

او که چیري د محرم سره داسي شخص ملګری وو د ښکار په وژلو کي چي پر هغه جزا نه لازمېدله لکه کوچنی یا لېونی یا کافر نو پر دغه کسانو خو فرعي احکام نه جاري کیږي لهذا محرم به د یوه حیوان قیمت کامل خیرات کړي او پر باقي اشخاصو یې قیمت توزیع کیږي که یې صلاحیت ودرلودی.

او که دوه حاجیان چي د قِران حج احرام یې تړلی وو او په وژلو د ښکار کي سره

شریکان وه نو دلته بیا پر هر قارن حاجي دوه دوه قیمتونه خیرات کول لازمیږي یو د عمرې
د احرام او بل د حج د احرام جزا ده.

او که چیري د ښکار حیوان حاجي قارن او حاجي مفرد او حلال سړي په درو سره وو
په یو وار سره مړ کړی په حرم شریف کي نو پر قارن دوه قیمته خیرات او پر حاجي مفرد یو
قیمت خیرات کول او پر حلال سړي د ښکار د حیوان دریمه حصه خیرات کول لازم دی معنا
د جوړ حیوان قیمتونه دلته سنجول کیږي.

او که چیري یو واری یوه بیا هغه بل بیا بل وروسته وکړی بیا نو د جوړ حیوان قیمت
نه سنجول کیږي معنا دا سوه که اول ګذار حلال بیا وروسته حاجي مفرد بیا وروسته حاجي
قارن کړی وو او حیوان هم د دغه وهلو څخه مړ سو او درې زخمه ورباندي وه نو حلال سړی
به د جوړ حیوان دریمه حصه خیرات کړي او حاجي مفرد به د ناروغه حیوان کامل قیمت
خیرات کړي او حاجي قارن به د دوو ناروغه حیوانانو قیمت خیرات کړي او دا مسئله الکافي
او خزانة الاکمل وغیره کتابونو را اخیستې ده او ظاهره هم د دغه کتابو مسئله ده او که د
حلال سړي د ګذار څخه حیوان ګوډ یا ړوند سو چي هلاک ته قریب سو نو بیا پر حلال خو د
کامل حیوان دریمه او پر مفرد حاجي د زخمي حیوان کامل قیمت او پر قارن حاجي تر دوی
لا د زخمي حیوان دوه قیمته خیرات کول لازمي کار دی کذا في الکافي.

که چیري د حرم ښکاري حیوان یوه حلال سړي داسي زخمي کړی چي ډېر تاواني
زخم نه وو او وروسته بل حلال سړي واری پر وکړی هغه هم زخمي کړی نو ښکار مړ سو اوس
یې د جزا صورت داسي دی چي پر اول سړي د جوړ حیوان د نقصان تاوان او پر دا بل سړي د
زخمي حیوان د نقصان قدري تاوان اول وار پر لازمیږي باقي چي د دغه حیوان څونه قیمت
لا پاته سو هغه به دواړه نیم نیم خیرات کړي او که دغه کسانو بیا فرض کړو چي دواړه احرام
بنده وو نو پر اول کس د جوړ حیوان قیمت او پر دا .ل حاجي د زخمي حیوان قیمت خیرات
کول لازمي عمل دی او که یو حلال او بل احرام بن.. وو بیا نو پر حلال سړي نیم قیمت او پر
محرم د کامل قیمت خیرات کول لازمیږي.

## فصل که د ښکار حیوان د زخم څخه تاواني سو

ولو جرح صید الحرم فزاد فی بد ن کانجلاء بیاض العین و نحوه او سعره کان کانت
قیمته یوم الجرح عشرة ثم صارت خمسة عشر ثم مات من الجراحة فعلیه ما نقصه الجراحة
و قیمته یوم مات و لو نقصت قیمته ثم مات فان کان النقص فی سعره ضمن قیمته یوم
الجرح و یحط عنه النقصان الذی ضمن و ان نقص فی بدنه من غیر الجراحة ثم مات و
یحط عنه النقصان و لو جرح محرم صید الحرم فکفر ثم مات و قد زادت قیمته غرم

الزیادت و لو جرح محرم صید الحل ثم حل و زادت قیمته و مات قبل التکفیر ضمن النقصان و قیمته کاملة یوم مات و ان مات بعد التکفیر والتحلل ثم مات لم یضمن شیئا.

متن و بعده ترجمه و شرح ملا علي القاري

که چیري حلال سړي د ښکار حیوان وویشتی په حرم کي او د حیوان په وجود کي نور هم زیاتوب پیدا سو مثلاً د حیوان سترګو دید پیدا کړ او یا يې قیمت زیات سو مثلا د زخم په ورځ يې قیمت لس روپۍ وو بیا پنځلس روپۍ سو باره مړ سو د دغه زخم څخه نو پر ده د هغه ورځي قیمت خیرات کول لازمیږي چي ښکار مړ سوی دی او د تپ د نقصان قدر اندازه او دغه اصلي د مذهب حکم دی اګرچي ابو یوسف رحمه الله په یو روایت کي د غیر اصولو ویلي دي چي پر حلال سړي د زیاتوالی په قیمت یا بدن کي د حیوان تاوان نه لازمیږي تر زخم بعد په حرم کي او که زخم د ښکار په قیمت کي نقصان وکړی نو بیا د زخم د ورځي تاوان د قیمت خیرات کول پر لازمیږي او که چیري د حیوان په بدن کي يې له زخمه تاوان پیدا سو او د دغه زخم څخه هم مړ سو نو بیا د نقصان تاوان ورباندي نسته او که يې د حرم ښکار زخمي کړی او بیا يې تاوان هم خیرات کړی باره مړ سو او په بدن یا يې په قیمت کي هم زیات والی راغلی وو نو بیا به د هغه زیاتوب تاوان هم خیرات کړي که یو محرم سړي د زمین حل د مځکي د ښکار حیوان زخمي کړی او بیا د ده په قیمت کي هم زیات والی راغلی او محرم لا ځان نه وو حلال کړی چي ښکار مړ سو نو په دغه صورت کي د نقصان او د کامل قیمت خیرات پر لازمیږي او که يې تاوان خیرات کړی او بیا يې ځان حلال کړی باره هغه حیوان چي ده زخمي کړی وو مړ سو بیا نو هیڅ تاوان ورباندي نسته، والله اعلم و علمه اتم.

## فصل د هګۍ حکم

و لو کسر بیض نعامة او غیرها فعلیه قیمة البیض مالم یفسد و ان کانتا بیضة مذرة فلا شئ علیه فرخ میت فعلیه قیمة الفرخ حیا و لا شئ فی البیض ولو اخذ بیضا و ترکها تخت دجاجة ففسدت فعلیه الجزاء و ان خرج منها فرخ و طار فلا شئ علیه و لو نفر صیدا عن بیضه ففسد ضمن.

متن وبعده ترجمه و شرح ملا علي القاري

که یو شخص د شتر مرغ هګۍ ماته کړه او یا د بل شي نو د کامل قیمت د هګۍ خیرات پر لازم دی او که د وخت څخه ورسته وه بیا نو هیڅ شی نه پر لازمیږي لکه هدایه چي ویلي دي که هګۍ ورسته وه بیا نو هیڅ شی نه پر لازمیږي عامه خبره ده که د شتر مرغ هګۍ وي او که د بل حیوان ارشاد الساري يې دلیل دا ویلی دی د بحر الرائق په حواله باندي چي تاوان ځکه نه پر لازمیږي چي دا خو د ښکار د حیوان هګۍ دي شاید چي حیوان

ورځخه پیدا سوی وای اوس چي هغه هګۍ خرابه ثابته سوه نو تاوان هم نه پر لازمیږي الخ.
او که چیري یې هګۍ ماته کړه او مړ چیچړی په کښي وو بیا نو د ژوندي چیچړي خیرات پر لازمیږي او د هګۍ په عوض کي هیڅ نه پر لازمیږي او که یو شخص د ښکاري حیوان هګۍ تر چرګي لاندي کړه او چرګي هغه هګۍ ورسته کړه د هګۍ تاوان خیرات کول پر لازمیږي او که یې چیچړی وکړی او هغه چیچړی والوتی بیا نو هیڅ نه پر لازمیږي او که یو کس د خپلي ځالۍ څخه مرغه وتوروی او هغه هګۍ ماتي کړې پر ده یې تاوان خیرات کول لازمیږي.

## فصل د ښکار نیول او ایله کول

و لو اخذ صید او هو محرم لم یملکه و وجب علیه ارساله سواء کان فی یده او فی قفسه معه او فی بیته و لو لم یرسله حتی هلک و هو محرم او حلال فعلیه الجزاء و لو ارسله محرم اخر من یده فلا شئ علی المرسل و ان قتله فعلی کل واحد منها جزاء کامل و للاخر ان یرجع بما ضمن علی القاتل ان کفر بالمال و ان کفر بالصوم فلا یرجع علیه و لو کان القاتل صبیا او مجنونا او کافرا فعلی الاخذ الجزاء و یرجع بقیمته علی القاتل ولا جزاء علی القاتل ولو قتله بهیمة فی یده فعلیه الجزاء ولا یرجع علی احد و لو ارسل صیده هو او غیره من یده ثم وجده فی ید انسان بعد ما حل فلیس له ان ینزعه ممن هو فی یده بخلاف المسئالة الاتیة و لو اخذ صیدا فی الحل وهو حلال ثم احرم ملکه ثم ان کان الصید فی یده لزمه ارساله علی وجه لا یضیع ملکه بان یخلیه فی بیته و ان لم یرسله حتی مات فی یده لزمه الجزاء و ان کان الصید فی بیته لا یجب ارساله حتی لو لم یرسله فمات لا یضمن و ان ارسله انسان من یده ضمن المرسل قیمته و ان وجده بعد ما حل فی یده احد فله ان ینزعه منه حلال اصطاد صید الحرم فقتله فی یده حلال کان علی کل واحد جزاء کامل و یرجع الاخذ علی القاتل ولو اشتری صیدا لزمه ارساله ولوارسله فی جوف البلد لا یبداء ولو اخذه احد یکره اکله ولو اخذ صید الحرم فارسله فی الحل فقتله رجل فعلی الاخذ الجزا و لو لم یقتل فلا یبرا ایضا من الضمان حتی یعلم وصوله الی الحرم امنا.

متن و بعده ترجمه و شرح ملا علي القاري

اول پوه سه حاجي صاحب چي دا فصل په بیان کي د ښکار د نیولو او ایله کولو دی علاوه پر دې که پوهه غواړې دا ده چي د ښکار حیوان د دري وجهو په خاطر په امن کي کیږي ۱: اول دا چي احرام بنده به ښکاري وي، ۲: دویم د ښکار حیوان به په حرم کي داخل وي، ۳: دریم دا چي حاجي به په محرم کي وي، ارشاد الساري د دغه دري اقسامو ذکر په خپله حاشیه کي کړی دی او حواله یې بحر الرائق او الکبیر ته کړې ده الخ انتهی.

که چیري یو احرام بنده حاجي په زمین حل کي او یا حلال سرې په حرم کې ښکار ونیوی په ملک کي به نه داخلیږي نو ایله کول د ښکار وربانديي لازم او واجب دی لهذا د ښکار نیول په دوه قسمه دی یا خو محرم وي چي ښکار ونیسي او یا چي وې نیوی باره یې احرام وتړی نو که چیري محرم ښکار ونیوی نو پر ده واجب دی چي ښکار به ایله کوي برابره خبره ده په لاس کي یې وي یا یې په قفس کي وي او یا یې په کور کي وي او که یې ایله نه کړي او دی هم په احرام کي وو چي هغه د ښکار حیوان مړ سو او یا حلال وو چي ورځخه مړ سو نو پر ده په دواړه حالاتو کي د قیمت خیرات کول واجب دی او که چیري احرام بند د ټینګ کړی او بل احرام بنده ورځخه ایله کړی نو دی حق نه لري چي د هغه ځخه یې تاوان واخلي ځکه پخپله پر ده لا واجب دا وه چي ایله کوي به یې او که هغه بل محرم مړ کړی نو پر دوی دواړو پر هر یوه جلا جلا کامله جزا قیمت خیرات کول واجب دی او زموږ د مذهب د دري سره امامانو دا حکم دی چي نیونکی به د قیمت د خیرات کولو تاوان د قاتل ځخه د ښکار اخلي خو دا هلته که یې کفاره د مال ورکوله او که یې پر ځای روژې نیولې نو المنتقي وایي بیا د

- تاوان حق نه پر لري او که قاتل کوچنی یا لېونی او یا کافر وو بیا نو د قیمت خیرات کول پر نیونکي د ښکار دی او تاوان به د قاتل ځخه اخلي خو پر قاتل د قیمت خیرات کول نه لازمیږي ځکه دی مکلف نه دی په عبادت سره لو که چیري بل حیوان ورځخه مړ کړي نو بیاهم د قیمت خیرات کول پر ده واجب دی او د تاوان حق پر خاوند د هغه قاتل حیوان نه لري علمه خبره ده که یې خاوند کشوي او که وربسې وو شړی یې او یا پر سپور وو دا مسئله په بحر الزاخر کي بنه واضح سوې ده.

او که چیري محرم ښکار ګیر کړی او بیا یې ایله کړی یا پخپله لو یا بل چا ورځخه ایله کړی کله چي دی د احرام ځخه ووتی ځان یې حلال کړی هغه د ښکار حیوان یې د بل چا ځخه ولیدی حق نه لري چي ورځخه وا یې خلي ځکه د ده د ملک ځخه وتلی دی په ایله کېدو سره لو که حلال سړي د ښکار حیوان ونیوی باره یې احرام وتړی خو یاد لره چي ښکار یې په زمین حل کي کړی وو نو دا ښکار د ده ملک دی په احرام تړلو سره د ده د ملکیت ځخه نه وزي اوس که بل حلال سړی ایله کړي د تاوان حق پر لري او که اوس د احرام په حالت کي د ده په لاس کي وو ایله کول یې پر لازم دی پر داسي طریقه چي د ده د ملکه ځخه هم و نه وزي معنا دا ده چي خپل کور ته دي ولیږي ځکه دا د ده ملک دی لکه اول چي محرم نه وو د ده وو اوس هم د ده ملک دی او که د ده په لاس کي مړ سو بیا نو د قیمت خیرات یې پر واجب دی او که د ده په قفس یا کور کي مړ سو بیا نو د قیمت خیرات نه پر لازمیږي او نه یې ایله کول پر لازم دی پر صحیح مذهب باندي پوه سه که چیري محرم ښکار ونیوی او ورځخه هغه وخت مړ سو چي ده ځان حلال کړی د

قیمت خیرات یې پر لازم دی لکه چي بیان یې درته تېر سو او که یې تر احرام دمخه نیولی وو باره یې احرام وتړی په لاس کي یې وو چي ورځخه مړ سو اوس که محرم وي او که حلال جزا یې پر لازم ده الکرماني وایي زموږ پر مذهب باندي که یې احرام وتړی او لا د ده په لاس کي ښکار وو چي او ایله یې نه کړی او د ده څخه هلاک سو د ده په لاس او د احرام په حال کي او حلال سو نو قیمت خیرات کول یې پر لازم دی ځکه چي ده احرام وتړی او لا یې په لاس کي وو ایله کول یې پر واجب وه هرکله چي تر ایله کیدو دمخه هلاک سو نو د ده تعدا وړباندي راغله لکه د حرم په وخت کي چي یې ونیسي او که بل چا یې د لاسه څخه ایله کړی د تاوان حق پر لري په نزد د امام اعظم رحمه الله لو یاران وایي حق نه پر لري او هرکله چي د احرام ځخه یې ځان حلال کړی او د یو چا ځخه یې ولیدی ورځخه اخیستلای یې سي ځکه د ده د ملک ځخه نه دی وتلی او که حلال سړی د حرم شریف ښکار ونیوی د ده په لاس کي بل حلال سړي مړ کړی هر یو بهٔ د بل ځخه یوازي د کامل قیمت خیرات کوي او بل به نیونکی پر قاتل د ښکار تاوان لازموي او ورځخه اخلي به یې او که چیري محرم د ښکار حیوان رانیوی هم یې ایله کول پر لازم دی په صحرا میدان کي او که یې په مابین د ښار او بازار کي ایله کړی هم د قیمت خیرات پر لازمیږي وجه یې دا ده چي دلته ښکار ځان نه سي خلاصولای د خلقو ځخه نو لهذا دا ایله کېدل هم یې له فائدي دی او که یو کس د ښکار حیوان گیر کړی خوراک یې مکروه دی اګر که یې بل چا ته ورکړي او که یو کس د حرم ښکار گیر کړی او په زمین حل کي یې ایله کړی اوس که یې څوک مړ کړي او که یې مړ نه کړي پر ده لازم د قیمت خیرات دی ترڅو چي په یقین سره ده ته دا ثابته نه سي چي حرم ته بیرته هغه ښکار په امن سره راغلی دی همدا رنګه که محرم ښکار گیر کړي او بندي یې کړي ورځخه مړ سو جزا یې پر لازمه ده اګر که یې دی مړ نه کړي.

## فصل ښکار ته اشاره کول یا یې ځای ښوول

الدلالة و الاشارة و نحو ذلک وهی حرام مطلقا الا انه لوجوب الجزاء بها شرائط فالاول ان یتصل بها القتل فلو لم یقتله فلا شئ علی الدال و ان قتله فعلی کل واحد منهما جزاء کامل الثانی ان یبقی الدال محرما الی ان یقتله الاخر فان دله ثم حل فقتله المدلول فلا جزاء علی الدال لکن یاثم الثالث ان لا ینفلت الصید فلو انفلت ثم اخذه لا شئ علی الدال الرابع ان لا یعلم المدلول الصید و لا یراه حتی لو دله المدلول یعلم به من غیر دلالة لا شئ علی الدال الخامس ان یصدقه ف دلالته حتی لو کذبه و لم یتبع الصید حتی دله علیه اخر فصدقه فقتله فالجزاء علی الدال الثانی فلو لم یصدق الاول و لم یکذبه بان اخبره فلم یره حتی دله اخر فطلبه وقتله کان علی کل واحد منهما الجزاء کما علی القاتل السادس ان یکون الدال محرما فلو کان الدال حلالا فی صید الحرم والحل فلا شئ علیه الا انه یحرم

عليه ذلک والمذکور فی المشاهر من الکتب عدم لزوم شئ علی الدال مطلقا عند اصحابنا الثلاثة خلافا لزفر و لا يشترط کون المدلول محرما فلو دل محرما حلالا فی الحل فقتله فعلی الدال الجزاء ولا شئ علی المدلول و لو امر محرما فقتل صيد فامر المامور ثالثا فالجزاء علی کل من الثلاثة و کذا لو ارسل محرم محرما الی محرم يدله علی صيد بان قال له ان فلانا يقول لک فی موضع کذا صيد کذا فذهب فقتله فالجزاء علی کل من الثلاثة و لو قال محرم خلف هذا الحائط صيد فاذا خلفه صيود کثيرة فقتلها فعلی الدال فی کل واحد جزاء ولو رای واحد فدل عليه فاذا عنده غيره لا يضمن الدال الا الاول و لو قال خذ احد هذين وهو يراهما فقتلهما فعلی الدال جزاء واحد و ان کان فعليه جزاءان ولو رای صيد فی موضع لا يقدر عليه فدله اخر علی الطريق فذهب اليه فقتله فعلی الدال الجزاء ولو استعير سکينا لو قوسا لو سلاحا لو نشابا من محرم ليذبح به الصيد فذبحه به فان کان لايجد سواها فعلی المعير الجزاء و ان کان يجد غيرها فلا شئ عليه و لو امر لو دل حلال فی الحل محرما علی صيد فعليه الاستغفار و لا يلزمه شئ.

متن و بعده شرح ملا علي القاري

دا فصل ثابت دی په بیان کي د دلالت کولو ښکار ته معنا یو څوک ورپسي لستول یا کومک ورکول یا امر ورته کول یا د حلال شي لکه چاړه په لاس ورکول لوس بعضي وایي لشاره او دلالت یو شی دی او څوک وایي دلالت په ژبه سره وي او لشاره په لاس سره وي انتهي.

او تحقیق داسي دی چي دلالت غایب لره وي او اشاره حاضر لره وي او دلالت او لشاره یا مثل د دغو حرام دی پر محرم باندي مطلقاً معنا په حل او حرم کي او حلال سړي لره حرام دی په حرم کي علاوه دا د چي محرم دلالت پر ښکار ورکړي پر ده باندي هم جزا لازمیږي لیکن د یادولو وړ دا ده چي وجوب د جزا په دلالت یا اشارې سره څلور شپږ شرطونه لري:

١: اول شرط یې دا دی چي د ده د دلالت سره به متصل هغه حیوان د ښکار قتل کیږي معنا اصلي سبب به د ده لارښوونه وي او س چي لاره ور وښوي او هغه بل شخص یې قتل نه کړي نو پر محرم هم جزا نشته او که یې قتل کړی بیا نو جزا پر دواړو لازمیږي پر هر یوه جلا جلا کامله جزا لازمیږي.

٢: دویم شرط یې دا دی چي دلالت کونکی به تر هغه وخته پورې احرام بنده وي ترڅو چي هغه د ښکار حیوان قتل کیږي که یې دلالت ورکړی وروسته یې ځان حلال کړی او بیا هغه کس هغه ښکار مړ کړی بیا پر دلالت کونکي جزا نشته لیکن گناهگاره دی ځکه د احرام په وخت کي دلالت پر ښکار ورکولو گناه ده.

۳: دریم شرط یې دا دی چې دی دلالت وکړي او هغه بل کس ښکار ګیر کړي او ورڅخه خلاص نه سي او که چیرې ده دلالت وکړی او هغه یو ځل ټینګ کړی او سو او دویم وار یې بیا پخپله پوهې ټینګ کړی بیا هم پر دلالت کونکي جزا نه لازمیږي ځکه د ده دلالت پر ایله کېدو سره باطل سو لیکن ګناهګاره دی لکه چې تېر سوه درته.

۴: څلورم شرط د جزا دا دی چې کوم کس ته دی لاره وربښوي هغه به هیڅ د ښکار په ځای خبر نه وي که ښکار نه معلومېدی او که ښکار معلومېدی بیا به یې ویني نه چې دی یې ور وښوي او که چیرې ده ور وښودی او هغه ته پخوا څخه معلوم وو بیا پر دلالت کونکي هیڅ نه لازمیږي ځکه د ده دلالت او ښوونه بې ځایه تمامه سوه لیکن مکروه کار خو دی ځکه چې د معصیت بوی ورڅخه پیدا کیږي.

۵: پنځم شرط یې دا دی چې د ده قول هغه بل کس ومني او تصدیق یې کړي نو پر ده جزا لازمیږي اوس که چیرې دی لاره ور وښوي او هغه بل یې و نه مني او د ده په قول و نه کړي او بل سړي بیا لاره ور وښودل هغه کس عمل په وکړی او ښکار یې وویشتی هم یې کړی نو جزا یې پر دویم دلالت کونکي ده او که چیرې هغه سړي د ده خبره هم درواغ نه کړه او بل سړي بیا د ښکار دپاره لاره ور وښودل نو په دغه صورت کې پر دوی دواړو داسې جزا لازمیږئ لکه پر قاتل چې لازمیږي معنا پر هر یوه د ښکار پوره قیمت خیرات کول لازمیږي او که ښکاري سړي د دوی تصدیق و نه کړی او د خپل فکره څخه یې ښکار وکړی بیا صرف پر قاتل جزا لازمیږي.

۶: شپږم شرط دا دی چې لارښوونکی به احرام بنده وي که چیرې حلال سړي د حرم یا د حل د مځکې د ښکار دلالت وکړی هیڅ شی نه پر لازمیږي لیکن حرام کار دی ځکه په قرآن کې الله تعالی فرمایلي دي:

وتعاونوا علی البر والتقوی ولاتعاونو علی الاثم والعدوان. المائده ۲

معنا تاسې د یو بل سره د نیکۍ په کارو کې کومک کوئ نه د ګناه او سرکښۍ په کارو کې، او که دواړه معنا دلالت کونکی او ښکاري حلال وه بیا نو جزاء صرف پر قاتل ده په دواړو صورتو کې او زفر رحمه الله وایي چې یو روایت د ابو یوسف رحمه الله دا دی چې پر حلال دلالت کونکي هم جزا لازمیږي که یې د حرم ښکار یو چا ته ور وښووي او په الهاروني کې راغلي دي چې حلال سړي محرم ته لاره د ښکار وښوده نو پر حلال سړي د حیوان نیم قیمت خیرات کول لازمیږي او په جامع کې وایي هیڅ شی نه پر لازمیږي د یارانو پر مذهب بلدي انتهي او په مشهوره کتابو کې مطلقا زموږ د مذهب او د دري سره امامانو پر مذهب بلدي پر حلال سړي چې بل ته لاره وښیي هیڅ نه لازمیږي په خلاف د زفر رحمه الله.

او په ښکاري چي دا شرط نسته چي احرام بنده به وي بلکې که چيري محرم سړی په حل کي حلال سړي ته د ښکار ځای وښيي نو پر ښوونکي جزا لازمه ده نه پر ښکاري بانديځکه ښکاري حلال دی ځکه هم د حرم نه ده او که يو محرم بل محرم امر کړي چي ښکار وکړه او دويم محرم دريم سړي ته په ښکار سره امر وکړی هغه ښکار مړ کړی نو پر دوی درو سره وو باندي د کامل کامل ښکار قيمت خيرات کول واجب دی طرابلسي او بحر الزاخر هم دغسي ليکلي دي صرف الفتح کتاب ليکلي دي چي په دغه درو کي پر اول جزا نسته ځکه د ده امر نه دي عملي سوی او که چيري يوه محرم بل محرم داسي امر کړی چي دريم ته ووايه چي ښکار وکړه نو بياهم پر دري سره وو باندي جزا لازميږي.

او يوه محرم بل محرم داسي امر کړی چي زما د طرفه څخه داسي و دريم سړي ته ووايه چي ښکار وکړه نو که چيري هغه ښکار مړ کړی بياهم جزا پر دري سره وو لازميږي او که چيري محرم يو چا ته وويل چي د دغه دېواله تر شا ښکار دی مړ يې کړه او هغه کس چي ورغلی ډېر حيوانان يې د ښکار قتل کړه نو په دغه صورت کي چي هرڅونه هغه قتل کړي وي د هغو په شمېر سره پر دلالت کونکي حاجي د قيمتو خيرات کول لازميږي.

او که محرم بل محرم ته وويلي چي هغه ښکار ووله او هغه بل محرم بل ښکار وويشتی نو په دغه صورت کي پر اول محرم جزا نه لازميږي.

او که چيري ده دوه ښکاره ليدل بل ته يې وويل يو ښکار ورڅخه مړ کړه او هغه دواړه وه ښکاره يې ليدل مړه يې کړه بيا پر دلالت کونکي يو قيمت په کښي خيرات کول واجبيږي.

او که چيري دلالت کونکي هيڅ نه ليدل او بل ته يې وويل چي ورسره هغه د ښکار حيوانان وولة او هغه شخص چي وکتل په سترګو يې سول او مړه يې کړه بيا نو پر دلالت کونکي د دواړو قيمت خيرات کول واجبيږي ځکه د ده امر مطلق دی دواړو ته شمول کيږي.

او که يو محرم ښکار ليدی ليکن لاره يې سخته وه يا يې امکان نه ګڼی چي دا به دی قتل کړي او ورته وې ويل چي فلانی ځای ښکار دی قتل يې کړه او هغه هم په قتل ورسول جزا پر دلالت کونکي واجبيږي.

او که چيري يو کس د محرم څخه د ښکار دپاره چاړه يا غشي مثلا مرمی او سلاح وغوښتل چي زه د ښکار حيوان په وژنم او بل هيڅ شی دلته د بل چا سره نه وو نو بيا پر ورکونکي د ښکار د حيوان قيمت خيرات کول لازميږي او که نور شيان د ښکار کولو ډېر وه او بيا هم ده ورکړل بياهيڅ شی نه پر لازميږي ليکن عمل يې مکروه دی لکه ظاهره مسئله چي هم دغه ده او شمس الائمه السرخسي هم ويلي دي چي زما پر مذهب اصحه دغه

مسئله ده چې پر ورکونکي هيڅ شی نه لازميږي او اکثره مشائخ هم پر دغه مذهب دي د بدائع او طرابلسي د عبارتو څخه هم دغسې معلوميږي او که حلال سړي محرم ته په حل مځکه کې د ښکار ځايونه ور وښودل د ځان دپاره دي مغفرت وغواړي او شی نه پر لازميږي او که يې معاونت وکړی د محرم سره محرم سړي او يا يې د حلال سړي سره معاونت وکړی جزا پر لازميږي.

## فصل د ښکار د حيوان خرڅول يا رانيول جواز نه لري

لايجوز بيع المحرم صيدا في الحل و الحرم و لابيع الحلال في الحرم و لا شراؤهما من محرم و لا حلال فاذا باعه فهو باطل سواء كان حيا او مذبوحا في الاحرام او الحرم و لو هلك الصيد في يد المشترى فان كانا محرمين او حلالين في الحرم لزمهما الجزاء و ان كانا في الحل فعلى المحرم منهما و يضمن المشترى لبائع ايضا لفساد البيع ولو وهبه لمحرم فهلك عنده فعلى الموهوب له جزاء للصيد و ضمان لصاحبه و لواكله فعليه جزاء ثالث و على الواهب جزاء واحد و لو اخرج صيدا من الحرم فباعه في الحل من محرم او حلال فالبيع باطل و كذا لو ادخل صيد الحل الحرم ثم اخرجه و باعه و لو وكل محرم حلالا بيع صيد جاز و لو وكل حلال حلالا ثم احرم الموكل قبل القبض جاز ايضا ولو باع صيدا له في الحل وهو في الحرم جاز و لكن يسلمه بعد الخروج اليه و لو تبايعا صيدا في الحل ثم احرما او احدهما فوجد المشترى به عيبا رجع بالنقصان وليس له الرد و لو باع حلا لان صيدا ثم احرم احدهما قبل القبض انفسخ البيع ولو اصطاده وهو محرم ثم باعه وهو حلال جاز و لو غصب حلال صيد الحلال ثم احرم الغاصب و الصيد في يده لزمه ارساله و ضمانه لصاحبه و لو دفعه لصاحبه برئ من الضمان و لم يبراء من الجزاء و اساء و لو احرم المغصوب منه ثم دفعه اليه فعلى كل واحد منهما جزاء الا ان عطب قبل وصوله الى يده وان اخرجه احد الى الحرم لم يحل ولو اصطاده صاحبه وهو حلال و ادخله الحرم يضمن الغاصب.

متن و بعده شرح ملا علي القاري

محرم لره په حرم او حل کې او حلال لره په حرم کې د ښکار خرڅول او رانيول حرام دي که چيرې محرم د ښکار حيوان خرڅ کړی يا يې رانيوی د ده هرڅه باطل دي عامه خبره ده چې ښکار ژوندی او يا که حلال سوی وي په حل يا حرم کې او که چيرې د ښکار حيوان د خرڅونکي په لاس کې مړ سو نو که دواړه احرام بنده وه يا دواړه حلال وه خو په حرم کې وه نو په دواړو يې جزا لازمه ده او که دواړه په زمين حل کې وه بيا نو جزاء پر احرام بنده ده او رانيونکی به تاوان خرڅونکي ته ورکوي ځکه دا خرڅول فاسد کار دی.

که يې د ښکار حيوان بل ته وبخښي او هغه د ښکار حيوان ورڅخه مړ سو نو به يو

قيمت د ښكار خيرات كړي او بل به تاوان بخښونكي ته وركړي ځكه خيرات حق د الله دى او تاوان حق د بخښونكي دى ولي چي بخښنه فاسده ده او كه بې خوراك ورڅخه وكړى بيا دريمه جزا پر لازميږي او پر بخښونكي صرف يوه جزا لازميږي كه احرام بنده وو او كه حلال وو بيا هيڅ نه پر لازميږي.

او كه يو كس د حرم څخه د ښكار حيوان وايستى په زمين حل كي بې تينګ كړى او بيا بې پر حلال يا احرام بنده خرڅ كړى بيعه بې باطله ده او دغسي حكم د بطلان لري هغه ښكار چي د حل څخه حرم ته راسي او دى بې ورڅخه وباسي او بيا بې خرڅ كړي.

او كه محرم سړى حلال سړى د ځان د طرفه څخه وكيل كړي چي دغه ښكار خرڅ كړه بيعه بې د امام اعظم رحمه الله پر مذهب جواز لري ځكه په بيعه كي وكيل ته نسبت د خرڅولو كيږي او د يارانو پر مذهب بې بيعه باطله ده.

او كه حلال سړي بل حلال كس په خرڅولو سره وكيل كړى هغه پر يو كس خرڅ كړى رانيونكي لا قبض كړى نه وو چي اصل مالک د حج احرام وتړى دا هم د امام صاحب پر مذهب جائزه بيعه ده.

او كه يو كس په حرم كي وو او د ده د ښكار حيوان په حل كي وو او حرڅ بې كړى جواز لري ليكن تسليمول به هغه زمانه كوي چي د حرم څخه ووتى او كه دوو حلالو كسانو د ښكار سودا سره وكړه په زمين حل كي يا دواړو يا يوه احرام د حج وتړى نو رانيونكي عيب په كښي پيدا كړى نو په دغه صورت كي صرف د نقصان تاوان ورڅخه اخيستلاى سي نه داسي چي د ده د ښكار حيوان بيرته وركړي ځكه ردول او اقاله دويمه بيعه ده او دوى د دواړه كاره څخه منع دي.

او كه دوو حلالو كسانو د ښكار بيعه سره وكړه باره يوه په كښي احرام داسي زمانه وتړى چي هغه بل ښكار نه وو تسليم كړى بيعه بې بيرته فسخه كول غواړي جواز نه لري او كه يو محرم ښكار وكړى ليكن هغه زمانه بې خرڅ كړى چي د احرام څخه حلال سو نو دا بيعه جائز ده او كه يو كس د بل څخه په زوره د ښكار حيوان واخيستى او باره بې احرام وتړى او ښكار بې هم په لاس كي وو پر ده دوه شيان لازميږي يو ايله كول د ښكار د حيوان دويم تاوان اصلي مالک ته وركول او كه بې ښكار اصلي مالک ته وركړى بيا نو تاوان ورباندي نسته ليكن خيرات پر لازم او ګناهګاره هم دى او كه اصلي مالک احرام وتړى باره هغه غاصب د ده ښكار وركړى نو پر دواړو جزاء لازميږي ليكن هلته نه لازميږي كه د اصلي مالک لاس ته نه وو رسېدلى.

كه يو كس حلال وو ښكار بې وكړى او حرم ته ولاړى او بل چا ورڅخه په غصب

واخيستنی نو پر غاصب د تاوان حق لري د امام اعظم رحمہ اللہ علیہ پر مذهب باندي.

تنبيه: د هغه حيوان چي غوښنه يې خوړل کيږي خرڅول يې جواز نه لري که خرڅونکی حلال يا احرام بنده وي همدا رنګه جواز نه لري چي محرم يې حلال کړي لکه بدائع چي ليکلي دي او بل دا مسئله ده چي محرم د ښکار د حيوان مالک نه سي جوړيدلای که يې رانيسي او يا يې ورته هبه کړي او يا په ميراث ورته پاته سي او يا يو څوک وصيت ورته وکړي او که يې قبض کړي او رانيولی يې وو نو که هلاک سو بيا جزا پر لازمه ده داحق د الله تعالی دی او بل قيمت يې پر لازم دی دا حق د مالک دی او که يې بيرته ورتسليم کړي بيا نو د قيمت حق نه پر لري او خيرات به کوي صرف هلته خيرات نه پر لازميږي چي د ښکار حيوان ايله کړي. والله اعلم.

## فصل د حرم د ښکار حکم

صيد الحرم حرام على المحرم و الحلال الا ما استثناه الشارع فلو قتل محرم صيد الحرم فعليه جزاء واحد و ليس عليه لاجل الحرم شئ للتداخل ولو قتله حلال فعليه الجزاء ولو اتلف صيد مملوكا معلما فعليه قمته لمالكه معلما ولاجل الحرم قيمته غير معلم ولو ادخل محرم او حلال الحرم صار حكمه حكم صيد الحرم و لو ادخل باز يا فارسله فقتل حمام الحرم فلا شئ عليه و لو ارسله للقتل فعليه الجزاء ولو قتل صيدا بعض قوائمه فى الحل و بعضها فى الحرم فعليه الجزاء ولو كان قائما فى الحل و رأسه فى الحرم فلا شئ عليه و لو كان مضطجعا فى الحل و جزء منه فى الحرم فهو من صيد الحرم ولو كان فى الحل ضمن و لو اخرج ظبية من الحرم فولدت ثم ماتت هى والولد فعليه قيمة الجميع ولو ادى الجزاء ثم ولدت فليس عليه جزاء اولادها اذا متن ولو ذبح هذا الصيد فى الحل قبل التكفير او بعده كره كله و لو باعه و استعان بثمنه فى الجزاء جاز و قيل البيع باطل و لو خرج الصيد بنفسه من الحرم حل اخذه و ان اخرجه احد من الحرم لم يحل و لو رمى حلال من الحرم صيد الحل ضمن و كذا لو رمى من الحل الى صيد فى الحرم و لو رمى صيدا فى الحل فهرب فاصابه السهم فى الحرم ضمن ولو رماه فى الحل و اصابه فى الحل فدخل الحرم فمات فيه لم يكن عليه جزاء و لكن لايحل اكله و لو كان الرامى فى الحل و الصيد فى الحل الا ان بينهما قطعة من الحرم فمر فيها السهم لا شئ عليه و لو ارسل كلبا على ذئب فى الحرم او نصب له شبكة فاصاب الكلب صيدا او وقع فى الشبكة صيد فلا جزاء عليه و لو نصبها الشبكة للصيد فعليه الجزاء. و لو نصب خيمة فتعلق به صيد او حفر بئرللماء. فوقع فيه صيد لا ضمان عليه و لو اخذ حلال صيد الحرم فدفعه الى حلال اخر ثم دفعه الثانى الى اخر فذبحه فعلى كل واحد قيمة تامة ولو امسك حلال صيدا فى الحل وله فرخ فى الحرم فماتا ضمن

الفرخ لا دلام ولو اغلق بابه و فی البیت طیور و خرج الی منی فما تت الطیور عطشا فعلیه الجزاء و لو اخرج صید الحرم فارسله فی الحل لا یبرا. من الضمان الا ان یعلم وصوله الی الحرم امنا.

متن و بعده ترجمه و شرح ملا علي القاري

د حرم المحترم ښکار کول حرام کار دی پر محرم او حلال سړي باندي مګر هغه شیان چي په حدیث کي ورځخه وتلي دي چي د هغو مرګ روا دی چي پنځه شیان فاسقان وژنئ لکه مار، کارګه، مورک، ګیره سپی، تپوس. رواه مسلم و نسائي و ابن ماجه عن عائشه رضي تعالی عنه و رواه ابوداود عن ابي هریرة ﷺ.

مثلاً که محرم د حرم ښکار مړ کړي جزا یوه ورباندي ده د وجهي ځخه د احرام د ده او د حرم شریف جزا ځکه نه پر واجبیږي چي جزاګاني یو په بل کي سره داخلیږي نو دلته د حرم جزا د احرام په جزا کي داخله سوه یوه دانه جزا ورځخه جوړه سوه او که حلال سړي د حرم ښکار مړ کړی هم یوه جزا پر لازمیږي دا د حرم جزا ده که یو کس په حرم کي د بل سړي تعلیم یافته ښکار مړ کړی لکه باز یا توتي یا مثل د دو نو به مالک ته د ده د تعلیم یافته قیمت ورکوي او د حرم د احترام دپاره به د غیر تعلیم یافته جزا ورکوي ځکه الله رب العالمین ته تعلیم یافته او غیر تعلیم یافته سره برابر دي که محرم یا حلال د حل د ځکي ځخه د ښکار حیوان حرم ته داخل کړی بیا نو د حرم د ښکار حکم لري او که یو شخص خپل باز د حل ځخه ایله کړی مګر د حرم کوتره یې ورته راوړه شی په دې وجه نه پر لازمیږي چي د ده د حکم او تصرف ځخه وتلی دی او د باز د فعل نسبت سړي ته نه کیږي او که یې د حرم د کوترو دپاره ایله کړی بیا نو جزا پر لازمیږي ځکه ده ته د ښکاري نسبت اوس کیږي او که یې داسي ښکار مړ کړی چي نیمه خوا یې په حرم او نیمه خوا یې په حل کي وه بیاهم جزا پر لازمیږي ډېر او لږ ته دلته نظر نه کیږي او که ولاړ د حل په مځکه کي وو او سر یې په حرم کي وو بیا جزا نه لري ځکه د شي مدار پر پښو وي نه پر سر باندي او که پروت وو په حل کي یو جز یې په حرم کي وو بیاهم دی د حرم د ښکار ځخه ګرځي ځکه کرماني ویلي دي که پروت په حل کي وو او سر یې په حرم کي وو لا ضمانورباندي سته ځکه اعتبار سر لره دی انتهي.

ملاعلي القاري رحمه الله وایي چي سر لره اعتبار نسته بلکې هلته اعتبار لري چي ولاړ نه وي پروت وي او که پروت وو بیا نو حل او حرمت سره جمعه سوه د احتیاط په وجه اعتبار حرمت لره دی لهذا جزا پر لازمیږي او بدائع هم داسي ویلي دي که ولاړ وو بیا پښو لره اعتبار دی نه سر لره انتهي او مبسوط لیکلي دي چي د خوب په وخت کي چي یو جز د ښکار په حرم کي وي حکم د حرم د ښکار اخلي که د ښکار مرغه پر یو ښاخ ناست وو او ښاخ

هم په حرم کي راخړېدی ليکن اصلي تنه د درختي په حل کي ولاړه وه او ده ښکار مړ کړی ضمان ورباندي سته وجه يې دا ده چي اعتبار ښکار لره دی نه د درختي و بيخ لره او که يې د حرم څخه حملداره هوسۍ. وايستله او خارج د حرم څخه يې بچي پيدا سو باره دواړه مړه سول پر ده د دواړو تاوان خيرات کول لازم دی اوس سوال دا دی چي آيا د بچي د تاوان دپاره دا شرط سته چي دی به دونه قدرت ولري چي دغه بچی بيرته حرم ته رسولای سي نو به د نه رسولو په وجه پر ده دم لازميږي جواب دلته دوه تخريجه سوی دی چي دواړه په محيط کتاب کي بيان سوي دي چي اکثره مشائخ د ښکار د ايله کولو قدرت شرط بولي نو که ده قدرت دونه و نه درلودی چي دا بچی حرم ته ورسوي بيا ضمان نستهورباندي ځکه دلته شرعي مانع نسته او که چيري د ده قدرت د ښکار د رسولو وو حرم محترم ته او وې نه رسوی بيا نو تاوان د خيرات کولو د قيمت ځکه ورباندي سته چي دلته شرعي مانع وجود لري چي صاحب شرعه ورڅخه غواړي چي ښکار خپل اصلي مکان ته ورسوه او دی يې نه رسوي منعه ورڅخه کوي او بعضو علماؤ هيڅ شرط نه دی لګولی مطلقا وايي چي تاوان ورباندي سته ځکه امن و امان په حرم کي ده خراب کړی دی او که يې د هغه هوسۍ تاوان خيرات کړی چي مړه سوه او بچي يې وروسته تر تاوان پيدا سو بيا بله جزا د بچي نه پر لازميږي او که يې ښکار حلال کړی په زمين حل کي کوم چي ده د حرم څخه را ايستلی وو د دغه ښکار تاوان ده خيرات کړی وي او که يې نه وي خيرات کړی د دغه حيوان د غوښو خوراک جواز نه لري بلکي هرقسمه نفعه يې ورته مکروه ده لکه محمد رحمه الله چي تصريح همدغسي کړې ده او که چيري ښکاري د ښکار حيوان خرڅ کړی او بيا يې دغه قيمت خيرات کړی هم جواز لري وجه يې دا ده چي بدائع ليکلي دي چي کراهت خو د خوراک په وجه ورته موجود دی او رانيونکی خو جواز لري لکه په قاضي خان کي چي راغلي دي.

قيل ويلي دي چي د ابيعه باطله ده او ابن الهمام وايي چي د نظر تقاضا دا ده چي کفاره پر سري هلته لازميږي چي قدرت ولري چي حيوان زه بيرته رسولای سم د ښکار اصلي ځای ته او دی يې و نه رسوي د امن ځای ته او که د حرم څخه ده وايستی او حيوان د ښکار د ده د قبضې څخه ووتی قدرت د بېولو يې حرم ته نه کړی پيدا بيا نو د قيمت خيرات کول نه پر لازميږي که د حرم څخه حلال سړي د حل ښکار وويشتی تاوان ورباندي سته همدا رنګه حکم دی د هغه کس چي د حل څخه د حرم ښکار وولي اوس که يو سړی د حرم څخه په حل کي په يو ښکار پسې غشی خطا کړې او هغه ښکار توپ کړه په حرم کي غشي پر ولګېدی مړ سو بياهم تاوان ورباندي سته په بدائع او الحاوي کي علاوه دا ده چي محمد رحمه الله وايي دا مذهب د امام اعظم رحمه الله دی او الکرماني وايي جزا خو ورباندي سته ليکن

خوراک هم ورڅخه جواز نه لري او دا مسئله د امام اعظم رحمه الله د اصلي قانون څخه وتلې ده وجه يې دا ده چې د ده پر مذهب اعتبار و حال ته د ويشتلو دى هغه په حل کي وو نه حال ته د رسولو چې حرم دی په ټوله مسائلو کي ليکن په دغه مسئله کې د احتياط په وجه سره او د ضمان په وجه څکه دلته دوه جهته قرار لري يو د تاوان واجبونکی بل نه واجبونکی نو موږ جانب ته د وجوب غلبه ورکوو د احتياط په وجه سره انتهي په مبسوط کي تصريح داسي راغلې ده چې هيڅ جزا نه پر لازميږي ليکن د ښکار اخيستل ورته جواز لري د سپي وريسې کېدل هم دغه حکم لري او که يو کس په حل کي ښکار وويشتی تر ويشتلو بعد حرم ته حيوان د ښکار داخل سو او مړ سو جزا خو نه پر لازميږي ليکن د احتياط په وجه ورته جواز هم نه لري چې د ښکار حيوان را واخلي وې خوري اګرچې په الکبير کتاب کي وايي چې د قياس په تقاضا يې خوراک جواز لري ليکن د استحسان معنا شريعت يې مکروه بولي او که سړی هم او ښکار هم په حل کي وه ليکن تر مابين د دواړو يو قطعه ځکه د حرم وه او ده ښکار وويشتی بيا نو هيڅ نه پر لازميږي او خوراک هم د دغه ښکار ورته جواز لري وجه يې دا ده چې ويشتل او زخمي کيدل د ښکار دواړه په حل کي سوي دي او کوم چې د ده د غشي واری د حرم په هوا کي تيريږي دا خو ښکار نه بلل کيږي ترڅو چې دا پر ښکار و نه لګيږي پر ښکاري هيڅ نسته همدغسي المبسوط او الکرماني ليکلي دي.

او که ښکاري د حل څخه خيل باز په ښکار د حل پسې ولېږی او باز د خپل طبيعت په تقاضا د حرم ښکار مړ کړی نو دا جزا نه لري او ابن الهمام دغسي حکم کړی دی ليکن بدائع ليکلي دي چې د ښکار څخه دي خوراک نه کوي که چيري شرمنې په حرم کي وو ده سپي وريسې کړی هغه مړ کړی او يا يې جال ورته جار کړی وو په هغه کي ومښتی مړ سو جزا نه لري ځکه دا خو د هغه پنځه قسمه فاسقو حيوانانو څخه دی چې مرګ يې جواز درلودی او که يې د بل شي د ښکار دپاره جال ودروی مړ يې کړی جزا لري او که يې د ځان يا بل دپاره خيمه ودرول ښکار په کښې بند سو او يا يې څاه وکښی ښکار په کښې ولوېدی مړ سو جزا نه لري او که يو حلال سړي د حرم څخه ښکار ونيوی او بل ته هغه بل ته هغه بل ته ورکړی باره مړ سو پر هر يوه جلا جلا جزا د قيمت لازميږي ځکه چې تعاون پر يو قتل چې هر څونه کسان وکړي جزا پر لازميږي پر هر يوه تنها تنها او که حلال سړي په حل کي هوسۍ ونيوله او بچی يې په حرم کي وو مړ سو نو د بچي تاوان پر سته نه د هوسۍ که چيري يو کس د خپل کور دروازه را بنده کړه او د ده په کور کي مرغان وه دی چې منا ته ولاړی هغوی په کور کي چولاوه سوه د تندي څخه مړه سوه د ټولو جزا پر لازمه ده ځکه د مرګ سبب يې دی سو او که يو کس د حرم څخه د ښکار حيوان وايستی ترڅو چې يقيني ورته معلومه نه سي چې بيرته حرم ته تللی دی

ترهغو پوري پر ده جزا لازمه ده او که يو حلال سړي بل حلال سړي ته د حرم د ښکار ځای وښووی هيڅ نه پر لازميږي زموږ د احنافو علماؤ پر مذهب باندي.

## فصل د ملخ وژل

ولو قتل جرادة فی الحرم او الاحرام تصدق بشئ من طعام و تمرة خير من جرادة ولو قتلها مملوک فی احرامه ان صام يوما فقد زاد و ان شاء جمعها حتی تصير عدة جرادات فيصوم يوما ولو وطئ جرادا عامل او جاهلا فعليه الجزاء الا ان يکون کثيرا قد سد الطريق فلا يضمن ولو شوی جرادا فاکله بعد ما ضمنه فلا شئ عليه للاکل و يکره بيعه قبل الضمان و يجوز بعده.

متن و بعده ترجمه و شرح ملا علي القاري

که چيري يو محرم په حرم کي ملخ ښکار کړي د خوراک د شي څخه به خيرات کوي لکه عمر ﷺ چي فرمايلي دي چي يوه خرما تر ملخ بهتري لري لکه د نورو صحابه کرامو څخه هم دغسي روايتونه راغلي دي او مبسوط وايي چي قيمت دي خيرات کړي که يو مريي ملخ مړ کړي که يوه ورځ روژه ونيسي دا خو زياتوب دی ليکن روژه نه نيمايی کيږي نو د ده جزا ډېره ښه او کامله سوه او که يې خوښه وه پر دې ږدي که نور دونه ورڅخه مړه سوه چي نيم من غنم په جوړېدل باره دي يوه ورځ محيط وايي روژه ونيسي او که پر ملخانو ختل پوهېدل يا نه پوهېدل جزا پر لازميږي مگر نه په هغه صورت کي چي دونه ملخان ډېر وي چي لاره يې بنده کړې وي بيا جزا نه پر لازميږي بحر الزاخر هم دغسي ليکلي دي وجه يې ضرورت ښودلي ده او که يې ملخ مړ کړی او تاوان يې خيرات کړی او باره ې کباب کړی خوراک يې پروا نه لري ده او بل نه محرم او حلال ته د ښکار حکم مخالف دی.

ليکن خرڅول يې مکروه دی ترڅو چي تاوان يې ورکړی نه وي او تر تاوان بعد يې خرڅول جواز لري او که تر تاوان دمخه يې خرڅ کړی هغه روپۍ به خيرات کوي که يې خوښه وه همدغسي حکم د درختي د حرم او د شيدو د ښکار د حيوان خوړل دي او قاضيخان په شرحي د جامع صغير کي ويلي دي که محرم د حرم درخته وشکوي او يا د ښکار د حيوان هگۍ پخه کړي او يا يې د ښکار حيوان ولوشی او يا ملخان کباب کړي په تولو کي جزا سته معنا دومره قيمت به خيرات کوي او خرڅول يې مکروه کار دی او که يې خرڅ کړي جواز لري د روپو مالک گرځي د ښکار د حيوان حکم مخالف دی چي محرم يې مړ کړي داسي مثال يې دی لکه مردار سوی چي وي خرڅول يې جواز نه لري او که يې خرڅ کړي نو بيا به هغه روپۍ يا نوري د قيمت برابر خيرات کړي او رانيونکي لره جواز لري هيڅ پروا نه لري ځکه د نيولو او اخيستلو تر مابين فرق سته لکه هيڅ چي پټه نه ده دا مسئله او

بل کوم شی چي حلال نه غواړي لکه هګۍ دلته د محرم او غیر محرم فرق نسته.

## فصل د سپږي وژل

ان قتل محرم قملة تصدق بکسرة و ان کانت اثنتین او ثلاث فقبضه من طعام و فی الزائد علی الثلاث بالغاما بلغ نصف صاع و لو اتقی ثوبه فی الشمس او غسله لقصد هلاکها و ان فعل لغیر قصد الهلاک فلا شئ علیه و القاء القملة کقتلها و لو قال ادفع عنی هذا القمل او امره بقتلها او اشار الیها فقتلها فعلی الامر الجزاء. و الدلالة فیها موجبة کما فی الصید ولو قتل محرم قمل غیره فلا شئ علیه و لا شئ علی الحلال بقتلها فی الحرم.

متن و بعد ترجمه و شرح ملا علي القاري

که محرم سپږه مړه کړه یا یې وغورځوله یوه ټوټه ډوډۍ دي خیرات کړي که دوې یا درې وې بیا دي یو موټ غنم خیرات کړي او که تر درو ډیرې وې حساب دي ورته کوي چي نیم من غنم پوره سوه خیرات دي کړي لکه بدائع چي لیکلي دي او الفتح کتاب او حسن د امام اعظم رحمه الله څخه په جامع الصغیر کي روایت کړی دی چي د سپږي مرګ په وجه به یو لږ شی خیرات کړي همدغه معنا ورکوي چي تېر سو او الذخیرة کتاب ورته اصح ویلي دي او په ظاهره روایت کي هم مقدار نه دی معلوم سوی او که یو محرم خپل کالي لمر ته وغورځول یا یې پرېولل دپاره د وژلو د سپږو که ډیري وې نیم من غنم دي خیرات کړي او که یې دا قصد نه درلودی او لمر ته یې وغورځول یا یې پرېولل بیا نو هیڅ نه پر لازمیږي د سپږي غورځول او وژل سره برابر دي او که محرم حلال ته وویل چي دا سپږي راڅخه شوه کړه یا یې مړې کړه او یا یې اشاره ورته وکړه هغه مړې کړې یا یې وغورځولې پر امر کونکي جزا لازمه ده که محرم د بل محرم سپږي مړې کړې هیڅ نه پر لازمیږي او حلال سړي لره د سپږو وژل په حرم کي جواز لري او د محرم همدغسي حکم دی چي د بدن څخه ماسوا د مځکي څخه سپږه مړه کړي جزا ورباندي نسته.

## فصل هغه شی وژل چي په حرم او حل کي جزا نه لري

ولو صال صید او سبع علی المحرم فقتله لا شئ علیه ولا شئ مطلقا بقتل الذئب والکلب الاهلی و الوحشی و العقور وغیره والحداة و الغراب الذی یاکل الجیف و ان کان الصد ماکول اللحم کحمار الوحش لا یعتبر ابتداؤه و یضمن ولو خلص حما ما من سنور فمات لا ضمان علیه و کذا کل فعل یراد به اصلاح الصید و لا شئ بقتل هو ام الارض کالحیة و العقرب و الفارة و الخنافس و الجعلان و ام جبین و صیاح اللیل و النمل و السلحفات و القراد و القنفذ والسنور و ابن عرس الاهلی والبعوض والبراغیث والذ باب والحلم و الزنبور و الوزغ و السرطان والبق و الصرصر و یجوز له ذبح الابل و البقر و الغنم

والد جاج و البط الاهلی الذی لا یطیر.

متن و شرح ملا علي القاري

که د ښکار حیوان پر حاجي حمله کوله او ده مړ کړی هیڅ نه پر لازمیږي برابره خبره ده که دا حیوان درنده وي چي غوښنه یې نه خوړل کیږي او یا داسي حیوان وي چي غوښنه یې خوړل کېدله دا مذهب د څلورو امامانو دی او په محیط او المنتقي کي یې راوړي دي که یې په سلاح د ځانه څخه دفع کولای سو او بیا یې لاهم ده په قتل ورسوی جزا پر لازمه ده او که یې حمله و نه کړه ده په قتل ورسوی بیا نو په اتفاق سره د مذاهبو جزا پر لازمه ده د دغه عبارت مثل د طرابلسي هم دی.

هیڅ شی نه پر لازمیږي لږ وي که ډېر په حرم کي وي که په حل کي احرام بنده وي که حلال په وژلو سره د شرمښ یا خانګی سپی یا وحشي یا ګیره وغیره لیکن په ظاهر روایت کي ګناهګاره بلل سوی دی هغه شخص چي سپی ګیره نه وي دی یې مړ کړي او تپوس، کارګه چي نجاستونه خوري یا لنبي هم شی نه پر لازمیږي د دغه شیانو په قتل سره په اهمة المناسک کي راغلي دي که داسي حیوان چي غوښنه یې خوړل کېدله لکه وحشي حمار یا د ده مثل شروع وکړه په ضرر رسولو سره او ده په قتل ورسوی جزا پر لازمیږي که پشي پر کوتري حمله کوله ده پشي منع کړه او هغه مړه سوه پر ده شی نسته همداسي حکم د هر هغه شي دی چي اصلاح په کښني د ښکار مقصود وي.

د مځکي د حشراتو په وژلو سره هیڅ نه لازمیږي نه په حل نه په حرم کي نه پر محرم نه پر حلال نه هم ګناه لري لکه مار، لړم، موږک کورنی او دښتي، خنافس یو کوچنی تور حیوان دی او کوخکه صیاح اللیل چي د شپې آوازونه کوي مېږی تور او ژړ که یې ضرر رسوی که یې ضرر نه رسوی بیا جواز نه لري سلحفات معنا شمشتی لکه کیشف داسي شی دی لکه دا په اوبو کي ګذاره کوي اکثره قراد معنا منګوږ او قنفذ هم دغسي شی دی او سنور خانی یا بیاباني پشي نه ویل کیږي ابن عرس هم شکل په منجد کي لکه د پشي بعوض غوماشه، براغیث (کیکه) زباب (مچ) حلم لکه منګوږ داسي شی دی معنا بریځه زنبور (غالبوزه) وزغ (کربوړی) سرطان (چنګاښ) البق (غوماشه) صرصر یو قسم چرګ رقمه حیوان دی یا لکه ملا چرګک د دغه حیوانانو په قتل سره هیڅ نه لازمیږي علاوه دا ده چي محرم لره د اوبښ، غوایی، پسه، چرګ، هیلی خانګي چي نه الوځي حلالول او خوړل جواز لري.

## فصل د محرم ذبحه

اذا ذبح محرم او حلال فی الحرم صیدا فذبیحته میتة لا یحل اکلها له و لا لغیره من محرم و حلال سواء اصطاده هو او غیره محرم او حلال و لو فی الحل او ارسل کلبه او بازیه و

لو اكل المحرم الذابح منه شيئا قبل ادا. الضمان او بعده فعليه قيمة ما اكل و لو اكل منه غير الذابح فلا شئ عليه سوى الاستغفار و لو اكل الحلال ما ذبحه في الحرم بعد الضمان لا شئ عليه للاكل ولو اصطاد حلال فذبح له محرم او اصطاد محرم فذبح له حلال فهو ميتة ولو شوى محرم بيضا او جراد او حلب صيدا و ادى جزاؤه ثم اكله فلا شى عليه للاكل و يجوز له تناول اللبن و البيض و الجراد مع الكراهة و يجوز لغيره و لو اضطر المحرم الى الصيد و الميتة يتناول الصيد و يودى الجزاء.

متن و بعده شرح ملا علي القاري

د محرم او حلال د ذبحي حکم يې له شبهې حرام دی او هغه حيوان چي دوی په حرم کي د ښکار حلال کړي نو مثال يې د خود مرده دی زموږ پر مذهب او د مالک رحمه الله او احمد رحمه الله پر مذهب خوراک يې نه و ده ته او نه بل ته جواز لري که بل سړی محرم وي که حلال لکه د خود مرده هم دغه حکم دی د ضرورت څخه ماسوا برابره خبره ده چي دغه ښکار محرم پخپله يا د ده په امر سره يا د ده په دلالت سره يا د ده په سپي يا باز سره نيول سوی وي دی حلال کړي يا يې بل محرم حلال کړي يا حلال وباسي په حل مځکه کي يې حلال کړي خوراک يې جواز نه لري او که چيري پر دغه سربېره لا محرم په خپله خوراک ورڅخه وکړي د دغه حلال کړل سوي ښکار څخه اوس که ده د ښکار قيمت خيرات کړی وي او که لا نه وي خيرات سوی يو قيمت خيرات کول پر لازميږي نه زيات د امام اعظم رحمه الله پرمذهب ياران وايي شی نه پر لازميږي بلکې د خدايه څخه به مغفرت غواړي او په اجماع سره د علماؤ يې جزا يوه ده ځکه په اتفاق سره د علماؤ جزاګاني يې يو په بل کي داخليږي او يوه ورڅخه جوړيږي او دا فرق نه لري دی يې وخوري يا يې سپي ته واچوي صرف د غوښي د قيمت برابره خبره د خلاف موضع ده او که حلال سړي ښکار حلال کړی په حرم کي تاوان يې خيرات کړی باره يې خوراک ورڅخه وکړی شرح المجمع تصريح داسي کړې ده لکه ماتن چي هيڅ نه پر لازميږي په اتفاق سره د علماؤ ياد لره چي دلته اصلي مسئله داسي ده چي بل يې حلال کړي او دی يې وخوري صرف استغفار ويل غواړي او که حلالونکی يې پخپله وخوري کفاره او استغفار دواړه غواړي او که محرم ښکار وکړی او حلال سړي يې ذبحه کړي يا حلال ښکار وکړي محرم يې ورته حلال کړي په دواړه صورته کي دا حلال سوی حيوان حکم د مردار لري خوراک يې جواز نه لري که محرم سړي هګۍ پخه کړه يا ملخ او يا يې د ښکار د حيوان څخه شيدې ولوشلې او تاوان يې خيرات کړی باره يې وخوړې بغير د استغفار څخه بل شی نه پر لازميږي او محرم سړي لره اخيستل د هګۍ يا شيدو او يا ملخ جواز لري ليکن عمل يې مکروه دی او غير محرم لره بيا بې له کراهته جواز لري او که محرم

سري د ډيري لوږې څخه محتاج سو و خوړلو ته د مردار يا د ښکار څه به کوي؟ نو به د ښکار غوښې خوري او بيا به يې تاوان خيرات کوي وروسته دا د امام اعظم رحمه الله او ابو يوسف رحمه الله مذهب دی دليل يې دا دی چې مردار خو د اصله څخه يې خوراک جواز نه لري او د ښکار د خوراک څخه خو د احرام يا حرم د وجهې منعه دي او په اصل کې جواز لري علاوه دا ده که بل چا حلال کړی وو خو ښيخې ورته جواز لري اګرچې قاضيخان مردار لره پر ښکار غوره والی ورکړی دی او د زفر رحمه الله همدغه مذهب دی.

## فصل د حلال سړي ښکار خوړل و محرم ته جواز لري

يجوز للمحرم اکل ما اصطاده الحلال لنفسه فی الحل او للمحرم و ذبحه ان لم يدل عليه محرم ولا امره بصيده و لا اعانه عليه و لا اشار اليه فان فعل شيئا من ذلک لم يحل النوع السابع فی اشجار الحرم و نباته و هی انواع الاول کل شجر انبته الناس و هو من جنس ما ينبته الناس کالزرع الثانی ما انبته الناس وهو ليس مما ينبتون عادة کالاراک و الثالث ما نبت بنفسه وهو من جنس ما ينبته الناس فهذه الانواع يحل قطعها و اما النوع الرابع فهو کل شجر نبت بنفسه وهو من جنس مالا ينبته الناس کام غيلان فهذا محضور القطع و القلع علی المحرم و الحلال مملوکا کان او غير مملوک الا اليابس و الاذخر فلو قلع شجرا او حشيشا فعليه قيمته فان کان مملوکا فعليه قيمتان قيمة لحق الشرع و قيمة للمالک ولو انقلعت شجرة ان کان عروقها لا تسقيها فلا بأس بقطعها و لو قطع شجرة فغرم قيمتها ثم غرسها فنبتت ثم قلعها ثانيا فلا شئ عليه ولوحش الحشيش فان خرج مکانه مثله سقط الضمان و الا لا شجرة اصلها فی الحل و اغصانها فی الحرم فهی من شجر الحل ولو کان اصلها فی الحرم فهی من شجره الحرم و يجوز قطع الاذخر رطبا و يابسا و اخذ الکمأة و ما جن من الشجر و الحشيش او نکرسر و لا ضمان فيه و يحرم قطع الشوک و الموسج ولا ضمان فيه و فو حفو حفيرة للخبز او للوضوء او ضرب الفسطاط او اوقد نارا او مشی هو و دابته فانقطع به شئ من الحشيش فلا شئ عليه و لا يجوز اتخاذ المساويک من اراک الحرم و سائر اشجاره اذا کان اخضر و يجوز اخذ الورق و لا ضمان فيه اذا کان لا يضر بالشجر و لا يجور رعی الحشيش و لو ارتعت دابته حالة المشی لا شئ عليه و يکره الانتفاع بالمقلوع من نبات الحرم و ان ادی قيمته و ان باعه جاز و کره و يقصد بثمنه و جاز للمشتری الانتفاع به من غير کراهة و حکم الحلال و المحرم فی اشجار الحرم واحد و کذا علی القاری فيها جزاء واحد والله سبحانه اعلم.

متن وشرح علي القاري بعده

په اجماع سره د علماؤ محرم لره جواز لري چې خوراک وکړي د هغه ښکار څخه چې حلال سړی يې د ځان يا د بل محرم دپاره ښکار کړي او بيا يې په خپله حلال کړي نه بل

څوک چي شرطونه يې را روان دي چي محرم به دلالت يا امر د ښکار نه وي ورته کړی او نه به يې کومک يا اشاره ورته کړې وي او که يې يو په دغه کارو کي وکړی بيا نو ده ته خوراک جواز نه لري او اوومه نوعه په بيان کي د حکم د درختو د حرم دی يا د وابنو چي دا درختي څلور قسمونه لري:

۱: يو قسم داسي وي چي خلگ يې عادتاً شنه کوي لکه کښتونه.

۲: دويم قسم دا دی چي عادتاً خو يې خلگ کري لکه د کيکر درخته چي د مسواکو درخته هم ورته ويل کيږي.

۳: دريم قسم داسي وي چي عادتاً خو يې خلگ کري ليکن دلته په خپله شنه سوې وي نو د دغه دري سره قسمونو کښل ماتول او نفعه پر اخيستل جواز لري هيڅ جزا نه لري.

۴: څلورم قسم داسي درختي دي چي پخپله شنې سوي وي او عادتاً يې هم خلگ نه کري لکه د ام غيلان درخته نو دا قسم درخته که د چا په ملک کي شنه سوې وي او که په ملک د هيڅ چا نه وي پرېکول يا کښل يې جواز نه محرم او نه حلال ته لري صرف هغه زمانه جواز لري چي وچه سي بيا نو لرگي دي نه درخته او سورگنی هم جواز لري.

که يې د حرم څخه وابنه يا درخته لنډه وکښل نو يو به قيمت و خاوند ته ورکوي او بل به خيرات کوي او که يې وچه درخته وکښل پروا نه لري که يې يوه درخته وکښل تاوان يې ورکړی باره يې بيرته کښېنول دويم وار يې بيا وکښل هيڅ جزا نه لري او که يې د حرم وابنه وشکول خو نور پر هغه ځای شنه سوه نو جزا نه لري او که شنه نه سوه بيا يې تاوان پر لازميږي يوه درخته وه چي ريښې يې په حل کي وې او ښاخونه يې په حرم کي وه نو دا د حل درخته ده او که يې بيخ په حرم کي وو او ښاخونه يې په حل کي وه نو دا هم د حرم بلل کيږي ځکه د درختي ريښې پر منزله د انسان د پښو دي او ښاخونه يې پر منزله د لاسو دي او که يې بعضي ريښې په حرم او بعضي په حل کي وې بياهم احتياطاً د حرم درخته ده د سوگنی لوند او وچ وابنه او پوڅکې او وچ وابنه يا ماته سوې درخته يا وابنه پرېکول جزا نه لري او حرام دي پرېکول د وابنه يا اغزي ليکن تاوان نه پر لازميږي که يې کنده جوړه کړه د ډوډۍ يا د لوداسه يا خيمې دپاره او يا يې اور بل کړی او يا دی او د ده د سپارۍ حيوان روان وو نو که په دغه اسبابو سره د حرم وابنه خراب سوه يا وچ سوه ضمان نه لري ځکه دا تر اختيار وتلي کارونه دي او جواز نه لري چي د مسواک د درختي څخه و ځان ته مسواک جوړ کړي همدا رنگه منعه د هري شنې درختي په باب ده بلگونه د درختي هيڅ تاوان نه لري چي وا يې خلي د درختي څخه که يې درختي ته تاوان نه رسوی او د حرم د وابنو خوړل په حيوانانو سره د امام اعظم رحمه الله پر مذهب جواز نه لري او که پر حيوان سپور وو او د لاري څخه يې

خوراک کوی یا حیوان ودربدی او خوراک یې وکړی هیڅ پروا نه لري دا متفقه مسئله ده او پر هغه پرې سوي وابنه چي د حرم څخه وي نفعه اخيستل مکروه دی او که يې خرڅ کړه جواز لري مګر مکروه عمل دی قيمت به يې خيرات کړي او رانيونکي لره بې له کراهته جواز لري د بدائع حکم دی چي تر پرېکولو بعد قابل د غنېدو نه دی حکم د حلال او محرم نر او ښځي د حرم د درختو د شکولو په باب يو دی او پر قارن حاجي هم يوه جزا په کښې لازميږي ځکه سبب يې يو دی چي بې عزتي د حرم ده الله بنه وربانديږي خبر دی.

## باب په بيان کي د جناياتو او د کفارې د طريقې دی

اعلم ان الکفارات کلها واجبة على التراخي فلا ياثم بالتاخير عن اول وقت الامکان و يکون مؤديا لا قاضيا في اى وقت ادى و انما يتصيق عليه الوجوب في اخر عمره في وقت يغلب على ظنه انه لو لم يؤده لفات فان لم يؤد فيه فمات اثم و يجب عليه الوصية بالاداء و لو لم يوص لم يجب في الترکة و لا على الورثة و لو تبرع عنه الورثة جاز و لا يصومون عنه و الافضل تعجيل اداء الکفارات.

متن و شرح على بعده

اوس هغه باب شروع کيږي چي د کفارې معنا هغه جزا چي د ده څخه يو داسي عمل وسي چي بې عزتي د حرم راولي په دغه صورت کي پر ده کفاره لازميږي هغه کفاره به د ده د بې عزتي جبيره وسي کوم چي په حرم يا احرام کي ورڅخه سوې ده نو اوس پوه سه چي هر څونه کفارې د حج په دوران کي پر سړي لازمي سوي د دې وخت لنډ نه بلکې تر وله عمر د ده دی لهذا که ورڅخه وځنډېدل نه ګناهګاره کيږي بلکې که غالب ګمان د ده دا سو چي زه اوس مرمه نو په دغه وخت کي بيا داسي تنګي سته چي دستي به دا کفاره ادا کوي او که مړ کېدی وصيت پر لازم دی چي زما د طرفه څخه دا کفاره اداء کړئ او که يې وصيت و نه کړی پر وارثانو نه واجبيږي اګر که يې مال هم پاته سي او که وارثانو تبرع کوله بيا جواز لري ورته ليکن د ده پر ځای وارثان روژې نه سي نيولای که يې زړه غوښتل يو پسه دې ذبحه کړي يا دې دونه د خوراک شی وربيسې خيرات کړي غوره دا ده چي د کفارې په ادا ينه کي تلوار وکړي ځکه دا مسارعت دی او چابکي ده د خير و کار ته.

## فصل د کفارې شرطونه

شرائط وجوب الکفارة فمنها الاسلام و العقل والبلوغ فلا تجب على الصبي و مجنون و لا على وليهما الا اذا جن بعد الاحرام ثم افاق و لو بعد سنين فيجب عليه جزاء ما ارتکبه في الاحرام و لا على کافر و اما الحرية فليست بشرط فيجب على المملوک الصوم في الحال فيما يجوز فيه الصوم و اما الدم و الصدقة فيجب عليه اداؤه بعد العتق فيکون

وجوبا موقوفا علی اداء الواجب وهو ان یکون فی ملکه فضل مال علی کفایته فحینئذ یوخذ به الطعام او الدم او لم یکن له فضل مال و لکن فی ملکه عین الواجب علیه من طعام او دم صالح للتکفیر فاذا کان فی ملکه ذلک وجب علیه اداؤه سواء کان علیه دین اولا و المعتبر فی القدرة وقت الاداء لا وقت الوجوب و اما النائم و المغمی علیه فیجب الجزاء بارتکاب المحظورات فلو انقلب النائم علی صید فقتله فعلیه الجزاء و کذا المغمی علیه و یستوی فی وجوب الجزا الرجل و المرأة و العامد والناسی والخاطئ والساهی والطائع و المکره و المتدی والعائد والحاج و المعتمر و المعذور وغیره و النائم والیقظان والصاحی و السکران و المفیق و المغمی علیه و المباشرة بالنفس او بالغیر فلو البسه احد او طیبة او حلق رأسه وهو نائم اولا فعلی المفعول جزاء سواء کان بامره اولا.

متن و ترجمه و بعده شرح ملا علي القاري

د کفارې شرطونه کوم چي دغه شرطونه موجود سي نو پر سړي کفاره واجبيږي او که دا شرطونه نه وه موجود سوي بيا نه پر واجبيږئ اول شرط اسلام دی پر کافر نسته دا خو نژدې کونکې و ثواب ته دی کافر اهل د ثواب نه دی او دویم شرط عقل دریم بلوغ دی نو پر کوچني او لېوني او د دوی پر اقرباؤ نسته مگر که داسي لېونی وو چي احرام يې وتړی نيت د حج يې وکړی باره لېونی سو باره پرسد سو اگر که ډېر کلونه پس وي نو د احرام په وخت کي چي ممنوع کار ورڅخه سوی وي کفاره به ورکوي او حريت ورلره شرط نه دی بلکې پر مريي هم واجبيږي دستي که روژې نيول وه او که دم يا خيرات پر لازم سو بيا د ده تر آزادېدو بعد پر لازميږي او څلورم شرط يې قدرت پر ادا دی چي دونه مال به لري چي د ده تر کفايت د خرڅ او نفقې او کالو زياتي وي علاوه دا ده چي دا اندازه يا د کال تېرېدل نه غواړي که يې مال درلود نو به د خوراک شی که پر لازمېدی که دم پر لازميدی کوي به يې او معتبر په قدرت کي وخت د اداء دی نه وخت د وجوب که د بيده يا ېبسده ځخه ممنوع کار وسو هم دم پر لازميږي اگرچي گناه يې ورلره نسته مثلا که بيده سړی پر يو حيوان يا مرغه د ښکار را واوښتی جزا يې پر لازمه ده دا د محيط مسئله هم ده د ېبسده همدغه حکم دی په جزا کي نر او ښځه قصد او ناقصدي هيره او خطا زور او رضا اولي شروع او د دويم واري حاجي او عمره کونکی مفرد او قارن بيده او ويښ پر حال او مدهوش په خپله کول يا بل په زوره کول دا ټوله په جزا کي برابر دي معنا دا چي پر هر يوه جزا او کفاره لازميږي او که بل په سړي يو ممنوع کار وکړی هم پر ده دم لازميږي اگرچي مثلا په خوب کي يې سرور خريلي وي د ده خوښه وي او که نه.

## فصل د حرم د درختو کفاره

اذا جنی علی نبات الحرم فعلیه قیمته کبیرا کان الشجر او صغیرا فیشتری بها

طعاما يتصدق به على الفقراء كل قفيز نصف صاع من بر ان كثر و ان كان اقل من نصف صاع اعطى لفقير واحد و ان شاء اشترى بالقيمة هديا و تصدق بلحمه على الفقراء و لو تصدق به على فقير واحد جاز و يجوز الهدى فى جزاء شجر الحرم بشرط ان تكون قيمته قبل الذبح مثل الشجرة فيتادى الواجب بالا راقة فلو سرق بعد الذبح لا شئ عليه و ان شاء تصدق بالقيمة ولايجوز الصوم فى جزاء شجر الحرم.

متن و بعده ترجمه و شرح علي القاري

كه يې د حرم پر ونبو جنايت وكړى پرې يې كړل يا يې وكښل غټه درخته وي كه كوچنۍ وي محرم وي كه حلال وي حتى پر قارن حاجي لا يوه كفاره لازميږي معنا داسوه چي د دغه درختي يا بل شي قيمت به را واخلي د خوراك شى به په رانيسي كه ډېر وو د حرم مسكينانو ته به نيم نيم من غنم وركړي كم جواز نه لري او كه نيم من غنم يا كم پر لازمېدل يا دي و يوه مسكين ته وركړي او كه يې خوښه وه يو پسه دي په رانيسي حلال دې كړي خيرات دې كړي پر فقيرانو خلقو او كه يې ټوله غنم يوه فقير ته وركړه هم جواز لري او د حرم د درختو په عوض كي هم پسه خيراتولاى سي كه يې تر حلال دمخه دونه قيمت درلود لكه د درختي او كه يې حلال كړى باره ورځخه غلا سو پروا نه لري اګرچي روايتونه دلته دوه راغلي دي په يوه كي وايي چي ضرور به د كفارې خيرات پر مسكينانو باندي تقسيموي لو په بل روايت كي وايي چي قيمت د پسه او درختي برابر وو بيا نو چي حلال سو كفايت كوي او كه يې قيمت تر درختي كم وو بيا نو كفايت نه په كيږي او په ظاهره روايت كي داسي راغلي دي چي حلال يې كړى نور څخه بعد ضروري نه دى علاوه دا ده چي د قيمت برابري د درختي سره تر حلال دمخه ضروري ده په مصفي كي هم دغسي راغلي دي د حرم د درختي په شكولو سره كفاره روژه نه سي كېداى زموږ د احنافو پر مذهب باندي د زفرصاحب څخه دلته دوه روايته سوي دي.

## فصل د حرم د ښكار كولو جزاء

اذا قتل صيده فعليه قيمته فان بلغت هديا اشتراه بها ان شاء و ان شاء اشترى بها طعاما فتصدق به كما مر و يجوز فيه الهدى بشرط ان تكون قيمته قبل الذبح مثل قيمته الصيد و لا يشترط ان يكون مثلها بعد الذبح و اما الصوم فى صيد الحرم فلا يجوز للحلال و يجوز للمحرم.

متن و بعده شرح ملا علي القاري و ترجمه

د حرم محترم ښكار كه محرم او يا حلال سړي وكړى د قيمت خيرات يې پر لازمېږي نو اوس د ده اختيار دى كه يې خوښه وه پسه به رانيسي خيرات به يې كړي او كه يې د خوراك

شیان په رانیول خیرات یې کړه یا یې د خان سره پسه درلود خیرات یې کړی جواز لري خو شرط دا دی چې تر حلال دمخه نه وروسته به د ده پسه د ښکار د قیمت سره برابر وي او د حرم د ښکار کولو په وجه سره که روژه لازمېدل هغه پر محرم نه پر حلال سړي باندي په شرحي د قدوري کي راغلي دي چي د خوراک شی د حرم د درختو په عوض کي ورکول جواز لري او روژه جواز نه لري زمونږ د احنافو د مذهب د امامانو پر مذهب باندي خو دا د حلال حکم دی او کوم چي محرم دی ده لره روژي هم جواز لري هد یې هم جواز لري یې له خلافه څخه په ظاهره قول کي دلیل دا دی چي دلته دوه حرمته سره جمع سول او د دواړو جمع کېدل مشکل کار دی نو اعتبار قوي حرمت لره دی هغه د احرام دی نو یې نسبت و احرام ته کیږي او احکام د ده پر مرتب کیږي او په شرحي د قدوري کي هم دغسي تصریح راغلي ده چي محرم دي خپله کفاره په روژو سره ادا کړي او د کنز د شرح په حواله چي قیاس وایي دوې جزاګاني پر لازمیږي مګر شریعت یوه پر لازمه کړې ده ځکه چي د احرام حرمت قوي دی د حرم تر حرمت نو اعتبار د قوي واجب دی او د مشکل توب په وجه سره هم نسبت و قوي ته کیږي انتهي.

## فصل د مطلق ښکار جزا په حرم او احرام کي

وصفة ادائه و قدره و کیفیته و وجوبه اذا قتل المحرم صید فعلیه قیمته یقومه ذوا عدل لهما بصارة بقیمته الصیود فی المقتل ان کان یباع فیه الصید او فی اقرب مکان من العمران الیه الذی یباع فیه الصید و یعتبر الزمان الذی اصابه فیه و یشترط للتقویم عدلان غیر الجانی و قیل الواحد یکفی و سواء کان الصید مما له نظیر او کان مما لیس له نظیر ثم ان بلغت قیمته هدیا فالقاتل بالخیار بین الطعام و الصیام و الهدی و ان لم تبلغ ثمن هدی فهو مخیر بین الطعام و الصیام و ان اختار الهدی فان بلغت القیمة بدنة او بقرة ان شاء اشتراها بقیمة الصید او اشتری بها سبع شیاه الا ان شراء البدنة افضل من الاغنام و ان فضل شئ من القیمة ان شاء اشتری به هدیا اخر ان بلغه و ان شاء صرفه الی الطعام و اعطی کل مسکین نصف صاع و ما فضل ان کان اقل منه الفقیر و ان شاء صام عن کل نصف صاع یوما او عن الباقی ان اقل کما فی الصید الصغیر الذی لا تبلغ قیمته هدیا و لا یجوز فی الهدی الا ما یجوز فی الاضحیة فلا یتصور التکفیر بالهدی الا ان تبلغ قیمته جذعا عظیما من الضان او ثنیا من غیره و لا تجوز الصغار کالجفرة و العناق والحمل الا علی وجه الاطعام بان یعطی کل فقیر من اللحم ما یساوی قیمته نصف صاع من بر و یجوز ان یتصدق بلحم الهدی علی مسکین واحد او مساکین و یسقط بالذبح لو ضاع بعده لا شئ علیه و ان اختاره الطعام للتکفیر اشتراه بالقیمة واعطی کل مسکین نصف صاع من بر او طاع من تمر او شعیر و لایجوز ان یطعم المسکین اقل من نصف صاع الا ان یفضل او یکون الواجب اقل منه فیعطیه لمسکین واحد و ان اعطی اکثر من نصف صاع

لفقير فهو تطوع و عليه ان يكمل بحسابه و اذا فضل اقل منه ان شاء صام عنه يوما او اطعمه مسكينا و يجوز الاباحة فی جزاء الصيد و ان اختار الصيام يقوم الصيد طعام ثم يصوم عن كل نصف صاع من بر لو صاع من غيره يوما و ان كان الواجب دون الواجب و اما ان يصوم عنه يوما و له ان يختار الصوم مع ان القدرة علی الهدی و الطعام و يجوز له الجمع بين الصيام و الطعام والدم فی جزاء صيد واحد بان بلغت قيمته هدايا فذبح هديا واطعم عن هدی و صام عن اخر.

متن و بعده ترجمه و شرح ملا علي القاري

دا فصل په بيان کي د مطلق جزاء د حرم او د احرام کي دی او طريقه يې دا ده او انداز لو ډول او وجوب ته متوجه سه که چيري يو محرم ښکار په قتل ورسوی نو د قيمت خيرات کول يې پر واجب دی چي دوه عادل کسان به يې قيمتوي داسي کسان چي په قيمتو کي د ښکار د حيواناتو پوهنه لري او ځای د قيمت به هم هغه ځای وي کوم ځای چي ښکار قتل سوی دی که په هغه ځای کي د ښکار خاص يا عام حيوانان خرڅېدل او يا هغه نژدې ځای د قتل و ځای ته چي کوم ځای خرڅېږي په وطن کي او زمانه هم هغه وخت معتبر دی چي ښکار په کښې قتل سوی دی پر اصح مذهب باندي ځکه د زمانې په تېرېدو سره اختلاف په قيمتو کي راځي د قيمت اېښودلو دپاره شرط دوه عادل کسان دي چي صريح آيات په کښې وارد سوي دي او په دغه دوو کي جنايت کونکی نه حسابيږي چي عز بن جماعة دا نسبت و امام اعظم رحمه الله ته کړی دی شايد دليل دا وي چي دی په تهمت کي واقع کيږي قيل وابي يو کس هم کفايت کوي مگر ظاهره مذهب دا دی چي قوت دوه کسان پر لري برابره خبره ده چي دا ښکار ځان ته په خرڅونکو حيواناتو کي مثل لري او که يې نه لري لکه د شتر مرغ مثل اوښ دی د وحشي خر مثل غويی دی د هوسۍ مثل پسه دی او کوم چي مثل نه لري لکه کوتره دا خبره چي کوم چا کړې ده چي ظاهري مشابهت د پسه سره لري د اوبو په چښلو کي چي کوتره هم لکه پسه په غوړپ غوړپ اوبه چښي في الجمله دا ډېره ليري خبره ده په مسئله کي محمد رحمه الله لو شافعي رحمه الله اگرچي اختلاف لري چي مثل يې شرط نه دی لکه مثالونه چي يې تېر سوه عامه خبره ده چي د ښکار د مثل قيمت لوړ وي او که کښته او مذهب مختار هم دا دی چي مثل لره اعتبار نسته که يې مثل نه درلودی لکه کوتره، چوغکه او باقي مرغان صرف قيمت ته اعتبار سته او که يې مثل درلودی بيا يې قيمت په هغه اندازه که.

نو که چيري د ښکار قيمت د يو حيوان مثلا پسه و قيمت ته رسيدی بيا نو د ده خوښه ده که يې پسه حلالوی او که يې پر ځای د خوراک شيان خيراتول که يې پر ځای روژې نيولې او که د پسه قيمت يې نه جوړوی بيا هم اختيارمن دی چي د خوراک شيان ورکوي که روژې نيسي او که پسه خيرات کوي او که يې قيمت د اوښ يا غوايي قيمت ته

رسیدی نو را دي نیسي اوښ یا غوبی یا دي اووه پسونه خیرات کړي لیکن فضیلت اوښ لري دلیل یې دا دی چي دلته اعتبار غټ والی لري نه شمار او که یې تر اوښ یا غوبي یا پسه یو څه روپۍ زیاتي سوې اوس که بل حیوان په کیدی خو هغه به هم خیرات کړي او که نه په کیدی د خوراک شیان دي په را نیسي هر مسکین ته دي نیم من غنم ورکوي په قندهاري کانې سره او که تر نیم من غنمو کم پاته سوه هغه دي هم یو فقیر ته ورکړي او که یې خوښه وه د نیم من غنمو پر ځای دي یوه روژه ونیسي که تر نیم من غنمو کم مثلاً چاریاک پاته سوه هغه دي خیرات کړي یا به د دغه پر ځای مستقله روژه ونیسي ځکه په روژه کي تر ورځي کمه نه جوړیږي لکه په کوچني ښکار کي ورته اختیار دی که طعام ورکوي که روژې نیسي او په هدیې کي داسي حیوان صحت لري کوم چي په اخترې کي صحت لري په کلو وغیره کي او دا د امام اعظم رحمه الله مذهب دی او محمد رحمه الله وایي چي شپږ میاشتي په پسه کي او په حفره کي چي د بزې څلور میاشتي مرغومی دی صحت لري او ابو یوسف رحمه الله په خپل اصح قول کي د امام صاحب سره ملګری دی چي په کوچني حیواناتو کي به د خوراک شي خیرات کوي او الفتح کتاب هم دغسي لیکلي دي همدغسي بیان د مصنف هم دی چي د وري او مرغومي پر ځای دی طعام خیرات کړي یا دي غوبني د دغه حیوان د نیم من نیم من غنمو په اندازه سره فقیرانو ته ورکوي جواز لري چي دستي حیوان یوه فقیر ته ورکړي او په حلال سره بس خلاص دی که چا لبنی ورڅخه غلا کړی پروا نه لري پر مذاهبو ټولو باندي او که یې په طعام کي یوه ته تر نیم من نیم من غنمو زیات ورکول مثلاً پنځویشت سیره یې ورکول دا پر نیم من حسابیږي نه بالا او که د یو حیوان د قتل جزا و نیم من ته نه رسېدله بیا اختیار لري که دغه ورکوي که روژه نیسي او که د یوې جزا دپاره درې سره کوي هم جواز لري لکه پسه حلالول روژې نیول خیرات کول.

## فصل د ښکار غوښه به د خوړلو وي یا نه او یا به د چا ملک وي یا نه

ثم لایخلو الصید اما ان یکون ماکولا اللحم او غیره فان کان الاول فیجب قیمته بالغة ما بلغت هدیین او اکثر و ان کان الثانی فتجب قیمته ایضا غیر انه لا یجاوز دما حتی لو قتل فیلا لا یجب علیه اکثر من شاة و لو کان القاتل قارنا فعلیه جزا ان لا یجاوز دمین ولو قتل صید مملوکا معلما کالباز و الشاهین و الصقر و الحمام الذی لا یجئ من المواضع البعیدة وغیر ذلک من الاصناف التی تتخذ للترفه فعلیه قیمتا قیمته معلما بالغة لمالکه و قیمته غیر معلم لحق الشرع ولا تعتبر زیادة القیمة بسبب التعلیم لحق الشرع واما زیادتها لحسن فی ذات الصید فمعتبرة کالحمام المطوقة و الموصوتة و الصید الحسن الملیح

لفقیر فهو تطوع و علیه ان یکمل بحسابه و اذا فضل اقل منه ان شاء صام عنه یوما او اطعمه مسکینا و یجوز الاباحة فی جزاء الصید و ان اختار الصیام یقوم الصید طعام ثم یصوم عن کل نصف صاع من بر او صاع من غیره یوما و ان کان الواجب دون الواجب و اما ان یصوم عنه یوما و له ان یختار الصوم مع ان القدرة علی الهدی و الطعام و یجوز له الجمع بین الصیام و الطعام والدم فی جزاء صید واحد بان بلغت قیمته هدایا فذبح هدیا واطعم عن هدی و صام عن اخر.

متن و بعده ترجمه و شرح ملا علي القاري

دا فصل په بیان کي د مطلق جزاء د حرم او د احرام کي دی او طریقه یې دا ده او اندازلو ېول او وجوب ته متوجه سه که چیري یو محرم ښکار په قتل ورسوی نو د قیمت خیرات کول یې پر واجب دی چي دوه عادل کسان به یې قیمتوي داسي کسان چي په قیمتو کي د ښکار د حیوانانو پوهنه لري او ځای د قیمت به هم هغه ځای وي کوم ځای چي ښکار قتل سوی دی که په هغه ځای کي د ښکار خاص یا عام حیوانان خرڅېدل او یا هغه نژدې ځای د قتل و ځای ته چي کوم ځای خرڅیږي په وطن کي او زمانه هم هغه وخت معتبر دی چي ښکار په کښې قتل سوی دی پر اصح مذهب باندي ځکه د زماني په تېرېدو سره اختلاف په قیمتو کي راځي د قیمت اېښودلو دپاره شرط دوه عادل کسان دي چي صریح آیات په کښې وارد سوي دي او په دغه دوو کي جنایت کونکی نه حسابیږي چي عز بن جماعة دا نسبت و امام اعظم رحمه الله ته کړی دی شاید دلیل دا وي چي دی په تهمت کي واقع کیږي قیل وایي یو کس هم کفایت کوي مګر ظاهره مذهب دا دی چي قوت دوه کسان پر لري برابره خبره ده چي دا ښکار ځان ته په خرڅونکو حیوانانو کي مثل لري او که یې نه لري لکه د شتر مرغ مثل اوبښ دی د وحشي خر مثل غویی دی د هوسۍ مثل پسه دی او کوم چي مثل نه لري لکه کوتره دا خبره چي کوم چا کړې ده چي ظاهري مشابهت د پسه سره لري د اوبو په څښلو کي چي کوتره هم لکه پسه په غوړپ غوړپ اوبه څښي في الجملة دا ډېره لیري خبره ده په مسئله کي محمد رحمه الله او شافعي رحمه الله اګرچي اختلاف لري چي مثل یې شرط نه دی لکه مثالونه چي یې تېر سوه عامه خبره ده چي د ښکار د مثل قیمت لوړ وي او که کښته او مذهب مختار هم دا دی چي مثل لره اعتبار نسته که یې مثل نه درلودی لکه کوتره، چوغکه او باقي مرغان صرف قیمت ته اعتبار سته او که یې مثل درلودی بیا یې قیمت په هغه اندازه که.

نو که چیري د ښکار قیمت د یو حیوان مثلا پسه و قیمت ته رسیدی بیا نو د ده خوښه ده که یې پسه حلالوی او که یې پر ځای د خوراک شیان خیراتول که یې پر ځای روژې نیولې او که د پسه قیمت یې نه جوړوی بیا هم اختیارمن دی چي د خوراک شیان ورکوي که روژې نیسي او که پسه خیرات کوي او که یې قیمت د اوبښ یا غوایي قیمت ته

رسیدي نو را دې نیسي اوښ یا غوبی یا دي اووه پسونه خیرات کړي لیکن فضیلت اوښ لري دلیل یې دا دی چي دلته اعتبار غټ والی لري نه شمار او که یې تر اوښ یا غوبی یا پسه یوڅه روپۍ زیاتي سوې اوس که بل حیوان په کیدی خو هغه به هم خیرات کړي او که نه په کیدی د خوراک شیان دي په را نیسي هر مسکین ته دي نیم من غنم ورکوي په قندهاري کانې سره او که تر نیم من غنمو کم پاته سوه هغه دي هم یو فقیر ته ورکړي او که یې خوښه وه د نیم من غنمو پر ځای دي یوه روژه ونیسي که تر نیم من غنمو کم مثلاً چارپاک پاته سوه هغه دي خیرات کړي یا به د دغه پر ځای مستقله روژه ونیسي ځکه په روژه کي تر ورځي کمه نه جوړیږي لکه په کوچني ښکار کي ورته اختیار دی که طعام ورکوي که روژې نیسي او په هدیې کي داسي حیوان صحت لري کوم چي په اختري کي صحت لري په کلو وغیره کي او دا د امام اعظم رحمه الله مذهب دی او محمد رحمه الله وایي چي شپږ میاشتي په پسه کي او په حفره کي چي د بزې څلور میاشتي مرغومی دی صحت لري او ابو یوسف رحمه الله په خپل اصح قول کي د امام صاحب سره ملگری دی چي په کوچني حیواناتو کي به د خوراک شي خیرات کوي او الفتح کتاب هم دغسي لیکلي دي همدغسي بیان د مصنف هم دی چي د وري او مرغومي پر ځای دی طعام خیرات کړي یا دي غوښې د دغه حیوان د نیم من نیم من غنمو په اندازه سره فقیرانو ته ورکوي جواز لري چي دستي حیوان یوه فقیر ته ورکړي او په حلال سره بس خلاص دی که چا لښ ورڅخه غلا کړی پروا نه لري پر مذاهبو ټولو باندي او که یې په طعام کي یوه ته تر نیم من نیم من غنمو زیات ورکول مثلاً پنځویشت سیره یې ورکول دا پر نیم من حسابیږي نه بالا او که د یو حیوان د قتل جزا و نیم من ته نه رسیدله بیا اختیار لري که دغه ورکوي که روژه نیسي او که د یوې جزا دپاره درې سره کوي هم جواز لري لکه پسه حلالول روژې نیول خیرات کول.

## فصل د ښکار غوښه به د خوړلو وي یا نه او یا به د چا ملک وي یا نه

ثم لایخلو الصید اما ان یکون ماکولا اللحم او غیره فان کان الاول فیجب قیمته بالغة ما بلغت هدیین او اکثر و ان کان الثانی فتجب قیمته ایضا غیر انه لا یجاوز دما حتی لو قتل فیلا لایجب علیه اکثر من شاة و لو کان القاتل قارنا فعلیه جزا ان لا یجاوز دمین ولو قتل صید مملوکا معلما کالباز و الشاهین و الصقر و الحمام الذی لا یجئ من المواضع البعیدة وغیر ذلک من الاصناف التی تتخذ للترفه فعلیه قیمتا قیمته معلما بالغة لمالکه و قیمته غیر معلم لحق الشرع ولا تعتبر زیادة القیمة بسبب التعلیم لحق الشرع واما زیادتها لحسن فی ذات الصید فمعتبرة کالحمام المطوقة و الموصوتة و الصید الحسن الملیح

وهل يقوم الصيد حيا او مذبوحا لحما اما فى حق المالک فيقوم حيا و اما فى حق الشرع فعبارة بعضهم تفهم انه يقوم و صرح فى المحيط بانه يقوم لحما.

متن و بعده ترجمه و شرح ملا علي القاري

د ښکار حيوان دوه قسمه دی يو دا چي غوښي يې خوړل کيږي لکه کوتره، هوسی لو وحشي خر او بل قسم حيوانان داسي دي چي غوښه يې نه خوړل کيږي اوس کوم حيوان د ښکار چي غوښي يې خوړل کيږي که محرم يا حلال په حرم کي په قتل ورسوی خو تر هرڅو پوري چي قيمت رسيدی اگر که دوه پسونه په کيږي خيرات يې لازمي کار دی او کوم چي غوښه يې نه خوړل کيږي د هغه جزا به تر يوه پسه نه وي زياته اګرچي فيل يا پړانګ په قتل ورسوي لو که قاتل حاجي قارن وو بيا به تر دوه پسونو نه زياتيږي اوس که دا د ښکار حيوان تعليم يافته وو لکه باز، شاهين او ځرخک او کوتره وغيره کوم حيوانان چي خلق د خوند دپاره رنګارنګ ساتي بيا نو پر محرم دوې جزاوي لازميږي يو به د مالک بل به د شرع وي د مالک قيمت هغه دی چي څونه د تعليم يافته حيوان دی چي ژوندی وي او د غير معلم قيمت به د شرع دپاره خيرات کړي ځکه پر شريعت يې دا فرق نسته که تعليم ولري حيوان او که يې و نه لري او کوم چي د حيوان په اصلي ذات کي کمال او حسن موجود وي هغه په شرعه کي معتبر دی لکه مثلا غومبر کونکې يا طوق داره کوتره تر ماسوا باقي کوترو بهتري لري نو هم دغسي لمال بيا په شريعت کي معتبره دی اوس د حيوان قيمت د ژوند معتبره دی او که ذبحه سوی وو نو جواب دا دی چي د مالک په اعتبار سره قيمت معتبره دی او په شريعت کي بعضي وايي د ژوندي او بعضي وايي د غوښو قيمت معتبر دی لکه سمرقندي په شرح النقايې کي فرمايلي دي.

## فصل د ګنهولو کالو يا سر پټولو جزا

جزاء اللبس و التغصية و التطيب و الحلق و قلم الاظفار اذا فعل شيئا من ذلک على وجه الکمال و ان کان بعذر فهو مخير بين الدم و الطعام و الصيام فعليه ان يطعم منه ستة مساکين کل مسکين نصف صاع من بر او دقيقه او صاعا من تمر او شعير و يجوز فيه التمليک والاباحة و ان اراد ان يطعم طعام الاباحة يصنع لهم طعاما و يمکنهم منه حتى يستوفوا اکلتين مشبعتين غدا و عشاء و ان اختار الصيام فعليه صوم ثلاثة ايام و يجوز و لو متفرقا و ان لم يفعل شيئا منها على وجه الکمال فعليه نصف صاع من او صاع من غيره لايجوز فيه الصوم ان کان بغير عذر و ان کان بعذر فهو مخير بين الصدقة و صوم يوم.

متن و بعده ترجمه و شرح علي القاري

دا فصل دی د ګنډلي کالو يا سر پټولو يا ځان خوشبويه کولو يا سر خريلو يا

نوکان پرېکولو نو که محرم د دغه ممنوعاتو څخه يو په کښې په کامله درجه وکړی معنا يوه ورځ يې ګنډلي کالي او يا يې يو اندام خوشبويه کړی او که د عذر په وجه ورڅخه وسو نو اختيار لري که دم حلالوي او که د خوراک طعام خيرات او يا روژې نيسي که يې يو چا ته په ملک ورکوي او يا يې اعطاء کوي و چا ته که يې طعام ورکوی نو هر مسکين ته به نيم نيم من غنم ورکوي لکه سرسايه يا اوړه او يا د خرماؤ او وربشو څخه يو يو من غنم به ورکوي او تلخان چي د هر قسمه اوړو څخه جوړ سوي وي د هغه قسم اوړو حکم لري چي نيم من غنم يا اوړه دي په وخو کي اختلاف سته ياران وايي نيم من پر لازميږي دا حسن د امام اعظم رحمه الله څخه روايت کړی دی او په الکافي کتاب کي راغلي دي چي د قيمت ورکول يې بهتري لري فتوا هم پر دغه ده ځکه بنه حاجت د فقير په پوره کيږي او جواز لري چي په ملک سره يې ورکړي يا يې د اباحت په طور وکړي او که يې سهار او مانېام مسکينان مړول هم جواز لري خو مستحب دا ده چي يو نان خورش ورسره وي اګرچي هدايه وايي ضرور به نان خورش ورسره وي خاص بيا که د اوربشو ډوډۍ وه او که يې خوبنه وه درې ورځي به روژې ونيسي غوره يې پرله پسې والی دی چي تلوار پر عبادت وسي او جلا والی هم جواز لري او که يې دا ممنوعات پوره نه کړل بيا نو تر نيم من غنمو زياتوب نسته او روژه په کښې جواز نه لري که بې له عذره څخه وو او که عذر وو بيا اختيار لري که روژې نيسي او که خيرات کوي او پسه ورباندي نسته او که يې حلال کړی بيا ډېر ثواب لري خو تقسيم به پر شپږو مسکينانو باندي کيږي.

## فصل د دمو احکام او شرطونه د جواز

احکام الدماء و شرائط جوازها اعلم انه حيثما اطلق الدم فالمراد الشاة و هي تجزئ فی کل موضع الا فی موضعين الاول اذا جامع الحاج بعد الوقوف بعرفة فانه يجب عليه بدنة و الثانی اذا طاف طواف الزيارة جنبا او حائضا او نفساء فيجب فيه ايضا بدنة و لا ثالث لهما فی الحج اما شرائط جواز الدماء فالاول منها ان يکون الهدی ثنيا فما فوقه او جذعا من الضان و هذا کله اذا کان عظيما او الثانی ان يکون سالما من العيوب و الثالث ذبحه فی الحرم و الرابع تاخيره عن الجناية فلو ذبح ثم جنی لم يجزه و الخامس ان يکون من النعم و السادس الذبح فلو تصدق به حيا لم يجز و السابع التصدق به علی فقير فلو اعطاه لغنی لم يجز والثانی عدم الاستهلاک فلو استهلکه بنفسه بعد الذبح بان باعه و نحو ذلک و لم يجز و عليه و قيمته الا فی هدی القران و المتعة و التطوع فانه لايجب فيها شئ ولو هلک بعد الذبح بغير اختياره بان سرق سقط ولا شئ عليه و التاسع عدم اشتراک من يريده لغير القربة فيما يتصور الاشتراک کالبدنة فلو اشترک سبعة فی بدنة فان کانوا کلهم يريدون

القرية جاز و ان كان احدهم يريد اللحم لم يسقط عن احد منهم و العاشر ان يكون الذبح او بعده فى هدى المتعة و القران و الحاد عشر ان يتصدق به على من يجوز التصدق عليه فلا يجوز لو تصدق به على اصله او فرعه او مملوكه او هاشمى على الأصبح او زوجته او زوجها و يجوز على الذمى من المسلم احب و لايجوز لحربى و لو مستأمنا و الثالث عشر ان يكون الذابح من المسلم او الكتابى و الرابع عشر التسمية و الخامس عشر الملك و لا يشترط فى التصدق به عدد المساكين فلو تصدق به على فقير واحد جاز ولا فقراء الحرم ولا الحرم فلو تصدق به على غيرهم او اخرجه من الحرم بعد الذبح فتصدق به جاز و فقراء الحرم افضل الا ان يكون غيرهم احوج ولايجوز عن الدم اداء القيمة الا اذا اكل او اتلف مما لايجوز الاكل منه فعليه قيمته يتصدق بها.

متن و بعده ترجمه و شرح علي القاري

په دې فصل کې د هغه ذمونو بحث دی چې د يو ممنوع کار په وجه پر حاجي لازميږي او شرطونه د جواز په کښې بيانيږي نو اوس پوه سه چې د فقهاؤ په عبارتو کې هر ځای د دم ذکر وسي مراد ورڅخه پسه دی او پسه په هر جنايت د حج کې جواز لري بغير د دوو ځايو څخه اول دا دی چې تر عرفات درېدو بعد چې وطي وکړي نو بيا اوښ پر واجبيږي يا غويی او دويم ځای دا دی چې طواف زيارت په جنابت يا په حيض يا نفاس کې وکړي هم اوښ يا غويی حلالول پر لازميږي دريم په کښې نسته د حج قيد د دې وجهې څخه ولګيدی چې د عمرې په طواف کې اوښ نه لازميږي د دغه وجهو په وجه چې تيري سوې اوس د دم شرطونه پنځلس داني په ترتيب سره درته بيانيږي وا يې وره:

۱: اول په کښې دا دی چې دم داسي حيوان په کښې صحت لري چې په اختري کې جواز ولري لکه پسه به د پوره کال وي يا داسي شپږ مياشتيز وری چې د يو کلن پسه سره برابر وي او د بزې بچې چې هرڅونه وي خو کال به يې پوره وي د غوايي به دوه کاله پوره سوي وي او اوښ به پنځه کاله پوره کړي وي ياد به لرئ چې يوه شپه کم وي جواز نه لري.

۲: دويم شرط د جواز دا دی چې دم به داسي سالم اجزا وي لکه د ابراهيم عليه السلام زوی اسماعيل عليه السلام چې د هره عيبه پاک وو خلص مطلب دا دی چې د اختري دپاره کوم حيوان صحت ولري نو د دم دپاره هم صحت لري الخ.

۳: دريم د صحت شرط د جواز دا دی چې د علماؤ په اتفاق سره به دا دم په حرم کې حلالوي عامه خبره ده که د شکرېږ وي که جبري دم وي.

۴: څلورم دا دی چې د دم حلال به تر جنايت بعد وي لهذا تر جنايت دمخه نه صحيح کيږي لکه د قسم کفاره چې تر حانث کېدو دمخه صحت نه لري.

۵: پنځم دا دی چي چارپايه به وي لکه بيان يې تېر سو چرګ صحت نه په کښې لري.
٦: شپږم شرط د جواز يې حلالول دی ژوندی ورکول جواز نه لري چي فقير ته يې ورکړي.
۷: اووم د جواز شرط يې خيرات کول دی و فقيرانو ته لهذا و غنيانو ته جواز نه لري چي ور يې کړي او که فقير قبض کړي بيا يې غني سړي ته ورکړي جواز لري يا يې پر خرڅ کړي لکه د بريرې ﷺ چي يو کس د زکات غوښې ورکړې وې دې پخ کړي وې نبي ﷺ چي خوراک ورځخه کوی دې خبر ورکړی چي دا خو د زکات غوښې دي نبي ﷺ ورته وويل هغه ستا د پاره زما د پاره خيرات دي ستا د طرفه ځخه معنا دا سوله چي د ملکيت په بدلېدو سره په مال کي هم تغير راځي نو خبره دا ده چي فقير يې خپل غني پلار ته ورکړي لاهم جواز لري علاوه دا ده چي دا ورکړه به د مليکت په طريقه سره وي نه د اباحت فرق دا دی چي د ملکيت شي سړی بل ځای ته وړلای سي او بل چا ته يې تسليمولای سي او د اباحت مثال دا دی چي مثلا ته يو څوک خپل باغ ته بوزې او ورته ووايې چي ځان په کښې موړ کړه نو ده لره جواز نه لري چي جيبونه هم په ډک کړي د کور د پاره او که يې په ملک سره يوه سوده انګور ورکړه چي دا درسره يوسه نو بيا دا د ده ملک سو تصرف په کښې کولای سي اوس غني په څونه مال سره ګرځي جواب دا دی چي دوه سوه د سپينو زرو درهمونه ولري پور هم نه وي ورباندي.

۸: اتم د جواز شرط پخپله نه هلاکول دی د دم تر حلال بعد مثلا چي غوښې يې خرڅي کړي او يا يې غني ته ورکړي يا يې وغورځوي بيا جواز نه لري بل پر لازميږي بلکه چي فقيرانو ته به يې ورکوي ليکن که د قارن يا متمتع حاجي شکريه وه يا د خيرات په نيت سره يې حلال کړه بيا که تر حلال بعد ورځخه غلا سوه او يا يې تلف کړه تاوان نه لري او که تر حلال مخکي ورځخه هلاک سو بل پر لازميږي اګر که بې له اختياره ورځخه هلاک يا غلا سي علاوه دا ده چي دلته قيمت اعتبار نه لري چي خيرات يې کړي بلکې وينه توېول لازمي کار دی که د شکريې لو که د جبر دم وي او که يې غوښې خرڅي کړې بيا به يې روپۍ د غوښو خيرات کړي په دواړه قسمه کي لکه بدائع چي دا عمل واجب بللی دی او ابن الهمام يې روا نه بولي خرڅول د دغه دم د غوښو که يې خرڅي کړي او يا يې د قصاب مزدوري د غوښو يا څرمني ځخه ورکړل دونه روپۍ به خيرات کوي او طرابلسي ليکلي دي که يې قصاب ته وويل چي دونه غوښې په کښې ستا دي يا يې پوست ستا دی نو هغه د ده سره شريک سو نو د ده شکريه او قرباني او دم جواز پيدا نه کړی بل به حلالوي او که هغه بې له شرطه حلال کړی او بيا دده د خيرات نيت سره ورکړې غوښې پروا نه لري خو شرط دا دی چي فقير به وي.

۹: نهم شرط دا دی که اوښ يا غويی حلالوي داسي سړی به نه وي په کښې چي قصد

یې صرف غوښه وي ځکه اجماع د امامانو دا ده چي په دغه دوو حیوانانو کي اووه کسه شریکان کیدای سي خو شرط په کښي دا دی چي د ټولو به نیت ثواب وي خالص که چیري د ټولو نیت خو ثواب وو لیکن طریقې یې سره مخالف وې لکه دم شکریه د مفرد د قِران دوه بل د تمتع بل د اختري بل د خپل استاذ دپاره بل د نبي ﷺ دپاره اختری کوی سره شریکان سوه جواز لري او که یوه په کښي د غوښو نیت وکړی ټوله خرابیږي جواز نه لري.

۱۰: لسم شرط د قارن او متمتع حاجي دپاره دا دی چي شکریه به د اختر په ورځ یا وروسته ورځ حلالوي او په اجماع سره د علماؤ اوله ورځ د اختر فضیلت منده ده او د تطوع په شکریې کي اختلاف سته مګر جمهور علماء وایي چي دا د اختر تر ورځو پوري خاصوالی نه لري بلکې مخکي هم صحت لري او صحیح همدغه قول دی همدا رنګه چي د حج څخه سړی بند سي او تر اختر دمخه یې حلال کړي جواز لري د امام اعظم رحمه الله پرمذهب باندي نه د یارانو پر مذهب لکه عامو کتابو چي دا مسئله ذکر کړې ده.

۱۱: یولسم شرط دا دی چي نیت به د حلالولو سره ملګری وي که ورڅخه وروسته سو بیا جواز نه لري.

۱۲: دولسم شرط دا دی چي دا دم به پر فقیرانو خیرات کوي او غیره باندي نو داسي چا ته یې ورکړه صحت نه لري چي د ده اصول وي یا فروع معنا یا دی ورڅخه پیدا سوی وي یا ده څخه پیدا سوي وي او خپل مربی او هاشمي سید ته یې هم ورکړه جواز نه لري خپلي زوجې ته او حربي کافر ته ورکړه هم جواز نه لري او داسي کافر ته چي همیشه ژوند په اسلام کي کوي ورکړه یې جواز لري لیکن مسلمان پر غوره دی او علاوه دا ده چي څونه یې تقوا ډېره وي غوره دی.

۱۳: دیارلسم شرط دا دی چي مسلمان یا داسي اهل کتاب به یې حلالوي چي عیسیٰ (ع) یا عزیر (ع) به د خدای (ج) زوی نه بولي.

۱۴: خوارلسم شرط دا دی چي بسم الله به پر وایي که شافعي مذهبه حلال کړی او په قصده یې بسم الله و نه ویل جواز نه لري.

۱۵: پنځلسم شرط دا دی چي د ده ملک به پر حیوان د ذبحي پخوا وو که چیري ده د بل دا حلال کړی باره یې روپۍ ورکړې جواز نه لري او بل د دغه غوښو د خیرات دپاره د مسکینانو شمار ته ضرورت نسته لکه غلطه مشهوره ده چي کم از کم به اووه کسان وي که یې یوه فقیر ته ټوله ورکړه هم جواز لري او په کوم ځای کي چي د خوراک شی پر لازم سوی وي آیا په هغو کي هم د مسکینانو شمار نه غواړي او ملکیت او اباحت په کښي شرط دی یا نه؟ جواب دا دی چي مثلا دري پیمانې غنم هره ورځ و یوه مسکین ته ورکوي جواز لري او

که یې په یوه ورځ کې تولې ورکړې نیمه نیمه پیمانه تنها تنها بیا نو روایت نسته خو عامو علماؤ فرمایلي دي چې جواز نه لري او پر دغه قول فتوا هم ده او بل دلته د حرم او فقراء د حرم نه دي خاص که یې خارج ته یوړل هم جواز لري خو بعد تر حلال لیکن فضیلت د حرم دا لري مگر که د بل ځای دا ډېر محتاج وه او د دم په عوض کې قیمت خیرات کول جواز نه لري اگر که ژوندی حیوان ورکوي مگر د هغه غوښو چې دی یې خوراک وکړي قیمت به یې خیرات کوي کوم چې و ده ته یې خوراک نه وي جائز چې تېر سو بیان یې.

فایده: پوه سه مسلمانه ورورہ چې اختری پر هر حر مسلمان مقیم دولت منده باندي سته عامه خبره ده چې په ښار یا اطرافو کې د ښار اوسیږي خو شرط اقامت معنا مقیم کیدل دی پر مسافرو او حاجیانو باندي نسته که حاجي په احرام کې وو اگر که د مکې اوسېدونکی وي ښایي چې وجه دا وي چې پر قارن او متمتع حاجي خو شکریه ده او مفرد لره بیا مستحب ده لهذا نو اختری ورڅخه ساقط سو دپاره د اسانی پر ده لکه د اختر لمونځ چې ورڅخه ساقط دی په اجماع د علماؤ سره او همدارنگه په منا کې د جمعې لمونځ پر نزد د بعضي علماؤ ورڅخه ساقط دی سنجاري وایي په خپل مناسک چې اختری واجب نه دی پر مسافر او حاجي باندي ځکه پر ده بیا دوه واره تکلیف راځي او پر اهل د مکې سته ځکه پر هغو دوه واره نه کیږي تکلیف علي القاري رحمه الله وایي شاید د ده د اهل مکې څخه هغه کسان مراد وي چې حج نه کوي او دا هم کېدای سي چې عام اهل د مکې دي ورڅخه مراد سي لکه الحدادي چې ویلي دي پر اهل د مکې اختری واجب دی اگر که په حج کې وي او کرخي هم دغسي حکم فرمایلی دی او الخجندي بیا ویلي دي چې پر محرم حاجي اگرچې د مکې وي اختری نسته والله اعلم.

ارشاد الساري د ملا علي القاري رحمه الله پر قول چې اختری پر مقیم سړي سته چې په ښار یا اطرافو کې وي حاشیه لیکلې ده چې د ښاري حکم دونه قدري مخالف دی چې د اختر تر لمانځه دمخه اختری نه سي حلالولای که یې حلال کړی جواز نه لري او د اطرافو آزاده خلق یې حلالولای سي چې محضي د اختر د ورځي د سهار سپیدې راوختلې لو شرنبلالي په حاشیه د الدر من الاضحیه کي یوه تنبیه ذکر کړې ده په هغه کي یې فرمایلي دي د مبسوط په حواله سره چې د منا پر اهل د اختر لمونځ نسته ولي چې دوی مشغوله دي په مناسکو د حج سره او د اختري حلال یې د سهار د سپیدو څخه روایینت لري لکه د اطرافیانو دپاره نو اوس په دغه عبارت سره ښکار سول د الشیخ ابراهیم بیري په حاشیة و الاشباه و النظائر د کتاب الصید و الذبائح کي او په شرحي د الطحاوي الصغیر کي چې څوک اختری تر لمانځه د اختر دمخه حلال کړي جواز نه لري او که په داسي ځای کي وي

چي د اختر لمونځ نه کيږي نو بيا د سهار د سپېدو څخه پې حلالول جواز لري علاوه دا ده چي ځاى ته د اختري کتل کيږي نه د اختري کونکي نو ارشاد الساري وايي چي بايد د منا خلق هم تر زوال مخکي اختری حلال نه کړي ولي چي دا خو داسي ځاى نه دى چي د اختر لمونځ نه په کښې صحيح کيږي دا خو صرف د حاجيانو څخه ساقط سوى دى او موږ ډېره مراجعه هم کړې ده يو نقلي دليل مو هم نه دى پيدا کړى علاوه دا ده چي نه موږ او نه زموږ مشرانو په مکه کي د اختر لمونځ کړى دى خداى خبر چي دا څه سبب ليدلى دى، الحباب.

په دويمه حاشيه کي وايي چي د حاجي سره د محرم قيد لګېدلى دى او حاجي خو بې احرامه نه وي نو د دې قيد نه وينم او په دريمه حاشيه کي يې ليکلي دي چي خزانة په ظاهره د محمد رحمه الله د مبسوط سره موافقت کړى دى چي په هغه کي تصريح ده چي د امام اعظم رحمه الله پر مذهب باندي چي د حماد هغه د ابراهيم څخه روايت کړى دى چي اختري پر ښاريانو واجب دى ماسوا د حاجيانو څخه او اسبيجابي په شرحه د مختصر الطحاوي کي ليکلي دي چي اختري پر بالغانو عاقلانو او حرو خلقو او مقيمو باندي واجب دى نه پر مسافرو او حاجيانو باندي که احرام بنده وه او د مکې وه اهحباب.

او په بله حاشيه کي يې د الحدادي پر قول چي پر مکې والو اختري سته حاشيه کړې ده چي قدوري والا په شرحي د مختصر الکرخي کي ويلي دي چي مبسوط وايي پر حاجي او مسافر اختري نسته او پر مکې والو سته اګر که حج هم کوي لکه سرخسي او حاشيې د الدرچي ليکلي دي چي د اهل الامصار څخه مقيم او د حاجي څخه مسافر مراد دى الخ.

## فصل د خيرات احکام

حيث اطلق الصدقة فالمراد نصف صاع من بر او صاع من غيره الا فى جزاء اللبس و الطيب والقلم اذا فعل شيئا منها كملا بعذر فالمراد فيه من الصدقة ثلاثة اصوع من بر او ستة اصوع من غيره و الا فى قتل الجراد و القمل و سقوط شعرات واللبس اقل من ساعة ففيها يطعم شيئا ولو يسيرا و هذا الذى ذكره احكام الصدقة فالاول القدر وهو ان يكون نصف صاع من بر او صاع من تمر او شعير او زبيب فلا يجوز اقل منه و ان زاد فهو تطوع و يعتبر الصاع و زنا و هو ان يسع ثمانية ارطال الثانى الجنس وهو البر و دقيقه و سويقه و الشعير و دقيقه و سويقه و التمر و الزبيب فهذه اربعة انواع لا خامس لها التى يجوز اداؤها من حيث القدر و اما غيرها من انواع الحبوب فلا يجوز الا باعتبار القيمة كالارز و الذرة و الماش والعدس و الحمص و غير ذلک و كذا لاقط لا يجوز الا على وجه القيمة و كذا الخبز ولو من بر يعتبر فيه القيمة و زنا ولا يجوز اداؤ المنصوص عليه بعضه عن بعض سواء كان من جنسه اولا فلوادى نصف صاع من حنطة جيدة عن صاع من حنطة وسط او نصف صاع

من تمر تبلغ قیمته نصف صاع من بر او اکثر لم یجز و یجوز ذلک فی خلاف الجنس باعتبار القیمة فلو ادی ثلاثة امناء من الذرة تبلغ قیمتها منوین من الحنطة جاز اما اذا اراد ان یجعل الحنطة بدلا عن الذرة فلا یجوز والاولی ان یراعی فی الدقیق و السویق القدر و القیمة وهو ان یودی من دقیق البر نصف صاع تبلغ قیمته نصف صاع من بر و یجوز اداء القیمة فی الکل دراهم او دنانیر او فلوسا او عروضا او ما شاء و الدقیق اولی من البر والدراهم اولی من الدقیق و البر وقیل المنصوص اولی الثالث ان یعطی الفقیر اقل من نصف صاع من بر فلو تصدق به علی فقیرین او اکثر لم یجز الا ان یکون الواجب اقل منه واعطاه اکثر منه فهو تطوع له الرابع اهلیة المحل المصروف الیه الصدقة وهو ان لایکون غنیا اوهو من له مائتا درهم فاضلا عن مسکنه و کسوته و اثاثه و فرسه و خادمه ولا یشترط فیه تحویل الحول ولا النماء بخلاف الزکاة و یجوز اطعام ابن السبیل المنقطع عن ماله ولا مملوکه و لا طفله ولا هاشمیا و لا مملوکه ولا مولاه و لا حربیا و لو مستامنا و یجوز لاهل الذمة و ان لا یکون اصل المکفر و لا فرعه ولا زوجته ولا زوجها و یجوز للاخ و الاخت و لو اطعم علی ظن انه اهل فنظهر خلافه جاز الا فی مملوکه الخامس التاخیر عن الجنایة السادس ان یکون الفقیر ممن یستو فی الطعام و هذا فی طعام الاباحة خاصة فلو کان فیهم فطیم لایجوز ولو کان مراهقا جاز السابع وهو ایضا مختص بطعام الاباحة ان یطعمهم فی وقتین غداء وعشا او سحورا او عشاء او غدائین او عشائین والاول اولی و ان اقتصر علی وقت لم یجز الثامن ان یکون الطعام مشبعا فی الوقتین جمیعا ولو کان فیهم شبعان قیل لا یجوز و المعتبر هو الشبع لا قدر الطعام فلو قدم الیهم طعاما قلیلا لایبلغ قدر الواجب و شبعوا منه جاز و لا یشترط الادام فی خبز البر و اختلف فی غیره ولو جمع بین طعام التملیک و الاباحة بان غداهم و اعطاهم قیمته العشاء او نصف المنصوص جاز و کذلک ان اعطی کل مسکین نصف صاع من شعیر او تمر و مدا من بر جاز التاسع النیة المقارنة لفعل التکفیر فان لم تقارنه لم یجز و لا یشترط عدد المساکین صورة فلو دفع طعام ستة مساکین مثلا الی مسکین واحد فی ستة ایام کل یوم نصف صاع او غدی مسکینا واحدا او عشاه ستة ایام اجزاه امالو دفعه الیه فی یوم واحد دفعة او دفعات فلا یجوز الا عن واحد.

متن و ترجمه و شرح علي القاري

اوس احکام د خیرات ذکر کیږي او دا جنایت ناقص دی چې په مقابل کې یې خیرات کیږي گای گای په اندازه لکه درته را به سي گای گای مطلق وي گای گای مقید وي همدا وجه ده چې مصنف ویلي دي چې خیرات یې مطلق ذکر کړي دي نو مراد د نیمي پیمانې د غنمو او یا درسته پیمانه او یا د خرما څخه او اوربشو څخه کیږي او که ګنډلي کالي

وغواندي او يا سر پټ کړي او يا خان خوشبويه کړي يا سر وخريي يا بل کامل جنايت وکړي يا يې نوکان پرې کړل نو که يو د دغه څخه يې وکړ پر طريقه د کمال سره معنا يوه کامله ورځ يې کالي واغوستل او يا يې يو کامل اندام خوشبويه کړى په عذر سره نو بيا د خيرات څخه درې پيمانې غنم دي يا شپږ پيمانې د اوربشو او خرماؤ به وي او که عذر نه وي بيا نو دم پر لازميږي.

او که ملخ يا سپږه ووژني او يا درې ويښتان وکاږي يا ګنډلي کالي لږ ګړى واغوندي بيا دغه صورتو کې يو لږ شى پر لازميږي لکه د حضرت عمر ﷺ قول دى چې يوه خرما تر ملخ خېر ده کشف الخفاء ج۱ ص۳۷۹ نو دا احکام د خيرات په باب کې وه.

## د خيرات نهه ۹ شرطونه

لوس د خيرات دپاره نهه ۹ شرطونه دي که دا شرطونه پر ځاى وه خيرات يې جواز لري او که نه وه پر ځاى نو جواز نه لري:

۱: اول شرط د جواز د خيرات دپاره مقدار کامل دى د خوراک شيان هغه مقدار دا دى چې د خوراک د شيانو څخه به نيمه پيمانه غنم چې په قندهاري کاني سره نيم من غنم کيږي يا يو من اوربشي يا يو من خرما يا يو من اوڅکې په اتفاق سره د علماؤ دى کم تر دغه جواز نه لري او که زيات سي لا يې ثواب ډيريږي پيمانه هغه ده چې اته رطله معنا اته پينځه سيري غنم ځايوي د پېژندلو ځاى يې د فقهي کتابونه دي الخ.

۲: دويم شرط د خيرات کولو دغه شيان دي لکه غنم، اوړه، تلخان، اوربشي او اوړه د اوربشو او تلخان د اوربشو څخه چې غنم يا اوربشي اول نېني کړي بيا يې اوړه کړي يا يې په غوړو کې پاخه کړي نو بيا يې د غنمو او يا د اوربشو تلخان بولي او يا خرما يا وڅکې دا څلور جنسه سوه پنځم نه لري خو ياد لره دا هغه شيان دي چې په اندازه سره يې ادا ينه کيږي او غير د دغه څلورو څخه چې دي د هغو اندازه په قيمت سره اول معلومول غواړي بيا به يې خيرات کوي لکه مثلاً وريجې، جوارى، ماش، عدس نخود شورباغلى وغيره لکه پنير يا ډوډۍ چې د نيم من غنمو د قيمت برابر سوه نو به يې يوه مسکين ته ورکړي او کوم شيان چې په نص او حديث سره ثابت سوي وي دا د يو بل پر ځاى صحت نه لري د مثال په ډول په نص کې خو راغلي دي چې يوه ورځ ګنډلي کالي په احرام کې د عذر په وجه سره واغوندي درې منه غنم به پر شپږو مسکينانو خيرات کوي يا به شپږ منه پوره خرما خيرات کوي اوس چې دى وګوري چې په يوه منه خرما درې منه غنم کيږي نو ته د غنمو حساب يې په يوه منه خرما سره پوره کوې جواز نه لري يا مثلاً بنه غنم يو من او نيم درې منه ميانه غنم په رانيول کيږي نه چې حساب ورته وکړې نو د ميانه درې منه غنمو په

عوض کي ينه غنم يو من او نيم من ورکړې جواز نه لري بلکې د دغه ينو غنمو څخه چې يې ورکوي هم به درې منه غنم پوره خيرات کوي علاوه دا ده چې داسي طريقه د تېر سوو څلورو اقسامو څخه ماسوا جواز لري لکه د مثال په ډول چې جوارو ته حساب وکړي چې دوه منه جواری د نيم من غنم قيمت جوړوي نو به د درې منو غنمو پر ځای دوولس منه جواری خيرات کړي او د دغه څلورو شيانو پر ځای قيمت ورکول هم جواز لري که سره زر وي که سپين زر وي لکه دينارونه يا درهمونه يا نور سامانونه او تر غنمو اوړه ډېر ثواب لري او روپۍ تر اوړو ډېر ثواب لري او فتوا هم پر دغه ده ځکه چې روپۍ د فقير هر حاجت پوره کوي او قيل وايي چې په نص کي راغلي دي دا غوره دی د خلاف څخه وتلی کار دی.

۳: دريم شرط دا دی چې نيم من غنم به فقير ته پوره ورکوي کم جواز نه لري لکه سرسايه پر اصح قول باندي مګر که کم ورباندي لازم سوه لکه يوه سپږه چې مړه کړي يو موټ غنم به خيرات کوي او که يې تر نيم من غنمو زيات ورکړه بيا د نيم من غنمو پر ځای دربېږي په جزا کي اګرچي ثواب يې ډېر دی.

۴: څلورم شرط دا دی چې هغه شخص چې غنم د خيرات ورکوي قابل د قبول به وي لکه فقير معنا د دوه سوه درهمو خاوند به نه وي چې د ده تر سکونت ځای او تر خادم او تر آس لو کالو به زياتي وي او کال هم نه دی په کښي شرط لکه زکات چې کال پر تېر نه سي زکات په هغه مال کي نه دی فرض او داسي سړی ته به يې نه ورکوي چې زکات ستا نه پر قبليږي لکه بيان يې تېر سو لږ مخکي.

۵: پنځم شرط دا دی دا کفاره چې ورکوي تر جنايت بعد به يې ورکوي.

٦: شپږم شرط دا دی چې فقير به داسي شخص وي چې قابل د پوره اخيستلو وي د طعام خو دا شرط په شان کي د اباحت د طعام دی چې تعريف يې مخکي ما درته کړی دی معنا دا سوه چې پر تا د مسکينانو مړول لازم وي په هغه حساب کي کوچنی هم ورسره راسي اعتبار نه لري نه په کښي حسابول کيږي او که بلوغ ته نژدې وو بيا په کښي حسابيږي.

۷: اووم شرط د جواز دا دی چې دا هم د اباحت د طعام سره خاص دی لکه مخکي چې تېر سو چې مسکينانو ته ډوډۍ ورکوي نو به سهار او ماښام دواړه وي او يا به دوه سهاره يا دوه ماښامه وي يا به پېشملۍ او ماخوستن وي لکه اول صورت يې غوره دی لو که يې يو وخت ډوډۍ ورکړه بيا جواز نه لري اګر که دو چنده نفر هم ماړه کړي.

۸: اتم شرط دا دی چې دونه طعام به ورکوي چې ماړه يې کړي که موړ سړی په کښي راغلی وو بيا قيل وايي دا نه حسابيږي لکه شمس الائمه الحلواني او اصح قول

همدغه دی او اعتبار د اندازې نه لري صرف مرتيا معتبره ده اوس که يې درې ډوډۍ شپږو مسکينانو ته را وايستلې ماړه سوه کفايت کوي او د غنمو د ډوډۍ سره ښوروا يا بل نان خورش شرط نه دی اگرچي مستحب دی او بغير د غنمو څخه د بل شي د ډوډۍ سره هدايه وايي ضروري نان خورش دی او بدائع وايي چي وخوړل سو هغه ته اعتبار دی که وي ورسره نان خورش او که نه وي ورسره او که يې اباحت او تمليک سره جمعه کړې جواز لري لکه د مثال په ډول سهار يې شپږ مسکينان ماړه کړه او د ماښام دپاره يې چارياک چارياک غنم د نفر پر سر ورکړه يا يې يوڅو ته چارياک چارياک غنم ورکړه بعضو ته يې نيم من نيم من خرما ورکړه هم جواز لري.

۹: نهم شرط دا دی چي د ورکړې سره به نيت هم ملگری وي او که نيت نه وو ورسره بيا جواز نه لري او بل شمار د مسکينانو اعتبار نه لري که يې يوه مسکين ته شپږ ورځي ډوډۍ ورکړه يا يې هره ورځ نيم نيم من غنم ورکول جواز لري او که يې ټوله غنم په يوه ورځ نيم نيم من غنم تنها تنها ورکول يا ټوله پر يوه ځای پر مفتي به قول جواز نه لري.

## فصل د طواف د شوطو د خيرات اندازه

کل صدقة تجب فی الطواف فهی لکل شوط نصف صاع او فی الرمی فلکل حصاة صدقة او فی قلم الاظفار فلکل ظفر او فی الصيد و نبات الحرم فعلی قدر القيمة.

متن و بعده ترجمه و شرح علي القاري

هر هغه خيرات چي په طواف کي لازميږي تر اداء کولو د رکن وروسته مثلا د حج يا د عمرې په طوافو کي اول څلور شوطه فرض او رکن د طواف دی او د باقي شوطو څخه چي يو پاته سي نيم من غنم پر لازميږي او که درې سره ورڅخه پاته سول بيا دم پر لازميږي او د سعي د صفا د هر شوط د پرېښولو په وجه سره نيم من غنم لازميږي او د شيطانانو د ځلو د هر وار ويشتل چي په اول ځل کي ورڅخه پاته سي يا تر پنځو کم نوکان واخلي د هر نوک د اخيستلو خيرات پر لازميږي او يا د ښکار د وجهي په حرم کي خيرات پر لازم سي چي قيمت د ښکار د پسه و اندازې ته نه رسيږي يا واښه د حرم شريف وشکوي نو په خپله اندازه سره خيرات پر لازميږي.

تنبيه: په هر ممنوع عمل کي چي دم پر لازم سو لکه گنډلي کالي چي واغوندي پوره ورځ يا کامل اندام خوشبويه کړي يا سر وخريي او يا يې ټوله نوکان واخيستل بې له عذره نو بيا د دم پر ځای بل شی صحت نه لري او که داسي شی پر لازم سو چي د ده اختيار وو لکه تېر ممنوعات چي د عذر په وجه ورڅخه وسي نو که دم حلالوي بيا به يې خاص په حرم کي حلالوي لهذا که يې خارج د حرم څخه حلال کړي جواز نه لري او که يې غوښي حرم

ته راوړي د نیم نیم من غنمو په اندازه سره یې مسکینانو ته ورکړي جواز لري چې شپږ مسکینان پوره کړي لکه په شرح الطحاوي کي چي راغلي دي.

## فصل د روژې احکام په باب کي د احرام

وله شرائط الاول النية الثاني وهو ان ينوى من الليل فلو نواه نهارا لم يجز الثالث تعين النية و هو ان ينوى الصوم عن الكفارة فلا يتادى بمطلق النية ولا بنية النفل ولا بنية واجب اخر الرابع ان ينوى الصوم و المضاف اليه بان يقول صوم المتعة او جزاء الحلق او غيرهما ولو لم بضفه لم يجز الخامس ان يصوم فى غير الايام المنهية و رمضان و لا يشترط فى شئ منها التتابع ولا الحرم و لا الاحرام الا فى صوم القران الثلاثة و صيام اللبس و الطيب و الحلق وقلم الاظفار و بقدر ثلاثة و صيام جزاء الصيد على حسب الطعام مكان طعام كل مسكين يوم و من عجز عن الصوم لكبر لاتجزئه الفدية عن الصوم كما اذا وجبت عليه كفارة الاذى فلم يجد الهدى ولا طعام ستة مساكين و لم يقدر على الصوم و اراد ان يطعم عن صيام ثلاثة ايام ثلاثة مساكين لم يجز الا ستة مساكين و كذا المتمتع اذا لم يجد الهدى و لم يقدر على الصوم لم يجز ان يطعم عن الصيام.

متن و بعده شرح علي القاري

که چیري پر حاجي باندي د کفارې روژې لازمي سوې بیا نو پنځه شرطونه لري:

١: اول شرط یې دا دی چي نیت به د روژې کوي بې له نیته ځخه جواز نه لري.

٢: دویم شرط دا دی چي نیت به د شپې ځخه کوي د ورځي صحت نه لري او یوازي دا نه بلکې په اجماع سره د ټولو علماؤ د روژو د کفارې دا حکم دی چي نیت به یې د شپې ځخه وي لکه د قسم روژې د کفارې د ښکار د جزا د قِران او د تمتع او سر خریلو وغیره روژې.

٣: دریم شرط دا دی چي په نیت کي به تعین د کفارې کوي چي د فلانی کفارې د روژې نیت مي دی لهذا په مطلق او د نفلو او د قضا په نیت سره یا د نذر وغیره په نیت سره صحت نه لري.

٤: ځلورم شرط دا دی چي په کفارې کي به داسي وایي چي دا روژه د متعې روژې ده یا د سر خریلو د جزا روژه ده وغیره که یې داسي نسبت و نه کړی صرف یې وویل چي زما روژه ده جواز نه لري.

٥: پنځم شرط یې دا دی چي د کفارې روژې به په هغه ورځو ورځو کي نه وي چي منع د روژې ځخه په کښي سوې ده لکه د کوچني او لوی اختر ورځ او دري ورځي د اختر تر ورځي بعد د تشریق ورځي او بل به میاشت د روژې نه وي په فصول العمادیة کي ویلي دي

که مسافر سړي یا مریض د روژې په میاشت د روژې نیت د قضایي وکړي نو روژه یې قضایي ده د امام اعظم رحمه الله پرمذهب باندي او د هدایې همدغسي مسئله ده او الکافي د امام اعظم رحمه الله څخه داسي مسئله نقل کړې ده چي د مسافر د قضایي نیت صحت لري لکه د مریض په باب کي صحیح دا ده چي صحت نه لري بلکې روژه یې د روژې د میاشتي څخه ګرځي او په هغه ورځو کي روژه په کښي منع سوې ده نو دا روژې په کښي حرامي دي.

په دغه ورځو کي چي روژې منع دي د بحث اصلي موضوع دا ده چي آیا په دغه ورځو کي روژه ونیسي د ثواب څخه چي لاس پرېږدي د روژو په ځای کي دریږي او که یې ځایه ولاړې؟ نو جواب دا دی چي که یې دغه د کفارې روژې په کښي ونیولې په حساب کي راځي نوري د دغه په عوض کي نه پر لازمیږي لکه مصنف چي په الکبیر کي ویلي دي چي روژه په هر ځای او هره زمانه کي صحت لري نو دا عبارت خو د مخکي سره مخالف سو چي داسي حکم یې کړی دی چي په دغه پنځو ورځو کي روژه جواز نه لري نو ملا علي القاري رحمه الله وایي چي مخالفت نسته په کښي وجه دا ده چي د حرمت کلام چي بعضو کړی دی دا د صحت سره مخالفت نه لري لکه په بحر الرائق کي چي د صحت ورته ویل سوي دي نو د طحاوي په شرح الاثار کي عبارت هم پر دغه حمل دی چي د متعي او قِران او احصار او نه نوري د کفارې او نفلي روژو نیول ستهٔ دا د امام اعظم رحمه الله او ابو یوسف او محمد رحمه الله مذهب دی انتهي خو دا قول چي نفلي روژې به هم نه نیسي دا صریح دی چي صحت خو لري یې له خلافه څخه خو حرمت ورسره ملګری دی په اجماع د علماؤ سره نو د مصنف قول دېر نلشنا معلوم سو چي ده ویلي دي چي لوس ثابته سوه چي جواز نه لري د اختر او د تشریق په ورځو کي روژې د کفارې د ښکار وغیره د حج د کفارو څخه علي القاري وایي چي زه وایم چي دا خو هیڅ پته نه ده چي جواز نه لري ولي خو حرامي دي نو حرمت خو د دې شرط نه دی چي صحت هم نه لري او د کرماني قول چي وایي د اختر د ورځو څخه بعد دي هغه اووه روژې نیسي دې ته سروجي سهوه کلام ویلي دي انتهي معنا ثواب یې تر دغه ورځو بعد دی نو مراد یې اصلي دا دی چي د نهي ورځي تیري سي باره دې روژې ونیسي چي په حرامو کي واقع نه سي نو دا ټوله اقوال دا نه ثابتوي چي په دغه ورځو کي هیڅ صحت نه لري.

په دغه روژو د کفارة کي پرله پسې نیول شرط نه دی اګرچي فضیلت لري ځکه و نېکي ته په کښي تلوار دی لیکن د قسم په کفارة کي پرله پسې کېدل واجب عمل دی ځکه د ابن مسعود رضی الله عنه په قرآة کي پرله پسې کیدل راغلي دي:

فمن لم یجد فصیام ثلاثة ایام متتابعات. البقره ۱۹۶

څوک چي په قسم کي حانث سو او مریی یې پیدا نه کړی نو بیا به درې ورځي پرله

پسې روژې نيسي.

او امام شافعي رحمه الله پرله پسې والي واجب څکه نه بولي چي و قرأة شاذه ته اعتبار نه ورکوي او بل د دغه روژو دپاره احرام يا حرم شرط نه دى اگر که د حرم شرافت خو ډېر دى او نيکي يې دوچنده دي ليکن نور ځايونه هم جواز لري صرف د قِران يا تمتع روژې چي هغه درې روژې نيسي چي دريمه ورځ به يې د عرفې او نهم ورځ وي دا د هغه چا دپاره چي د شکرېې قدرت نه لري لهذا د حج تر ورځو يا تر احرام دمخه د حاجي قارن دپاره او د عمرې تر احرام د تمتع دپاره جواز نه لري او بل درې روژې هلته پر لازمېږي چي دا څلور کاره ورځخه وسي يا خو گنډلي کالي واغوندي يا خوشبويي ولگوي يا سر وخريي يا درې نوکان پرې کړي.

او د ښکار په جزا کي روژې د نيم من غنمو په عوض کي نيول کيږي چي په حل کي محرم ښکار وکړي اگر که عذر نه وي او د خيرات څخه هم عاجزه نه وي او که د حرم ښکار مړ کړي يا يې ولوشي يا يې وابنه وکاږي نو که قدرت لري او که يې نه لري عذر وي او که نه وي روژه په کښي نسته همدا رنگه هغه شخص لره چي د حج څخه يې يو څوک بند کړی د دم پر ځای ورلره روژې جواز نه لري همدا رنگه روژې و قارن او متمتع حاجي لره جواز نه لري که يې قدرت پر شکرېې درلودی او يا د هغه څلورو ممنوعاتو څخه ماسوا بل يو ناروا کار ورڅخه وسي بيا روژې په کښي جواز نه لري چي دم يا خيرات پر لازم سوی وي اوس که يو شخص ډېر بوډا وي او د روژو څخه عاجزه وي يا داسي مريض وي چي د جوړېدو اميد يې نه وي نو هم د روژې فديه چي ورکوي هيڅ جواز نه لري که پر واجب سوې وي لکه د عذر په وجه چي سر وخريي مثلاً نو نه پسه پيدا کولای سي او نه د روژو قدرت لري او نه د شپږو مسکينانو د خوراک قدرت لري نو دي داسي قصد وکړي چي د درې ورځو د روژې په مقابل کي درې مسکينان ماړه کړي دا جواز نه لري ترڅو چي درې نور سهار او مابښام هم ماړه نه کړي څکه شريعت په دې درې شيانو کي اختيار ورکړی دی چي يا به پسه حلالوي يا به شپږ مسکينان مړوي يا به درې ورځي روژې نيسي لهذا که اوس درې مسکينان ماړه کړي بيا به درې بل وخت ماړه کړي هر وخت چي يې قدرت پيدا کړي نو خلص مطلب دا سو چي د روژو پر ځای فديه جواز نه لري.

## فصل د کفارې څلور اقسام

اعلم ان الکفارات کلها علی اربعة انواع اما ان يجب الدم عينا او الصدقة عينا او علی الترتيب الدم و الصوم عند العجز عنه او علی التخيير بين الدم و الصوم و الصدقة فحيث وجب الدم عينا لايجوز عنه غيره من الصدقة و الصوم و القيمة و حيث وجبت

الصدقة عينا يجوز عنها الدم و القيمة لايجوز عنها الصوم و حيث وجب احد الشيئين على الترتيب الدم او الصوم لايجوز عنه الصدقة و القيمة و حيث وجب على التخيير بين الثلاثة يجوز عنه بدلا الصدقة و القيمة.

متن و شرح علي القاري

پوه سه طالبه چې په احرام كې چې كومې جزاګانې لازم سوې دي تولې څلور قسمه دي د حصر وجه يې دا ده چې يا به عيناً دم پر لازم وي يا به عيناً خيرات پر لازم وي بې له اختياره او ترتيب څخه او يا به په ترتيب سره دم پر لازم وي چې قدرت ولري او يا به روژې پر لازمې وي چې د دم څخه عاجزه سي او څلورم قسم دا دى چې اختيار ولري په دغه شيانو كې چې يا به دم حلالوي يا به روژې نيسي يا به خيرات كوي اوس پر دغه تېر بيان نورې مسئلې تفريع كېږي چې پر چا دم عيني واجب سوى وي نو بل شى يې پر ځاى جواز نه لري لكه خيرات، روژې يا قيمت د دم خيرات كول صرف به دم په حرم كې حلالوي او په كوم فعل كې چې خيرات پر لازم سوى وي بيا نو د خيرات عيني پر ځاى دم حلالول جواز لري علاوه دا ده چې دم پر خيرات بالايي لري ليكن ياد لره چې غوبنې به يې د نيم نيم من غنمو په اندازه مسكينانو ته وركوي نه كم تر دغه او نه زيات تر دغه علاوه دا ده چې وينه بهيول يې شرط نه دى بلكې تقسيمول يې لازمي كار دى او تر حرم دباندې يې هم حلالول جواز لري او بل د دغه خيرات په عوض كې د پسه قيمت خيرات كول هم جواز لري چې د نيم نيم من غنمو روپۍ مسكين ته وركوي او كه خيرات درباندې لازم سو بيا د خيرات پر ځاى روژې نيول جواز نه لري كه د خيرات څخه عاجزه هم سي ځكه خيرات دلته معين سوى دى يا يې قيمت او كوم ځاى چې يو د دوو شيانو څخه لكه دم يا خيرات پر لازم سي پر ترتيب باندې نو دلته بيا د دم يا د روژو په بدل كې خيرات جواز نه لري او نه هم قيمت د دم او كوم ځاى چې درې سره جواز ولري په اختياري طور سره بيا د دم پر ځاى قيمت او خيرات همدارنګه روژې جواز لري لكه الكبير چې ليكلي دي هر يو چې په دغه درې سره اعمالو كې وكړې جواز لري او كه يې درې سره كارونه وكړه د يوې كفارې څخه ګرځې په اعلى معيار كې او كه يې يو هم و نه كړې بيا نو غاړې يې بنديږي د يوه په عوض كې او كوم ځاى چې قيمت د دم جواز ولري هغه ځاى تر حلالولو د دم د قيمت وركولو ثواب ډير دى د متاخرينو پر مذهب باندې چې نخبة كتاب وايي فتوا هم پر دغه قول ده.

## فصل حاجي لره د كوم دم خوراک جواز نه لري

ولا يجوز للمكفر ان ياكل شيئا من الدماء الا دم القران و التمتع و التطوع ولايجوز اداء اجرة الجزاء منه فان اعطى غرم قيمته الثلاثة ولو شرط الاجرة منه لم يجز في

الکل و کذا لایجوز له ان یاکل من صدقته ولو اعطی الفقیر الدم او الصدقة ثم اراد الفقیر ان یطعمه منه او یطعم غیره ممن لم یحل له الصدقة فان اطعمه تملیکا جاز و ان اطعمه اباحة لم یجز.

متن و شرح علي القاري

د قِران او د تمتع او نفلي خیرات د شکریې څخه ماسوا نور چي هر څونه دمونه پر حاجي لازم سي دی خوراک نه سي ورڅخه کولای علاوه دا ده چي دا خو د شکریې یا د نفلي خیرات دپاره دی لهذا خوراک لا نه بلکي ورته مستحب طریقه دا ده چي خوراک ورڅخه وکړي لکه د اختري څخه او بله مسئله دا ده چي د قصاب مزدوري د دغه حیوان د غوښو څخه نه سي ورکولای او که یې ورکړه د هغو غوښو قیمت خیرات کول پر لازمیږي او که یې د غوښو د مزدورۍ شرط پر کښېښودی بیا نو هر څونه کسان که په غوایي یا اوښ کي شریکان سوي وي د ټولو قرباني خرابه سوه جواز نه لري او بل قانون دا دی که ده فقیر ته د دم غوښې یا خیرات ورکړی او هغه فقیر بیا ده ته پخپله یا د ده هغه قریبان چي د خیرات کونکي زکات نه پر ختل لکه اباګنۍ یا بچیان مثلا او یا یې غني سړي ته ورکړل نو دلته دوې خبري دي یا به فقیر دغه غوښې د ملکیت پر طریقه ورکوي لکه خرڅ یا هبه نو جواز لري او که د اباحت او میلمستیا پر طریقه یې ورکړل بیا جواز نه لري.

## فصل د مریي جنایت

کل ما یفعله المملوک المحرم فان کان مما یجوز فیه الصوم یجب علیه فی الحال و ان کان مما لایجوز فیه بل الدم عینا او الصدقة عینا فعلیه ذلک اذا عتق ولا یبدل بالصوم و ان ادی ذلک فی حال الرق لایجوز و ان تبرع عنه مولاه او غیره لم یجز و قیل یجوز اما دم الاحصار فیجوز اذا بعث عنه مولاه.

متن و بعده ترجمه و شرح علي القاري

هر هغه فعل چي احرام بنده مریی وکړي که داسي یو ممنوع عمل وو چي د روژو جواز په کښې وو بیا نو پر مریي لازمه ده چي في الحاله روژې ونیسي او که دم یا خیرات پر لازمېدل بیا چي هر کله دی د مریي توب څخه آزاد سو دم یا خیرات به کوي او که د ده بادار یا بل سړي د ده پر ځای دم حلالوی یا یې خیرات ورکوی جواز نه لري اګر که قیل ویلي دي چي جواز لري لیکن که د حج څخه بند سو او د ده بادار دم د احصار حرم ته د ده پر ځای واستوی او هغه یې حلال کړی په حرم کي چي دی د احرام څخه ووزي بیا جواز لري.

## فصل د حاجي قارن یا متمتع جنایت

جنایت القارن و من بمعناه کل شئ یفعله القارن مما فیه جزاء واحد علی المفرد

فعلی القارن جزا ان الا فی مسائل الاولی منها اذا جاوز المیقات بغیر احرام ثم قرن فعلیه دم واحد الا ان احرم بالحج من الحل و بالعمرة من الحرم او بهما من الحرم فعلیه دمان الثانیة لو قطع شجر الحرم فعلیه جزاء واحد الثالثة لو نذر حجة او عمرة ما شیا فقرن و رکب فعلیه دم واحد الرابعة لو طاف للزیارة جنبا او علی غیر وضوء او للعمرة کذلک فعلیه جزاء واحد و ان طاف لهما کذلک فعلیه جزا ان الخامسة لو افاض قبل الامام من عرفة فعلیه دم واحد السادسة لو ترک الوقوف بمزدلفة فعلیه دم واحد السابعة لو حلق قبل الذبح فعلیه دم واحد الثامنة لو اخر الحلق عن ایام النحر فعلیه دم واحد التاسعة لو اخر الذبح عنها فعلیه دم واحد العاشرة لو ترک الرمی فعلیه دم واحد الحادیة عشر لو ترک احد السعیین فعلیه دم واحد الثانیة عشر لو ترک طواف الصدر فعلیه دم واحد و ما ذکرناه من لزوم الجزائین علی القارن وهو محکم کل من جمع بین الاحرامین کالمتمتع الذی ساق الهدی او لم یسقه و لکن لم یحل من العمرة حتی احرم بالحج و کذا کل من جمع بین الحجتین او العمرتین و علی هذا لو احرم بمأة حجة او عمرة ثم جنی قبل رفضها فعلیه مأة جزاء.

متن و بعده ترجمه و شرح ملا علي القاري بلسان بشتو فاستمع

په هر هغه ممنوع عمل چې پر حاجي مفرد يو دم لازميږي پر قارن او متمتع حاجي دوه دمه لازميږي يو د حج د احرام بل د عمرې د احرام په وجه سره پر لازميږي ليکن يو څو مسائل دي چې احنافو هغه د دغه حکم څخه ايستلي دي چې په هغو کې پر قارن او متمتع حاجي هم يو دم لازميږي چې هغه دوولس ځايونه دي:

١: اول په کښې دا دی چې تر میقات بې له احرامه څخه تېر سي باره د قِران نيت وکړي او احرام د هغه ځايه څخه وتړي و ميقات ته را و نه ګرځي نو يو دم پر لازميږي وجه يې دا ده چې دا ممنوع کار د ده تر احرام دمخه سوی دی او که تر میقات بې له احرامه څخه تېر سو باره يې د حج احرام وتړی بیا حرم ته داخل سو باره يې د عمرې احرام وتړی په دغه صورت کې دوه دمه پر لازميږي په اتفاق سره د علماؤ او يا يې دواړه احرامه د حرم څخه وتړل افاقي سړي نو دوه دمه پر لازميږي ځکه تر ميقات تېر سو نسبت په دوه احرامه سره او که يې د ميقات څخه د حج يا عمرې احرام وتړی تر ميقات تېر سو باره يې بل احرام وتړی هيڅ نه پر لازميږي.

٢: دويم که يې د حرم درختي پرې کړې بيا نو يو دم پر لازميږي.

٣: دريم که يې پر ځان حج يا عمره پياده نذر کړه او بيا يې د قِران نيت وکړی سپور ولاړی په داسي وخت کې چې سپرتيا جواز نه درلودی نو يو دم پر لازميږي ارشاد الساري وايي دا دم د ده د سپرتيا په وجه وربانديِ لازم دی.

۴: څلورم که يې طواف زيارت په جنابت او يا يې اودسې سره وکړی او يا يې د عمرې طواف په جنابت يا بې اودسې سره وکړی يو دم پر لازميږي ځکه په دغه صورتو کې خو د قارن او مفرد فرق نسته او که يې د حج او عمرې دواړو دپاره طواف په جنابت يا بې اودسې سره وکړی نو دوه دمه پر لازميږي دا هم که حاجي مفرد وي که قارن يا متمتع وي.

۵: پنځم که د عرفات څخه تر امام دمخه راکښته سو بې له عذره يو دم پر لازميږي ځکه دا د واجباتو څخه د حج دی د احرام سره د عمرې کار نسته.

۶: شپږم چي د مزدلفې دربدل ورځخه پاته سي بې له عذره څخه يو دم پر لازم دی.

۷: اووم چي تر ذبحې دمخه سر وخريي يو دم پر لازميږي ځکه دلته په ترتيب کې اختلاف دی.

۸: اتم که يې سر خريل د اختر تر ورځو وځنډول بيا يو دم پر لازميږي.

۹: نهم چي د قرباني حلالول د اختر تر ورځو وځنډوی يو دم پر لازميږي.

۱۰: لسم چي د څلو ويشتل ورځخه پاته سي تر توله يا لږ نو دم يا خيرات چي پر لازميږي د دم په صورت کي يو دم او د خيرات په صورت کي يو خيرات پر لازميږي.

۱۱: يولسم چي د عمرې يا د حج سعيه ورځخه پاته سي يو دم پر لازميږي.

۱۲: دولسم که طواف رخصت ورځخه پاته سو يو دم پر لازميږي ځکه دا تر حج پوري تعلق لري و افاقي لره نه تر عمرې پوري مطلقاً.

او هغه ځايونه چي پر قارن حاجي چي د حج او عمرې احرامونه يې په يوه يا دوو نيتو سره تړلي وي نو دوه دمه پر لازميږي دا حکم عام دی هر څوک چي دوه احرامه سره جمع کړي دوه دمه پر لازميږي لکه حاجي متمتع چي پسه معنا هد يه يې د ځانه سره بېولې وي او يا يې نه وي بېولې خو ځان يې د عمرې د احرام څخه نه وي حلال کړی چي د حج احرام يې وتړی علاوه دا ده که د دوو حجو يا دوو عمرو احرامونه وتړي په يو يا دوه نيته سره علاوه دا ده چي پر يو ځای مثلاً د سلو حجو احرام وتړي او د دونه عمرو او بيا جنايت وکړي تر ماتوالي دمخه نو سل دمونه پر لازميږي معنا سل پسونه به حلالوي او که کم تر دغه وي د احرام په حساب سره پر لازميږي د احرام د ماتوالي تفصيلي بيان به انشاءالله درته راسي.

## فصل د مجبوری جنايت

اذا اکره محرم محرما علی قتل صيد فعلی کل واحد منهما جزاء کامل و ان اکره حلال محرما فا الجزاء علی المحرم و لا شئ علی الحلال و لو فی صيد الحرم و ان اکره محرم حلالا علی صيد ان کان فی صيد الحرم فعلی المحرم جزاء کامل بحمله علی مباشرته و ان کان فی صيد الحل فاالجزاء علی المحرم و ان کانا حلالين فی صيد الحرم ان توعده بقتل کان الجزاء

على الامر و ان توعده بحبس كانت الكفارة على المامور القاتل خاصة.

متن و شرح علي القاري

د زورور او كمزوري جنايت: د زورو جنايت په گناه كې ډېر زيات دی تر كمزوري دلته يې تفصيل واوره كه يو احرام بنده پر بل احرام بنده په زوره سره ښكار وكړي عامه خبره ده كه د حرم وي كه خارج د حرم څخه وي پر دواړو جزا لازميږي كوم كس چې ښكار كړی دی دا خو ظاهره ده او كوم كس چې زور لگولی دی د ده مثال د دلالت كونكي دی لهذا نو پر ده هم جزا لازميږي نو پر هر يوه كامله جزا ده اگر كه قياس وايي چې نيم نيم دي پر لازمه سي او كه حلال سړي پر محرم زور ولگوی ښكار يې په وكړی نو جزا پر محرم ده پر حلال سړي هيڅ نه لازميږي بغير د استغفار څخه اگر كه د حرم ښكار هم وي دليل دا دی چې د حرم ښكار خو هيڅ چا ته جواز نه لري ليكن كه فعل محرم كړي او زور د حلال وربسې دی نو لهذا دی هم په كنبي شريك دی خو په گناه كي چې د آخرت جزا ده او د دنيا جزا ورباندي نسته او دا شرعي مسئله ده د عقل څخه ماورا ده او كه محرم پر حلال سړي په زوره ښكار وكړی نو كه د حرم ښكار وو بيا پر محرم جزا لازميږي څكه دی باعث كونكی او جنايت يې كامل دی او پر حلال سړي نيم قيمت خيرات كول لازم څكه دی چې د ده څخه يې كړه سوې دي او كه محرم پر حلال سړي په زوره د حل د مځكي ښكار وكړی بيا نو جزا پر محرم سته نه پر حلال سړي څكه چې پر محرم خو په اشاره يا دلالت سره لا دم لازميدی دلته خو زور هم كوي لهذا جنايت يې غټ دی سره د گناه او كه چيري زورور او كمزوري دواړه حلال وه او زورور داسي ورته وويل چې د حرم ښكار ووله كه نې وژنم دي نو په دغه صورت كي جزا پر امير ده او كه يې داسي ورته وويل چې بندي كوم دي كه ښكار و نه كړې بيا نو خاص پر كمزوري مامور ده جزا د ښكار څكه دی مباشر د ښكار دی او بند يې وهمي كار دی كه چيري پر محرم دونه زور ولگيدی چي دا ښكار مر كړه كه نې وژنم دي او محرم منعه د ښكار څخه وكړه او امير دی په قتل ورسوی نو محرم ته ثواب دی اگرچي رخصت خو د ښكار كولو د زور په وجه ورلره هم سته او جزا خو شرعاً پر لازمه ده دلته يو بل صورت هم سته چې امير او مامور دواړه احرام بنده وي او امير و بل مأمور محرم ته وعده وركړي چې بندي كوم دي كه ښكار مر نه كړې نو په دغه صورت كي جزا پر امير هم داسي واجب ده لكه پر مامور باندي دليل دا دی چې زور تر دلالت او اشارې زيات تاثيرناكه دی نو چې پر دلالت كونكي لا جزا وه پر امير خو ښيخي جزا لازميږي.

## فصل د احرام بنده جنايت

اعلم انه اذا نوی رفض الاحرام فجعل يصنع ما يصنعه الحلال من لبس الثياب و

التطیب و الحلق و الجماع وقتل الصید فانه لایخرج بذلک من الاحرام و علیه ان یعود کما کان محرما و یجب دم واحد لجمیع ما ارتکب و لو فعل المحضورات و انما یتعدد الجنایات اذا لم ینو الرفض ثم نیته الرفض انما تعتبر ممن زعم انه یخرج منه بهذا القصد لجهله مسالة عدم الخروج واما من علم انه لا یخرج منه بهذا القصد لجهله مسالة عدم الخروج و اما من علم انه لایخرج منه بهذا القصد فانها لا تعتبر منه.

متن و بعده شرح علي القاري

دلته یو قانون ذکر کیږي که چیرې یو محرم سړي د احرام د ماتولو په وجه ډېر ممنوع کارونه وکړه داسي کارونه یې وکړه لکه حلال سړی نو د ټولو دپاره یو دم کافي دی ځکه د ټولو ممنوعاتو سبب یو نیت او قصد د دہ دی او بیرته هغه افعال د حج پر لازم دي اگر که حج ورځخه فاسد سوی وي لکه تر عرفات چي دمخه وطي وکړي حج یې نه دی مات پوره کول پر لازم دی اگر که بله قضا پر لازمیږي او که یې نیت د احرام د ماتوالی نه وو بیا نو د هر جنایت پر سر یو یو دم پر لازمیږي او د ماتوالی نیت د هغه چا معتبره دی چي نه پوهیږي او دا یې عقیده وي چي په دغه کارونو زما احرام ماتیږي او که پوهېدی چي په دغه کارونو سره زما احرام نه ماتیږي بیاهم د هر ممنوع په عوض کي دم پر لازمیږي هر څونه چي ممنوعات وه د ممنوعاتو د جمعه کېدو مثلا لکه وطي وکړي خوشبویي ولگوي ښکار وکړي سر وخریي وغیره کارونه.

## باب څوک چي د حج څخه منع او حصر سي

الاحصار هو المنع عن الوقوف و الطواف بعد الاحرام فی الحج الفرض و النفل و فی العمرة عن الطواف بها او بهما لا غیر فان قدر علی الطواف او الوقوف فلیس بمحصر و یتحقق بکل حابس یحبسه و هو علی وجوه الاول العدو المسلم الکافر ولو احصر العدو طریقا و وجد طریقا اخر ان اضربه سلوکها فهو محصر و الا فلا الثانی السبع الثالث الحبس الرابع الکسر و العرج الخامس المرض الذی یزید بالذهاب السادس موت المحرم او الزوج للمرأة وعد مهما ابتداء ولیس لها محرم و لا زوج فهی السابع هلاک النفقة فان سرقت نفقته ان قدر علی المشی فلیس بمحصر و الا فمحصر و ان قدر علیه للحال الا انه یخاف العجز فی بعض الطریق جاز له التحلل الثامن هلاک الراحلة التاسع العجز عن المشی العاشر الضلالة عن الطریق و قیل لیس هذا بحصر لانه ان وجد من یبعث الهدی علی یدیه فذلک الرجل یهدیه الی الطریق و ان لم یجده فلا یمکنه التحلل الحادی عشر منع الزوج زوجته فی الحج النفل ان احرمت بغیر اذنه و المولا مملوکه عبد کان و امة فلو احرمت بنفل بغیر اذن الزوج ولها محرم فمنعها زوجها فهی محصرة و ان لم یکن لها زوج فان کان لها

محرم فلیست بمحصرة و الا فمحصرة و ان احرمت باذنه ولها محرم لاتکون محصرة و ان منعها الزوج ولایجوز له ان یحللها بعد الاذن و ان لم یکن لها محرم و خرج الزوج معها فکذلک و ان لم یخرج معها فهی محصرة و ان احرمت بحجة الاسلام ولها محرم و منعها الزوج لاتکون محصرة و ان لم یکن لها محرم فان خرج الزوج معها فلیست بمحصرة و ان لم یخرج فهی محصرة کما لو احرمت بحجة الاسلام و لا زوج و لا محرم ولایجوز لها الخروج بنفسها ولو احرمت بالفرض قبل اشهر الحج ان کان اهل بلدها یخرجون قبل الاشهر فلیس للزوج منعها و الافله منعها و ان احرمت قبل خروجهم لا یمنعها و الافله ذلک و ان احرمت فی الاشهر فلیس له ان یحللها و اما المملوک اذا احرم فمنعه المولی فهو محصر سواء احرم باذنه اولا الا انه یکره له المنع بعد الاذن و لو اذن لامته المتزوجة فلیس لزوجها منعها ولا تحلیلها الثانی عشر العدة فلو اهلت بحجة الاسلام او غیرها فطلقها زوجها فوجب علیها العدة صارت محصرة و ان کان لها محرم و کل من عرض له احد هذه الوجوه بعد الاحرام قبل الوقوف بعرفة فهو محصر ولو وقف بعرفة ثم عرض له مانع لا یکون محصرا فیبقی محرما فی حق کل شئ ان لم یحلق و ان حلق فهو محرم فی حق النساء لا غیر الی ان یطوف للزیارة فان منع حتی مضت ایام النحر فعلیه اربعة دماء لترک الوقوف بمزدلفة بها فعلیه دم و الرمی و تاخیر الطواف و تاخیر الحلق و دم خامس لو حلق فی الحل و سادس لو کان قارنا او متمتعا لفوات الترتیب و علیه ان یطوف للزیارة و الصدر و یتحقق الاحصار فی الحرم کما فی الحل و من افسد حجه بالجماع اذا احصر فهو کالذی لم یفسده و علیه دم الفساد و دم للحصر و القضاء.

متن و بعده شرح علي القاري

دا باب په بیان کي د حصر دی حصر ویل کیږي په لغت کي و بند ته د سفر څخه او په شریعت کي هغه منعي ته وایي چي احرام بنده حاجي د عرفات د دریدلو څخه منع کړي لو یا یې د تول طواف څخه د حج منع کړي برابره خبره ده که فرض یا نذري او یا نفلي طواف وي څکه تر شروع بعد پر سرې فرض ګرځي او یا یې قضا پر لازمیږي که یې تر احرام بعد فاسد کړي په اجماع سره د علماؤ دلیل د قرآن دغه آیتونه دي چي الله تعالی فرمایلي دي:

واتموا الحج و العمرة لله. البقره ۱۹۶

وقوله تعالی:

ولا تبطلوا اعمالکم. محمد ۳۳

معنا په اول آیت کي خصوصي الله (ج) فرمایي تاسي حج او عمره پوره کوئ او په دا ل آیت کي عموماً الله (ج) فرمایي چي تاسي یو نیک عمل شروع کړئ بیا یې مه فاسدوئ.

او په عمره کي حصر ویل کیږي و منعي ته د طواف څخه تر احرام بعد ځکه په عمره کي طواف فرض او رکن دی او په حج کي معظم رکن د عرفات درېدل دي لهذا که قادر سو محرم د حج برابره خبره ده که قارن او مفرد حاجي وي چي پر طواف یا د عرفات پر درېدلو قدرت ولري په ظاهره روایت کي ورته حصر او منع نه وایي واجه یې دا ده چي پر عرفات ودرېدی او د طواف څخه منع سو نو تر هغه وخته پوري د ښخو څخه منع سو ترڅو پوري چي طواف یې نه وي کړي په معنا کي د قضا کونکی د حج دی هرکله چي د عرفات څخه منع سو ځان به دعمرې په افعالو سره د احرام څخه حلال کړي او دم نه پر لازمیږي او نه د قضا عمره پر لازمیږي په حرم محترم کي حصر د اختلاف مسئله جوړه سوې ده چي آیا دلته هغه منع د حج څخه کېدای سي او که نه؟ امام ابو یوسف رحمه الله وایي ما د امام اعظم رحمه الله څخه پوښتنه وکړه چي آیا په حرم کي هم سړی د حج څخه منع کېدای سي نو امام صاحب راته وویل چي دلته منع نه سي کېدای ما ورته وویل چي نبي عليه السلام په حدیبیه کي سره د اصحابو (رض) منع نه سو؟ او حدیبیه خو د حرم څخه ده نو ده راته وویل صحیح ده هلته دار الحرب وو اوس خو دار الاسلام دی او منع په حرم کي د تو له افعالو څخه د حج ډېر نادره ده لهذا د حصر صورت نه جوړیږي.

ارشاد الساري وایي په حدیبیه کي اختلاف دی فتح القدیر وایي دا د حرم څخه ده او امام بخاري وایي دا د حل د مځکي څخه ده او مصنف وغیره مشائیخ وایي چي یو څه په حرم کي او یو څه په حل کي ده او حدیبیه یو ځاه دی چي د مکې مکرمې څخه یو مزل قدري لیري دی د جدې پر طرف باندي انتهی.

ابو یوسف رحمه الله وایي چي زما په نزد په حرم کي هم حصر کېدای سي که دښمن پر مکه غالبه سو چي د حاجي او حرم تر مابین واقع سو او یا د عرفات ملا علي القاري وایي چي د دښمن څخه علاوه که باچا د وخت منع وکړه هم حصر واقع دی الغ اصلي حل ابن الهمام را ایستلی دی هغه دا دی چي حصر د امام صاحب پر مذهب په دښمن سره او د نورو علماؤ پر مذهب نور شیان هم سبب د حصر کېدای سي اوس متوجه سه چي د حصر او بند ډېر قسمونه دي چي جمله یې دوولس کیږي:

۱: اول چي دښمن سړی د حج څخه منع کړي برابره خبره ده چي دښمن مسلمان او که کافر وي اګرچي امام شافعي رحمه الله د مسلمان د حصر څخه منکر دی وایي نبي عليه السلام خو کافرانو د عمرې د حج څخه منع کړی موږ ورته وایو چي اعتبار د آیت و عموم ته دی اګر که واقعه خاص وه که چیري د حرم لاره دښمن بنده کړه بله لاره خو وه لیکن د ډېر تکلیف سره وه یا په هغه کي هم ضررونه وه نو دغه ته حصر او بند ویل کیږي او که په بله لاره کي

تکلیف نه وو نو بیا حصر نه بلل کیږي په شریعت کي.

۲: دویم حصر د درندګانو دلاس څخه کیږي چي په لاره کي پړانګان یا شرموښان او یا زمریان وغیره درندګان وي لاره یې بنده کړې وي.

۳: دریم محبس دی چي باچا یې په محبس کي بندي کړي.

۴: څلورم ماتوالی د پښې یا د یو هډوکی دی چي د سفر څخه سړی منع کړي.

۵: پنځم مریضي ده چي د سفر څخه منع راولي پر غالب ګمان یا د پوه ډاکټر په حکم سره.

٦: شپږم چي محرم مړ سي او یا د ښځي مېړه وفات سي په لاره کي د حج او که ښځي احرام وتړی او هیڅ محرم یې نه درلودی دا هم حصر بلل کیږي شرعاً که و مکې ته د دري ورځو لاره وه.

۷: اووم قسم دا دی چي پر لاره یې نفقه یا کرایه خلاصه سي او یا ورڅخه غلا سي اوس که پر پښو یې د تګ قدرت درلودی څو حصر نه دی او که یې قدرت نه وو بیا نو حصر بلل کیږي او که یې اوس د تګ طاقت وو لیکن یو څو ورځي پس یې بیا د عاجزه کېدو خطره وه بیاهم محصر دی.

۸: اتم قسم دا دی چي پر لاره یې د سپاری حیوان هلاک سي که یې د بل د رانیولو طاقت وو څو نه دی حصر او که یې نه درلودی بیا نو حصر دی الخ.

۹: نهم قسم دا دی چي د تګ څخه عاجزه سي نفقه لري څو د سپاری حیوان نه لري نو دا هم حصر دی.

۱۰: لسم دا دی چي لاره ورڅخه ورکه سي د مکې یا د عرفات او قیل وایي دا حصر نه بلل کیږي ځکه چي دی څو پر حیوان د یو شخص به حرم ته ځي نو هغه شخص لاره ورښيي دلته اګرچي بحث ډېر دی لیکن که یې داسي څوک هم پیدا نه کړی نو ضرور څو و خپل وطن ته راځي د هغه ځایه څخه به یې استوي.

۱۱: یولسم قسم دا دی چي پر ښځي مېړه منع ولګوي په نفلي حج کي که یې د مېړه بې له اجازې څخه احرام تړلی وو او بل محرم یې هم نه درلودی نو دا حصر دی او یا مړیي یا مینځي د بادار بې له اذنه څخه احرام تړلی وو نو د ښځي د حصر مسئله یو څه تېره سوله باقي دا ده که ښځي د نذري حج یا د فرضي حج احرام تړلی وو او یا یې د نفلي احرام تړلی وو محرم یې درلودی مېړه یې نه درلودی او یا اول مېړه اجازه ورکړې وه دې چي احرام وتړی منع یې کړه او یا زوج ورته وویل چي زه دې د ځانه سره بیایمه چي احرام یې وتړی ویل نه دې بیایمه نو په دغه تولهصورتو کي دا حصر نه دی کولای سي چي ولاړه سي ځکه مېړه

خپل حق په اجازه سره بايلوى او که چيري مېړه يې نه تلى او بل محرم هم ښځې نه درلودى او احرام يې دفرضي حج هم تړلى وو لا مېړه کولاى سي چي دا د حج څخه منع کړي اگر که حج يې فرضي هم وي ځکه ښځې ته وتل د کور څخه بې له محرمه جواز نه لري که مسافه د درې ورځو د لارې وه.

که چيري ښځې د حج تر مياشتو دمخه احرام وتړى او د ښار خلق هم روانېدل بيا يې مېړه نه سي منع کولاى او که يې لږ ورځي تر وتلو د خلقو دې احرام وتړى بيا يې هم زوج نه سي منع کولاى او که ډېر مخکې وه او يا خلق نه تلل بيا نو مېړه کولاى سي چي دا منع کړي د وتلو څخه او که د حج په مياشتو کي دې احرام وتړى بيا هم زوج منع نه سي کولاى او کوم چي مريى دى که بادار اجازه ورکړې وي او که يې نه وي ورکړې کولاى سي چي خپل مريى د حج څخه منع کړي ليکن بادار ته دا عمل مکروه دى او که بادار خپلي مينځې ته اجازه د حج ورکړه او د دې مېړه منع کوله بيا مېړه دا نه سي راگرځولاى د حج څخه.

۱۲: دولسم قسم دا دى چي ښځه په عده کي وي که چيري ښځې احرام وتړى او زوج طلاق ورکړى نو که حج فرضي وي او که نفلي يا نذري وي نو دا د حج څخه عدې منع کړه اگر که بل محرم ولري دليل دا دى چي دا اوس د تلو څخه منع ده پر دې د طلاق په محل کي درې مياشتي عده تېرول لازم دى هر هغه شى چي د دغه شيانو څخه حاجي ته پېښ سو تر احرام بعد دا د حج مانع گرځي د عرفات تر درېدلو دمخه او که پر عرفات ودرېدل باره مانع ورته پيدا سو نو دا حصر نه بلل کېږي شرعاً نو دى احرام بنده دى په حق د هر شي کي که يې سر نه وو خريلى او که يې سر وخريل بيا نو په حق د ښځو کي محرم دى نه د بل شي ترڅو چي طواف کوي.

نو که د افعالو څخه حج يې تر عرفات بعد منع کړى او د اختر ورځي تيري سوې نو څلور دمه پر لازمېږي ځکه د مزدلفې درېدل چي پاته سي دم پر لازمېږي بل چي د شيطانانو ويشتل ورڅخه پاته سي او بل د طواف د ځنډ په اعتبار سره بل د سر خريلو د ځنډ په اعتبار سره پر مقتضې د امام اعظم رحمه الله د قول او هغه قاعده به ياد لرئ چي په عذر سره يو واجب عمل ورڅخه پاته سي دم نه پر لازمېږي او پنځم دم هلته پر لازمېږي که يې سر د حل په ځکه کي وخريل دا د هغه قول پر بنا چي د سر خريل په حرم کي واجب بولي اوس دلته دا اختلاف سته چي آيا په حل ځکه کي اوس سر خريلاى سي او که يې د طواف زيارت وروسته وخريي جواب دا دى قيل وايي چي بغير د حرم څخه سر نه سي خريلاى ځکه په زمانه کي ځنډ آسان دى غير د مکان څخه او بل قيل ويلي دي چي جواز ورته لري چي په حل ځکه کي سر وخريي ځکه چي بيا به داسي پېښه وسي چي دغه مکان او زمانه به دواړه

ورځخه دلاسه وتلي وي د اول قيل مسئله په مبسوط او د دويم قيل مسئله په جامع الصغير کي موجود ده او شپږم دم که قارن يا متمتع حاجي وو پر لازميږي ځکه ترتيب ورځخه خراب سو او مسئله درسره ياد لره چي په عذر سره دم ساقطيږي او پر قارن يا متمتع حاجي باندي طواف زيارت لازم دی اگر که د عمر تر اخيره پوري وي ځکه طواف زيارت رکن د حج دی او که افاقي وو طواف صدر هم ورباندي واجب دی او حصر په حرم کي هم کېدای سي لکه د حل په مځکه کي چي کېدای سو او که يو کس د حج ځخه منع سو او ده خپل حج په وطيو سره فاسد کړی نو داهم داسي مثال لري لکه نه چي يې فاسد کړی او پر ده د فاسدولو په وجه دم لازميږي او بل دم د احصار دی چي د حج ځخه منع سو او قضا هم پر لازمه ده پر بل کال باندي.

## فصل د هديې استول حرم ته

اذا احصر المحرم بحجة او عمرة و اراد التحلل و يجب عليه ان يبعث الهدى وهو شاة و ما فوقها و تجوز البدنة عن سبعة او يبعث ثمن الهدى ليشترى به الهدى و يامر احدا بذلک فيذبح عنه فى الحرم و يجب ان يواعده يوما معلوم يذبح فيه حتى يعلم وقت احلاله ثم انه لايحل ببعث الهدى ولا بوصوله الى الحرم حتى يذبح فى الحرم و لو ذبح فى غير الحرم لم يتحلل به من الاحرام و اذا ذبح فى الحرم حل و لو كان المحصر قارنا يبعث بهديين و لو لم يبين ايهما للحج و ايهما للعمرة لم يضره و لو بعث بهدى واحد يتحلل من الحج و يبقى فى احرام العمرة لم يتحلل من واحد منهما ولو بعث ثمن هديين فلم يوجد بذلک القدر بمكة الا هدى واحد فذبح لم يتحلل عن الاحرامين و لا عن احدهما ولو احصر مفرد و بعث بهديين يحل بذبح اولهما و يكون الثانى تطوعا و لو احرم بشئ واحد لا ينوى حجة و لا عمرة ثم احصر يحل بهدى واحد و عليه عمرة ولو عينه ثم نسيه واحصر يحل بهدى واحد و عليه حجة و عمرة و ان احرم بشئين فنسيهما فاحصر بعث هديين و عليه حجة و عمرتان و ان جمع بين الحجتين او العمرتين فاحصر فان كان قبل السير الى مكة يلزمه هديان او بعده فهدى واحد ولو طاف القارن وسعى لحجته و عمرته ثم احصر قبل الوقوف بعرفة فانه يبعث بهدى واحد و يقضى حجة و عمرة لحجته ولا عمرة عليه لعمرته ولايحل بما طاف و سعى لحجته لان ذلک ولو احصر عبد ان احرم فالمولى يبعث الهدى ندبا و لو باذنه فقيل يبعثه حتما و قيل ندبا ولو اعتقه بعد الاذن يجب على المولى بعث الهدى ولو احصر صبى او مجنون فلا شئ عليه ثم انه انما يجب على المحصر بعث الهدى اذا اراد التحلل به اما اذا صبر حتى يرتفع المانع فيتحلل بافعال الحج و العمرة فلا يجب عليه الهدى واذا بعث الهدى فليس عليه ان يقيم بمكانه حتى يذبح و ان عجز المحصر عن الهدى بان لم يجده او

لا یجد ثمنه او من یبعث بیده بقی محرما حتی یجده فیتحلل به او یذهب الی مکة فیحل بافعال العمرة کالفائت ولا یجزئ عن الهدی بدل لا صوم و لا صدقة و لا یفید اشتراط الاحلال عند الاحرام شیئا (تنبیه) المرأة اذا احرمت بحج نفل و لو باذن الزوج او المملوک ولو باذن المولی فحللا هما فعلیهما الهدی و لکن لا یتوقف تحللهما علی ذبح الهدی بل یحلان فی الحال اذا فعلا ادنی شئ من المحظورات کقص ظفر بامر الزوج او المولی، اما اذا احرمت المرأة بحجة الاسلام و لا یحرم لها و منعها زوجها او مات زوجها او محرمها فی الطریق وهی محرمة ولو بحج تطوع فانها لاتحل الا بذبح الهدی فیٔ الحرم و ان حللها زوجها لا تتحلل الا بالهدی فی حج الفرض.

متن و بعده شرح علي القاري

د هدیې استول و حرم ته د دې دپاره چې ځان حلال کړي د احرامه څخه که چیرې یو حاجي یا عمره کونکي چې د بیت الله شریف څخه منع سوی وو او اراده یې وکړه چې ځان حلال کړي معنا د احرام څخه ځان وباسي نو پر ده واجب دا ده چې یو پسه د هدیې دپاره حرم شریف ته واستوي باره یې تر حلال بعد ځان حلال کړي لکه په قرآن کي چې الله تعالی (ج) فرمایي:

واتموا الحج و العمرة لله فان احصرتم فما استیسر من الهدی. البقره ۱۹۶

ژباړه: تاسي حج او عمره پوره کوئ او که ورڅخه بند سواست بیا دي داسي یو حیوان د هدیې حلال کړئ چې درته اسانه یې.

هدیه پسه او یا زیات تر پسه په شمار کي او یا په کیفیت کي مثلا غویی یا اوښ حلال کړي او اوښ هم او غوئي هم د اووه کسانو څخه صحت لري او یا روپۍ حرم ته ولیږي چې هلته پسه په رانیسي او حلال یې کړي نو یو شخص دي معلوم کړي په رانیولو سره او هغه به د ده وکیل او نایب سي دا به په حرم کي ورته حلال کړي.

واجب دا ده چې ورځ یې معلومه کړي او وخت یې معلوم کړي چې و ده ته وخت معلوم وي ځان وروسته حلال کړي او دا حکم د حج په احرام کي دی اګرچې د اختر تر ورځي دمخه وي جواز لري لیکن د اختر د ورځي فضیلت خو پر ډېر دی په اجماع سره د علماوُ او د ابو یوسف او محمد رحمهما الله پر مذهب یې ورځ معلومه ده هغه د اختر ورځ ده او که تر اختر بعد وو نو به یې وخت او ورځ معلوموي او کوم چې د عمرې د حلال دپاره هدیه ولیږي بیا نو د ټولو پر مذهب وخت او ورځ معلومول غواړي لهذا محرم یوازي په لیږلو سره د احرام څخه نه حلالیږي ترڅو چې د ده هدیه حرم ته رسېدلې او بیا حلاله سوې نه وي د ده د طرفه څخه لو که یې د حرم څخه ماسوا بل ځای حلاله کړه هم د احرام څخه نه وزي نو به د احرام د

ممنوعاتو څخه ځان تر هغو ساتي ترڅو چي بنه ورته معلومه نه سي چي زما هديه حلاله سوې ده په حرم کي او دا خبر خو مشکل دی ځکه په گمان سره هم کار نه کېږي دليل دا دی که چيري د ده گمان دا وو چي زما هديه حلاله سوې ده او د ده څخه يو ممنوع کار وسو بيا ورته معلومه سوه چي په دغه وخت کي نه وه حلاله سوې نو د جنايت جزا پر لازميږي او که يې د حرم څخه خارج حلاله کړي وه يو د بله هديه به لېږي چي په حرم کي يې حلاله کړي او که يې ورځ معلومه کړې وه ليکن هغه وکيل تر خپل وخت دمخه حلاله کړه جواز لري شرعاً په اتفاق سره د علماؤ او ظاهره ده چي قياس هم جواز ورکوي نو بنه فکر په کښېي وکه چي د ستر گو پردې دي ليري سي.

نو هرکله چي هديه حلاله سوه او ده هم د احرام څخه ځان حلال کړی نو بيا ټوله شيان چي په احرام کي ورڅخه منع وو اوس ورته جواز لري او که حاجي قارن وو نو به دوه پسونه حرم ته د حلال دپاره ليږي او فضيلت يې دا دی چي د حج او عمرې د احرامو لپاره جلا جلا قرباني معلومه کړي او که يې معلومه نه کړه هم جواز لري او که قارن يو پسه وليږی حرم ته چي د حج د احرامه څخه ځان حلال کړي او د عمرې په احرام کي پاته سي بيا نو د يوه څخه هم نه حلاليږي وجه دا ده چي د حج او عمرې احرام سره گنډلي دي.

او که قارن حاجي د دغه ځايه څخه مثلاً د دوو پسو روپۍ ولېږلې او په حرم کي دوه نه په کېدل يو يې رانيوی حلال يې کړی ځان نه سي حلالولای او که مفرد حاجي بند سو او ده دوې هديې حرم ته ولېږلې د اولي په حلال سره دی هم د احرام څخه ځان حلالولای سي دويمه هديه يې نفلي ده که يو سړي احرام وتړی معلوم يې نه کړی چي دا د حج احرام دی يا د عمرې احرام دی او باره ورڅخه منع سو د حرم څخه نو يوه هديه خو کفايت کوي لکن پر ده شرعاً قضا د عمرې ده او قياس وايي حج او عمره دې دواړه وکړي او که يې په احرام کي تعين کړی وو ليکن اوس يې هېر وه کله چي حصر سو د حرم څخه دلته هم يوه هديه خو کفايت کوي مگر قضا به د حج او عمرې د دواړو راوړي او که بند نه سو هم به دواړه کوي او پر ده هغه احکام لازم دي کوم چي پر قارن لازم وي او که يې احرام د.دوو شيانو وتړی او هير يې سوه باره د حرم څخه بند سو نو دی دوې هديې واستوې و حرم ته او قضا بيا د يوه حج او د دوو عمرو ده شرعاً او که يې دوه حجه يا د دوو عمرو نيت کړی وو او ورڅخه بند سو اوس دلته دا کتل غواړي که چيرې نه وو روان سوی چي منع سو دوې هديې پر کېږي او که مکې ته رسېدلی وو او بند سو بيا نو يوه هديه پر لازميږي او پر دغه اتفاق د علماؤ دی او که حاجي قارن عمره ادا کړه او طواف قدوم يې وکړی باره د حج څخه منع سو تر عرفات دمخه او تر طواف زيارت نو بيا يوه هديه کفايت کوي ليکن په قضا کي حج او عمره دواړه ورباندي سته او د عمرې قضا ورباندي ځکه نسته چي ده

پوره ادا کړي ده او که مريي بې له اجازې د مولا احرام د حج تړلي وو او ورڅخه بند سو نو مولی ته جواز لري چي د ده دپاره هديه حرم ته ولېږي دپاره د دې چي د خپل خدمت دپاره خپل مريي د احرام څخه خلاص کړي او که بې د ده په اجازه احرام تړلی وو بيا نو يو قيل وايي پر مولی واجب ده او بل قيل وايي مستحب ده چي هديه به حرم ته مولی د مريي لېږي د اول قيل دليل د وجوب دا دی چي دا خو د مولی د طرفه څخه په اجازه سوی دی نو تاوان به يې هم مولی پوره کوي او د دويم قيل دليل دا دی چي دم خو پر مريي دی و خان ته حج کوي نو تر آزادېدلو بعد به يې حلالوي لکه قاضيخان او بدائع چي ورته اشارې کړي دي همدارنګه کرماني او بحر زاخر وايي او که مريي ته مولی د حج د احرام اجازه ورکړه او د حج څخه بند سو او مولی آزاد کړی هم نې هديه پر مولی ده او که کوچنی د احرام څخه بعداو لېونی بند سو بې له هديې ځانونه حلالولای سي او هيڅ شی نه قضا او نه دم پر لازميږي او د هديې لېږل هلته لازميږي چي ځان حلالوي که يې ځان صبر کړی نه يې کړی حلال بيا مانع پورته سو او افعال د حج يې پوره کړه باره يې ځان حلال کړی يا يې عمره وکړه ځان يې حلال کړی بيا نو هيڅ نه پر لازميږي او که حاجي د حج څخه بند سو او هديه يا قيمت د هديې يې حرم ته ولېږل نو پر ده لازمه نه ده چي پر دغه ځای به کښېني جواز لري کوم ځای ته چي ځي تلای سي او که چيري احرام بند د عاجزه سو چي نه يې هديه او نه قيمت پيدا کولای سو او يا يې داسي سړی نه سو پيدا کولای چي د ده هديه حرم ته ورسوي نو دی په احرام کي دی تر هغه وخته پوري ترڅو چي يا هديه و نه لېږي يا قيمت او يا پخپله ولاړ نه سي و حرم ته د حج يا عمرې دپاره او که پاته سو نو په روژو يا خيرات نه حلالېږي هميشه به دی په احرام کي وي د امام اعظم رحمه الله او محمد رحمه الله پر مذهب باندي د ابو يوسف رحمه الله هم دغه مذهب دی ځکه د هديې په بدل کي روژې او خيرات جواز نه لري او که يو شخص د احرام په وخت کي داسي ووايي که زه د حرم څخه بند سوم نو زه بيا په احرام کي نه يم داسړی هم ځان بې له هديې چي په حرم کي حلاله نه سي ځان نه سي حلالولای او دا شرط هيڅ ګټه نه ورته کوي.

## تنبيه د عاقل دپاره

ښځي که چيري د حج احرام نفلي د زوج په اجازه وتړی او يا مريي د بادار په اجازه احرام وتړی نو بيا دوی ځانونه حلال کړه نو هديه ورباندي لازم ده ځکه چي دوی پر منزله د حصر سوي کس دي علاوه دا ده چي د دوی حلالول په هديې پوري تعلق نه لري لکه د محصر دا بلکې دوی في الحالة ښځه او مريي په يو ممنوع عمل سره حلال ګرځي اګر که يو ادنی عمل هم وي لکه د نوکانو پرېکول د زوج يا د مولی په اجازه سره قانوني شرعي دا دی هر هغه شخص چي بې له هديې لېږلو حرم ته ځان حلالولای سي هغه داسي اشخاص

دي چي د بل حق تعلق ور پوري لري لکه ښځه يا مريې يا مينځه چي ښې له د زوج او بادار د اجازې څخه احرام وتړي نو دا اشخاص ځانونه حلالولای سي في الحالة ښې له ذبحي د هديې په حرم کي ليکن پر ښځي لازم دا ده چي هديه يا يې قيمت حرم ته ولېږي چي هلته حلال سي د کفارې هديه او بل وخت حج او عمره پر لازم دي قضا يې.

او که د ښځي څخه پر لاره د بيت الله مېړه مړ سو نو دا چي ځان حلالوي ضرور به هديه حرم ته استوي هرکله چي هغه ذبح سو دا به دلته ځان حلال کړي شايد فرق دا دی چي په اول کي يې حصر حکمي وو اوس په حقيقي سره بدل سو او پر مريې هغه زمانه هديه لازميږي هرکله چي دی آزاد سو او حج او عمره هم پر لازم دي او که چيري ښځي د حجة الاسلام د حج احرام ښې له د مېړه د اجازې څخه تړلی وو او مېړه ورڅخه منع کړه وجه يې دا وه چي دې د حج د ادا دپاره محرم نه درلودی او يا ورسره ولاړی ليکن په لاره کي وفات سو او دا ښځه په احرام کي وه اگر که نفلي حج هم وي لا دا ځان نه سي حلالولای ترڅو چي په حرم کي د دې هديه ذبح نه سي او که چيري زوج حلاله کړه د فرض حج څخه هم هديه لېږل و حرم ته پر لازم دی نو اوس د نفلي او فرضي حج فرق حاصل سو اگرچي دلته ډېر لوی اختلاف موجود دی الکبير ليکلي دي که ښځي د فرض حج احرام ښې له د مېړه اجازې څخه وتړی او بل محرم يې نه درلودی مېړه کولای سي چي دا د احرام څخه وباسي ښې له هديې څخه او کرخي ويلي دي چي هديه به لېږي خامخا همدا رنگه مبسوط ليکلي دي چي په فرضي حج کي ښې له د هديې د لېږلو څخه ځان نه سي حلالولای او محمد رحمه الله وايي که ښځي د مېړه په اجازه سره احرام وتړی د حج تر مياشتو دمخه نو زوج کولای سي چي د احرام څخه يې وباسي او که د حج په مياشتو کي وو بيا نو نه سي کولای چي د احرام څخه يې وباسي او که د ليري وطن وه چي حاجيان روانيدل د حج تر مياشتو دمخه بياهم مېړه دا د احرام څخه نه سي ايستلای او که تر دغه وخته لاهم دغي ښځي احرام تړلی وو بيا د زوج خوښه ده ليکن که يې وخت لږ دمخه وو حاوي کتاب وايي هيڅ بحث دي نه ورته کوي ليکن د عبارت حق دا دی چي اجازه يې ورکړه بيا نو دی تصرف نه لري چي دا د احرام څخه منع کړي هر وخت چي دې احرام تړی پروا نه لري چي د رضا لفظ ورته ووايي دا د اجازې خبره ده بيا نو ده خپل حق بايلود.

## فصل د منع کړه سوي حاجي د حلال وخت

اذا علم انه قد ذبح هديه و اراد ان يتحلل بفعل ادنى ما يحضره من الاحرام لا يجب عليه الحلق و ان فعله فحسن و لا يخرج من الاحرام بمجرد الذبح حتى يتحلل بفعل ولو ذبح فسرق لا شئ عليه و ان لم يسرق تصدق به و لو ذبح قبل الميعاد بيوم جامز و لو ظن انه

ذبح ظهر خلافه فعليه لما ارتكبه من المحضورات الجزاء و ان اكل من الهدى الوكيل ضمن قيمة ما اكل ان كان غنيا و يتصدق بها على الفقراء ولو ذبح المامور ثم زال احصاره فجاء لم يضمن.

متن و بعده شرح بشتو علي القاري

په دغه فصل کي هغه ادبيات د ځان حلالولو بيانيږي چي کوم د حج څخه بنديز پر لګېدلي وي نو محرم چي د حج څخه منع سو او بيا ده هديه و حرم ته ولېږله او خبر سو چي د ده هديه حلاله سوه او ده بريتونه لنډ کړه يا يې نوکان واخيستل يا يې خوشبويې ولګوله بس د احرام څخه ووتل د سر خريل يا لنډول لازم نه دي او په يوازي د هديې په حلالولو سره هم دی نه حلاليږي ترڅو چي د احرام ضد عمل و نه کړي اګرچي مسنونه طريقه يې د سر خريل دي واجب نه دی لکه ابو يوسف رحمه الله چي ورته واجب وايي او که يې هديه په حرم کي حلاله سوه بعد ورڅخه غلا سو بيا هيڅ نه پر لازميږي ځکه دلته د ويني تويول مطلوب دي نه ورکړه و بل چا ته د غوښو او که غلا نه سوه نو بيا يې په حرم او حل کي په مليکت او اباحت سره غوښي ورکولای سي خو حلال يې په حرم کي ضروري کار دی اوس که يې په حل کي حلال کړی او په حرم کي يې غوښې تقسيم کړي هيڅ نفع نه لري او بل پر لازميږي.

او که يې د حلالولو نېټه ټاکلې وه ليکن هغه مامور يوه ورځ تر مخ حلال کړی جواز لري هيڅ پروا نه لري او که د محرم ګمان د حلال وو او هغه نه وو حلال کړی او يا يې په حل مځکه کي حلال کړی وو نو بيا پر محرم د هر جنايت په عوض کي ورڅخه سوي دي جزا لازميږي او که ده يو غني سړی د ذبحي دپاره وکيل کړی هغه چي حلاله کړه خوراک يې ورڅخه وکړی نو هر څونه غوښې چي يې خوړلي دي تاوان به يې خيرات کړي دا به پر فقيرانو خلقو تقسيم کړي او که وکيل هغه حيوان حلال کړی په حرم کي دلته د محرم لاره خلاصه سوه وريسي ورسېدی نو پر وکيل تاوان نسته.

## فصل د محرم څخه چي احصار يورته سي

اذا زال احصار المحرم بالحج فهو لا يخلو عن احد الوجوه الخمسة اما ان يزول او بعده في وقت يقدر على ادراک الحج و الهدى او في وقت لا يقدر على ادراكهما جميعا او يقدر على ادراک الهدى دون الحج او بالعكس ففي الوجه اول و هو ان يزول في وقت يقدر على ادراكهما يلزمه التوجه ولا يجوز له التحلل ويفعل بهديه ما يشاء و في بقية الوجوه لا يلزمه التوجه و يجوز له ان يحل بالهدى الا في الوجه اخيرا لافضل له التوجه وهو ان يدرک الحج دون الهدى و ان زال احصار القارن لكن لا يدرک الحج ولا الهدى ولا يلزمه التوجه بل ان شاء حل بالهدى و ان شاء توجه ليتحلل بافعال العمرة و له في هذا فائدة هي

انه لا يلزمه عمرة في القضاء. و اما المعتبر ان زال احصاره قبل بعث الهدى او بعده في وقت يقدر على ادراكه يلزمه التوجه و ان لم يقدر على ادراک الهدى لم يلزمه التوجه ولا يتصور في حقه عدم ادراک العمرة.

متن و بعده شرح علي القاري

د محرم څخه چي منعه پورته سوه نو دا به يا په داسي وخت کي وي چي ده هديه نه وي لیږلي او يا به يې لیږلي وي خو دی چي ورپسې روان سي کولای سي چي هديه او حج دواړه ګیر کړي او يا به داسي وخت آزاد سي چي يو په کښي نه سي نیولای نه حج او نه هديه او يا به هديې ته ځان رسولای سي نه و حج ته او يا به حج ګیرولای سي نه هديه نو دا ټوله صورتونه پنځه سول نو په اول او دويم صورت کي د ځان حلالول نه سي کولای بلکې حج ته به ځي او په هديه چي هر چم کوي هغه: ده کار دی خرڅوي يې هبه کوي خيرات کوي يې او په باقي درې صورتو کي تلل خو نه پر لازمېږي ليکن ځکه چي حج ګېر نه کړي نو فايده هم نه ورته کوي نو و ده ته په اتفاق سره د علماؤ ځان حلالول جواز لري او که د هديې پر نيولو قدرت ولري او پر حج يې قدرت پيدا نه کړی هم تګ نه دی پر لازم په اتفاق سره او مشهوره روايات هم پر دغه راغلي دي او په اخيري پنځم صورت کي چي هديه يې حلاله سوې وي ليکن و حج ته ځان رسولای سي فضيلت منده طريقه يې دا ده چي ولاړ سي شرعاً خو تګ پر لازم نه دی ليکن قياس يې تلل واجب بولي او دا مسئله صرف د امام اعظم رحمه الله پر مذهب جوړيږي ځکه د ده مبارک پر مذهب هديه د اختر تر ورځو مخکي هم حلالېدای سي نو لهذا داسې کولای سي چي حج ته ولاړ سي اګرچي دوی هديې حلالي سوې وي او که د قارن حاجي څخه منع پورته سوه او دی نه هديې او نه حج ته رسېدلای سو بيا هم پر ده تلل لازمي کار نه دی و مکې ته فايده په کښي نسته نو د ده خوښه ده چي مکې ته ځي او که دلته ځان حلالوي ليکن دونه فايده تګ ورته کوي چي عمره خو به وکړي بيا يې پر بل کال عمره د قضا وربانديي نسته.

او دلته يو سوال کيږي چي اوس حصر پورته سو او دی احرام بنده دی او د عمرې وخت خو سته او پر واجب هم ده ځکه شروع يې په کړې ده جواب دا دی چي دلته خو دی د عمرې اداء پر داسي ډول نه سي کولای چي ده پر ځان لازمه کړې ده هغه خو د قِران په ضمن کي کېده نو د حج په فوت سره عمره هم ولاړه او که د يو عمره کونکي څخه منع پورته سوه برابره خبره ده چي ده هديه حرم ته لیږلي وي او که يې نه وي لیږلي چي قدرت د عمرې د ادا ولري عمره کول پر لازم دی الخ.

فايده: که يو حاجي يا عمره کونکي د احصار څخه خلاص سو او ده هديه هم لیږلې

وه چي دی وريسې روان سو پر لاره بيا بله پېره بند سو نو و به ګورو که ده نيت په دويم وار کې هم د هغې هديې د ګيرولو کړی وو چي ورسېدلای سم نو بله نه پر لازمېږي او که يې نيت نه وو کړی بيا بله پر لازمېږي او که چيري ده هديه د ښکار د جزا دپاره ولېږله او خپله هديه يې نښاني کړه او پر ځان يې واجب کړه چي ورڅخه بند سو نو دا د ده د حصر دپاره هم کېدای سي او بله هم پر لازمه ده دپاره د ښکار د جزا او يا چي يې نفلي پر ځان لازمه ګرځولې ده.

## فصل د پاته سوي حج قضا راوړل

اذا حل المحصر بالذبح فان کان احرامه للحج فعليه قضاء حجة و عمرة و ان کان قارنا فعليه قضاء حجة و عمرتين و يخير ان شاء يقضي بقران او افراد و ان کان معتمرا فعليه عمرة لا غير و تجب نية القضاء اذا قضاه بعد تحول السنة في النفل اما ان قضاه في عامه ذلک او کان حجة حجة الاسلام فلا يحتاج الى نيته القضاء و ان تحولت السنته و کذلک وجوب العمرة مع الحج فيما اذا قضى بعد تحويل السنته و ان قضاه في عامه لا يجب عليه عمرة فاذا زال احصاره بعد التحلل و اراد ان يحج من عامه ذلک يسع تجديد الاحرام فان احرم بالحج فليس عليه نيته القضاء و لاعمرة عليه وکذا المرأة اذا حللها زوجها ثم اذن لها فاحرمت و حجت في عامها ذلک ولو لم يحل المحصر بالذبح حتى فاته الحج فتحلل بافعال العمرة فلا عمرة عليه في القضاء و يستوى في وجوب القضاء المحصر بالحج الفرض والنفل و المظنون و المفسد والحاج عن الغير و الحر و العبد الا انه على العبد يتاخر وجوب اداء القضاء الى ما بعد العتق.

متن و بعده شرح بشتو ملا علي القاري

که چيري هغه حاجي چي د حج څخه بند سوی وو او ځان يې حلال کړی د ده هديه په حرم کې حلاله سوې وه نو اوس چي قضا راوړي تفصيل په کښې سته که يې د حج احرام خلاص کړی وو نو قضا د حج او د عمرې ورباندي سته او که قارن حاجي منع سوی وو بيا به قضاء د حج او د دوو عمرو راوړي هغه د ده خوښه ده که د قِران نيت کوي که د افراد نيت کوي خو دا حکم هلته دی چي د منعې په کال حج ته ولاړ نه سي او که په دغه کال ولاړی بيا نو په مبسوط کې وايي چي صرف قِران ورباندي سته نه بل څخه ابن الهمام همدغسي فيصله کړې ده او که د عمرې څخه منع سوی وو بيا نو د يوې عمرې قضا به راوړي څکه د عمرې وخت تېوله کال دی او که يې د نفلي حج قضا راوړه پر دا بل کال بيا نو د قضا نيت کول ورباندي واجب دی او که يې په دغه د منعې په کال دغه نفلي حج کوی يا يې حجة الاسلام اداکوی بيا نو د قضا نيت نه غوړي همدا رنګه عمره واجب ده د حج سره که يې پر کال حج

کوی او که په دغه کال وو بیا عمره نه ده ورسره ضروري که چیري د حاجي څخه مانع لیري سو او ده هم ځان حلال کړی وو هدیه یې حرم ته استولې وه او بیا لا هم دونه وخت پاته وو چي دی ولاړی حج یې کوی احرام یې نوی وتړی نیت د قضا وربانديي نسته او نه عمره وربانديي سته همدا رنګه حکم د ښځي دی چي میړه تر منعي وروسته اجازه ورکړي او تر ځان حلالو لو بعد په دغه کال ولاړه سي و حج ته او که چیري حاجي خپل ځان د منعي په وخت کي حلال نه کړي په هديې سره او بیا وروسته ولاړی عمره یې وکړه ځان یې حلال کړی نو د حج د قضا په کال عمره وربانديي نسته.

په وجوب کي د قضا حر او مریې د خپل ځان دپاره نفلي یا فرضي حج کول او د بل پر ځای حج کول سره برابر دي لیکن د مریې قضا د ده تر آزادېدلو پوري ځنډیږي که یو سړي احرام په دې نیت وتړی چي پر ما حج سته او بیا ورڅخه بند سو او ده ځان حلال کړی بیا معلومات ورته وسو چي پر تا خو حج نه وو نو دې ته مظنون وایي د حج قضا د دغه وربانديي نسته، کشف الاسرار السروجي في الغاية شرح هدايه الخ.

## باب چي د سړي څخه حج قضا سي

فائت الحج هو الذی احرم به ثم فاته الوقوف بعرفة و لم یدرک شیئا منه ولو ساعة لطیفة ولو ادرک ساعة من وقته نهارا او لیلا فقد تم حجه و امن الفوات و الفساد ثم اذا فاته الوقوف بعذر او بغیر عذر سقط عنه افعال الحج و علیه ان یتحلل بافعال العمرة صورة فیطوف و یسعی ثم یحلق او یقصر ان کان مفردا و علیه قضاء الحج من قابل ولا عمرة علیه و لا دم ولا طواف للصدر و ان کان قارنا فانه ان کان قد طاف لعمرته قبل الفوات فهو کالمفرد و ان لم یطف لها فانه یطوف او لا لعمرته و یسعی لها ثم یطوف طوافا اخر لفوات الحج و یسعی له و یحلق و قد سقط عنه دم القران و علیه قضاء حجة لا غیر وا ن کان متمتعا بطل تمتعه و سقط عنه دمه و ان ساقه و علیه قضاء حجة فقط و یقطع القارن التلبیة اذا اخذ فی الطواف الذی یتحلل به ولو جامع الفوائت قبل الطواف فلیس علیه قضاء العمرة التی یتحلل بها لانها انما هی مثل افعالها ولو اهل الفائت بحجة اخری قبل الفراغ من الاولی فان کان ینوی به قضاء الفائتة فهی هی و لا یلزمه بهذا الاهلال و نیته لغو و علیه قضاء الاولی لاغیر و ان نوی به حجة اخری یرفضها و یحل بافعال العمرة و علیه قضاء حجتین و عمرة و دم ولو اهل بعمرة رفضها و علیه قضاؤها والدم و الحج و من اهل بحجتین ثم فاته الوقوف تحلل و علیه مامر ولو ان الفائت لم یتحلل و بقی محرما الی قابل فاالحج بذلک الاحرام لم یصح حجه و من اهل بحجة فجامع ثم فاته الحج فعلیه دم لجماعه و یحل بافعال العمرة و لو حج قضاء فافسده لم یکن علیه الاقضاء حجة واحدة ولو قدم

محرما بحجة فطاف للقدوم و سعى ثم فاته الحج فعليه ان يحل بافعال العمرة ولا يكفه طواف التحية الاول ولا السعى فى التحلل ولو ان قارنا لم يطف لعمرته ففاته الحج و جامع فعليه ان يمضى فى العمرتين و عليه دمان للجماع و قضا. عمرته القران و فائت الحج لايكون محصرا و لايحل ببعث الهدى والعمرة لا تفوت.

متن و بعده شرح ملا علي القاري

د حج فوت کېدل دې ته ویل کیږي چې حاجي احرام وتړي بیا نو د حج ټوله افعال یا د عرفات د درېدلو ورځ ورڅخه پاته سي بیخي یو لږ ګړی بلکې یوه دقیقه يې هم ګیر نه کړي او که يې د شپې یا د ورځې څخه یوه دقیقه وخت پر عرفات تېر کړی نو حج يې پوره سو خو د شپې څخه د اختر شپه مراد ده ځکه په حدیث کې نبي ﷺ فرمایلي دي څوک چې پر عرفات ودرېدی د اختر د شپې تر سهار دمخه نو حج يې پوره سو، رواه الطبراني د ابن عباس رضي الله عنه په ښه سند سره.

لهذا الشیخ عمر النسفي رحمه الله په خپل تفسیر کې فرمایلي دي چې معنا حج يې د فساده او فوت کېدو څخه وساتل سو ځکه اوس نو بل رکن د حج نه دی ورباندي پاته بغیر د طواف زیارت څخه پر بیت الله شریف باندي او طواف زیارت نه ورڅخه فوت کیږي ځکه چې د ده وخت ټوله عمر دی او په اخیر کې د عمر که ورڅخه وفات سو ورڅخه فوت کیږي که چیري د عرفات درېدل په عذر ورڅخه فوت سو او یا بې له عذره ورڅخه فوت سو نو د حج افعال ورڅخه ساقط سو نو به د حج پر ځای عمره وکړي د امام اعظم رحمه الله او محمد رحمه الله پر مذهب باندي باره به طواف وکړي سعیه به وکړي سر به وخریي یا به يې لنډ کړي که حاجي مفرد وو نو پر بل کال به د حج قضا راوړي او دم او عمره ورباندي نسته او نه طواف رخصت ورباندي سته په اتفاق سره د علماوو.

او که حاجي قارن وو نو که ده عمره کړې وه باره د حج څخه منع سو نو د ده حکم تېر سو معنا د ده حکم د مفرد حاجي دی او که يې عمره نه وه کړې نو د قضا په کال به اول وار عمره کوي بیا به د قضا حج طواف کوي بیا به سعیه د حج کوي باره به سر خریي او د ده څخه دم د قران ساقط دی ځکه هغه خو د دوو عبادتو د جمعه کېدو شکریه ده او پر ده صرف د حج قضا ده نه بل څه ولې چې دی اول وار د عمرې څخه فارغه سوی دی او که حاجي متمتع وو نو د ده تمتع باطله سوه ځکه د تمتع حج شرط دا دی چې حج او عمره به په یو کال کې وي او د ده څخه دم هم ساقط سو او که متمتع حج کونکي د ځانه سره پسه بېولی وو نو په هغه پسه چې هدیه ورته وایي هغه څه به په کوي چې خوښه يې وي او پر ده یو حج سته فقط ځکه د عمرې څخه فارغه سوی دی حاجي قارن به تلبیه هغه وخت پرېږدي چې په

طواف يې شروع وکړه هغه طواف چي دی خان په حلالوي ځکه د ده څخه خو د جمراتو ويشتل پاته سول نو د ده طواف د باقي افعالو د حج پر ځای ودرېدی او د عمرې په طواف کي به تلبيه نه پرېږدي ولي چي دا د حج د افعالو په مابين کي ده حکماً حق خو يې دمخه کېدل وو ليکن د ضرورت د فوت په وجه ورڅخه فوت سول.

اوس زموږ احنافو اختلاف په دې مسئله کي جوړ کړی دی امام اعظم رحمه الله او محمد رحمه الله وايي چي ځان به په احرام د حج يا د عمرې په احرام سره حلال کړي او ابو يوسف رحمه الله وايي د عمرې په احرام سره حلالېږي احرام يې په احرام د عمرې بدلېږي.

او که يې وطي وکړې په قضايي حج کي تر طواف دمخه بيا د عمرې قضا ورباندي نسته کومه چي ځان يې په کښي حلال کړی دی په اتفاق سره.

که د قضايي حج احرام يو شخص وتړی اګرچي په نيت کي بل حج ونيسي لا هغه نيت لره اعتبار نسته بلکي دا حج په قضا دربېږي او که يې دا احرام مات کړی او ځان يې د عمرې په احرام سره حلال کړی بيا نو د دوو حجو قضا ورباندي پاته سوه او يوه عمره او دم هم د امام اعظم رحمه الله پر مذهب پر لازمېږي او که يې د عمرې احرام مات کړی بيا نو يو حج او بله عمره د قضا او دم پر لازمېږي په اتفاق سره او که چا احرام د دوو حجو وتړی او د عرفات درېدل ورڅخه پاته سوه نو به ځان په يوې عمرې کولو سره حلال کړي نه په دوو عمرو سره لکه قياس چي وايي او که د يو چا څخه حج فوت سو او دی تر کاله پوري په دغه احرام کي پاته سو او په دغه احرام يې حج کول جواز نه لري ځکه د احرام موجب بدل سو لهذا نوی احرام به وتړي او که يوه سړي د حج احرام وتړی او تر عرفات دمخه يې وطي وکړې او بيا د حج ټوله افعال هم ورڅخه تېر سوه لازمه دا ده چي د وطيو د کولو په بدل کي پسه خيرات کړي او ځان د عمرې په کولو سره حلال کړي او که يو شخص د حج قضا کوله بيا تر عرفات دمخه وطي ورڅخه وسولې او حج يې فاسد سو نو پر ده د يوه حج قضا سته لکه سړی چي د روژې قضا په يوه ورځ کي راوړي او هغه روژه هم ورڅخه فاسده سي نو د يوې روژې قضا ورباندي لازمېږي.

او که يو حاجي طواف قدوم وکړی او سعيه يې هم وکړه باره حج ورڅخه فوت سو نو لازم دا ده چي د عمرې په ادا کولو سره ځان حلال کړي او هغه د طواف قدوم طواف کفايت نه کوي او نه هم هغه سعيه کفايت کوي معنا بله عمره به کوي.

او که قارن حاجي د عمرې دپاره طواف نه وو کړی حج ورڅخه فوت سو او وطي يې هم وکړې د وطيو په خاطر سره او بله د عمرې قضا پر لازمېږي د قِران کوم چي ده فاسده کړی دی او د هر چا څخه چي حج فوت سو نو دی د هديې په استولو سره نه حلالېږي وجه دا

ده چي دی خو حصر سوی نه حقیقتاً او نه حکماً دی بلکې پر ده عمره کول لازم دی او عمره په وطیو سره نه قضا کیږي ځکه بله عمره به وکړي وخت یې ټول عمر دی.

## فصل هغه اسباب چي موجب د حج د قضا ګرځي

الاسباب الموجبة لقضاء الحج الفوات والاحصار والافساد و الرفض وحکم فوات الحج عن العمر انه اذا مات من علیه الحج و ان اوصی بالاحجاج عنه اثم و ان تبرع عنه الورثة تجزئه ان شاء الله تعالی.

متن و بعده ترجمه و علي القاري

دا فصل هغه اسباب درته بیانوي چي کوم شیان پر سړي د حج قضاء لازموي نو دا اسباب څلور شیان دي:

۱: اول چي د عرفات درېدل ورڅخه پاته سي.

۲: دویم چي پر لاره د حج څخه د دښمن وغیره په وجه سړه بند او منع سي نو دا هم په حکم کي د فوت د حج دی اګرچي په ډول او کیفیت کي فرق لري د احرام څخه د حلالولو په صورت کي.

۳: دریم چي تر عرفات دمخه وطي ورڅخه وسي حج یې فسد سي اګرچي دغه افعال د حج به ټوله پوره کوي لا قضا پر لازمه ده.

۴: څلورم د حج د احرام ماتول دي نو دویم حج په اتفاق سره پر لازمیږي الخ او د حج دقضا دپاره دا شرط نه دی چي دویم وار چي ته قضا راوړي نو به د هغه ځایه څخه احرام تړي چي د کوم ځایه څخه تا اول احرام تړلی دی په دغه څلورو کي د احصار او فساد او ماتوالی د احرام د دغه درو دپاره قضا د عمري هم لازم ده او کوم چي حج ورڅخه فوت سي د هغه دپاره خو ټول عمر د عمري سته د هغه چا دپاره چي حج ورڅخه فوت سي په ټول عمر کي لازم پر ده دري شیان دي که وفات کېدی بل چا ته به وصیت کوي چي زما پر ځای حج وکړه او که یې وصیت و نه کړی ګناهګاره دی او دریم دا دی که وارثانو د خپلو مالو څخه د ده دپاره حج وکړی یا اجنبي سړي ان شاء الله تعالی جواز لري.

مطلب دا دی پر چا چي حج فرض سوی وي وصیت پر لازم دی چي وې کړي چي زما پر ځای حج وکړئ او که یې له وصیت څخه مړ سو ګناهګاره دی یې له خلافه څخه اوس چي کوم علماء یې فوري حج واجب بولي خو هیڅ اشکال نسته او کوم علماء چي یې د ټول عمر فرض بولي د هغو پر مذهب چي تر دغه وخته د ده په عمر کي و نه سو اوس لامه د ده مال سته لهذا یا وصیت پر لازم دی چي بل د ده پر ځای حج وکړي چي دی ورڅخه عاجز سو او که وصیت هم و نه کړي ظاهره ده چي ګناهګاره دی لیکن د دنیا په احکامو کي ورڅخه ساقط

داسي دی چي وصيت و نه کړي پر وارثانو لازمه نه ده چي د ده د ياته سوي مال څخه بدحج کوي او که يې حج ورته وکړی امام اعظم رحمه الله وايي اميد نسته چي قبول سي د ده دپاره خو ياد لره چي په وارثانو کي چي وصيت يې نه وي کړی صغير يا لېوني يا معتوه نه وي ځکه دلته بيا د دوی حق پايماله کيږي او د دوی څخه اجازه يا د دوی خيرات هم جواز نه لري.

## باب حج د بل چا پر ځای کول

اعلم ان کل من وجب عليه الحج وعجز عن الاداء بنفسه يجب عليه الاحجاج ان فرط فی التاخير و ان مات قبل التمکن من اداءه سقط عنه الحج و لاتجب عليه الوصية به و يتحقق العجز بالموت والحبس و المنع و المرض الذی يرجی زواله و ذهاب البصر و العرج والهرم وعدم المحرم وعدم امن الطريق کل ذلک اذا استمر الی الموت.

متن و بعده ترجمه و شرح بشتو ملا علي القاري

اوس دا اصل دلته ذکر کيږي چي هر انسان کولای سي چي د خپل هر عبادت ثواب و بل ته وبخښي که مړو يا ژوندو ته وي برابره خبره ده که حج ورته کوي يا لمونځ وکړي يا روژه ونيسي يا تلاوت وکړي يا ذکر وکړي او يا خيرات وکړي ثواب يې ور وبخښي جواز لري بې له شبهې هيڅ اختلاف زموږ د احنافو او اهل السنت والجماعت پر مذهب باندي نسته ليکن ياد به لرئ چي بل سړی د ځان د عبادت دپاره نه سي مزدور کولای چي مثلاً دونه روپۍ درکوم زما دپاره يا دومره لمونځونه يا تلاوتونه يا حج وکړه لکه دا تصريحات التحفي، شرح وقايه، مجمع البحرين، المختار، المحيط کړي دي ابن الهمام پر طاعت مزدوري اخيستل حرام بللي دي لکه زيعلي چي د امام او باچا هغه روپو ته حرام ويلي دي چي و جهاد ته په مزدوري ځي نو عيني يې علت دا ويلی دی چي جهاد خو حق د الله تعالی دی د مزدوری اخيستل وربانديجواز نه لري که صريح يې روپۍ ورته مقرروي حرامي دي او که يې اندازه نه معلومه بلکې مشابهت يې د مزدورۍ سره درلود بيا مکروه دي او حرامو ته نژدې دي انتهي.

امام مالک او شافعي رحمهما الله وايي د هر عبادت چي مالي وي د بل پر ځای جواز لري او ثواب يې ورسيږي لکه خيرات کول يا حج کول او که خالص بدني عبادت وو لکه لمونځ يا روژه وغيره دا د بل دپاره يې ثواب بخښل جواز نه لري.

نو زموږ د احنافو دلايل دا دي چي په روايت کي راغلي دي چي يو کس د نبي عليه السلام څخه پوښتنه وکړه زما مور او پلار دي زه به ژوند خو د دوی دپاره نيکي کومه نو تر وفات بعد څه نيکي ورته وکړمه نو نبي عليه السلام ورته وفرمايل د نيکيو څخه دا ده چي د ځان دپاره لمونځ کوې نو د دوی دپاره هم لمونځ کوه او يا د ځان دپاره روژه نيسې د دوی دپاره

هم روژه نیسه معنا چي پوره سوه باره یې ثواب وربخښه. رواه دارقطني تاریخ بغداد ج۳ ص۳٦۳، تاریخ اوسط ص۲۰۹، ابن ابي شیبة في المصنف ج۳ ص۳۸۷

د حضرت علي ﷺ څخه داسي مرفوع حدیث نقل دی چي خاص د مبارک ﷺ څخه نقل سوی دی چي هر څوک پر مقبره تېر سي او قل هو الله احد یولس ۱۱ واره دا سورت ووایي او بیا یې ثواب د دغه مقبرې ته وقف او وبخښي نو د ویونکي سړي دپاره په شمار د قبرو د اندازې ثوابونه الله تعالی و ده ته هم ورکوي. رواه الدارقطني.

حضرت انس ﷺ روایت کوي چي د نبي ﷺ څخه یو چا پوښتنه وکړه چي زموږ خیراتونه یا د حج ثوابونه او یا د دعاء ثوابونه زموږ مړو ته رسیږي؟ نبي ﷺ ورته وویل هو چي هر یو ته د عبادت ثواب رسیږي او داسي دا مړی په خوشحاله کیږي لکه په ژوند کي چي یو کس ته تحفه واستوې، رواه حفص الکبیر العکبري المتوفي في حکمت یزید او د ده څخه ځلور دیرش حدیثه نقل سوي دي.

ارشاد الساري په حواله د ابو سعود لیکلي دي انتهي او حضرت انس ﷺ بل حدیث داسي نقل کړی دی چي نبي ﷺ دوه ابلق پسونه قرباني کړه یو د ځان دپاره بل د امت دپاره، رواه الشیخان بخاري او مسلم.

معنا ثواب یې و امت ته وبخښی او دا د ده مبارک تعلیم هم سو و امت ته چي انسان د بل کس په عبادت سره هم نفعه حاصلولای سي او په نبي ﷺ پسې اقتدا کول یوه لویه کامیابي ده او کوم چي په قول د الله تعالی کي راغلي دي:

و ان لیس للانسان الا ما سعیٰ. النجم ۳۹

په دې کي ډیري معناګاني دي دلته د تفصیل ځای نسته لیکن ارشاد الساري په خپله حاشیه کي یو څه بیان په کښي کړی دی خو اول به د آیت ترجمه ولیکو الله تعالی فرمایي چي "انسان لره د هغه عبادتو ثوابونه الله تعالی ورکوي چي د ده په خپله کړي وي نه د بل د عبادت" انتهي نو ابن عباس ﷺ وایي دا آیت منسوخ دی په دغه آیت سره:

والذین امنوا واتبعتهم ذریتهم بایمان. الطور ۱، ۲، ۳

معنا هغه کسان چي مؤمنان دي د دوی تابع دي اولاده د دوی پر ایمان باندي معنا د پلار په نېکۍ سره و جنت ته د ده اولاده هم تلای سي او بل دلیل دا دی چي د سورت نجم په آیت کي د انسان څخه کافر مراد دی او دریم دلیل دا دی چي لام جاره په للانسان کي په معنا د علی دی لکه د قرآن په دغه آیت کي:

و ان اسأتم فلها. الاسراء ۷

معنا که سړی ګناه وکړي ضرر یې پر ده دی او ده ته راجع کیږي نو بیا د للانسان

عبارت داسي کيږي:

و ان على الانسان الا ما سعىٰ.

معنا پر انسان د هغه ګناهونو ضرر دی چي ده کړي وي او کوم چي په حديث کي راغلي دي چي انسان مړ سي عمل يې قطع سي مګر نه درې کسانو څخه علم نافع ورڅخه پاته سوی وي يا صالح اولاد ورڅخه پاته سوی وي يا خيرات باقي لکه مسجد يا بل داسي باقي شی د دغه درې کسانو عمل نه قطع کيږي نو دا حديث دا معنا نه ورکوي چي و بل چا ته نو د سړي ثواب نه رسيږي او کوم چي په بل روايت کي راغلي دي چي يو سړي د بل پر ځای روژه او لمونځ نه سي کولای دا دغه معنا لري چي د بل سړي په لمانځه سره د سړي غاړه نه خلاصيږي چي د ده څخه قضا سوي وي او ثواب خو يې ورسيږي انتهي ارشاد الساري.

اوس د متن شروع کيږي پوه سه مسلمانه وروره هر هغه کس چي حج کول پر فرض وي لکه حجة الاسلام يا قضايي يا نذري او دی هم پر ادا قادر وي په خپله او د وفات وخت ورته راغلی او يا پر خپل مرګ يېرېدی نو واجب وربانديي دا ده چي وصيت وکړي چي زما پر ځای تر مرګ بعد حج وکړئ او که سړی د حج د اداء څخه عاجزه سو نو پر ده واجب ده چي بل څوک د خپل ځان دپاره و حج ته وليږي په خپل ژوند کي که اوس عاجزه سو او يا يې تر مرګ بعد ولاړ سي د ده په وصيت سره که پر يو کس حج فرض سو او په دغه کال هم حج ته روان سو پر لاره وفات سو بيا وصيت پر واجب نه دی ځکه ده کوتاهي نه ده کړې په ځنډولو د وجوب سره دا مسئله التجنيس او الفتاوی السراجيه ليکلې ده او ابن الهمام وايي دا ډېره ښه مسئله ده.

او که يو شخص د حج قدرت پيدا کړی ترڅو چي ده ځان ورته جوړوی روانيدی وفات سو نو حج ورڅخه ساقط سو او وصيت هم نه دی پر واجب چي بل د ده پر ځای حج وکړي په کتاب رحمة الامة في اختلاف الائمة کي ليکلي دي چي پر يو کس حج لازم سو او تر روانيدو دمخه وفات سي نو فرض ورڅخه ساقط سو په اتفاق د علماوو.

د انسان عجز د حج څخه په نه کولو کي په وفات سره په زوره منعي سره د سفر څخه د بيت الله شريف څخه يا په بندي کېدو سره يا په داسي يو مرض سره چي تر مرګه د جوړېدو اميد نه وي لکه فلج يا شل يا ړوندوالی يا ګوډوالی يا زوړوالی يا نه محرم د ښځي دپاره يا بې امني د لارې هر يو چي په دغو کي وو تر مرګه پوري دا عذر دی نو دی کولای سي چي بل سړی د خپل ځان د حج کولو دپاره نايب وټاکي ترڅو چي د ده دپاره حج وکړي حاصل د مطلب دا دی چي امام اعظم رحمه الله وايي چي وصيت پر هغه سړي لازم دی چي د اول څخه جوړ او تيار وي وروسته دا مريضي وربانديي راسي او که د اول څخه په دغه

مریضي اخته وو بیا نو وصیت نه دی پر لازم او د یارانو پر مذهب که مال ولري او د اول څخه هم دلسي مریض یا بوډا وي هم وصیت پر لازم دی که ژوندی وو بیا به بل پر خپل ځای استوي خو دا اختلاف بناء پر هغه شرائطو باندي ده چي امام اعظم رضي الله عنه سلامتیا د اندامو شرط د حج بولي او دا شرط یاران نه بولي لهذا دلته هم دا اختلاف پیدا سو او حسن د یارانو د مذهب روایت هم د امام اعظم رحمه الله څخه کړی دی او ابن الهمام ورته خوندور ویلي دي او الکرخي مختاره کړی دی.

## فصل د بل چا پر ځای د حج شل شرطونه

شرائط جواز الاحجاج و النية عن حجة الاسلام الاول وجوب الحج فلو احج فقير لو غيره ممن لم يجب عليه الحج عن الفرض يم يجز حج غيره عنه و ان وجب بعد ذلک الثاني العجز المستد ام من وقت الاحجاج الى وقت الموت فلو احج المعذور کان امره موقوفا ان استمر عذره الى الموت جاز و ان زال عذر وجب عليه الاداء بنفسه و ظهرت نفلية الاول الثالث وجود العذر قبل الا حجاج فلو احج صحيح ثم عجز لايجزيه الرابع فلا يجوز غيره عنه بغير امره ان اوصى به و ان لم يوص به فتبرع عنه الوارث فحج بنفسه او احج عنه غيره جاز الخامس اشتراط الاجرة فلو استاجر رجلا بان قال له امتاجرک على ان تحج عنى بکذا لا يجوز حجه عنه و ان قال امرتک ان تحج عنى من غير ذکر الا جارة يجوز السادس ان يحج بمال المحجوج عنه فان تبرع الحاج عنه بمال نفسه لم يجز و ان انفق اکثر النفقة من مال الامر و الاقل من ماله يجوز و ان انفق الکل او الاکثر من مال نفسه ان کان في المال المدفوع اليه وفاء يرجع به فيه و يجزيه و ان لم يکن فيه وفاء بالنفقة فالحکم للاکثر فان کان الاکثر من مال الميت جاز و الا فلا و لو حج عنه ابنه من ماله ليرجع في الترکة جاز و لو حج لا ليرجع لم يجز و ان امره الميت ولو خلط النفقة بمال نفسه يضمن و ان حج وانفق جاز و برى من الضمان ولو اتجر بمال الميت و ربح فيه يجزيه الحجة السابع ان يحج راکبا ان اتسع المال فلو حج ما شيا ولو بامره يضمن النفقة و کذابو لم يامره وامسک مؤنة الکراء لنفسه و ان ضاقت النفقة عن الرکوب فحج عنه ما شيا جاز و لو اوصى ان يعطى بعيره هذا رجلا يحج عنه فاکراه الرجل وانفق الکراء على نفسه و حج ما شيا جاز الثامن ان يحج عنه من وطنه ان اتسع الثلث و ان لم يتسع يحج عنه من حيث يبلغ و ان لم يمکن من مکان بطلت الوصية و من خرج حاجا فمات في الطريق و اوصى ان يحج عنه يحج عنه من وطنه و کذا لو مات الحاج عنه في الطريق يحج عنه من وطنه ولو کان للموصى او طان يحج عنه من اقرب او طانه الى مکة و ان لم يکن له وطن فمن حيث مات ولو اوصى ان يحج عنه من غير بلده يحج عنه کما اوصى قرب من مکة او بعد ولو اوصى خراساني بمکة او مکي با

لری یحج عنهما من وطنها ولو اوصی مکی ان یقرن عنه من الری و اذا وجب الحج من بلده فاحج الوصی من غیر بلده یضمن الا ان یکون ذلک المکان قریبا منه بحیث یبلغ الیه و یرجع الی الوطن قبل اللیل التاسع النیة وهی ان یقول احرمت عن فلان و لبیک عن فلان و ان شاء اکتفی بنیة القلب ولو نسی اسمه و نوی ان یکون الحج عن الامر یصح ولو احرم مبهما فله ان یعینه قبل الشروع فی الاعمال و الافعال العاشر ان یحرم من المیقات فلو اعتمر و قد امره بالحج من عامه من مکة لایجوز و یضمن الحادی عشر ان یحج المامور بنفسه فلو مرض المامور فدفع المال الی غیره فحج عن المیت لایقع عن المیت و ان اذن له بذلک جاز الثانی عشر ان لا یفسد حجه فلو افسد لم یقع عنه و ان قضاه الثالث عشر عدم المخالفة فلو امره باللافرا فقرن او تمتع ولو للمیت لم یقع حجه عن الامر و یضمن النفقة ولو امره رجلان احدهما بحجة والاخر بعمرة و اذ ناله بالجمع فجمع جاز و لو بالحج فاعتمرضمن ولو امره بالعمرة فاعتمر ثم حج عن نفسه او امره بالحج فحج ثم اعتمر لنفسه جاز الا ان نفقة اقامته للحج او العمرة لنفسه فی ماله فاذا فرغ منه عادت فی مال المیت و ان عکس لم یجز الرابع عشر ان یحرم بحجة واحدة فلو اهل بحجتین احدهما عن نفسه والاخری عن الامر ولم یجز فلو رفض التی عن نفسه جاز الخامس عشر ان یفرد الاهلال لواحد فلو امره رجلان فاهل عنهما ضمن لهما و ان عین احدهما وقع له و ان لم یعین احدهما فله ان یعین ایهما شاء مالم یشرع فی الاعمال و بعد اشروع لم یجز ولو اهل عن ابویه بلا امر فله ان یجعل لهما ثوابه او لاحدهما السادس عشر اسلام الامر و المامور فلا یصح من المسلم للکافر و لا عکسه السابع عشر عقلهما فلا یصح من المجنون لغیر و لا له من العاقل الثامن عشر تمییز المامور فلا یصح احجاج صبی غیر ممیز ولا یصح احجاج المراهق التاسع عشر عدم الفوات فلو فاته الحج لم یجز ثم ان فاته لتقصیر منه ضمن فان حج من مال نفسه جاز و ان فاته بافه سماویة و لم یضمن و یستانف الحج عن المیت العشرون ان یحج الذی عینه بان قال یحج عنی فلان و لا یحج غیره فمات فلان لم یجز حج غیره ولو لم یصرح بالمنع بان قال یحج عنه فلان فمات فلان و احجوا عنه غیره جاز و لو اوصی ان یحج عنه ولم یوص الی احد فاجتمعت الورثة واحجوا عنه جاز وهذا الشرائط کلها فی الحج الفرض واما فی الحج النفل فلا یشترط فیه شئ من هذه الشرائط غالبا الا الاسلام و العقل و التمیز و النیة و ینبغی ان یکون منها عدم الانتجار ولم نجده صریحا فی النفل ولا یشترط لجواز الاحجاج ان یکون الحاج المامور قد حج عن نفسه فیجوز حج الضرورة الا ان الافضل ان یکون قد حج عن نفسه و یجوز احجاج المرأة والعبد و الامة باذن المولی مع الکراهة و یکره الحج عن المیت علی حمار و الجمل افضل و الافضل

احجاج الحر العالم بالمناسک ولو حج رجلا يحج عنه ثم يقيم بمكة والافضل ان يعود اليه امره ان يحج هذه السنة فلم يحج و حج من قبل جاز ولو اوصى ان يحج عنه ولم يزد على ذلک کان للوصی ان يحج بنفسه الا ان يكون وارثا او دفعه الى وارث ليحج عنه فانه لايجوز الا ان يجيز الورثة وهم كبار ولو قال للوصي ادفع المال لمن يحج عني لم يجز له ان يحج بنفسه مطلقا.

متن و بعده ترجمه و شرح علي القاري

دا فصل په بیان کي د هغه حج دی چي سړی بل شخص د ځان دپاره په حج کولو سره امر کړي او دا قسم حج چي د بل چا پر ځای سړی فرضي حج کوي ظاهره ده چي و ځان ته شرطونه د جواز لري نو که دا شرطونه چي په شمار سره شل ۲۰ دانې دي موجود سوه نو حج يې جواز لري د بل شخص دپاره او که موجود نه سوه بيا نو جواز نه لري که پر فرض وو بل ځوک به د دغه شلو شرطو د نګاه ځخه و حج ته استوي چي د ده دپاره په نيت د حجة الاسلام سره حج ادا کړي نو اوس شروع د جواز په شرطو سره کيږي ورته متوجه سه و من الله التوفيق.

۱: اول شرط د جواز دپاره دا دی چي دغه استونکی سړی به فقير نه وي وجه دا ده که د فقير سړي پر ځای بل څوک حج وکړي هر وخت چي فقير د مال خاوند سو حج بل وربانددي فرض دی او بل دليل دا دی چي پر فقير خو اوس فرض هم نه دی نو د ده پر ځای فرضي حج جواز نه لري که تر مرګه فقير وو ځکه د وجوب د حج شرط مال دی څوک چي مال نه لري د حج وجوب نسته لهذا د ده نيابت بل څوک د حج په اداء کي کولای نه سي دا مسئله د بدائع ده او که يې د فقير پر ځای حج وکړی او دی فقير وو بيا د ده پر ځای حج بل چا وکړی باره ده مال پيدا کړی نو د ده دا نيت صحت نه لري تر عبادت دمخه سوی دی لهذا بل حج به کوي.

۲: دويم شرط دا دی چي سړی به داسي عجز کي راګېر سوی وي چي هرکله د ده پر ځای بل حج وکړي نو تر مرګه پوري د ده دا عجز دوام وکړی او که تر مرګ دمخه د ده ځخه هغه عذر ليري او ورک سو نو هغه بل چي حج کړی دی د ده دپاره هيڅ فايده يې نه ده کړې لهذا په خپله به فرضي حج کوي.

که د مرض بند يا بل داسي عذر وو د ده د خلاصون اميد نه وو بل سړی يې خپل پر ځای و حج ته واستوی نو دا د ده حج موقوف بلل کيږي معنا دا ده که دی پر دغه حال د عذر وفات سو خو حج يې صحت پيدا کړی او که چيري د ده ځخه تر مرګ دمخه دا عذر پورته سو بيا نو پر ده فرض ده چي خپله حج وکړي هغه اول حج نفلي وګرځيدی که چيري ښځي مال درلودی خو محرم د سفر يې نه درلودی نو دا ښځه به پخپله نه ځي هر وخت چي د دې عجز ثابت سو باره به بل څوک خپل پر ځای وليږي او تر دغه مخکي د بل چا استول د حج

دپاره د دې جواز نه لري ولي چي امید سته چي یو محرم به پیدا کړي او که بې واستوي او یا تر مرګه پوري دې هم محرم پیدا نه کړي وفات سوه دغه حج بې صحت پیدا کړی لکه مریض په شرح النقایه للبرجندي کي امام ابوبکر محمد بن الفضل وایي که ښځي محرم پیدا نه کړی نو پر لازمه ده چي د ځان دپاره بل څوک ولیږي چي د دې دپاره حج وکړي او قیل وایي چي امید سته چي محرم پیدا کړي لهذا اوس استول د دې جواز نه لري.

ملا علي القاري رحمه الله محاکمه کوي وایي دا اختلافات بنا پر دې خبره دي چي دغه عذرونه د وجوب د شرطو څخه نه دي بلکې د شرطو څخه د ادا دي.

او د الکبیر حکم چي د شل یا ړانده پر ځای حج کول د امام اعظم رحمه الله پر مذهب جواز لري دلیل بې دا دی چي د دغه مرض د زوال په عادت کي امید نسته نو د دایمي عذر شرط موجود سو تر مرګه پوري دغسي عبارت د بدائع هم دی ځکه سلامتیا د بدن شرط د وجوب دی پر صحیح مذهب د امام اعظم رحمه الله باندي نو دلته یو سوال مشکل پیدا سو چي پر دوی هم د بل استول د حج دپاره واجب نه دی او کوم نقل چي د الفتح کتاب څخه سوی دی چي د شل یا ړانده او یا د فلج سړي پر ځای بل څوک حج وکړي او دوی د جوړتیا څخه نا امیده وي چي پخپله حج نه سو کولای او بیا جوړ سو حج بې کولای سو نو واجب ورباندي حج دی چي پخپله به حج کوي او هغه اول بې نفلي حج وګرځیدی نو اوس هغه سوال هم دفع سو.

۳: دریم شرط د جواز دا دی چي د بل چا تر استولو به دی دمخه عاجزه وي معنا بې دا ده چي یو کس پخپله جوړ وي او بل شخص د ځان د حج کولو دپاره ولیږي او بیا وروسته دی عاجز سي تر مرګه پوري لاهم دغه حج بې صحت نه لري اوس چي د ده عذر دایمي سو بل څوک به استوي لکه قاضي خان خلاصة الفتاوی چي لیکلي او ابن الهمام ورته صحیح ویلي دي دلیل بې دا ویلی دی چي دا خو تر رخصت دمخه ادا سوی دی.

۴: څلورم شرط د جواز دا دی چي دغه معذوره سړی به بل څوک امر کوي چي زما پر ځای حج وکړه لهذا دا مسئله اوس ثابته سوه چي بې له د ده د امره څخه چي بل د ده پر ځای حج وکړي صحت نه لري او که ده وصیت وکړی یو اجنبي یا د ده وارث د انډیوالی په مراعت د ده دپاره حج وکړی جواز نه لري او که ده وصیت و نه کړی په حج کولو سره لکه د ده د لحاظه څخه یو وارث د ده پر ځای حج وکړي پخپله یا بې د ده پر ځای بل سړی غیره ولیږی هغه د ده دپاره حج وکړی جواز لري معنا دا سوه چي انشاء الله تعالی چي د مړي د حجة الاسلام پر ځای به ودرېږي لکه الکبیر چي لیکلي دي په منسک د السروجي کي لیکلي دي چي پر یو کس حج فرض وو وي نه کړی مړ سو او وصیت بې هم و نه کړی خو یو

کس د ده دپاره حج وکړي او يا يو شخص د خپل مور يا پلار دپاره فرضي حج وکړي حجة الاسلام بې له وصيته د امام اعظم رحمه الله پر مذهب جواز لري انشاءالله تعالى او که بې وصيت کړي وو بيا بې له فکره جواز لري.

۵: پنځم شرط دا دی چې هرڅوک چې پر خپل ځای استوي دا به په مزدوري نه وي لکه دا بيان مخکي تېر سوی دی لهذا که بې يو کس ته وويل چې زه مثلاً و تا ته شل زره روپۍ مزدوري درکوم زما پر ځای ولاړ سه حج وکړه نو دا حج جواز نه لري علاوه دا ده چې دا حج نه د امير او الکافي وايي د مأمور د فرضي حج پر ځای هم نه دريږي لهذا دا به د مأمور نفلي حج سي دا مسئله په عامو کتابو کي سته لکه هدايه الکافي کنز وغيره کتابونه.

او که چيري يو کس معذور و بل ته وويل زما پر ځای و حج ته ولاړ سه د مزدورۍ هيڅ يادابنت و نه سو بيا نو صحت لري.

ابن الهمام د قاضي خان يو عبارت د تحقيق دپاره نقل کړی دی مسئله بې دا ده چې يو کس بندي وي او بل سړی مزدور کي چې ولاړ سه زما پر ځای حج وکړه پر ما فرض سوی دی او هغه شخص هم حج وکړي او امير هم په محبس کي مړ سو نو دا حج صحت لري او د مزدور حق د مزدورۍ سته په ظاهره روايت کي نو ابن الهمام و دغه حکم ته مشکل ويلي دي ځکه دا عبارت د الکافي د عبارت سره هيڅ برابري نه خوري نو د دغه عبارت د حل دپاره او د حج د صحت دپاره مبسوط په وضاحت سره دا ويلي دي چې دا مزدوري نه ده بلکې نفقه ده په اصلي مراد کي صرف د مجاز په طور ورته مزدوري ويل سوې ده علاوه لا دا ده چې په کتاب اداب المفتين کي داسي عبارت هم راغلی دی چې پر حج کولو مزدوري جواز نه لري او که بې په مزدورۍ وکړي بيا جواز پيدا کولای سي او دونه چې مقرره سوې ده نفقه به ورکوي نو دلته خو تاويل هم را نه غلی بلکې داسي وايي چې د مزدورۍ د لفظ ذکر کول دلته هيڅ اثر نه لري بلکې دا لفظ په اصل کي فاسد دی لهذا نو د اصلي حج ذکر صحت پيدا کړی دی او الکرماني هم دغه دليل ويلی دی چې هر وخت د مزدورۍ لفظ فاسد سو نو باقي پاته سو امر د ده د حج دپاره نو نفقه به ضرور ورکوي او په الکفايه کي ليکلي دي چې د ميقات څخه يو څوک مزدور کړي چې ولاړ سه زما دپاره حج وکړه او هغه هم حج وکړی صحت لري معنا دا سوه چې د امير حج صحت پيدا کړی او دا روايت مبسوط د امام اعظم رحمه الله څخه کړی دی انتهي او شمس الائمه السرخسي هم په دغه قول کړي دي او اصلي مذهب هم دغه دی.

ارشاد الساري په خپله مفصله او ډېري اوږدې حاشيې کي داسي حکم کړی دی چې خلص مطلب بې دا دی چې ده هم د شمس الائمه السرخسي د قول طرف ته زور لګولی دی

چي ټوله متون او شرحي وايي دغسي حکم کوي لکه کنز وقايه، المجمع، المختار. مواهب الرحمن وغيره کتابونه علاوه دا ده چي العلامة الرافعي د ردمحتار پر دغه قول چي د حج پر کولو مزدوري جواز نه لري ده ليکلي دي چي اوس ضرورت موجود دی ځکه چي هيڅ سړی بې له مزدوري د بل چا کار نه کوي نو دا هم داسي مثال لري لکه د قرآن و عالم ته چي پر تعليم باندي مزدوري ورکوي او متاخرينو هم په جواز سره حکم کړی دی تر دې لا علاوه دا ده چي محقق د علماؤ السند الشيخ محمد هاشم په خپله رسالة کي په نامه د فرائض الاسلام ده ليکلي دي چي په بحر العميق او شرح المنسک المتوسط چي د المرشدي هغه د الکفايه څخه نقل کړي چي د حج پر کولو باندي مزدوري اخيستل جواز لري او د امير فرض په صحيح کيږي او دا د مبسوط روايت دی د امام اعظم رحمة الله عليه څخه او بل بحر العميق ورته صحيح هم ويلي دي اه من السندي اه کلام الرافعي رحمة الله عليه.

۶: شپږم شرط د جواز دا دی چي حج به د امير په مال سره کوي کوم چي اوس مړ دی او که يې د خپل ځان په روپو د امير دپاره وکړی جواز نه لري اصلي معتبره په دغه حکم کي دا دی چي اکثره يا ټول مال به د مړي امير د مال څخه وي او قياس وايي چي ټول مال به د امير مصرفيږي ليکن شريعت وايي دلته تکليف پېښيږي لهذا په لږ مال کي د ځانه څخه چي يې مصرف کړي پروا نه لري لهذا که ډېر مال د امير لو لږ مال د مأمور مصرف سو پروا نه لري او که چيري مأمور ټوله يا اکثره روپۍ د خپل ځانه مصرف کړې نو به وګورو که د امير مال د ده د مال عوض کېدای سو نو مامور به يې د هغه روپو څخه د امير واخلي ځکه دا پېښيږي چي اوس يې لا لاس ته د امير روپۍ نه وي رسېدلي نو دا جواز لري لکه ابن همام چي فرمايلي دي او که د امير روپۍ دونه نه وې بيا هم اکثره لره اعتبار سته که اکثره د مړي روپۍ کيدای سوې حج يې د ده دپاره جواز لري او که اکثره نه وې بيا نو حج د ده دپاره جواز نه لري دلته دري قوله نقل کيږي قاضي خان وايي که د مړي روپو کفايت نه کوی ده معنا مأمور د خپل ځانه څخه روپۍ ولګولې خو لږ جواز لري او که د مړي روپۍ لږ وې بيا نو حج د مامور دی د امير هغه روپۍ به ورکړي او بل په قاضيخان او الکرماني کي راغلي دي لکه بيان چي يې اوس تېر سو او په خزانة الاکمل کي راغلي دي که مأمور په لاره کي د ځان د روپو څخه يو څه ولګولې هغه د ده د طرف څخه و مړي ته خيرات دي رجوع به نه کوي که د پلار پر ځای زوی حج کوی د ځان د ماله څخه چي بيا يې د پلار د متروکه ميراث څخه اخلم جواز لري په شرط د دې چي پلار ورته وصيت کړی وي او که يې حج وکړی د خپل ماله څخه نه په دې نيت سره چي د پلار د مال متروکه څخه يې واخلم بيا جواز نه لري.

که يې خپل زوی امر کړی چي زما پر ځای د خپل ماله څخه حج وکړه او زما د ميراثه

ځخه روپۍ مه اخله نو خزانة الاکمل ليکلي دي چي داسي حج د مړي د فرضي حج په ځای کي نه درېږي او قاضيخان وايي که يې ورته وويل چي د ميراث ځخه يې واخله بيا جواز لري او دغه زوی به اولين د ميراث ځخه دغه د حج روپۍ اخلي باره به ترکه کېږي.

د مړي د حج روپۍ به د خپلو روپيو سره نه ګډوي او که يې ګډي کړې بيا يې ضمان ورباندي ستنه که چيري يو کس د امير دپاره د خپلو روپيو ځخه حج وکړی جواز لري او د ضمان ځخه خلاص دی طرابلسي وايي که يې د ميت روپۍ واخيستلې او د خپلو روپيو سره يې ګډي کړې حج يې وکړی او پنځه سوه دراهم يې نفقه کړه نو محمد رحمه الله وايي چي جواز لري دا حج د ميت دپاره هيڅ اشکال ورباندي نسته چي تا ولي روپۍ خپلي ورسره ګډولې که يو سړي د ميت پر روپيو تجارت او حج دواړه وکړل هغه زياتي د ګټې روپۍ به د ميت وارثانو ته ورکړي اګرچي الکرماني وايي دا خاين دی دا حج يې د ميت دپاره صحت نه لري دا حج ده د خپل ځان دپاره کړی دی لهذا د حج روپۍ دي هم ورځخه واخلي انتهی.

ليکن د کرماني عبارت د الفارسي منسک سره مخالف دی په هغه کي د امام اعظم رحمه الله او ابو يوسف رحمه الله قول نقل دی چي جواز لري حج يې هيڅ نقصان نه لري او محمد رحمه الله وايي چي د ميت روپۍ دي ورکړي حج يې د ميت دپاره صحت نه لري بلکې حج د ده د خپل ځان دپاره سو او په المحيط کي راغلي دي که يې د ميت په مال د ځان دپاره سامانونه د تجارت رانيول او په دونه روپيو يې د ځان ځخه حج وکړی نو د ده نفقه او حج د ځان دپاره سو نه د ميت دپاره ليکن هشام د ابو يوسف رحمه الله ځخه روايت کړی دی چي هغه ګټه ده هر ځونه کړې وي هغه دي خيرات کړي او د ده حج د ميت دپاره صحت لري د امام اعظم رحمه الله پر صحيح مذهب باندي لکه اول چي د ميت مال د خپل ماله سره ګډ کړی خو د ميت د مال ضامن دی که هلاک سو ليکن که يې حج وکړی بيا نو ضمان ورباندي نسته الخ.

۷: اووم شرط د جواز دپاره دا دی که د ميت مال چي ده د حج وصيت په کړی وو تر دريمي زيات وو نو به په سپرتيا سره حج کوي لهذا که چيري مأمور په پښو پياده حج وکړی د ميت په امر سره يا بې له امره د ده نو د ده حج د ځان دپاره سو هر ځونه روپۍ چي يې د ميت مصرف کړې وي هغه به د ميت وارثانو ته ورکوي.

ارشاد الساري د بدائع او البحر په حواله په حاشيه کي ليکلي دي که په حج سره ميت يو کس امر کړی وو او هغه پياده د ميت دپاره حج وکړی نو دا حج د مأمور دپاره دی د ميت روپۍ دي وارثانو ته ورکړي کومي چي ده مصرف کړي دي د نفقې دپاره ځکه پر مأمور فرض دا وه چي په سپرتيا سره حج وکړي ځکه چي شی مطلق ذکر سي کامل فرد ورځخه مراد وي لهذا د حج کامل فرد سپرتيا ده نو ده د امره ځخه د ميت مخالفت کړی دی

چي تيوله متون او شرحي وايي دغسي حکم کوي لکه کنز وقايه، المجمع، المختار، مواهب الرحمن وغيره کتابونه علاوه دا ده چي العلامة الرافعي د ردمحتار پر دغه قول چي د حج پر کولو مزدوري جواز نه لري ده ليکلي دي چي اوس ضرورت موجود دی ځکه چي هيڅ سړی بې له مزدوري د بل چا کار نه کوي نو دا هم داسي مثال لري لکه د قرآن و عالم نه چي پر تعليم باندي مزدوري ورکوي او متاخرينو هم په جواز سره حکم کړی دی تر دې لا علاوه دا ده چي محقق د علماؤ السند الشيخ محمد هاشم په خپله رسالة کي په نامه د فرائض الاسلام ده ليکلي دي چي په بحر العميق او شرح المنسک المتوسط چي د المرشدي هغه د الکفايه څخه نقل کړي چي د حج پر کولو باندي مزدوري اخيستل جواز لري او د امير فرض په صحيح کيږي او دا د مبسوط روايت دی د امام اعظم رحمه الله څخه او بل بحر العميق ورته صحيح هم ويلي دي اه من السندي اه کلام الرافعي رحمه الله.

٦: شپږم شرط د جواز دا دی چي حج به د امير په مال سره کوي کوم چي اوس مړ دی او که يې د خپل ځان په روپو د امير دپاره وکړی جواز نه لري اصلي معتبره په دغه حکم کي دا دی چي اکثره يا ټول مال به د مړي امير د مال څخه وي او قياس وايي چي ټول مال به د امير مصرفيږي ليکن شريعت وايي دلته تکليف پېښيږي لهذا په لږ مال کي د ځانه څخه چي يې مصرف کړي پروا نه لري لهذا که ډېر مال د امير لو لږ مال د مامور مصرف سو پروا نه لري او که چيري مامور ټوله يا اکثره روپۍ د خپل ځانه مصرف کړې نو به وګورو که د امير مال د ده د مال عوض کېدای سو نو مامور به يې د هغه روپو څخه د امير واخلي ځکه دا پېښيږي چي اوس يې لا لاس ته د امير روپۍ نه وي رسېدلي نو دا جواز لري لکه ابن همام چي فرمايلي دي او که د امير روپۍ دونه نه وې بياهم اکثره لره اعتبار سته که اکثره د مړي روپۍ کېدای سوې حج يې د ده دپاره جواز لري او که اکثره نه وې بيا نو حج د ده دپاره جواز نه لري دلته دري قوله نقل کيږي قاضي خان وايي که د مړي روپو کفايت نه کوی ده معنا مامور د خپل ځانه څخه روپۍ ولګولې خو لږ جواز لري او که د مړي روپۍ لږ وې بيا نو حج د مامور دی د امير هغه روپۍ به ورکړي او بل په قاضيخان او الکرماني کي راغلي دي لکه بيان چي يې اوس تېر سو او په خزانة الاکمل کي راغلي دي که مامور په لاره کي د ځان د روپو څخه يو څه ولګولې هغه د ده د طرف څخه و مړي ته خيرات دي رجوع به نه کوي که د پلار پر ځای زوی حج کوی د ځان د ماله څخه چي بيا يې د پلار د متروکه ميراث څخه اخلي جواز لري په شرط د دې چي پلار ورته وصيت کړی وي او که يې حج وکړی د خ[illegible] څخه نه په دې نيت سره چي د پلار د مال متروکه څخه يې واخلم بيا جواز نه لري که يې خپل زوی امر کړی چي زما پر ځای د خپل ماله څخه حج وکړ[illegible]

څخه روپی. مه اخله نو خزانة الاکمل لیکلي دي چي داسي حج د مړي د فرضي حج په ځای کي نه دریږي او قاضیخان وایي که یې ورته وویل چي د میراث څخه یې واخله بیا جواز لري او دغه زوی به اولین د میراث څخه دغه د حج روپی اخلي باره به ترکه کیږي.

د مړي د حج روپی. به د خپلو روپو سره نه ګډوي او که یې ګډي کړې بیا یې ضمان ورباندي سته که چیري یو کس د امیر دپاره د خپلو روپو څخه حج وکړی جواز لري او د ضمان څخه خلاص دی طرابلسي وایي که یې د میت روپی. واخیستلې او د خپلو روپو سره یې ګډي کړې حج یې وکړی او پنځه سوه دراهم یې نفقه کړه نو محمد رحمه الله وایي چي جواز لري دا حج د میت دپاره هیڅ اشکال ورباندي نسته چي تا ولي روپی. خپلي ورسره ګډولې که یو سړي د میت پر روپو تجارت او حج دواړه وکړل هغه زیاتي د ګټي روپی به د میت وارثانو ته ورکړي اګرچي الکرماني وایي دا خاین دی دا حج یې د میت دپاره صحت نه لري دا حج ده د خپل ځان دپاره کړی دی لهذا د حج روپی. دي هم ورڅخه واخلي انتهی.

لیکن د کرماني عبارت د الفارسي منسک سره مخالف دی په هغه کي د امام اعظم رحمه الله او ابو یوسف رحمه الله قول نقل دی چي جواز لري حج یې هیڅ نقصان نه لري او محمد رحمه الله وایي چي د میت روپی. دي ورکړي حج یې د میت دپاره صحت نه لري بلکې حج د ده د خپل ځان دپاره سو او په المحیط کي راغلي دي که یې د میت په مال د ځان دپاره سامانونه د تجارت رانیول او په دونه روپو یې د ځان څخه حج وکړی نو د ده نفقه او حج د ځان دپاره سو نه د میت دپاره لیکن هشام د ابو یوسف رحمه الله څخه روایت کړی دی چي هغه ګټه ده هر څونه کړې وي هغه دي خیرات کړي او د ده حج د میت دپاره صحت لري د امام اعظم رحمه الله پر صحیح مذهب باندي لکه اول چي د میت مال د خپل ماله سره ګډ کړی خو د میت د مال ضامن دی که هلاک سو لیکن که یې حج وکړی بیا نو ضمان ورباندي نسته الخ.

۷: اووم شرط د جواز دپاره دا دی که د میت مال چي ده د حج وصیت په کړی وو تر دریمي زیات وو نو به په سپر تیا سره حج کوي لهذا که چیري مامور په پښو پیاده حج وکړی د میت په امر سره بیا یې له امره د ده نو د ده حج د ځان دپاره سو هر [illegible]
[illegible] د میت وارثانو ته ورکوي.
[illegible] البحر په [illegible]
[illegible]
[illegible] قدرت د تګ وو حج

نو به د: هغه مصرف ورکوي د میت وارثانو ته انتهي.

تر خره د اوښ سپاري بهتره ده او که چیري د میت مال لږ وو په سپرتیا سره د: د:
دپاره حج نه په کېدی بیا نو پیاده حج د میت دپاره جواز لري او د امام اعظم رحمه الله مذهب هم
دغه دی.

که چیري میت یو کس ته اوښ ورکړی چي پر دغه اوښ سپور سه ولاړ سه زما دپاره
حج وکړه خو هغه سړي هغه اوښ و بل ته په کرایه ورکړي او ده هغه کرایه پر لاره د ځان
دپاره مصرفوله جواز لري چي پیاده ولاړ سي په دغه صورت کي او دا شرعي مسئله ده او
صحیح هم ده او ابن الهمام وایي دېره غوره مسئله ده خو چي هرکله را ورسېدی اوښ به د
میت وارثانو ته تسلیم کړي الخ.

۸: اتم شرط د جواز دا دی چي د میت مال به دونه وي چي د ده د وطن څخه حج په
کېدای سي او که نه په کېدی بیا یې وصیت بې ځایه دی او که دونه وو چي د یو ځایه څخه
حج په کېدی بیا دي مأمور د هغه ځایه څخه حج په وکړي که یو شخص د حج دپاره روان سو
لیکن پر لاره وفات کېدی وصیت یې وکړی چي زما د طرفه څخه حج وکړئ نو د دغه څخه
مراد دا دی چي د ده د وطن څخه به د ده د مال د دریمي حصې څخه حج کیږي د امام اعظم
رحمه الله پر مذهب باندي یاران وایي د هغه ځایه څخه به حج د ده دپاره کیږي چي وفات سو دا
مسئله جامع الصغیر او الکبیر ذکر کړې ده او که ده یو مکان ورته متعین کړی وو د وفات
ځای یا د وطن څخه نو بیا به د ده د امر مطابق حج کوي او که تعین یې نه وو کړی بیا دي د ده
د وفات د ځایه څخه ولاړ سي دا حکم شرعي دی قیاس وایي د ده د وطن څخه دي ولاړ سي
او شمس الائمه السرخسي رحمه الله وایي که دا میت غني او مالداره وو او مطلق یې وویل چي
زما پر ځای حج وکړئ نو به د ده د وطن څخه مأمور حج کوي او د وفات په ځای کي یې
روپۍ تر دریمي ډېري وي بیا دي د دغه ځایه څخه حج ورته وکړي او دا د امام اعظم رحمه الله
مذهب دی او یاران وایي چي د کوم ځایه څخه تلای سو د هغه ځایه څخه دي حج ورته
وکړي که یو کس د حج دپاره د خپل وطن څخه ووتی او په بل وطن کي کال پر تېر سو وفات
کېدی باره یې وصیت وکړی چي زما پر ځای حج وکړئ نو دلته په اتفاق سره د علماؤ د ده
اصلي وطن مراد دی.

او که د خپل وطن څخه یو څوک د تجارت دپاره ولاړی او وفات کېدی وصیت یې
وکړی چي زما دپاره حج وکړئ نو بیا دلته هم د علماؤ اتفاق دا دی چي د اصلي وطن څخه د
ده حج وسي او که یو شخص دوه وطنونه درلودل نو به مأمور د هغه وطن څخه د ده دپاره حج
کوي کوم چي مکې ته نژدې دی او که یې هیڅ وطن نه درلود بیا به د ده د وفات د ځایه څخه

حج کوي څکه اوس نو د ده وطن دغه سو او که یې یو ځای ورته تعین کړی نو بیا به د هغه متعین ځایه څخه ځي او که یو سړي وطن درلودی لیکن وصیت یې داسي وکړی چي د بل فلاني وطن څخه به حج ته ځي نو بیا به د ده د امر برابر حج کیږي برابره خبره ده که نژدې وي هغه وطن مکې ته او که لیري وي.

که یو خراساني سړي په مکه کي وصیت وکړی چي زما دپاره حج وکړه او یا د مکې سړي خارج د مکې څخه په لیري وطن کي وو وصیت یې وکړی چي زما د طرفه څخه حج وکړه او امر د دواړو مطلق وو نو د دوی د اصلي وطنو څخه به مأمور حج کوي اګرچي اقوال دلته مختلف دي ملا علي القاري وايي چي زه وايم که دواړه مالداره خلق وه نو د دوی د وطنو څخه دي حج ورته وکړي او که خراساني په مکه کي مالداره وو او مکي په لیري وطن کي مالداره وو او وصیت یې د حج کړی وو نو مناسب دا ده چي د دغه ځایه څخه حج ورته وکړي چي کوم ځای پر دوی فرض سوی دی.

که چیري یو کس وصیت وکړی چي په دغه وطن کي پر ما حج فرض سوی دی او زما دپاره د بل فلاني وطن څخه حج وکړه نو که مأمور د ده د امره څخه مخالفت وکړی حج یې د میت دپاره نه کیږي او یا یې اول د ځان دپاره وکړی دویم وار یې د میت دپاره وکړی هم د امره څخه ده میت یې مخالفت وکړی جواز نه لري لیکن که د ده ځای د میت د وصیت تر ځای نژدې وو مکې ته بیا جواز لري د دویم وار د میت دپاره بیا نو مخالفت نه بلل کیږي که میت وصیت کړی وو چي زما د مال د دریمي څخه دي زما پر ځای فلاني زما دپاره حج وکړي اوس د ده و مال ته کتل کیږي که لږ وو د دغه ځایه څخه به حج په کوي او که ډېر وو هر ځای چي میت ورته ښوولی وو د هغه ځایه څخه به حج ورته کوي او که لږ روپۍ پاته سوې پروانه لري او که یې د هغه متعین ځایه څخه حج و نه کړی او روپۍ هم ډیري پاته سوې بیا د میت دپاره حج صحت نه لري ټولي روپۍ به وارثانو ته ورکوي.

۹: نهم شرط د جواز نیت د میت د حج د کولو دی د احرام په وخت کي یا د حج د افعالو د شروع په وخت کي او په ژبه ویل یې بهتري لري چي داسي به وايي احرام د حج ترم د فلاني دپاره او نیت مي دی د حج د فلاني سړي دپاره او لبیک وايم د فلاني سړي دپاره او که یې د زړه په نیت سره اکتفاء وکړه هم جواز لري او که یې نوم هېر سو بیا به وايي چي نیت مي دی د حج د امیر دپاره او که یې صرف د حج نیت وکړی نامعلوم نو د شروع په وخت کي به تعین کوي چي د فلاني دپاره حج کوم لکه طواف قدوم یا پر عرفات چي ودریدی.

۱۰: لسم شرط د جواز دا دی چي احرام به د میقات څخه تړي او میقات د امیر دلته مراد دی که یو شخص عمره وکړه او دی په حج سره امر سوی وو د مکې څخه بیا نو جواز نه

لري لهذا د میت روپۍ به ورکوي ځکه د ده سفر د حج دپاره وو او ده په عمرې سره سفر بدل کړی.

ارشاد الساري د ملا علي القاري رحمه الله د یو بلې مستقلې رسالې یو خلاصه مطلب ذکر کړی دی چې د داسې شخص دپاره چې د بل سړي دپاره نیابة حج کوي حیله دا ده چې بېره لري چې په احرام کې وخت ډېر راباندې تېرېږي نو بې له احرامه ځخه تر میقات تېر سي بیا د حج په موسم کې بیرته میقات ته ورسي او د هغه میقات ځخه احرام وتړي بیا هیڅ تاوان نه پر لازمیږي ځکه دا په مخالفت کې نه راځي او دا مسئله ابن نجیم په شرح الکنز کې او الشیخ قوام الدین په شرح الهدایة او الملا سنان الرومي په منسک کې لیکلې دي چې دم پر لازمیږي چې تر میقات بې له احرامه ځخه تېر سي او حج یې صحت لري او که اول احرام و نه تړي بیرته میقات ته راسي احرام وتړي بیا نو هغه دم ورځخه ساقط سو په اتفاق سره د علماؤ او که را ونه ګرځیدی دم به د امیر د ماله ځخه نه کوي بلکې مامور به یې د خپله ماله ځخه کوي بې له خلافه ځخه ده دا مسئله د الشیخ نورالدین علي المقدسي ځخه په دغه باره کې فتوا طلب سوه چې یو کس د بل پر ځای حج کوی او مکې ته بې له احرامه داخل سو نو آیا اوس به مأمور د مکې ځخه د هغه دپاره احرام تړي او که به ځي د میقات ځخه به احرام تړي هر میقات چې وي و موږ ته فتوا راکړه الجواب الحمدلله دا سړی به ځي د هغه معین میقات ځخه چې امیر ورته ټاکلی دی د هغه ځخه به احرام تړي والله اعلم.

العلامة الحباب وایي چې د رسالې بیان خو صریح په دې کې دی چې افاقي سړی بې له احرامه ځخه حرم ته داخل سي او حال دا دی چې دی خو بل امر کړی دی په احرام سره نو که یې د مکې ځخه احرام وتړی بې له دمه ځخه بل شی نه پر لازمیږي او حج یې صحت لري لیکن د العنیف د شرحي عبارت ورځخه مخالف دی چې هغه لیکلي دي چې مأمور و مکې ته بې له احرامه ځخه ولاړ سي نو عمره به نه کوي تر حج دمخه د میقات ځخه او د دم ځخه هم خلاصیږي په هغه حیله سره چې تېره سوه او که په روژه کې تللی وي او عمره وکړي لا د امیر ځخه مخالف ګرځي اوس داسې پوه سه چې اراده د احرام د حج د بل دپاره وکړي که یې د مکې ځخه احرام وتړي تاوان پر لازمیږي بلکې پر ده لازم دا ده چې میقات ته به ځي او د هغه ځایه ځخه به احرام تړي لکه ځنګه امر چې ورته سوی دی.

فایده: افاقي سړی چې د بل دپاره حج کوي که تر میقات بې له احرامه ځخه تېر سي آیا دم پر لازمیږي او د امیر ځخه مخالف ګرځي او که نه؟ نو قیل وایي په دغه دري سره صورتو کې د ده حج د امیر دپاره نه ګرځي که مکې یا د میقات یا د ماین د ځکي ځخه احرام وتړي حج یې باطل دی او بل قیل وایي چې د امیر ځخه مخالف نه دی بلکې لازم پر ده دا ده چې بیرته میقات

نه ولاړ سي د هغه ځايه څخه احرام وتړي چي امير امر کړی دی او دا قول راجح او بهترين قول دی لکه دا تحقيق چي العلامة شيخ شيخنا الشيخ يحی بن صالح کړی دی.

۱۱: يولسم شرط دا دی چي هر سړی ميت د ځان د حج دپاره تاکلی وي هغه به حج کوي اوس که دی مريض سو او يا بل مانع ورته موجود سو چي د حج څخه يې منع کړی او ده د بل چا ته روپۍ د ميت ورکړې چي حج ورته وکړه جواز نه لري او که يې داسي وکړه نو به د ميت روپۍ وارثانو ته ورکوي ځکه دا حج د ميت دپاره نه دی.

او که امير داسي ورته ويلي وه چي دا روپۍ زما د حج دپاره دي ستا خوښه ده که ته ځې او که بل څوک لېږې بيا نو جواز لري حج د ميت دپاره کيږي.

۱۲: دولسم شرط د جواز دا دی چي حج به نه فاسدوي او که يې حج فاسد کړی بيا نو د امير څخه نه دی بلکې د ميت وارثانو ته به دونه روپۍ د حج بيرته ورکوي ځکه ده مخالفت وکړی حج يې فاسد کړی په وطيو سره تر عرفات دمخه او که پر بل کال ولاړ سي هم د ميت دپاره د ده حج صحت نه لري وجه داده چي دی خو د فاسد حج قضا راوړي نو د ميت دپاره نه کيږي د ده حج ځکه دا حج او هغه فاسد سره ترلي شمارل کيږي.

ارشاد الساري وايي چي پر مأمور بل صحيح حج د ميت دپاره لازم دی.

۱۳: ديارلسم شرط د جواز د امير څخه مخالفت نه کول دي معنا دا سوه که چيري هغه په حج افراد سره امر ورته کړی وو او ده حج قِران يا حج تمتع وکړی نو ده د امير څخه مخالفت وکړی لهذا دی به د امير د حج روپۍ بيرته ورکوي دا حج د امير څخه نه صحيح کيږي او دا مذهب د امام اعظم رحمه الله دی او ياران وايي چي شرعاً صحت لري چي د امير څخه دا حج صحت پيدا کړي او که يې د عمرې نيت د يوه دپاره او د حج نيت يې د بل دپاره کړی وو معنا د عمرې نيت د بل يا د ځان دپاره او د حج نيت يې د امير دپاره کړی وو بيا په اجماع سره دا حج د امير دپاره نه دی دا په محيط کي ده دا مسئله وغيره کتابونه او طرابلسي وايي چي په ظاهره روايت کي هم دا مخالفت بللې سوی دی لو که يو کس و يو چا ته وويل زما پر ځای به حج وکړې معلومه يې نه کړه چي فلانی قسم بيا هم په دغه صورت کي به حج افراد کوي او که يې امر کړی چي تمتع وکړه بيا به خامخا تمتع حج ورته کوي لکه داسي چي ورته وواېي اول عمره وکړه بيا حج وکړه نو به دی هم د امير د امر موافق عمل کوي.

او که دوو کسانو امر کړی يوه ورته وويل زما دپاره عمره وکړه هغه بل ورته وويل زما دپاره حج وکړه او دا اجازه يې هم ورکړه چي دواړه سره جمع کړه تمتع حج وکړه صحت لري لکه بدائع دا ليکلي دي او که يې داسي اجازه ور نه کړه بيا نو دی د ځانه څخه داسي تصرف نه سي کولای پر قول د امام اعظم رحمه الله او که يې داسي وکړه مخالف دی د دواړو

ځکه لکه په مختصر الکرخي کي چي راغلي دي.

که سړي د بل دپاره حج وکړي پوره سو باره یې د ځان دپاره عمرې وکړې هیڅ پروا نه لري او مخالف هم نه بلل کیږي په اتفاق د علماؤ سره او ابن الهمام چي د عامو علماؤ پر مذهب هم نه دی مخالف او دا مذهب د امام اعظم رحمه الله دی.

که یو کس بل سړي امر کړی چي زما دپاره حج وکړه نو ده عمره وکړه برابره خبره عمره د ده د خپل ځان دپاره وي او که د امیر دپاره وي دی مخالف بلل کیږي د حج سفر یې په سفر د عمرې بدل کړی دی لهذا تاوان پر لازم دی د هغه د مصرف او که یې اول عمره بیا یې حج وکړی دا حج نه د ده د حج فرضي ځکه کیږي او نه د امیر دپاره کیږي بلکې پر ده هم بل حج فرض د او د امیر د حج د روپو تاوان به هم ورکوي او که یې امر کړی چي زما دپاره عمره وکړه نو ده عمره وکړه باره یې د ځان دپاره حج وکړی او یا یې داسي امر ورته کړی وو چي زما دپاره حج وکړه ده حج ورته وکړی بیا یې د ځان دپاره عمره وکړه جواز لري ځکه بیان یې تېر سوی دی خو یاد لره کوم شي چي د ځان دپاره کوي که حج یا عمره وي هغه مصرف به د خپلو روپو ځکه کوي هر کله چي د خپل حج یا عمرې ځکه فارغه سو بیرته به مصرف د امیر د مال ځکه شروع کوي.

او که یې برعکس کار وکړی معنا داسي یې وکړه چي امیر دی په عمرې کولو سره امر کړی وو او ده حج ورته وکړی او یا یې په حج سره امر کړی وو او ده عمره ورته وکړه بیا نو جواز نه لري ضامن دی.

۱۴: څوارلسم شرط دا دی چي احرام به د یوه حج تړي که یې د دوو حجو احرام وتړی یو د امیر دپاره او بل د ځان دپاره یا برعکس د دغه جواز نه لري او که یې بیرته خپل د حج احرام مات کړی بیا نو جواز لري بیا یې مثال داسي دی لکه د اول ځکه چي یې د امیر دپاره د یوه حج احرام تړلی وي خلص مطلب دا دی چي د امام اعظم رحمه الله پر مذهب که یې د ځان دپاره اول احرام تړلی وي یا یې اول د امیر دپاره تړلی وي یا یې دواړه یوځای تړلي وي یو په کښي مات دی هغه بل د امیر دپاره ګرځي.

۱۵: پنځلسم شرط دا دی چي احرام به د یوه کس دپاره تړي که دوو کسانو امر ورته کړی وو او ده هم د دواړو دپاره احرامونه وتړل نو حج د مأمور دپاره کیږي د هغه دواړه امیرانو د حج تاوان به ورکوي ځکه اوس دا امکان نسته چي حج د یوه دپاره ګرځي او که یې په احرام کي یو په کښي تعین کړی بیا نو حج د دغه متعین شخص دپاره کیږي د هغه بل تاوان به ورکوي یې له خلافه ځکه او که یې مبهم نیت کړی وو داسي تعین یې نه وو کړی چي دا د فلاني دپاره احرام یا نیت کوم بیا نو د ده خوښه ده د هر یوه دپاره چي یې معین کول

جواز ورته لري خو دا تعين به د حج د افعالو تر شروع دمخه کوي د امام اعظم رحمه الله او محمد رحمه الله پر مذهب باندي او که يې د حج د افعالو تر شروع بعد تعين ګول يا جواز نه لري مثلاً پر عرفات ودرېدی او يا يې يو شوط طواف وکړی باره يې وويل چي دا حج د فلاني دپاره دی نو دا حج د ده د خان دپاره وګرځيدی د دواړو اميرانو د حج تاوان به ورکړي په اجماع سره د علماؤ دی مخالف سوی دی.

که يو شخص احرام وتړی د حج يا د عمرې د خپلو والدينو دپاره بې له د دوی د امره څخه او ده تعين هم و نه کړی د مور يا د پلار لپاره دی نو بيا د ده خوښه ده چي ثواب يې دواړو ته يا يوه ته بخښي دلته يو سوال دا پيدا کيږي که يې د دواړو نيت وکړی خو ثواب دواړو ته رسيږي او که يې د يوه نيت کړی وو بيا خو هغه تعين سوی دی هغه بل ته ثواب نه رسيږي.

نو مسئله عامه ده که يې د فرضي حج نيت ورته کړی وي او که د نفلي حج د دواړو يا د يو څخه او يا يې هيڅ د دې ذکر نه وي کړی خو د ثواب د بخښولو زمانه تر فراغت وروسته ده چي د حج څخه فارغه سو حاصل د خبري دا دی چي دی کولای سي چي و هر يوه ته د حج ثواب بخښي د ده خوښه ده پر دغه د علماؤ اتفاق دی او الکبير ليکلي دي که يې د دواړو نيت کړی وو نو لازمه دا ده چي نيت به د يوه دپاره کوي د حج تر افعالو دمخه او که والدينو دواړو امر ورته وکړی چي زموږ دپاره حج وکړه او ده د دواړو دپاره احرامونه وتړل يا حکم د دې تېر سوی مثال يې د اجنبي دی تېر عبارت کتل غواړي.

۱۶: شپاړسم شرط د امير اسلام دی او د مأمور اسلام ځکه مسلمان د کافر دپاره حج نه سي کولای ځکه کافر اهل د عبادت نه دی علاوه دا ده چي پر کافر فرض هم نه دی او که کافر مسلمان پر خپل ځای و حج ته لېږي دا هم جواز نه لري ځکه د حج د صحت دپاره اسلام شرط دی.

۱۷: اولسم شرط د امير او مامور عاقل والی دی ځکه د لېوني دپاره هم بل څوک حج نه سي کولای او نه لېونی د بل دپاره حج کولای سي.

۱۸: اتلسم شرط د مأمور تميز او عقلمندي ده لهذا د کوچني حج د بل دپاره صحت نه لري اګر که و بلوغ ته نژدې وي الخ.

۱۹: نولسم شرط دا دی چي د مأمور څخه حج فوت نه سي اوس که د ده څخه د ده د کار د مشغول کېدو په وجه فوت سو نو مال د حج به وارثانو ته ورکوي ځکه دا تقصير د ده څخه پېښ دی او که آفت سماوي وو لکه مرض يا بند يا د موټر څخه ولوېدی حج ورڅخه فوت سو معنا وخت د حج ورڅخه تېر سو بيا يې د ضمان حق نسته معنا دا چي د ميت وارثان حق نه لري چي د ده څخه د حج روپۍ واخلي او که مأمور د خپل مال څخه پر بل کال

حج وکړي جواز لري که پر لاره دا خطرې وربېښي سوې بیاهم کولای سي چي د میت په مال
باندي بیرته تر کوره پوري ځان راورسوي او پر ځان یې مصرف کړي.

۲۰: شلم شرط دا دی هر شخص چي میت متعین کړی د حج دپاره هغه به حج کوي
او که دی نه تلی او یا وفات سو بیا بل څوک حج د میت دپاره نه سي کولای خو یاد لره چي
میت په وصیت کي ووایي چي بل څوک دي زما پر ځای حج نه کوي او که یې تصریح و نه
کړه داسي یې وویل چي زما پر ځای دي فلانی حج وکړي او هغه هم مړ سو او بیا یې پر ځای
بل څوک ولاړی جواز لري بحر الزاخر وایي او که یې داسي وصیت وکړی چي یو کس زما
پر ځای حج وکړي سري یې متعین نه کړی نو وارثانو د ده دپاره حج وکړی جواز لري په
منسک الکرماني کي راغلي دي چي یو کس ته میت وصیت وکړی چي زما پر ځای حج وکړه
هغه انکار وکړی نو وصي د ده بل واستوی جواز لري او که هغه شخص انکار و نه کړی او
وصي بل کس ولیږی هم جواز لري الخ.

دا شل شرطونه په فرضي حج کي ضروري دي او په نفلي حج کي غالباً دا شرطونه
ضروري نه دي په اکثره مسائلو کي بلکې اسلام او عقل او تمیز او نیت او نه مزدوري په
نفلي کي هم د صحت شرطونه دي لکه په فرضي حج د نفلي حج دپاره تر ادا کولو د حج هم
نیت صحت لري معنا دا ده چي ثواب یې و بل ته وبخښي علاوه دا ده چي د ځان دپاره د
نفلي حج نیت وکړي او بیا یې ثواب و بل چا ته وبخښي جواز لري، والله اعلم.

د یادولو وړ دا مسئله ده چي د بل د حج دپاره دا شرط نه دی چي بل به مأمور کړی
وي لهذا که یې حج د ځان دپاره نه وو کړی هم د بل دپاره حج کولای سي چي په عربي کي
ورته (حج الصرورة) وایي لیکن فضیلت منده دا ده چي مأمور به د ځان دپاره حج کړی وي
لکه په بدائع کي چي هم راغلي دي چي خبره د اختلاف څخه د علماؤ ووزي او مستحب هم
دغه ده په اجماع د علماؤ سره څکه د بل دپاره چي دی حج کوي د خپل ځان د حج
پرېښونکی ګرځي لهذا ورته مکروه علماؤ ویلي دي او مثل د دغه عبارت د فتاوای
الظهیریه دی الخ.

ابن الهمام ډېر تحقیق دلته کړی دی وایي هغه بیان چي نظریه تقاضا کوي هغه دا
دی چي حج صرورة معنا چي په خپله یې حج نه وي کړی او د بل دپاره حج کوي اوس به
وګورو که دغه سړي دا وخت د بل دپاره حج کوي چي پر ده هم واجب ګرځیدلی وو معنا
هرڅه سامان د سفر او توښه یې درلودل صحت یابه وو نو ده ته د بل دپاره تګ و بیت الله ته
حرام کار دی همدا رنګه ورته مکروه دی چي د ځان دپاره نفلي حج تر فرضي دمخه کوي او
علاوه دا ده چي صحت خو زموږ پر مذهب لري.

ارشاد الساري د ابن الهمام د تحقيق پر بنا داسي ليکلي دي چي په البحر کي راغلي دي چي حق خبره دا ده چي سړی حج نه وي کړی او د بل دپاره حج کوي نو امير لره مکروه تنزيهي او مأمور لره حرام دی که شروط د حج په ده کي موجود وه د حج او د ځان دپاره يې حج نه وو کړی ځکه دی په ځنډ سره ګناهګاره دی ارشاد الساري وايي دا عبارت د ابن الهمام د عبارت سره مخالفت نه لري ځکه دا کلام هم په مأمور کي دی او په المنتقي کي راغلي دي چي حج صرورة جواز لري معنا چي د بل پر ځای حج وکړي چي پخپله يې فرض حج نه وي کړی او که وربانديي فرض نه دی دلته چي مکه مکرمه ووينې حج وربانديي په ليدلو سره فرض کيږي ځکه اوس خو پر حج کولو قادر دی په طوالع الانوار کي راغلي دي چي پوه سه که چا خپله حج نه وو کړی او د بل دپاره ولاړی په ليدلو د کعبې شريفې پر ده حج فرض ګرځي ځکه ده اوس طاقت د حج پيدا کړی لکه تفصيل چي په ملا سنان منسک کي راغلی دی او شافعي رحمه الله ورځخه منع فرمايلې ده د داسي شخص دپاره چي پخپله يې حج نه وي کړی او د بل دپاره حج کوي.

او غافله کيږه مه چي دا مسئله درته تېره سوه چي په دخول سره مکې ته حج پر سړي فرض کيږي او موږ نقل کړي دي د ملا سنان ځخه او حق دا ده چي يو د دوو نسکينو ځخه وربانديي فرضيږي ځکه حج خو طاقت غواړي او بعضي خلق د بل دپاره د حج احرام وتړي نو بيا خو دا د ځان دپاره نه سي ګرځولای نو که حج وربانديي فرض سو هغه به پر کال کوي الخ او ظاهره کلام د بدائع داسي دی چي خپله سړی حج نه وي کړی او د بل دپاره و حج ته ځي دا عمل مکروه دی ځکه تارک د فرض ګرځي وجه دا ده چي په ليدلو د کعبې پر ده هم حج فرض کيږي ځکه قادر سو وربانديي اګرچي اوس د بل دپاره د حج په افعالو مشغول دی او د فتوا واقعه هم دغه مسئله ده ارشاد الساري وايي چي مفتي دار السلطنة العلامة ابو سعود هم د وجوب فتوا کړې ده او د ده تابعداري سکب الانهر هم کړې ده او السيد احمد شاه هم فتوا کړې ده پر وجوب سيد عبد الغني النابلسي بيا برخلاف فتوا کړې ده چي اوس خو پر ده نه دی واجب ځکه دی د بل د حج په کار مشغول دی او مال د بل دی سفر يې د بل دپاره دی او احرام يې د بل دپاره تړلی دی او که دلته تر کاله د ځان د حج دپاره پاتيږي تکليف دی ځکه په وطن کي يې اولادونه وړې کيږي ولي چي فقير دی لهذا دا تکليف عظيم دی نو د بدائع مسئله چي مطلق يې ورته مکروه ويلي دي د دې ځخه حرام مراد دی او دا تقاضا د دې کوي چي وربانديي واجب دی د پخوا ځخه دا مسئله تېره سوې ده چي فقير و ميقات ته ورسيږي د ده په رسيدو سره حج وربانديي فرض ګرځي ولي چي په ميقات کي اګرچي احرام يې لا نه وي تړلی دی په حکم کي د مکي سړي دی که يې قدرت د تګ وو حج

پر لازمیږي د نفلو نیت یې صحت نه لري ولي چي دی اوس د افاقي والی څخه ووتی په اهل د مکې کي داخل سو حجورباندي فرض سو که یې دلته د نفلي حج نیت وکړی بیا دویم فرض ورباندي لازمیږي لهذا که د بل په روپو یې ځان و میقات او بیا و مکې ته ورسوی بیا نو دا جلا حکم دی ځکه د ده قدرت د بل په وجه سره راغلی دی لکه بیان چي یې تېر سو او که خپله و میقات ته ورسېدی ظاهره ده چي ورباندي فرض دی حج اګرچي اولین سفر یې د نفلي وي لهذا د ابن الهمام حکم چي د صرورة حج حرام دی دا حکم د هغه شخص په شان کي نه دی چي د بل په روپو رسېدلی وي لیکن ابن الهمام وخت ورباندي تنګ کړی دی فکر په کښي په کار دی والله اعلم تعلیق الشیخ عبدالحق.

جواز لري چي ښځه د بل پر ځای حج وکړي که یې د مېړه اجازه وه او محرم ورسره وو او مریی او مینځه هم حج د بل دپاره کولای سي که یې د بادار خوښه وه خو کراهت لري ارشاد الساري وجه د کراهت دا ویلې ده په حواله سره د بدائع چي د ښځي حج ناقص دی ولي چي ښځه تو له سنتیات نه سي پوره کولای ځکه دا په طواف کي اوږې ښورولای نه سي او د صفا او مروا تر مابین تېز تګ هم نه سي کولای او تلبیه هم په زوره نه سي ویلای او لڅول د سر هم نه سي کولای په احرام کي او سر خریل هم نه سي کولای وغیره افعال د نارینه په شکل سره او مریي خو اهل د فرض حج د اداء نه دی د خپل ځان دپاره نو د بل دپاره یې حج مکروه دی اهـ حباب.

که د مکې لاره ډېره وه نو پر خره حج مکروه دی ځکه تکلیف یې ډېر دی او فضیلت منده د حج د سفر دپاره اوښ یا آس یا غاتر دی وجه دا ده چي دا حیوانات تکلیف برداشت کولای سي او په قرآن کي الله تعالی فرمایلي دي:

یاتوک رٰجالا و علی کل ضامر. الحج ۲۷

راځئ و مکې ته پیاده خلق او سپاره پر داسي اوښانو چي د لوی سفر په وجه ډنګر سوي وي.

او بل په قرآن کي فرمایي:

یاتین من کل فج. الحج ۲۷

راځئ و مکې ته د هري لیري ځایو څخه.

ډېر فضیلت مند و میت ته دا ده چي و حر او عالم سړي ته چي د مناسکو د حج په افعالو خبر وي وصیت وکړي چي زما پر ځای حج وکړه که یو شخص د بل پر ځای و حج ته ولاړی او حج یې پوره کړی نو بیا د امیر په اجازه په مکه مکرمه کي پاته سو جواز لري لیکن فضیلت دا لري چي خپل وطن یا د امر وطن ته راسي ځکه چي هغه میت پخپله حج

کړي وای نو غالباً و خپل وطن ته راتلی.
که يو شخص و بل ته امر وکړي چي سږ کال زما پر ځای حج وکړه او هغه بل کال ته وځنډوی او بيا يې حج هم وکړی جواز لري معنا دا حج د ميت دپاره ګرځي تاوان نه لري لکه په منية المناسک کي راغلي دي اګرچي النوازل ليکلي چي دا صحت نه لري په قول د زفر رحمه الله او په قياس د ابو يوسف رحمه الله که يو شخص د موت په دوران کي وفرمايل چي زما پر ځای حج وکړئ او وصي پخپله د ده پر ځای حج وکړئ جواز لري وجه دا ده چي ميت تعين د شخص نه دی کړی مګر که وصي د ميت وارث وو بيا جواز نه لري چي پخپله يا بل وارث وليږي علاوه دا ده که وارثان بالغان وه او ټولو اجازه يوه ته او يا وصي ته وکړه بيا نو جواز لري او که ميت وصي ته وويل چي دا روپۍ يو چا ته ورکړه چي زما پر ځای حج وکړي بيا نو وصي ته جواز نه لري چي حج دي پخپله د ميت دپاره وکړي اګر که ټوله وارثان ده ته اجازه هم ورکړي عامه خبره ده که وارثان کوچني وي او يا غټان وي دا تصريح ابن الهمام کړې ده.

## فصل بل ته د حج وصيت کول

ولو اوصى ان يحج عنه من ثلث ماله و ان قال حجوا عنى بثلث مال و ثلثه يبلغ حجا فان صرح بحجة واحدة فانه يحج عنه حجة واحدة و ما فضل يرد الى الورثة والا حج عنه حججا و كذا لو قال حجوا عنى بالف ثم الوصى بالخيار ان شاء احج عنه الحجج فى سنة واحدة وهو الافضل ولو قاسم الوصى الورثة و عزل قدر نفقة الحج فهلك المعزول فى يد الوصى او فى يد الحاج بطلت القسمة ولا تبطل الوصية و يحج من ثلث الباقى حتى يحصل الحج او يثوى المال مثاله كان له اربعة دفع الوصى الفا فهلكت و دفع اليه ما يكفيه من ثلث الباقى او كله و هو ولو هلكت الثانية دفع اليه من ثلث الباقى بعدها الحج فتبطل الوصية و لو ان الوصى اذا احج رجلا عن الميت فى محمل يحتاج الى مقدار و ان احج راكبا لا فى محمل احتاج الى اقل من ذلك و كل ذلك يخرج من الثلث يجب اقلهما ولو اوصى لرجل بالف و للمساكين بالف و ان يحج عنه بالف و ثلثه الفان يقسم بينهم اثلاثا ثم تضاف حصة المساكين بعد تكميل الحج ولو كان عليه فريضة و نذر يبدأ بالفريضة ولو كان الكل واجبا او تطوعا يبداء بما قدمه الوصى ان ضاف الثلث عنها.

متن و بعده ترجمة و بشتو شرح علي القاري

که يو شخص وصيت وکړی چي زما د مال څخه د دريمي حصي څخه حج وکړه او که يې داسي ورته وصيت وکړی چي زما د مال د دريمي څخه حجونه وکړي او د ده د مال په دريمه حصه ډېر حجونه کېدل اوس که ده تصريح وکړه چي يو حج وکړي نو به يو حج ورته وکړي هر څونه چي زياتي سوې هغه به وارثانو ته ورکړي او که ده يو حج ياد نه کړی بلکې

مطلق یې وویل زما د مال په دریمه حصه حج وکړئ نو د ده د مال چې هر څونه حجونه کېدل هغونه حجونه به ورته کوي دا روایت قدوري په شرحي د مختصر الکرخي او قاضي الاسیجابي په مختصر الطحاوي کې ذکر کړي دي که یې وصیت وکړی چې د دریمې څخه د مال زما حج وکړي او د ده په دریمې ډېر حجونه کېدل نو یو حج به ورته کوي فرضي د میت د وطن څخه او که یې ورته وویل چې په ټوله دریمه زما دپاره حجونه وکړي بیا نو چې په کېدل هغونه حجونه به په کوي بدائع وايي چې د قدوري حکم ډېر ښه قول دی ځکه وصیت په ټوله او په یوه دریمه یو حکم لري ځکه ثلث د ده د حصې ټول نوم دی انتهي.

که یو کس وویل چې په زرو روپو زما دپاره حج وکړئ او په زرو روپو نو بیا وصي ته اختیار دی که یو یې کول او که یې ډېر ورته کول خو فضیلت دا لري چې ټوله په یو کال کې ورته وکړي او که په هر کال کې یو یو حج ورته کوي هم جواز لري ځکه کامله طریقه دا ده چې غاړه یې ژر خلاصه سي.

نو اول حج د ده دپاره فرضي دی هغه نور یې نفلي ګرځي او که یې وصیت وکړی چې زما دپاره هر کال حج کوئ نو دا مسئله په مبسوط کې نه ده ذکر سوې او محمد رحمه الله وايي برابره خبره ده چې جواز خو لري لیکن فضیلت په اول کال کې لري او وصیت برابر چلیدل هم غوره کار دی او که وصیت د شریعت څخه مخالف نه وو موافقت ضروري عمل دی.

که چیري وصي وارثانو ته مال تقسیم کړی د میت د حج روپۍ یې جلا کړې او هغه ورڅخه تلف سوې په لاس د وصي او یا د هغه کس چې د حج دپاره یې ټاکلی وو نو هغه مخکې تقسیم یې باطل دی او وصیت یې نه دئ باطل بیرته به ټول مال سره جمع کوي د دریمې څخه به حج د میت دپاره کوي دا به تر هغه وخته پوري دا کار روان وي ترڅو چې د میت دپاره حج کوي او یا د میت د مال دریمه په کښې ختمیږي او دا مذهب د امام اعظم رحمه الله او ابو یوسف رحمه الله دی الخ.

مثال د مخکې عبارت دا دی لکه اوس چې یو کس څلور زره روپۍ ولري د مرګ په وخت کې یې وصیت د حج وکړی نو په زر روپۍ حج کېدی هغه ورڅخه ورکې سوې بیا به بل زر روپۍ ورکوي چې حج په وکړي د باقي د دریمې څخه ترڅو د میت د دریمې حصې خلاصون راځي دا د امام اعظم رحمه الله مذهب دی.

که وصي یو کس ته روپۍ ورکړي چې په لږ روپو حج کېدی پر یوه لاره او پر بله لاره ډېري روپۍ ورباندې مصرف کېدلې نو ده هغه روپۍ ورکړې چې پر لنډه لاره مصرف لږ کېدی یا په پیاده سره د حج مصرف لږ کېدی او ده هم دومره ورکړې نو لازمه دا ده چې په هغه لږ روپو حج وکړي او که د میت مال درې سوه روپۍ وو او سل روپۍ یې دریمه وه او

حج تر سلو په زيات روپو کېدی ده تر سلو زيات مصرف کاوه دا جواز نه لري بلکې په دريمه دې حج ورته وکړي د هر ځايه څخه چې حج په کېدی زيات حق نه لري.

که يې وصيت وکړی چې زما زر روپۍ فلاني سړي ته او مسکينانو ته ورکړه نو که تعين وکړي او که مطلق خبره وکړي درې اشخاص ورڅخه مراد کيږي او بل به حج ورته کوي که يې مال دوه زره وو نو به حج او تقسيم د مسکينانو د دغه دوه زره څخه وکړي که د حج روپۍ په کښې کمبدلې د مسکينانو د حصې څخه دې يې پوره کړي چې څونه زياتي سوې هغه دې پر مسکينانو تقسيم کړي که پر ميت فرضي او نذري حجونه وه او يا تړوله واجب وه يا نفلي وه او وصيت يې کړی وو چې زما پر ځای حجونه وکړئ نو لازمه وصي لره دا ده که د ميت دريمه حصه مال دېر وو تړوله په کيدله چې فرضي تر تړولو دمخه وکړي بيا واجب او نذري حج او که تړوله واجب وه بيا به هغه حج دمخه کوي چې ميت ورته فرمايلي وي او که زکاتونه سر سايې وغيره هم ورباندې وه حج دې اول وکړي قيل وايي بيا دې زکات ورکړي بيا دې کفارې ور اداء کړي بيا سر سايې بيا اختری بلکه بدائع چې ليکلي دې او دا قولونه د ابو يوسف او محمد رحمهما الله هم دي.

## فصل د ميت د مال څخه نفقه کيدل

المراد من النفقة ما يحتاج اليه من طعام و ادام و شراب و ثياب فی الطريق و مركوب و ثوبی احرام و استجار منزل و حمل و قربة و اداوة و سائر الالات و كذا دهن السراج و الادهان و ما يغسل به ثيابه و اجرة الحادس و الحلاق و دخول الحمام كل ذلك باالمعروف و له ان يخلط دراهم النفقة مع الرفقة و يودع المال ولا يصرف الدنانير الا لحاجة و ان كان له نقد و لا يروج فی الحج يصرفه بالذی يروج ولا يدعو الی طعامه ولا يتصدق و لا يقرض ولا يشتری ماء للوضوء ولا لغسل الجنابة بل يتيمم ولا يلحج ولا يتداوی و قيل له ان يفعل كل ما يفعله الحاج و ان وسع عليه الامر فله ان يفعل ذلك بلاخلاف و لا ينفق علی من يخدمه الا اذا كان ممن لايخدم نفسه و ينفق فی طريقه مقدار ما لا سرف فيه و لا تقيتير ذاهبا و جائيا الی بلد الميت و لو سلک طريقا ابعد من المعتاد ان كان يسلكه الحاج و كبغدادی ترک طريق الكوفة الی البصرة فنفقته فی مال الامر ولا يضمن لو هلكت والا ففی ماله و لو اقام ببلدة و ان كان لا نتظار القافلة فنفقته فی مال الميت سواء اقام خمسة عشر يوما او اقل او اكثر و ان اقام بعد خروج القافلة ففی ماله و كذا لو اقام بمكة بعد الفراغ للقافلة ففی مال الميت والا ففی ماله فان بداله ان يرجع رجعت نفقته فی مال الميت و ان توطن مكة ثم بدا له العود لا تعود و ان اقام اياما من غير نيته الاقامة ان كانت اقامة معتادة لم تسقط والا سقطت ولو تعجل الی مكة فهی فی ماله مسيرة سفر لحاجة نفسه سقطت

في رجوعه وما فضل من النفقة من الزاد و الا متعة بعد رجوعه يرده على الورثة او الوصي الا ان يتبرع الورثة او اوصى له به الميت فيكون له ولو شرط المامور ان يكون الفاضل له فالشرط باطل و يجب الرد و ينبغي للاخر ان يفوض الامر الى المامور فيقول حج عني كيف شئت مفردا او قارنا او متمتعا و وكلتك ان تهب الفضل من نفسک او تقبضه لنفسک فيهبه من نفسه فان كان على موت قال و الباقي لک وصية و ان لم يعين الامر رجلا يقول للوصي اعط ما بقي من النفقة من شئت و ان اطلق فقال و ما بقي من النفقة فهو للمامور فالوصية باطلة فان عين رجلا صح. متن و بعده ترجمه و شرح ملا علي القاري

هغه حاجي د بل پر ځای حج ته ولاړ سي د هغه په امر سره نو د مأمور نفقه به په ثونه اندازه او څرنګه کیږي نو مراد نفقې څخه چي مأمور حق لري هغه طعام دی چي په عرف کي خوړل کيږي لکه مثلا بنوروا او د څښلو اسباب او کالي او د لاري د سفر يې او دسپاري شی دی لکه رانيول يا کرايه کول يا د احرام دپاره کالي معنا لنګ او پټو يا د کوټې کرايه کول او باقي الات لکه د څراغ تيل يا غوړي او يا د کالو دپاره صابون يا بل شی يا مزدوري د پيره دار يا خادم د آس يا بل د سپاري د حيوان يا د سر خريلو يا د ځان پرېولو په حمام کي دا به تړله د عرف او اصطلاح په اندازه او د ميت په اجازه وي نه به ډېر اسراف او نه به ډېر نقصان په کښي کوي او الشمني ليکلي دي چي د حمام غسل او د څراغ تيل او د ځان غوړ او دواء او سر خريل او حجامت چي د روپو مصرف پر راځي نه په کښي داخليږي په نفقه کي مګر که ميت يا وارث د ميت اجازه ورکړه بيا جواز لري او په قاضي خان او المحيط کي راغلي دي چي د حمام روپۍ د هري زمانې د عرف په اندازه مصرف کولای سي لکه کرماني هم داسي حکم کړی دی او بعضو علماؤ ويلي دي چي د سر خريلو روپۍ هم د ميت د مال څخه مصرف کولای سي او نوازل فتاوا ليکلي دي چي د سر خريلو مزدوري هم د عرف په اندازه ورکولای سي.

مأمور په حج سره چي وي کولای سي چي د امير روپۍ د خپلو اندېوالانو د روپو سره ګډي کړي د خوراکي د مصرف دپاره چي د يوه شخص په لاس کي امانتي پرتې وي او د هغه څخه هغه مصرف کوي او که يې نغدي روپۍ ميت يا وصي د حج دپاره ورکړې او هغه کوټه (ناچله) سوې بيا به نوري روپۍ ورکوي چي حج د ميت دپاره په وکړي هر قسمه روپۍ چي د حج دپاره رواج وي.

مأمور حاجي به د ميت د مال څخه خيرات او د بل چا مېلمستيا او قرض نه کوي او نه به د اوداسه يا د جنابت د غسل دپاره اوبه په رانيسي بلکې که يې د ځانه څخه روپۍ نه درلودلې تيمم به وهي او حج او دوايي به هم د ميت په روپو نه کوي اګرچي قيل وايي د

عرف په اندازه دا تړوله مصرفونه کولای سي فقيه ابو الليث وايي چي نور حاجيان څه مصرف کوي په عرف کي دی بې هم کولای سي ذخيرة فتاوای دا غوره ګڼلي ده.

او که وصي د ميت امر ورته پرانخه کړی معنا اختيار بې ورکړی چي هر مصرف کوي کولای بې سي بيا ورته هر قسمه مصرف جواز لري بې له خلافه څخه او که بې خادم ته ضرورت وو خو مصرف بې کولای سي لکه سړی چي ډېر ضعيف وي او که بې ضرورت نه وو بيا د ده د خادم نفقه د ميت د مال څخه نه سي کولای او پر لاره به داسي مقدار کرايي مصرف کوي چي ډېر اسراف نه وي په کښي او نه هم ډېر نقصان وي بلکي ميانه حاله مصرف به کوي په تګ او راتګ کي او د لنډي لاري په وجه به مصرف هم نه ډېروي يا د ليري والی په وجه سره بلکي د عادت پر لاره به ځي کوم چي نور حاجيان ورباندي ځي لکه بغدادي چي د کوفې لاره پرېږدي پر بصرې ولاړ سي و بغداد ته د مامور حاجي نفقه پر امير ده که هلاک سوه ورڅخه مثلاً پيسې ورڅخه ورکي سوې يا کيسه برو يووړې نو د ميت د وارثانو څخه بې اخيستلای سي فتاوای قاضي خان ليکلي دي چي د ميت روپۍ ورڅخه ورکي سوې يا خلاصي سوې لو ده د خپل مال څخه مصرف وکړی بيا هم د ميت د وارثانو څخه بې عوض اخيستلای سي اګر کې بې له قضاد قاضي دا مصرف کړی وي او په بل صورت کي قاضي خان فرمايلي دي چي نه يې سي ورڅخه اخيستلای دا ده تبرع وکړه ابن الهمام د دواړو مسئلو توافق داسي کړی دی که لږ روپۍ ده د خپل ځانه څخه مصرف کړي وې د امير څخه يې نه سي اخيستلای او که يې ډيري مصرف کړي وې بيا يې ورڅخه اخيستلای سي انتهي.

که مامور ولاړی په يو بل ښار کي انتظار سو د خپل وطن حاجيانو ته خو زمانه هم د تللو وه حج ته هرڅونه عمر چي يې انتظار وکړی نفقه يې د ميت د مال څخه کيږي او که د ده د وطن حاجيان تللي وه او ده په بل ښار کي بې له ضرورته څخه شپې کولې بيا قاضي خان وايي د خپل ځان د روپو څخه دي مصرف کوي د ميت د روپو د مصرف جواز ورلره نسته همدغسي مسئله د هغه شخص په باره کي ده چي حج خلاص کړي او بې له ضرورته په مکه کي شپې کوي او که د خپلو انډيوالانو د قافلې يا طيارې په انتظار کي وو بيا د ميت د مال څخه به مصرف کوي.

او که چيري مامور دا قصد وکړی چي د مکې څخه نه ځمه او څه موده پس بې بيرته اراده وکړه چي خپل وطن ته ولاړ سم نو حساب دي وکړي څونه شپې چي بې په مکه کي په دغه نيت سره تيري کړي وي د هغو مصرف به د خپل ماله څخه کوي او يا د لاري مصرف به د ميت د مال څخه وکړي او دا ظاهره روايت دی خو ياد لره دا هلته دا حکم دی چي دی د ځان دپاره د سکونت ځای پيدا نه کړي او که بې د سکونت ځای نيولی وو بيا د راتګ

مصرف هم د ده د مال څخه کیږي نه د میت بې له خلافه څخه کما في البدائع و شرح الکنز.
او که یو څو ورځې د عادت موافق په مکه کې یې شپې وکړې پروا نه لري او که تر عادت زیاتي وې بیا به د خپل ځان د روپو څخه مصرف کوي او که د حج ترموسم دمخه ولاړی او یا یې د ځان دپاره یو کار په کښې کوی د میت د روپو څخه به د نفقې مصرف نه کوي او هرکله چې د حج څخه راغلی هرڅه شی معنا سامانونه یا کالي وغیره به د میت وارثانو ته ور تسلیموي او که مامور دا شرط اینبی وو چې زیاتی سامان چې پاته سو هغه زما دی دا شرط باطل دی لهذا دا شیان وارثانو ته ورکول واجب عمل دی لکه په خزانة الاکمل کي چې راغلي دي.
امیر یا میت لره دا مناسب ده چې مامور ته اختیار ورکړي چې هر قسمه حج کوي ستا خوښه ده مفرد قِران یا تمتع حج او که یې داسي ورته وویل چې ته زما د طرفه څخه وکیل یې چې هر څه زیات سوه هغه هبه او خیرات کړه پر ځان یا پر بل چا بیا ده ته هم جواز لري او که یې خپل وصي ته میت وویل چې هغه زیات خیرات کړه بیا نو مامور نه سي کولای چې تصرف په کښې وکړي او که یې داسي وویل چې زیاتي د مامور دي بیا یې وصیت باطل دی.

## ۱: فصل د مامور حاجي څخه به زیاتی مال واخلي

و لو وصی المیت او وارثه ان یسترد المال من المامور ما لم یحرم ثم ان رده لخیانة منه لنفقة الرجوع فی ماله و ان رده بلا خیانة ففی مال الوصی و ان رده لضعف او جهل بامور المناسک و رای غیره اصلح مال المیت.

## ۲: فصل که مامور وویل ما قبول نه دی کړی

و لو قال المامور منعت من الحج و کذبه الوارث او الوصی لا یصدق و یضمن الا ان یکون امرا ظاهرا یشهد علی صدقة و لو قال حججت و کذبوه فالقول للمامور مع یمینه و لا تقبل بینة الوارث او الوصی انه کان یوم النحر بالبلد الا ان یقیما علی اقراره.
متن و بعده شرح و ترجمه
۱: د میت وصي او وارث لره دا حق سته چې د مامور حاجي څخه د حج روپۍ واخلي ترڅو چې ده احرام نه وي تړلی او یا یې حج نه وي کړی دا په هغه صورت کې چې وصي یا وارث یو کس ته روپۍ ورکړي چې د دغه شخص دپاره حج وکړه او په الکبیر کتاب کي راغلي دي که یو کس مثلا زر روپۍ درلودلې نور یې هیڅ نه درلودل دا روپۍ یې یو کس ته ورکړې چې زما دپاره حج وکړه هغه کس روپۍ واخیستلې باره هغه امیر مړ سو نو د میت وارثان کولای سي چې دا روپۍ د دغه سړي څخه واخلي او که یې د هغه تر

مرګ بعد مصرف کړي عوض به يې وارثانو ته ورکوي.

ارشاد الساري يې دليل دا ويلی دی چې د ميت خو دغه ټوله مال وو لهذا د ده وصيت په ټوله مال کي باطل دی ځکه وارثان حق لري چې ور څخه وا يې خلي انتهی په خزانة الاکمل کي راغلي دي چې يو کس و يو بل کس ته د حج د کولو دپاره روپی ورکړې او هغه هم احرام وتړی بيا جواز نه لري چې خپلي روپی ور څخه واخلي او که يې حج ادا کړئ هم يې تر هغه وخته پوري نه سي ور څخه اخيستلای ترڅو پوري چې خپل کور ته رسېدلی نه وي او که مامور اراده د احرام درلودل امير ورته وويل زما روپی راکړه ور څخه اخيستلای يې سي او که يې خيانت وکړی په لاره کي يې روپی ور څخه واخيستلې حق نه لري او که يې له خيانته يې ور څخه واخيستلې بيا تر کوره د کرايې او نفقي حق لري او که يې د ده د ضعف يا جهل په وجه وصي روپی ور څخه واخيستلې او بل عالم سړي ته يې ورکړې بيا هم تر کوره پوري د ده رسول به د ميت د مال څخه کيږي او که مامور حاجي تر احرام بعد وطي وکړي د ميت وصي کولای سي چې روپی ټولي ور څخه واخلي ځکه دی خو په صحيح احرام سره امر سوی وو او هغه ده و نه کړه.

۲: د دويم فصل ژباړه دا ده که مامور حاجي د لاري څخه راوګرځيدی وې ويل چې زه خو د حج د تلو څخه بند سوم او د ميت وارثانو ورته وويل چې درواغ وايې نو مامور به د وارثانو د روپو تاوان ورکوي که يې ظاهره دليل نه درلودی او که شاهدان يې تېر کړه بيا نو د تاوان حق نه لري.

او که مامور وويل چې ما خو حج وکړی وارثانو يا وصي ورته وويل تا حج نه دی کړی درواغ وايې بيا نو د مامور قول معتبر دی خو قسم به اخلي د وارثانو او وصي و شاهدانو ته اعتبار نسته ارشاد الساري وايې چې دا خو شاهدي پر نفي ده او شاهدي پر نه کولو د حج دا باطله شاهدي ده ځکه د شاهدانو مقصود خو نفي ده د حج څخه اګر که يې صورت د ثبوت دی والله اعلم تعليق الشيخ عبدالحق.

او په دغه صورت کي بيا د وارثانو شاهدي معتبر ده چې مامور په خپله اقرار کړی دی چې زه حج ته نه يم تللی په دغه کال کي او يا مامور د ميت پوروړی وو هغه ورته ويلي وه چې په دغه روپو زما دپاره حج وکړه او ده وارثانو ته وويل چې ما حج کړی دی او وارثانو ورته وويل چې هغه پور راکړه بيا هم د وارثانو شاهدان معتبر دي خزانة الاکمل هم دغسي حکم کړی دی.

## فصل د بل د حج د دم متعلق بيان

جميع الدماء المتعلقة بالحج والاحرام على المامور الا دم الاحصار خاصة فانه في

مال الامر حتى لو امره بالقران او التمتع فالدم على المامور فاذا حصر يبعث الوصي الهدي من مال الميت ليحل به و يرد ما بقى من النفقة ليحج من حيث يبلغ.

متن و بعده شرح ملا علي القاري

ټوله هغه دمونه چي تر حجه پوري تعلق لري او تر احرامه پوري تعلق لري د يو ممنوع عمل په وجه سره لکه ښکار يا خوشبويي يا خريل د سر يا وطي کول وغيره دا ټوله پر مامور کيږي په اتفاق سره د علماوُ ځکه د ده ځخه خرابي پيښه ده اگر که د شکريې قرباني حلالوي هم پر ده ده او که د احصار دم وو چي پر لاره د حج د کولو ځخه منع سو او دم يې وليږی حرم ته هلته حلال سو د دلته ځان حلال کړی دا به د ميت د مال ځخه وي دا د امام اعظم رحمه الله او محمد رحمه الله مذهب دی او قاضي خان هم په شرحي د جامع کي دغسي بيان کړی دی او که امير د حج قِران يا تمتع حج امر ورته وکړی بياهم د شکريې دم پر مامور دی ځکه دا د ده شکريه ده ځکه ده دوه افعاله د حج عمره او حج سره جمع کړه او که پر لاره بند سو وصي د ميت به هديه و حرم ته ليږي چي مامور د حج ځان حلال کړي اوس دلته دا مسئله ده چي يا به يې د دريمي ځخه ليږي يا د ټوله مال ځخه د ميت او هغه باقي روپۍ چي د حج پاته سوې چي اوس مامور ورځخه منع سو په هغه روپو به د هغه ځايه ځخه سړی بل کال ليږي وصي چي حج په کېدای سي دا په هغه صورت کي چي ميت مال معلوم کړی وي د حج دپاره او که يې نه وو معلوم کړی بيا د دغه حکم بيان تېر سوی دی.

## فصل د مامور حج د امير فرضي حج گرځي

اعلم انه اذا حج المامور فاصل الحج يقع عن الامر و قيل يقع عن المامور نفلا و للامر ثواب النفقة و يسقط عن الامر الفرض بالاجماع ولا يسقط به عن المامور فرض الحج بالاجماع سواء اداه على الموافقة او المخالفة وسواء كان عليه الحج او لم يكن و في حج النفل يقع عن المامور اتفاقا و للامر الثواب.

متن و بعده ترجمه و شرح ملا علي القاري

که يو کس بل سړی د ځان د حج دپاره وليږی نو د مامور حج دپاره د امير گرځي او دا ظاهره مذهب دی په مبسوط کي او شمس الائمة السرخسي هم مختاره کړی دی او حديث او اثار هم پر دغه دليل دي او قاضي خان ورته صحيح هم ويلي دي او تائيد يې نورو فرعي مسائلو هم کړی دی لکه نيت چي يې د امير دپاره شرط دی او جامع مستحب دا بللې ده چي تلبيه به د امير پر نيت وايي ليکن قيل ويلي دي چي دا حج د مامور دپاره دی نفلي نه فرضي ځکه په اجماع سره ثابته ده چي د مامور فرضي حج نه په ادا کيږي او امير لره يې ثواب د نفقې او خرڅ دی لکه د محمد رحمه الله ځخه چي دغسي روايت سوی دی او مثل د

دغه د امام اعظم او ابو یوسف رحمهما الله څخه هم روایت سوی دی او متاخیرینو علماؤ اجماع
هم پر دغه کړی ده چي د هغو څخه صدر الاسلام او شیخ الاسلام او ابوبکر الاسبیجابي دی
او شیخ الاسلام ویلي دي چي زموږ احناف پر دغه مسئله او اصل دي چي حج د مامور دپاره
دی د الشیخ الاسلام الامام ابوبکر محمد بن الفضل څخه پوښتنه وسوه ده وویل چي د دې
مسئلې علم د خدایه سره دی لکه د محمد رحمه الله چي یو قول همدا دی.

او د امیر څخه فرضي حج ساقطیږي په اجماع سره د علماؤ لکه الکافي چي تصریح
په دغه عبارت کړې ده او د مامور فرضي حج نه په ساقطیږي په اجماع سره د علماؤ برابره
خبره ده چي مامور یې د امیر په موافقت سره ادا کړي او که مخالفت ور څخه وکړي او علاوه
دا ده چي پر مامور فرضي حج لاهم وي هم په دغه حج سره د مامور فرضي حج نه ادا کیږي
او یا وروباندي فرض نه یې او که یو څوک د خپل والدینو دپاره ولاړ ی او پر ده فرض نه وو
نو د کونکي څخه فرضي حج نه ساقطیږي.

دا تېر اختلاف په فرضي حج کي دی او که یو سړي د بل پر ځای د نفلي حج دپاره
ولاړ نو دا حج په اتفاق سره د علماؤ د مامور حج دی ځکه حدیث خو په فرضي حج کي
وارد دی چي د بل پر ځای صحت نه لري د نفلي و امیر لره ثواب د هغه مصرف او نفقې دي
چي مامور یې بیت الله ته رسولی دی الشیخ محمد القهستاني په شرح النقایه کي لیکلي
دي چي په نفلي حج کي ثواب د نفقې د امیر دی په اتفاق سره د علماؤ او د نفلي حج ثواب د
مامور دی نو مامور به د دغه نفلي حج ثواب و امیر ته وبخښي والله اعلم.

که یو کس مړ سو حج پر فرض سوی وو او وصیت یې هم و نه کړی نو پر وارث یې
حج کول لازم نه دی ابن الهمام وایي که یې وکړی نو ډېر مستحب کار دی نهایتي او که
وارث یا اجنبي حج ورته وکړی جواز لري د میت څخه فرض ساقط سو د غاړي څخه یې او
که چا د والدینو دپاره نفلي حج کوی چي پوره یې کړی ثواب دي ور وبخښي دواړو یا یوه
ته الخ.

## باب العمرة

العمرة سنة موكدة لمن استطاع و شرائط الاستطاعة ما مر فى الحك و احكام
احرامها كاحكام احرام الحج من جميع الوجوه و كذا حكم فرائضها و واجباتها و سننتها و
محرماتها و مفسدها و مكروهاتها و احصارها و جمعها و اضافتها و رفضها كحكمها فى
الحج و هى لا تخالف الحج الا فى امور الاولى منها انها ليست بفرض الثانى انه ليس لها
وقت معين بل جميع السنة وقت لها الا انها تكره فى خمسة ايام يوم عرفة و يوم النحر و ايام
التشريق مع الصحة الثالث انها لا تفوت الرابع ليس فيها وقوف بعرفة و لا مزدلفة و لا رمى

و لا جمع و لا خطبة الخامس ليس لها طواف القدوم السادس لايجب بعدها طواف الصدر السابع لايجب بدنة بافسارها بل تجب شاة الثامن عدم وجوب البدنة بطوافها جنبا او حائضا او نفساء التاسع ان ميقاتها الحل لجميع الناس بخلاف الحج فان ميقاتها لاهل مكة الحرم العاشر انه يقطع التلبية عند الشروع فی طوافها الحادی عشر انه لا مدخل للصدقة بالجنابة فی طوافها و اما فرائضها فالطواف و النية و الاحرام و واجباتها السعی و الحلق او التقصير و مواصفتها فهی ان يحرم بها من الحل كاحرام الحج و يتقی فيه ما تبقی فی الحج فاذا دخل مكة بداء بالمسجد و طاف برمل و اضطباع وقطع التلبية عند اول استلام الحجر و طاف سبعة اشواط و اكثره وهو اربعة منها ككله فی حق التحلل و امن الفساد ثم صلی ركعتيه و خرج للسعی فسعی كالحج ثم حلق و حل.

متن و بعده ترجمه و شرح علي القاري

چونكي عمره حج اصغر دی نسبت و حج اكبر ته او دلته مستقله رساله ورته جوړه سوه چي نوم يې ملا علي القاري رحمه الله په بالحظ الافر في الحج الاكبر ايښی دی پر مختاره مذهب باندي عمره سنت مؤكد ده او قيل وايي واجب ده او المحبوبي وايي چي تصحيح يې قاضي خان كړې ده او بدائع ورباندي يقين كړی دی چي عمره واجب ده لكه سرسايه او اختری او وتر او بعضي علماؤ چي ورته سنت ويلي دي په دې بنا چي ثبوت يې په سنت حديث سره سوی دی او بعضي احنافو ورته فرض كفايي ويلي دي لكه محمد بن الفضل د بخاري ليكن نه مطلق بلكې د هغه چا دپاره چي طاقت يې ولري لكه د حج په بيان كي يې طاقت تېر سو ځكه شرطونه د طاقت د وجوب يا د وجود يا د سنت كېدو ځكه سنت تبعه د فرضو دی په ډېرو احكامو كي داسي دی لكه د حج دمثال په ډول ممنوعات يې مثل د حج دي فرائض او واجبات او سنتيات او محرمات او مفسدات او مكروهات او احصار او منع او د بل چا دپاره كول يې او ماتول يې په غالبه احكامو كي د حج دي تېوله بيانونه تېر سوي دي صرف د حج د احكامو څخه په يولسو ۱۱ عملو كي مخالفت لري:

۱: اول حكم يې دا دی چي عمره فرض نه ده او حج فرض دی په خلاف د شافعي رحمه الله.

۲: دويم د عمرې وخت د اختر او عرفې او درې ورځي تر اختر بعد چي د تشريق ورځي ته وايي ماسوا په ټوله كال كي كيدای سي دا يې وخت دی تعين نه لري په اتفاق سره د علماؤ او په دغه پنځو ورځو كي صحت لري ليكن كول يې مكروه دی په ظاهره روايت كي.

۳: دريم عمره نه قضا كيږي حج قضا كيږي.

۴: څلورم په عمره کي د عرفات د مزدلفې درېدل نسته او نه د جمعې لمونځونه سته لکه د عرفات او مزدلفې او نه د څلو ويشتل په کښې دی نه په ورځ نه په شپه کي نه خطبه په کښې سته په خلاف د حج چي دا ټول په کښې لازم دي.

۵: پنځم په عمرې کي طواف قدوم نسته اگر که افاقي سړی وي سنت نه دی ورلره لکه په حج کي چي وو.

۶: شپږم تر عمرې بعد طواف رخصت نسته لکه په حج کي چي وو اگر که سړی افاقي وي او اراده د سفر لري دا ظاهره روايت دی حسن بن زياد يې واجب بولي.

۷: اووم د عمرې په فاسدولو کي اوښ نه لازمېږي لکه په حج کي چي عرفات دمخه يې وطي کړې وي پسه پر لازمېدی او بعد تر عرفات چي يې وطي کړې وای اوښ پر لازمېدی بلکې د عمرې په فاسد کېدو سره پسه پر لازمېږي که يې وطي تر طواف د عمرې دمخه وکړې تر ټوله طواف يا تر اکثره طواف او که يې تر اکثره طواف دمخه يا بعد تر سعي د صفا دمخه يا بعد وطي وکړي تر سر خريلو دمخه بيا نو عمره نه فاسد يږي او پسه پر لازم دی او که چا عمره فاسده کړه دغه به پوره کوي او قضا به يې په نوي احرام سره کوي.

۸: اتم که يې د عمرې طواف په جنايت يا حيض يا نفاس کي وکړی اوښ نه پر لازمېږي بلکې پسه پر لازمېږي.

۹: نهم د عمرې ميقات د حل مځکه ده مکي او افاقي دواړو لره او په حج کي ميقات حرم دی مکي خلقو لره.

۱۰: لسم د عمرې تلبيه به هلته پرېږدي چي په طواف يې شروع وکړه په اصح روايت کي په خلاف د حج ده هغه به تلبيه هلته پرېږدي چي اول د شيطان څلي وولي مفرد او قارن حاجي.

۱۱: يولسم د عمرې په جنايت کي خيرات نسته چي په طواف کي ورځخه وسي او د حج په طواف کي وو.

د عمرې فرض ۱: اول طواف دی، ۲: نيت، ۳: احرام او تلبيه ده لکه په احرام د حج کي او رکن د عمرې طواف دی احرام يې د صحت دپاره شرط دی نه رکن دا اصح مذهب دی او قيل وايي چي احرام رکن دی او د عمرې واجبات د صفا او مروا سعيه ده او سر خريل دی يا لنډول دی تر عمرې بعد او تر طواف بعد هم صحت لري سر خريل علاوه دا ده چي سر خريل يا لنډول د عمرې د وتلو شرط دی لکه په حج کي او د طواف دمخه کول پر سعي په عمره کي شرط دی په اتفاق سره طريقه د عمرې د کولو دا ده چي احرام د حل د مځکي څخه وتړي خو سنت او ادب به يې د حج د احرام پر طريقه وي بلا فرقه صرف په نيت کي فرق لري او بل

به داسي ځان د ممنوعاتو څخه ساتي لکه د حج په احرام کي چي يې ساتي هركله چي و مسجد حرم ته د مکي ور داخل سو نو به پر باب السلام دي ور داخل سي چي فضيلت هم دغه لري او قيل وايي د باب ابراهيم څخه ور داخل سي او يا به د باب العمرې څخه ور داخل سي څکه دا ور نږدې دی او طواف به کوي په درې اولو شوطو کي به اوږې ښوروي او پټو به تر راسته وږه لاندي پر چپه وږه سر ببره واړوي چي په عربي کي ورته اضطباع وايي هرکله چي يې د حجر اسود څخه د طواف او نيت شروع کوله تلبيه به پرېږدي اووه شوطونه به کوي چي څلور يې فرض او درې يې واجب دي او اکثره يې حکم د ټول طواف لري په حق د حلالولو کي لکه سر خريل يا لنډول ليکن حرام کار دی او د فساد مسئله يې تر اکثره طواف دمخه په وطيو سره راځي چي عمره خلاصه سوه معنا طوافونه يې خلاص سوه دوه رکعته لمونځ دي وکړي او دا لمونځ زموږ پر مذهب واجب دی باره به و صفا ته ووزي سعيه به وکړي پر باب صفا به ورسي داسي طريقه ده لکه د حج په بيان کي چي تېره سوه باره به سر وخريي يا به يې لنډ کړي ځان به حلال کړي.

## فصل د عمرې وخت او زمانه

وقت العمرة السنة كلها وقت لها الا انه يكره تحريما انشاء احرامها فى الايام الخمسة و ان اداها باحرام سابق لا بأس و يستحب ان يوخر حتى تمضى الايام ثم يفعلها ولو اهل فيها بها ولو بعد الحلق من الحج يؤمر برفضها فان لم يرفضها و مضى فيها صح و لا دم عليه لانه لم يقع له ادخال عمرة على حجة و يكره فعلها فى اشهر الحج لاهل مكة و من بمعنا هم و افضل اوقاتها شهر رمضان فعمرة فيه تعدل حجة و لو اعتمر فى شعبان واكملها فى رمضان ولا يكره الاكثار منها بل يستحب و افضل مواقيتها لمن بمكة التنعيم و الجعرانيه.

متن و بعده ترجمه و بعده شرح ملا علي القاري

د عمرې وخت او زمانه ټوله کال دی د کال په هر وخت کي کيږي ليکن پنځه شپې ورځي وتلي دي چي د عرفې او اختر او درې ورځي تر اختر بعد دي چي په دغه ورځو کي عمره کول حرام عمل دی لکه د حرمت قول چي ابن الهمام کړی او صاحب د هدايې ورته اشاره کړې ده او که يې په دغه ورځو کي عمره وکړه صحت لري خو حرمت يې سته لکه مثلاً يو کس تر دغه پنځو ورځو دمخکي احرام د عمرې دپاره تړلی وي او بيا په دغه پنځو ورځو کي يې عمره وکړه غاړه يې خلاصه ده ليکن حرمت ورسره ملګری دی علاوه دا ده داسي شخص ته مستحب دا ده چي د عمرې اداء تر دغه پنځو ورځو وځنډوي.

او که يو شخص په دغه پنځو ورځو کي د عمرې احرام وتړی ماتول يې لازمي کار

دی اگرچې سر يې خريلې وي باره د عمرې احرام وتړي ځکه يې ماتول د احرام په کار دی چې اوس لا هم يو څه افعال د حج پاته دي او که يې احرام مات نه کړی او عمره يې پوره کړه صحت خو لري او دم نه پر لازمیږي ځکه دلته خو ده عمره په حج کې نه ده ورګډه کړې لهذه پوره کول يې نقصان نه لري او بل عمره کول مکروه ده مکي خلقو ته د حج په میاشتو کې او هغه څوک هم په مکي خلقو کې داخل دی چې حرم ته نږدې وي لکه د میقاتو څخه د مکې طرف ته داخل خلق ځکه که عمره وکړي غالبه دا ده چې حج هم په دغه میاشتو کې وکړي نو حج يې تمتع ګرځي او حال دا دی چې د مکي او چاپېره خلق د تمتع څخه منع دي او که چیرې دا خطر نه وي بیا خو مکي سړی هم په هر وخت کې او په دغه میاشتو کې هم عمره کولای سي که څوک بل دلیل لري بیان دې يې کړي دا يې ځای دی.

بهترین وخت په وختو کې د عمرې دپاره د روژې میاشت ده ورځ وي که شپه نو په دغه مبارکه میاشت کې عمره د حج برابر ثواب لري لکه په حدیث شریف کې همدغسې راغلي دي اوس دلته سوال دا پیدا کیږي چې دا عمره چې د حج برابر ثواب لري په روژه کې آیا د آفاقي خلقو دپاره که مکي هم په کښې داخل دی نو ملا علي القاري رحمه الله ارشاد الساري وايي په شرحه د مشکوة کې چې مرقات دی داسې لیکلي دي چې دا ثواب او د حج برابري د افاقي سړي دپاره ده الخ.

او که يو شخص په برات کې چې د شعبان میاشت ده احرام د عمرې وتړی او عمره يې په روژه کې پوره کړه نو که يې اکثره طوافونه په برات کې کړي وه دا په روژه کې نه ده داخل او که اکثره يا ټول طوافونه يې په روژه کې وکړه بیا نو دا عمره په روژه کې داخل سوه د عمرې کول په یوه کال هرڅونه چې کوي کراهت په کښې نسته علاوه دا ده چې جمهور علماء وايي چې په یوه کال کې هر څونه چې ډيرې وکړي مستحب کار دی په روایت کې راغلي دي چې درې عمرې د حج برابر ثواب لري او په بل روایت کې راغلي دي چې دوې عمرې د حج برابر ثواب لري.

او بهترین میقات چې د عمرې احرام ورڅخه تړل کیږي مسجد تنعیم دی یا جعرانیه ده او زمونږ پر مذهب د تنعیم څخه د عمرې احرام تړل ډېره بهتري او فضیلت لري ځکه د دغه میقات ثبوت په دلیل ثابت داسې دی چې نبي عليه السلام و حضرت بي بي عائشې رضي الله تعالی عنها ته قولي حدیث سره امر کړی دی چې د تنعیم څخه احرام د عمرې وتړه او عمره پوره کړه لکه په بخاري کې چې راغلي دي دا حدیث.

بیا تر تنعیم بعد فضیلت جعرانه لري چې عمره ورڅخه راوړي ځکه نبي عليه السلام پخپله د جعرانې څخه راوړې ده لهذا شافعي رحمه الله همدغه دلیل د فضیلت د عمرې بولي

چې د جعرانې څخه يې راوړي موږ ورته وايو چې قولي حديث پر فعلي قوي دى ځکه په فعلي حديث کې توهم د دغه سته چې خاص به وي په نبي ﷺ پورې.

## باب که سړي حج يا عمره پر ځان نذر کړل

النذر بالحج و العمرة وهو صريح و كناية اذ قال لله على حجة او قال على حجة يلزمه الوفاء كان النذر مطلقا او معلقا بشرط بان قال ان قدم غائبي او ان شفى الله مريضى فعلى حجة مثلا او عمرة لزمه ما عين لكن لزومه عند وجود الشرط ولو قال ان دخلت فانا احج يلزمه ولو قال انا احج لا حج عليه و من نذر مائة حجة او اكثر او اقل يلزمه كلها و عليه ان يحج بنفسه قدر ما عاش و يجب الايصاء بالبقية و ان شاء احج فى كل سنة حجة او اكثر و لكن كلما عاش الناذر بعد ذلک سنة بطلت منها حجة فعليه ان يحجها بنفسه و ان لم يحج لزمه الايصاء بقدر ما عاش من بعد الا حجاج ولو قال لله على عشر حجج فى السنة لزمه عشر فى عشر سنين ولو قال لله على ان احج فى سنة كذا فحج قبلها جاز و لو لم يحج و مات قبلها لا يلزمه شئ و لو قال ان كلمت فلانا فعلى حجة او على حجة اليوم لا يصير محرما بها بل لزمته ان يفعلها متى شاء ولو قال انا محرم بحجة مهل بعمرة ان فعلت كذا صح و يلزمه ان فعله و لو قال على حجة ان شئت انت ايها المخاطب فقال شئت لزمته حجة و كذا لو قال ان شاء فلان فشاء لزمته حجة و لا تقصر مشيئة فلان على مجلس بلوغه الخبر ولو قال انا محرم بحجة ان فعلت كذا ففعل لزمته حجة و كذا لو ذكر العمرة ولم يصر محرما ما لم يحرم ولو قال ان لبست من غزلک فانا احج لزمه ولو قال على ان احج على جمل فلان او بمال فلان لزمه و لغت الزيادة ولو علق الحج بشرط ثم علقه و وجد الشرطان يكفيه حجة واحدة اذا قال فى اليمين الثانية فعلى ذلک الحج ولو قال على حجة الاسلام مرتين لا يلزمه شئ ولو قال فى النذر متصلا ان شاء الله تعالى لا يلزمه شئ فى جميع الصور.

متن و بعده ترجمه و شرح علي القاري

که يو کس پر ځان حج يا عمره نذر کړی نو نذر پر دوه قسمه دی يو صريحي چې بيان وکړي او بل کنايي چې د ده د قول نوري معناوي هم کېدای سي لکه يو سړیووايي پر ما لازم دی د الله دپاره حج کول او يا ووايي پر ما لازم دی حج کول د الله نوم يې وانه خيستی په دغه صورتو کي حج وربانديي لازم دی او پر خپله وعده به وفا کوي اوس يو قسم نذر مطلق وي چې په بل شي پوري يې تعلق نه يې ورکړی لکه عبارت يې تېر سو او بل قسم نذر معلق دی په يو شرط پوري چې داسي ووايي که فلاني سړي د سفر څخه راورسېدی او يا زما مريض خدای (ج) جوړ کړی نو پر ما حج او يا عمره لازم ده نو پر ده په هغه تعين

سوي عمل که حج وي که عمره وي عمره پر لازم ده ليکن لزوم يې هغه وخت وربانديې کيږي چې شرط يې پوره سي معنا هغه معلق کار يې وسي د ده لکه يو کس چې داسي ووايي که ما مثلاً لس خرواره غنم واخيستل حج راباندي نذر دی او ده هم لس خرواره غنم واخيستل حج پر لازم دی اوس بله چاره نه لري چې وې نه کړي او د روژې کفاره هم جواز نه لري چې ور يې کړي مثلا درې روژې ونيسي دا جواز نه لري د امام اعظم رحمه الله پر ظاهره روايت د مذهب باندي.

که يو شخص خپل فرضي حج کړی وو او داسي عبارت يې ووېل چې تېر سو نو ظاهره ده چې نذري حج پر لازم دی او که چيري ده فرضي حج نه وو کړی بيا د ده نيت ته کتل غوليږي که يې فرضي حج مراد وو نو دغه دی او که يې د فرضي څخه ماسوا بل حج مراد وو بيا نو دوه پر لازم دي يو حجتا لاسلام بل نذري حج او که يو سړی ووايي که زه دا سرای ته ور داخل سوم پر ما حج لازم دی نو که ور داخل سو حج پر لازم دی او که يو کس پر ځان سل يا زيات او يا کم حجونه نذر کړه تو له پر لازميږي پر ده لازمه ده چې په خپله به دا حجونه کوي ترڅو چې ژوندی وي او که وفات کېدی وصيت به کوي د هغه قدر چې ورڅخه پاته سوي دي دا مسئله او حکم په العيون او قاضي خان او السراجية کي په تصريح سره راغلي دي او نوازل فتاوا وايي چې دا حکم مذهب د امام اعظم رحمه الله او ابو يوسف رحمه الله دی او محمد رحمه الله وايي څونه کلونه چې ژوندی وو په هغه حساب سره د ده د ژوند د کلو پر لازم دي او ابن الهمام وايي چې تو له پر لازم دي.

اوس نو د ده خوښه ده که هر کال ځي يو يو حج پخپله کوي لو که خير ته تلوار کوي نو لاره يې دا ده چې سل کسان په يوه کال حج ته بوزي تلوار به پر نيکۍ راسي اوس نو د ده ژوند ته هم کتل کيږي هر کال به دی هم ځي څکه دليل دا دی چې دی پخپله تلای سي نو د بل حج د ده دپاره اعتبار نه لري لهذا د ده د هر کال د حج په موسم کي د هغه سلو کسانو د حجو څخه يو يو باطليږي ولي چې پخپله قدرت لري.

او که يو کس داسي ووايي چې پر ما سږ کال دېرش حجونه نذر دي تو له پر نذر کيږي پر مذهب د امام اعظم رحمه الله او که داسي ووايي چې دريم حج پر ده نذر دی ليکن ده په دويم کال تر دريم کال دمخه وکړی جواز لري پر مذهب د ابو يوسف رحمه الله چې غوره مذهب دی او که تر دريم کال دمخه مړ سو حج يې هم و نه کړی هيڅ نه پر لازميږي الخ لو که يې ووېل که دا کار زما وسو نو زه د حج او عمرې احرام بنده يم نو که هغه کار يې وسو دواړه پر لازميږي او که يې يو چا ته ووېل که ستا خوښه وي پر ده حج نذر دی او يا داسي ووېل که د فلاني کس خوښه وه پر ده حج نذر دی نو که هغه ورته ووېل چې زما خوښه ده حج پر

لازمیږي.

که یې حج یو وار په یو شي پوري بیا په بل شي پوري معلق کړی او دواړه کاروند یې وسوه حج پر لازم دی او که یې وویل چي د فلاني پر اوښ یا د فلاني په روپو پر ده حج نذر دی نو پر ده اوس نذر سو هغه زیاتي خبري یې زیاتي او لغوه سوې.

او که یې د نذر کولو سره متصل انشاءالله تعالی وویل بیا په ټېرو ټولو مسئلو کي حج نه پر نذر کیږي والله اعلم و اتم و انا احقر العباد محمد جمعه خادم الحدیث نقشبندي قادري عفي عنه الباري.

## فصل پر پښو تلل نذر کول و کعبې ته

و اذا قال علی المشی الی بیت الله او الکعبة او مکة او زیادة البیت او علقه بشرط اولا بل حلف بحجة او عمرة و هو فی الکعبة اولا او قال علی احرام فعلیه حجة او عمرة ما شیا و البیان الیه و لو قال علی المشی او الذهاب او الخروج او السفر او الاتیان او الرکوب لو الشد او الهروته الی الحرم او المسجد الحرام او الصفا او المروة لو مقام ابراهیم او الحجر الاسود او الرکن او استار الکعبة او بابها او میزابها او الحجر او عرفات او مزدلفة او اسطوانة البیت او زمزم او مسجد رسول الله او بیت المقدس او مسجد اخر و لا یلزمه شئ فی جمیع الصور و لو قال علی المشی ثلاثین شهرا او احد و عشرین شهرا او عشرة اشهر او عشرة ایام او احد عشر یوما فعلیه عمرة و قیل ثلاثین شهرا انه علیه الحج ولو نذر المشی الی بیت الله تعالی و نوی مسجد المدینة او بیت المقدس او مسجد اخر لا یلزمه شئ و ان لم تکن له نیته فعلی المسجد الحرام فیلزمه حجة او عمرة ولو حلف بالمشی الی بیت الله تعالی ثم حنث ثم حلف به ثم حنث یجعل احدهما حجة و الاخر عمرة و یمشی لکل واحد من مکان الحلف ولو حلف ان یهدی بفلان علی اشفار عینیه الی بیت الله تعالی او احجه علی عنقی ومن جعل علی نفسه ان یحج ما شیا فانه لا یرکب حتی یطوف طواف الزیارة و فی العمرة حتی یحلق ومحل ابتداء المشی من بیته سواء احرم منه اولا و لو رکب فی کل طریق او اکثره بعذر او بلاعذر فعلیه دم و ان رکب فی الاقل تصدق بقدره من قیمة الشاة.

متن و بعده شرح علي القاري

که یو کس وویل پر ما لازم دی چي بیت الله یا کعبې یا مکې یا زیارت ته د بیت الله او یا یې تعلق تر یوه کاره پوري ورکړی که زما مسافر راغلی او یا زما مریض جوړ سو او یا یې قسم واخیستی چي زه حج یا عمره کومه او دی په کعبې کي وو یا د خارج د کعبې څخه وو او یا یې وویل پر ما لازم احرام تړل دی په دغه ټوله صورتو کي حج یا عمره پر لازم ده خو تعین به دی پخپله کوي چي حج زما مراد وو یا مي عمره مراد وه او که یې داسي وویل چي

پر پياده تلل يا تګ يا راتګ دی يا وتل دی يا سفر دی يا سپرتيا ده يا تلل دي يا ځغستا ده و حرم ته يا و مسجد حرم ته يا صفا او مروا ته يا مقام ابراهيم ته يا حجر اسود ته يا رکن يماني ته يا پردو ته د کعبې شريفې يا دروازې ته يا ناوې ته چې ميزاب ورته وايي په عربي کې يا حطيم ته يا عرفات ته يا مزدلفې ته يا منا ته او يا د بيت الله ستونونو ته يا د زمزم اوبو ته يا مسجد ته د رسول الله ﷺ يا بيت المقدس ته يا و بل مسجد ته لکه مسجد خيف وغيره په دغه ټوله صورتو کې هيڅ نه پر لازميږي اګرچې په بعضو کې خلاف سته.

د مثال په ډول که يو شخص وويل چې پر ما پياده تلل حرم ته يا مسجد ته لازم دي نو د امام اعظم رحمه الله پر مذهب هيڅ نه پر لازميږي او د ابو يوسف او محمد رحمه الله پر مذهب حج يا عمره پر لازميږي د دوی د قول تائيد دا کوي چې يو کس ووايي زه مکې ته ځم نو لازم ورباندې حج يا عمره ده په اتفاق د ټولو علماؤ سره نو مسجد الحرام خو تر مکې خاص دی او د ډېر داسې پېښيږي چې مسجد الحرم ذکر سي مراد ورڅخه کعبه وي او پر مطلق حرم يې هم اطلاق کيږي نو قيل وايي چې دا اختلاف د دلايلو نه دی بلکې دا اختلاف د عرف پر بنا دی د امام اعظم رحمه الله په زمانه کې داسې عرف نه وو او د يارانو په زمانه کې په عرف کې د مسجد څخه کعبه مراد کېدل او د نذر او قسمو بنا هم پر عرف او عادت ده الخ.

که يو شخص وويل چې پياده تلل ديرش مياشتي يا يوويشت مياشتي يا لس مياشتي يا لس ورځې يا يولس ورځې بيت الله ته سفر کول لازم او نذر دی نو په دغه صورتو کې پر ده عمره نذر ده او قيل ويلي دي چې ديرش مياشتي يې يادې کړې حج پر نذر دی صاحب د المنتقي دواړه قوله نقل کړي دي د محمد رحمه الله څخه په دوه روايته سره.

که يو چا وويل پر ده نذر دی تګ بيت الله ته او په نيت کې يې د مدينې مسجد وو يا د بيت المقدس يا مسجد قباء يا د کوفې نو هيڅ شی نه پر لازميږي او که يې تعين د نيت نه وو کړی بيا خو حج يا عمره پر لازم ده ورڅخه مراد کيږي د ده د عبارت څخه کعبه شريفه ځکه کامل فرد په مسجدو کې د حرم شريف مسجد دی او که بيت الله يې ياده کړه خو هيڅ اختلاف نسته چې حج پر لازم دی ځکه په قرآن کې الله تعالی فرمايلي دي:

ولله على الناس حج البيت. عمران ۹۷

و جعل الكعبة البيت الحرام. المائده ۹۷

نو لهذا که بيت الله يا کعبه ياد کړي حج يا عمره پر لازميږي که يو کس قسم واخيستی چې بيت الله ته پياده ځمه ولاړی نه ځان يې حانث کړی بيا يې دغسې قسم واخيستی بيا يې ځان حانث کړی په قسم کې نو اول پياده حج بيا عمره د قسم د ځايه څخه

پر لازميږي که چا پر ځان پياده حج نذر کړی ضرور به پياده ځي تر طواف زيارت بعد په حج کي او تر سر خريلو بعد په عمره کي د سپرتيا جواز ورلره نسته او د شروع ځای يې د ده خپل کور دی د سفر احرام يې تړلی وي او که يې نه يي تړلی فرق نه لري شمس الائمه السرخسي او صاحب د هدايې او قاضي خان او زيلعي او ابن الهمام همدغه قول کړی دی چي عرف هم دغسي دی او د امام اعظم رحمه الله څخه دغسي روايت سوی دی.

فايده: يو کس پر ځان دوه رکعته لمونځ نذر کړي چي په مبارک ځای کي يې گزارمه اوس يې تر هغه په کمه مرتبه ځای کي وکړي جواز لري ليکن فضيلت اول د مسجد حرم شريف دويم د نبي ﷺ مسجد بيا بيت المقدس بيا مسجد قباء بيا د مسجد جامع بيا د کلي مسجد بيا خپل کور پر دغه ترتيب يې ثواب دی او که تعين د ځای وکړي بيا هغه ځای پر لازميږي او که يې نذر کړه چي تر يوه ساعت کم په مسجد الحرم کي به زه اعتکاف کوم نه پر لازميږي ځکه دونه قدري زمانه اعتکاف نسته.

## باب الهدايا

الهدى من الابل و البقر و الغنم و كل دم يجب فى الحج و العمرة فادناه شاة الا الجماع فى الحج بعد الوقوف بعرفة و طواف الزيارة جنبا و حكم البقر حكم الابل فى هذا الباب ثم الهدى منقسم هدى شكر و هو هدى المتعة و القران و التطوع و هدى جبر وهو سائر الدماء الواجبة ماعدا هذه الثلاثة و كل دم وجب شكرا فلصاحبه ان ياكل منه ويوكل الاغنياء و الفقراء ولا يجب التصديق به بل يستحب ان يتصدق بثلثه و يطعم ثلثه و يهدى ثلثه او يدخره ولو لم يتصدق بشئ جاز و يسقط بمجرد الذبح حتى لو سرق او استهلكه بنفسه بعد الذبح لم يلزمه شئ و كل دم وجب جبرا لا يجوز له الاكل منه و لا للاغنياء و يجب التصدق بجمعه حتى لو استهلكه بعد الذبح لزمه قيمته و لو سرق لا يلزمه شئ وهو كدم اللبس و الطيب و الحلق و قلم الاظفار و قتل الصيد و الجماع و الطواف بلا طهارة و ترک شئ منه او السعى او الرمى او امتداد الوقوف او وقوف مزدلفة و الاحصار و الرفض و قطع اشجار الحرم و لا يجوز بيع شئ من لحوم الهدايا فان فعل ضمن قيمته للفقراء ولو اعطى الجزاء اجرة منه غرم و ان شرط منه لم يجز عن الهدى ولو هلک هدى التطوع قبل وصوله الحرم لا يجوز الاكل منه له و لا للاغنياء و كل واحد من الابل و البقر يجوز عن سبعة دماء فلو شارک فيه سبعة نفر قد وجب الدماء عليهم جاز سواء اتحد الجنس ولو اشترى بدنة لمتعة مثلا و اوجبها لنفسه لا يسعه ان يشارک فيها احدا و ليس بيعها بعد ما اوجب و ان نوى ابتداء الشركة جاز و اذا ولدت بدنة الهدى ذبح ولدها معها ولو باع الولد فعليه قيمته و ان اشترى بها هديا فحسن و اذا غلط رجلان فذبح كل هدى

صاحبه اجزاهما و يأخذ كل هديه من صاحبه و كل هدى لا يجوز له الاكل لا يجوز له الانتفاع بجلده و لا بشي اخر منه ولا يجب الععريف بشي من الهدايا سواء اريد به الذهاب الى عرفات او التشهير بالتقليد و يسن تقليد بدن الشكر دون بدن الجبر ولا يسن في الغنم مطلقا و كره الاشعار ان خيف منه السراية و حسن الذهاب بهدى الشكر الى عرفة و الافضل في الابل النحر و يكره في غيرها و يستحب التصدق بخطامها و جلالها و لا يبيع جلدها فان باعه تصدق بثمنه.

متن و بعده ترجمه و شرح ملا علي القاري

دا باب په بيان کي د هداياوُ دى هديه هغه شي ته ويل كيږي چي حرم المحترم ته يې ويخيني دپاره د ځان نژدې کولو الله رب العالمين ته دلته هر قسمه هديه درته ذکر کيږي اکثره احکام د هدیې پر مثل د اختري دى هديه يا اوښ دى يا غويی يا پسه دا درې قسمه حيوانان دي نه بل قسم هر هغه دم چي په حج يا عمره کي پر سړي واجب ګرځي هغه کم ترين يې کښي پسه دى او اعلا يې اوښ يا غويی دى او بهترين يې هغه دى چي د روپو او قيمت او غوښو د دواړو په وجه خوندور او د ډېر قيمت وي او د کم ترين يو قسم د اوښ يا غويي اوومه حصه ده او که يو شخص تر عرفات بعد وطي وکړي او يا يې طواف زيارت په جنابت کي وکړی بيا يې دم اوښ يا غويی پر لازميږي لهذا د دغه عبارت څخه معلومه سوه چي په عمره کي اوښ يا غويی نه لازميږي د هدیې په باب کي د غويي حکم د اوښ دى زموږ پر مذهب نه د شافعي رحمه الله پر مذهب باندي دى بدنه يوازي اوښ ته وايي.

او که جزور مستعمل سو بيا خاص اوښ ورڅخه مراد دى زموږ پر مذهب باندي او د شافعي رحمه الله پر مذهب اوس د هدیې اقسام بيانيږي هديه دوه قسمه ده:

۱: اول قسم هديه د شکريې ده معنا توفيق د طاعت چي الله رب العالمين ورکړي وي دى يې شکريه ادا کړي دا درې وخته کيږي يو چي حج قِران وکړي او بل چي حج تمتع وکړي او بل چي ځان د مطلق عبادت او د بيت الله د ليدلو په وجه يې خيرات کړي.

۲: دويم قسم دم د جبر دى دا بيا هغه دم دى چي د يو قصور په وجه چي په عبادت کي جنايت وسي او ناقص سي دى هغه نقصان په پوره کوي دجبر دم د شکر دم د درې قسمو څخه ماسوا دى لکه دم د احصار چي د حجه څخه منع سي او يا احرام مات کړي او يا جزا د ښکار وي يا د يو جنايت بل ورڅخه وسي اوس يې احکام ذکر کيږي هر هغه دم چي د شکريې وي نو دا سړى کولای سي چي خپله هر څونه ورڅخه خوري خوړلای يې سي لو اغنيا معنا دنياداره هم مېلمانه کولای سي او فقيرانو ته يې په ملکيت هم ورکولای سي په مېلمستياوُ کي يې ورکولای سي او واجب نه ده چي تولي يا يو څه به خامخا خيرات کوي او

مستحب طریقه یې دا ده چې دریمه یې خیرات کړي دریمه و قریبانو ته تحفه کړي او دریمه ځان ته ذخیره کړي او که یې هیڅ شی خیرات نه کړی هم جواز لري لیکن مکروه کار دی او بل د قرباني او شکریې دم چې محضي حلال سو دی ورڅخه خلاص دی معنا که تر حلال بعد یا غلا یا ورک سو بل شی نه پر لازمیږي او د جبر دم داسي نه دی د جبري دم څخه د ده خوراک او د دنیاداره خوراک جواز نه لري اگر که دی پخپله فقیر هم وي بلکې دا د فقیرانو حصه ده چې په ملکیت به یې فقیرانو ته ورکوي او که تر حلالولو بعد هم ورڅخه ورک یا هلاک سي که ټوله وو د ټوله او که یو څه وو د هغه په اندازه قیمت به خیرات کوي او که ورڅخه غلا سو بیا شی نه پر لازمیږي او دم د شکریې او د جبر د دواړو څخه خیرات د حرم او غیر د حرم څخه پر مسکینانو کولای سي لیکن که د حرم مسکینان حاجت مند وه بیا نو د حرم د مسکینانو حق دی او فضیلت یې ډېر دی او دا د دم غوبنې یوه مسکین او ډېرو ته هم ورکولای سي دم د جبر دا دی لکه ګنډلي کالي چې واغوندي یا خوشبویي ولګوي یا نوکان پرې کړي یا ښکار مړ کړي یا وطي وکړي یا طواف په بې اودسي سره وکړي یا د طواف څخه یو شی ورڅخه پاته سي چې واجبونکی د دم وي او یا سعیه ورڅخه پاته سي یا د څلو د شیطانانو ویشتل ورڅخه پاته سي یا پر عرفات تر لمر لوېدو هاخوا ته لا ولاړ وي او یا د مزدلفې درېدل ورڅخه پاته سي بې له عذره څخه یا د حرم څخه دښمن وغیره بند کړي احرام بنده یا احرام مات کړي یا د حرم درختي ماتي کړي.

د هدیې د دم غوبنې خرڅول جواز نه لري اگر که یې ده ته خوراک جواز هم ولري لکه ابن الهمام چې تصریح په کړې ده او که یې هر څونه خرڅي کړې هغونه روپۍ به مسکینانو ته خیرات کوي او که یې د قصاب مزدوري د غوبنو یا د پوست څخه ورکړه هم دومره مبلغ روپۍ به خیرات کوي او که یې د اول څخه دا شرط پر ایښی وو چې دونه غوبنې یا پوست به راکوي بیا دا قرباني او دم صحت نه لري بل به حلالوي او که بې له مزدوري څخه فقیر وو غوبنې یې ورکړې جواز لري.

او که یو کس هدیه نفلي او د خیرات دپاره د ځانه سره حرم ته روانه کړې وه پر لاره ورڅخه هلاک سوه خوراک به دی او دنیاداره خلق نه ورڅخه کوي دا به مسکینانو ته ورکوي اوښ او غویې د اوو کسانو څخه په قرباني او دم د جبر کي جواز لري خو شرط دا دی چې د ټولو نیت به د خدای جل جلاله رضا وي او که د یوه نیت په کښې د غوبنو وو بیا د ټولو دا جواز نه لري او یا یو په کښې کافر وو او که اووه داسي کسان په غوایي کي سره شریکان سوه چې پر ټولو دم لازم وو جواز لري عامه خبره ده چې جنس یې یو دی د ټولو او که جلا جلا وي لکه مثلا یو یې د متعې دپاره حلالوي او بل یې د ښکار د جزاء په خاطر

حلالوي بل يې د منعي ځخه د حج حلالوي وغيره جواز لري اګرچي تو له يو جنس وي فضيلت يې زيات دی.

که يو کس اوښ يا غويی خاص د ځان دپاره رانيوی نو پر ده واجب وګرځيدی بل به د ځان سره نه شريکوي جواز نه لري او خرخولای يې هم نه سي او که يې خرڅ کړی د قيمت خيرات يې پر لازم دی او که يې د رانيولو په وخت کي دا نيت درلودی چي نور به هم شريکان کوم بيا د نورو شراکت ورته جواز لري او که يې د رانيولو په وخت کي د شراکت يا د نه شراکت نيت وو هم جواز لري چي نور کسان د ځانه سره شريکان کړي او که شريکان اوښ يا غويی حلال کړی تقسيم د غوښو به په تول او ترازو سره کوي په اټکل سره جواز نه لري مګر که يې پوست او کولمي او لری تو له سره برابري کوتي جوړي کړي بيا جواز لري که يې اوښه حلاله کړه د خيټي بچی يې هم په دغه حلال سره پس حلال دی او که يې بچی ورڅخه خرڅ کړی بيا به يې قيمت خيرات کوي او که يې بله هديه په رانيول دا بيا ډېره ښه خبره ده حلاله به يې کړي.

او که دوه کسان سره غلط سوه يوه د هغه بل قرباني حلاله کړې وه چي حلاله سوه هر يو دي خپله قرباني واخلي دلته د قران او متعې او نفلي سره برابر دي فرق نه لري او قانون دا دی چي د هري هدیې ځخه د ده خوراک جواز نه لري نو د دغه حيوان پر پوست او غوښي نفع اخيستل هم ورته جواز نه لري او د هديې ببول عرفات ته د پېژند ګلوي وغيره دپاره واجب کار نه دی او د متعې او نذر هديه به ننباني کړي نه دم د جبر او په پسه کي که د احصار وي او که د نذر ننباني کول يې سنت کار نه دی.

د اوښ بوک په نېزه سوری کول جواز نه لري که خطره د تاوان په کښي وه او ببول د شکريې د قرباني. عرفات ته ښه کار دی لکه بحر زاخر چي ليکلي دي او په اوښ کي فضيلت نحر دی نحر ويل کيږي داسي قسم حلال ته چي اوښ ولاړ وي او ته د ده يوه پښه وتړې او يا پروت وي يوه پښه يې وتړې باره يې د ځيګر سره نژدې په توره ووهې چي غوزار سو نو يې د سر طرف ته ذبحه کړې او په نورو حيواناتو کي ذبحه فضيلت لري او مستحب دا ده چي ځل، تناؤ او پوست يې تو له خيرات کړي لکه په محيط کي چي راغلي دي د قرباني د پوست خرڅ جواز نه لري که يې خرڅ کړی روپۍ به يې خيرات کړي.

## فصل هديه چي حرم ته روانه کړي نه به پر سپريږي

و من ساق بدنة واجب او تطوع لايحل له الانتفاع بظهرها و صوفها و برها و لبنها و ان اضطر الى الركوب ضمن ما نقص بركوبه او حمل متاعه على الفقراء دون الاغنياء و ينضح ضرعها بالماء البارد لينقطع لبنها ان قرب ذبحها والا حلبها و تصدق به و ان صرفه

لنفسه ضمن قيمته و اذ اعطب الهدى في الطريق فان كان تطوعا نحره و صبغ قلادتها بدمها و ضرب صفحة سنامها و لياكل منه الفقراء دون الاغنياء و ليس عليه غيره ولم ياكل منه هو و لا غيره من الاغنياء فان اكل او اطعم غنيا ضمن فان كانت البدنة واجبة فعليه ان يقيم غيرها مقامها وضع بالاولى ما شاء و كذا اذا اصابه عيب كبير فعليه ان يقيم غيره مقامه ولو ضل هديه فاشترى غيره فقلده ثم وجد الاول نحرا ليهما شاء فلو باع الاول و ذبح الثاني او بالعكس اجزاه والافضل نحرهما ولو نحر الثاني و كان الاول اكثر قيمة تصدق بالفضل و من ساق هديا و قلدها لا ينوى بها الهدى فهو هدى و يستحب لكل من قصد مكة بنسک ان يهدي هديا.

متن و بعده ترجمه و شرح ملا علي القاري

هر چا چې هديه د اوبښ حرم ته روانه کړه جواز نه لري ورته چې ورباندي سپور سي يا يې پر وړيو او شيدو نفعه واخلي عامه خبره ده اوبښ وي که پسه واجب وي که نفلي نه يې د وړيو کنبل او نه پړېکول جواز لري او که پر سپور سو يا يې خپل سامان ورباندي بار کړی او نقصان ور ورسيدی دونه تاوان به خيرات کوي پر فقيرانو باندي نه پر دنياداره خلقو باندي ځکه خپل محل ته رسيدلي نه ده که يې شيدې درلودلې او زمانه د حلال يې هم نژدې وه په يخو اوبو به يې پرېولي او که يې زمانه د حلالولو ډېره پاته وه ودې لوشي او پر مسکينانو به يې خيرات کوي او که يې پخپله وخوړلې او يا يې غني ته ورکړې قيمت به يې خيرات کړي.

که د ده هديه پر لاره هلاک سوه حرم ته نه ورسيدل نو که نفلي وه حلاله به يې کړي او مسکينانو ته به يې خيرات کړي او بوک د اوبښ او تناؤ به وغورځوي او پر ده بل نه لازميږي او دی او غنيان خلق به خوراک نه ورځخه کوي او که ده يا غني خوراک ورځخه وکړی دونه روپۍ تاوان به خيرات کړي او که هديه معنا اوبښ پر واجب وو او پر لاره ورځخه هلاک سو بل به رانيسي حلال به يې کړي او په اول کې چې حلال يې کړی هغه څه به کوي چې د ده خوښه وه که يې خرڅول او که يې خيرات کول وغيره او بل داسي حکم د هغه هديې د حيوان دی چې ډېر عيب ور ورسيږي او چې دريمه د غوړيو يې ولاړه سي د امام اعظم رحمه الله پر مذهب يا تر دغه ډېر لکه نيم د يارانو پر مذهب نو بياهم بل پر لازم دی چې را نيسي به يې او که د ده هديه ورکه سوه او بله يې رانيول هغه يې نښناني کړه او هغه اوله هم پيدا سوه بيا د ده خوښه ده هره يوه چې حلالوي او هغه بله به خرڅوي جواز ورته لري خو فضيلت دواړې حلالول لري او که ده دويمه حلاله کړه د اولي قيمت پر ډېر وو په هغه اندازه به خيرات وکړي او که چا هديه حرم ته روانه کړه نښناني کړې يې وه نيت يې د هديې نه وو

کړی نو شرعاً دا هدیه بلل کیږي او مستحب هر حاجي یا عمره کونکي ته دا ده چي د ځان سره هدیه د حرم د احترام دپاره بوزي.

## فصل د عیب جن حیوان قرباني کول یا چي کلونه یې پوره نه وي

لا یجوز مقطوع الاذن کلها او اکثرها والذی لا اذن لها خلقة اوله اذن واحدة و مقطوع الذنب او الالیة والتی یبس ضرعها او ذهب ضوء احدی عینیها و العجفاء التی لا مخ لها و الجلالة اذا بقی اکثرها و الجماء وهی التی لاقون لها لو کان مکسورا و المجنونة و الخصی و الشرقاء وهی التی شقت اذنها والخرقاء وهی مثقوبة الاذن والحولاء وهی التی عینیها حول والجرباء اذا کانت سمینة و الحامل والعرجاء التی لا یمنع عرجها من المشی و المریضة التی تعتلف و صغیرة الاذن والتی لا اسنان لها اذا کانت لا تعلف ولو اصابها العیب عند الذبح بان انکسرت رجلها او اصابت عینها بالاضطراب و انقلاب السکین جاز.

فصل ادنی السن الذی یجوز فی الهدی الثنی وهو من الابل ماله خمس سنین وطعن فی السادسة و من البقر ماله سنتان و طعن فی الثالثة و من الغنم ماله سنة و طعن فی الثانیة ولایجوز دون الثنی الا الجذع اذا کان من الضان وهو ما اتی علیه اکثر السنة وانما یجوز اذا کان عظیما و تفسیره انه لو خلط بالثنایا اشتبه علی الناظر انه منها و الجوامیس کالبقر و الذکر من المعز و الضان افضل اذا استویا و الانثی من الابل و البقر افضل اذا ستویا.

متن و بعده شرح علي القاري

۱: د اول فصل ژباړه دا ده چي هر حیوان په اختري کي جواز نه درلودی په شکریه کي هم جواز نه لري لهذا چي غوږونه یې ټول یا اکثره پرې وي جواز نه لري او که دریمه یا کم تر دغه وو د امام اعظم رحمه الله پر مذهب جواز لري او دا اصح مذهب دی او که نیم ورڅخه پرې سوی وو بیا جواز نه لري او هغه حیوان چي خلقة غوږونه نه لري جواز نه لري اوکه کوچنی یې درلودل بیا جواز لري او که یې یو غوږ را شین سوی وو درلودی بل یې نه درلودی جواز نه لري د احنافو پر مذهب باندي او که یې د لکۍ یا د لم څخه اکثره حصه پرې سوې وه هم جواز نه لري چي غولانځه یې وچه سوې وي بچی یې نه سي رودلای هم جواز نه لري ډېره ډنگره چي ماغزه نه لري یا یې د سترګو رڼا تللې وي یا داسي ضعیف وي چي د حلال ځای ته تلای نه سي او یا غابنونه نه لري او یا ډېر مریض وي چي د خوراک څخه لوېدلی وي او یا ټول عمر آمبار خوري دا ټول په قرباني او اختري کي جواز نه لري.

او که یې د غوږو یا لکۍ یا لم یا پزي اکثره حصه پاته وه جواز لري همدا رنګه چي

حیوان بنکر نه لري یا ورڅخه مات سوی وي یا لېونی سي او خصي حیوان او چي غوږ یې ور چاک کړی وي یا یې سور کړی وي یا یې سترګي کړې وي یا چاغ وي خو ګرګین (پمن) وي یا حملداره (بلاربه) وي او یا ضعیف وي لیکن د حلال ځای ته په قوت تلای سي او یا مریض وي خو وابنه خوري یا کوچني غوږونه لري بیا دا ټوله په قرباني او اختري کي جواز لري دا هغه عیبونه بیان سوه چي تر حلال دمخه په کښې وي او که تر حلال بعد ورپېښ سوه یې هر قسم عیب چي ورپېښ سي جواز لري.

۲: د دویم فصل ژباړه دا ده چي کم ترین عمر په هدیه او قرباني او اختري کي دا دی چي اوښ به د پنځو او غویی به د دوو او پسه به د یو کال وي پوره چي یوه شپه یې کمه وي جواز نه لري صرف د وري په باب کي دا خبره ده چي د شپږو میاشتو وری که د اوچکول سره یې برابري کېده جواز لري ګامېښه او غویی نر او ښځه پسه او بزه فرق نه لري لیکن په غویي او اوښ کي تر نر ماده ډېر فضیلت لري.

## فصل هدیه به ضرور حلالوي لکه اختری

ولو نذر هدیا یلزمه ما یجزئ فی الاضحیة و ادناه شاة و اعلاه بقر او ابل الا ان ینوی بالهدی بعیرا او بقرة فیلزمه ذلک و یختص ذبحه بالحرم لزمه ما ذکر ولا یختص ذبحه فی الحرم ولو قال علی ان اهدی بدنة خیر بین البعیر و البقرة ولو قال جزورا تعین الابل و لو قال هذه الشاة هدی الی بیت الله او الکعبة او مکه او بکة ولو قال الی الحرم او المسجد الحرام او الصفا و المروة لم یلزمه شئ ولو قال انا اهدی ولا نیته له یلزمه شاة ولا تجوز القیمة فی هدی النذر کما لا تجوز فی غیره من الهدایا ولو نذر شیئًا مما سوی النعم کالثیاب والعبد والقدر جاز اهداء قیمته و عینه الی مکة ولو تصدق فی غیر مکة جاز و ان کان مما لا ینقل تتعین القیمة.

متن و بعده ترجمه و شرح علي القاري

که هدیه معنا قرباني یو کس پر ځان لازمه او نذر کړه دستي یا په یو شرط پوري یې متعلقه کړه لکه یو کس چي پر ځان هدیه نذر کړي ورباندي لازم ده خو داسي حیوان پر لازمیږي چي کوم حیوان په اختري کي جواز درلودی چي کم ترین یې پسه دی او اعلا یې غویی یا اوښ دی او که یې تخصص د اوښ یا غویی کړی وي بیا نو خاص هغه شی پر لازمیږي او حلالول یې لازم په حرم کي دی خو د حرم په هره حصه کي چي یې حلال کړي جواز لري د خاص ځای تعین دلته نسته او که یې داسي وویل چي لازم پر ما دا دی چي زه به اوښ هدیه کومه نو اوښ پر لازم دی او که یې بدنه یاده کړه بیا اختیار لري که اوښ حلالوي که غویی.

که یو کس وویل دا پسه هدیه ده بیت الله ته یا کعبې یا مکې ته یا بکة ته چې بکة د مکې نوم دی نو لازم ده پر ده باندې چې هدیه به کعبې ته رسوي معنا حرم ته هلته به حلالیږي او که یې داسې وویل چې حرم ته او یا مسجد حرم ته او یا صفا او مروا ته ما دا هدیه هبه کړې ده نو دا نه پر لازمیږي په قول د ټوله علماؤ کې او که یې داسې وویل چې زه هدیه کوم بیت الله ته پسه ورڅخه مراد دی پسه پر لازمیږي د ابن الهمام د عبارت هم دغه مراد دی د نذر په هدیه کې او په نورو هدیو کې وینه تویول لازمي کار دی لهذا قیمت ورکول د حیوان پر ځای جواز نه لري دې روایت ته صاحب د بدائع مستحسن ویلي دي او ابن الهمام او طرابلسي وایې چې د متعې او قران او احصر په هدیه کې د قیمت ورکره جواز نه لري او که بل شی نذر کړي لکه کالي یا مربې یا بل منقولي شی نو یې قیمت پر ځای خیرات کولای سي په مکه کې او که غیر د حرم څخه یې خیرات کړي هم جواز لري اګرچې حرم فضیلت لري او که یې غیر منقولي شی لکه ځمکه یې حرم ته هدیه او هبه کړه نو دلته قیمت متعین دی چې خیرات کوي به یې په حرم کې او که یې تول مال حرم ته هبه کړی هم تول مال هبه کول پر لازم دی.

مسألة افضل الاعمال بعد الصلاة و الزکاة و الصوم الحج وقیل الحج و قیل الصوم مسألة لوقفة الجمعة مزیه علی غیرها مسألة الحج یهدم ما کان قبله من الصغائر و اختلف فی الکبائر مسألة من حج بمال حرام سقط عنه الفرض ولا یقبل حجه و یکون عاصیا اذا مات المحرم یصنع به ما یصنع بالحلال من تغطیة الرأس و الوجه و قیل تکره مسألة المجاورة بالمدینة الشریفه لا تکره لمن یثق بنفسه و ذهب جماعة من العلماء الی ان المجاورة بها افضل منها بمکة و ان قلنا بترک ثواب العمل بمکة

متن و بعده شرح علي القاري

لوس په دغه باب کې مختلف قسمه مسائل ذکر کیږي چې دې ته په عربي کې مسائلي شتي وایي معنا دا ده چې دا مسائل یو باب نه سي راجمع کولای نو لوس به د لوی خدای جل جلاله په فضل سره هره مسئله جلا جلا بیان سي:

۱: لوله مسئله دا ده چې تر لمانځه او زکات او روژې بعد کوم عمل ډېر ثواب لري جواب بعضي علماء وایي چې روژه ډېره ثواب لري ځکه په حدیث قدسي کې الله تعالی وایي چې روژه زما ده زه یې بدله ورکوم ظاهره ده چې خدای جل جلاله بدله ورکوي هغه به ډېره لو غټه وي دا حدیث د حدیثو تولي ذخیري را اخیستی دی لکه بخاري. مسند احمد ج۲ ص۲۳۴ ص۳۹۵ ص۴۱۱ ص۴۵۷ ص۴۶۵ ص۴۶۷. البیهقي في السنن الکبری ج۴ ص۲۳۵ ص۲۷۳، معجم الکبیر ج۱۰ ص۱۲۰. مشکل الاثار ج۴ ص۱۱۶، اتحاف السادة

المتقين ج۴ ص۱۸۸، فتح الباري ج۴ ص۱۰۹، اسماء والصفات ص۲۱۲

او بعضي علماء وايي حج کول ډېر فضيلت لري دليل يې دا دی چي حج جمع کونکی د بدني او مالي عبادتو دی او د انسان سره ډېر تکليفونه ملګري کيږي چي د خپل قريبانو او وطن څخه جلا کيږي او غربت سره مخامخ کيږي د وچي او دريابو د ډيري او تکليف سره مخامخ کيږي او ډېره مسافه په لاره کي د سفر تکليفونه تېروي او د حج په شان کي د فرضيت حکم په اخير کي تقريباً د قرآن نازل سوی دی او د حج فرضيت هم په تول عمر د انسان کي يو ځل دی او په اخيري حج کي د نبي ﷺ چي حجة الوداع وايي دا آيت نازل سوی دی چي ستاسي دين مو ورته ونن ورځ پوره کړئ دا ورځ د عرفې وه.

اليوم اکملت لکم دينکم. المائده ۳

په بخاري شريف کي حديث ذکر دی چي د حضرت عمر ﷺ څخه د دغه آيت متعلق پوښتنه وکړه چي دا آيت زموږ په تورات کي نازل سوی وای موږ به دا ورځ د ځانو دپاره د اختر ورځ ګرځولې وای نو حضرت عمر ﷺ ورته وويل چي د دغه آيت د نزول ورځ موږ دوه اختره ګرځولې دي دا ورځ د جمعې او د عرفې ورځ وه چي نازل سو.

۲: دلته دويمه مسئله ذکر کيږي چي د بې فکرۍ په وجه عربي متن راڅخه پاته سوی دی نو په پښتو کي يې ترجمه درته پوره ليکم هغه دا ده چي سړی د ځان دپاره فرضي حج وکړي نو بيا ډېر فضيلت بعضي علماء وايي چي خيرات لري لکه دا مسئله چي مختاره کړې ده التجنيس و المزيد و منية المفتي وغيره کتابو او شايد چي د دا خيرات څخه مراد هغه وي چي فقيرانو ته ورکړل سي دا خيرات بايد يو مخ فقيرانو او مسکينانو خلګو ته ورکړل سي او که داسي نه وي نو حج خو يو جامع عبادت دی چي روپۍ هم په کښې خيرات کيږي علاوه دا ده چي په روايت کي راغلي دي چي يوه روپۍ په کښې خيرات او مصرف کړي په حج کي بدل يې په اووه سوه چنده الله تعالى ورکوي او تکليفونه هم ورسره ډېر دي او ظاهره ده چي مزدوري او ثواب د تکليف په اندازه وي او په حديث کي راغلي دي فضيلت منده په اعمالو کي هغه ډېر تکليفي عبادت دی او بل حديث ارشاد الساري په حاشيه کي د بخاري او مسلم څخه د بي بي عايشه رضي الله تعالى عنها په روايت سره نقل کړي دي چي ثواب پر مقدار د انسان د ستړيا دی او په النهايه کي د ابن عباس ﷺ څخه هم دغه روايت نقل سوی دی انتهې.

په فتاوٰى القنيه کي ذکر دی چي امام اعظم رحمه الله به اول دا قول کوی چي خيرات تر نفلي حج ثواب ډېر لري کله چي ده مبارک حج وکړی او تکليفونه يې وليدل نو يې بيا داسي قول وکړی چي د نفلي حج ثواب پر ډېر دی او بعضي علماء وايي چي حج پر خيرات

ډېر ثواب لري نفلي حج دوی هم د امام اعظم رحمه الله قول دليل گرځولی دی چي امام صاحب مبارک فرمايلي دي نفلي حج تر خيرات. تر آزادولو د مريي. او وصيت کولو په خيرات. ډېر ثواب لري بيا نفلي حج بيا د مريي آزادول معنا حُر گرځول په فتاوای نوازل کي راغلي دي چي حج تر خيرات ډېر ثواب لري د امام اعظم رحمه الله پر مذهب باندي او د محمد رحمه الله پر مذهب خيرات ثواب پر ډېر لري انتهی.

۳: دريمه مسئله دا ده چي په حج کي د عرفې ورځ د جمعې د ورځي سره برابره سي نو دا حج په اويا درجې تر هغه حج ثواب او درجې ډېري لري چي د عرفات د ورځي سره د جمعې ورځ برابره نه سي او ملا علي القاري رحمه الله وايي چي په دغه مورد کي ما يوه مستقله رساله ليکلې ده په نامه د الحظ الاوفر في الحج الاکبر او ارشاد الساري هم دغه رساله ليکلې ده په حاشيه کي چي انشاءالله تعالی د دغه باب په اخير کي به يې وليکمه ځکه دلته د کتاب او متن مسائلو سره ليري کيږي باره پر کتونکي د کتاب ورکيږي.

۴: څلورمه مسئله دا ده چي حج د سړي ټوله صغيره گناهونه رژوي چي څونه مخکي ورڅخه سوي وي په يقين سره که حقوق د الله تعالی وو. او که يې د خلقو حقوق پايماله کړې وه او يا يې ظلم پر کړی وو هغه يې پر غاړه پاته دي ترڅو پوري چي هر سړي ته د هغه حق و نه رسوي او يا اجازه او عفوه ورڅخه وا نه خلي او د رب العالمين تر مشيت هم لاندي دی او په کبائرو او غټو گناهو کي اختلاف د علماؤ دی چي دا هم د رب العالمين تر مشيت لاندي دی لکه چي دا مسئله تېره سوه يوه مسئله خو په ډېر اعتماد کي دا مسئله ده چي غټې او کبيره گنهونه مطلقا د الله تعالی تر مشيت لاندي دی پر مذهب د اهل السنت و الجماعت لکه داسي ذکر چي الشيخ التوربشتي وغيره امامانو کړي دي او الطيبي هم پر دغه مسئله داسي غور کړی دی چي حج ټول ظلمونه او کبيره گنهونه روژي او په دغه مسئله کي د امير باشا د حنفي علماؤ څخه او الطيبي د حنفي علماؤ څخه يوه طرف ته او الشيخ ابن حجر المکي د شوافعو علماؤ څخه بل طرف ته د دوی تر منځ منازعه او اختلاف واقع سو چي امير باشا د الطيبي قول ته ميلان کوی چي حج مظالم او کبيره گنهونه رژوي او ابن حجر د جمهورو علماؤ وقول ته ميلان کول او ملا علي القاري رحمه الله وايي ما يو رساله د السيد په دغه بيان کي وليدل او بيا ما هم يوه رساله په کښې وليکله چي ارشاد الساري ټوله په حاشيه کي نقل کړې ده نو دا به انشاءالله زه محمد جمعه کاتب الحروف د دغه باب په اخير کي د ارشاد الساري تر رسالې بعد وليکم.

۵: پنځمه مسئله دا ده چي په حرام مال سره سړی حج وکړي د ده د غاړې څخه فرض ساقطيږي په ظاهره کي او قبليږي نه ځکه دا خو مقبول او مبرور حج نه دی ځکه

شرطونه او رکنونه یې برابر نه دي او گناهگاره خو ډېر دی چې د احرام په وخت کې لا دی د حرامو کسب کوي بې له توبې کښلو سره او دلته دا سوال پیدا کیږي چې څنگه په فرض ادا کیږي او قبلیږي نه جواب دا دی چې قبول یو شی دی او ساقطول بل شی دی لکه د مثال په ډول چې د غصب په ځمکه کې لمونځ وکړي د لمانځه پوره یې وسوه لیکن ثواب نه دی پر مرتب او یا مثلا په وریښمینو کالو کې لمونځ وکړي لهذا که حج په حرامو روپو وکړي په ورځ د قیامت نه ورته ویل کیږي چې تا ولې حج نه دی کړی او د حرامو روپو حساب خو ورسره کیږي هغه نه پاتیږي.

په صحیح مذهب کې د امام احمد رحمه الله دا دی چې په حرام مال سره څوک حج وکړي هیڅ جواز نه لري او فرضي حج یې د غاړې ځخه نه ساقطیږي ځکه په روایت کې راغلي دي چې په حرام مال سره څوک حج ته ولاړ سي او لبیک و سعدیک ووایي په جواب کې ورته وویل سي چې نه لبیک دی نه سعدیک بلکې حج دي سو مردود علیک پر تا باندي لهذا که چیري بله هیڅ لاره نه کیدله ملا علي القاري رحمه الله وایي داسي سری دي اول د حج دپاره دونه روپۍ د یو چا ځخه قرض کړي چې حج یې وکړي وروسته دي یې روپۍ ورکړي او داسي مسئله قاضي خان هم ذکر کړې ده او امام الغزالي رحمه الله وایي که څوک حج ته په حرامو روپو ولاړ کوښښ دي وکړي چې د نفقې دپاره خو حلالي روپۍ برابري کړي او که دونه هم نه برابرېدلې د عرفې د ورځي د خوراک دپاره دي برابري کړي او که دونه هم نه وي نو په زړه کي دي ډېره وښسي ځکه دی اوس محتاجه دی و حرامو ته نو امید سته چي الله تعالی د رحمت په نظر ورته وگوري او د ده د غم او ډېرې په وجه ور تېر سي.

۶: شپږمه مسئله دا ده که په احرام کي یو سری مړ سو نو دغسي کفن او سر او مخ پټول به یې کوي لکه د حلال سړي دا او دغسي د سجدو پر ځایو به خوشبویي ورته لگوي لکه د حلال سړي.

۷: اوومه مسئله دا ده چي په حرم محترم د مکې مکرمې د تعظیم په ډول جواز لري کراهت نسته په کښېني علاوه دا ده چي د امام ابو یوسف او محمد رحمه الله پر مذهب په مکه کي گزاره کول مستحب کار دی لکه مبسوط چي لیکلي دي او فتوا هم پر دغه قول ده او د بعضي شوافعو او حنابلو همدغه مذهب دی او د خلقو عمل هم پر دغه سوی دی او د امام اعظم او مالک رحمه الله پر مذهب چي ډېر احتیاط په کښېني دی چي دلته استوگنه مکروه ده ځکه خطر د دې سته چي د سړي ځخه یو مکروه او یا حرام کار و نه سي چي د حرم محترم بې حرمتي په کښې را نه سي ځکه په روایت کي راځي چي یوه نیکي په حرم کي د یو لک نیکو اعمالو برابر ثواب لري او گناه یې هم په دغه حساب ده دا پر دغه اعتبار چي دا روایت

صحت پيدا کړي او که صحت هم پيدا نه کړي لا شبهه خو سته چي په حرم کي ګناه ډيريږي.

او پر کوم مذهب چي فتوا سوې ده هغه په جواب کي ورته وايي چي ګناه خو بالمقابل د نيکو عملونه هم لري اميد ډېر داسي دی چي د ده هر کار به د نيکو کارو څخه وي نو بيا خو د ده ثوابونه تر چند ووتله دا خو د هغه کسانو په باب کي خبره ده چي ګمان د دې پر کيږي چي ګناه ورڅخه و نه سي او کوم کسان چي مخلصين دي نو دلته په حرم کي د دوی اوسېدل خو بهترين عبادت او لويه کاميابي ده په اجماع سره د علماؤ خو دا کار هم اسان کار نه دی بلکې دا هغه کسان سر ته رسولای سي چي د خپل طبيعت تقاضا يې تقرب و الله تعالی ته وي او داسي کسان ډېر کم دي لکه په قرآن کي چي الله تعالی فرمايلي دي: الا الذين امنوا و عملوا الصالحات. ص ۲۴

نو د داسي کسانو حکم به پر نورو نه قياس کوؤ خکه داهنګر کله پر باچا قياس کېدای سي او هغه کسانو لره اعتبار نسته چي د درواغو دعوې کوي چي دعوه اسانه معنا يې ګرانه وي او کوم چي امام اعظم رحمه الله د کراهت حکم کړی دی دا په هغه زمانه که ده د اوس حالات ليدلي وای نو د حرمت حکم به يې کړی وای چي هيڅ د حرم تعظيم پېژني لا نه علاوه دا ده چي دلته په حرامو باندي ګزاره او خوراکونه کوي. حسبنا الله و نعم وکيل ولاحول ولا قوة الا باالله العلی العظيم.

۸: اتمه مسئله په حرم د مديني کي اوسېدل مکروه نه دی که يې په ځان باور درلودی نور بيان يې لکه د مکې مکرمې د اوسېدو تېر سو علاوه دا ده چي په اجماع سره مرګ په مدينه منوره کي بهترين ثواب لري او اوسېدل سبب د مرګ دی لهذا نو ثواب پر اوسېدلو دلته ډېر دی که دا معنا سي نو د مکې د حرم ثواب خو پر ډېر دی په نيکو اعمالو کي او په اجماع د علماوو سره تر وفات د نبي عليه السلام بعد د ګزارې حکم داسي ثواب نه لري لکه د مبارک عليه السلام په ژوند کي چي وو او ډېر علماء پر دغه دي چي په مدينه کي ګزاره کول تر مکې ثواب ډېر لري اګرچي مکه د ثوابو خزانه ده الخ.

## اوله رساله دلته د ملا علي القاري حظ الاوفر رساله ليكل كيږي چي د عرفې په ورځ جمعه سي نو دا حج اكبر دی

بسم الله الرحمن الرحيم الحمدلله الخ و الصلاة و السلام علی مذکر دائرة الوجود الخ و علی اله و صحبه الطاهرين اما بعد:

هغه شخص چي اميدواره د احسان د باري دی علي بن سلطان محمد القاري وايي چي زما څخه بعضو ورونو د ډېر علم خاوندانو چي په نوع انساني كي يې ډېر شهرت درلودی غوښتنه وكړه چي حج اكبر خاصه زمانه او ورځ د جمعې غواړي چي د عرفې سره برابره راسي نو داسي حديثونه او اثار عقلي راته بيان كړه نو لهذا زه را ولګيدم چي زما په زړه كي راوګرځيدل او ما دا مقاله جوړه كړه نو مي د حظ الاوفر في الحج الاكبر نوم ورته وضع كړی نو اوس پوه سه الله تعالی دي په رزق سره حج در نصيب كړي او دلايل دي هم خدای ستا روزي كړي حج په لغت كي قصد ته ويل كيږي پر اكثره ژبو باندي او قيل وايي چي قصد ته د معظم شي ويل كيږي په سترګو كي او بل قيل وايي د حج معنا ده مكرره زيارت كول د ټولو دلايل او شواهد په خپلو ځايو كي دی لكه په اخيري قول كي چي سړی يو حج وكړي بايد حاجي ورته و نه ويل سي نو جواب يې دا دی چي د حج اجزاء خو ډېر دي د هغو تكرارول معتبر دی وجه دا ده چي سړی يوازې وي داسي دعا كوي چي اې خدايه زما حج مقبول وګرځوې داسي په نورو ځايو د دعاؤ كي چي محترم ځايونه دي نو اوس پوه سه چي علماؤ په معنا د صفت د حج په اكبر سره دلته اختلاف كړی دی بعضي علماء حج ته اكبر وايي عمرې ته اصغر وايي په اعتبار د ډېر او لږ عمل سره اوس د عمرې افعال نسبت و حج ته ډېر لږ دي او رتبه او مقام يې تر حج هم لږ دي او مجاهد وايي چي حج قِران اكبر دی او افراد حج اصغر دی تر قِران او دا قول زموږ د مذهب سره مناسب دی.

جمهور علماؤ او محققينو فقهاؤ او محدثينو هغه طريقې بيان كړي دي كوم چي د نبي ﷺ په حج كي يې بيانونه راغلي دي او ډېر غټ بيان د الحافظ ابن حزم دی په خپل تصنيف چي خاص په دغه باب كي راغلی دی او امام نووي د ده تابعداري كړې ده وغيره او عكرمة د ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت كړی دی چي د حج اكبر ورځ د عرفې ده معنا اګرچي د جمعې د ورځي سره برابره نسي او بل روايت هم دغسي مرفوع سوی دی او د عمر بن الخطاب رضي الله عنه روايت موقوف كړی دی او دا د يو لوی جماعت د اكابرينو تابعينو قول دی لكه عطاء او طاؤس او مجاهد و سعيد بن المسيب وغيره امامانو څخه د دين دغه روايت

سوی دی او ابن ابي حاتم و ابن مردويه و الفقيه ابو الليث السمرقندي په تفسير کي د دې قول د الله تعالی:

يوم الحج الاكبر. التوبه ۳

د المسور بن مخرمة څخه روايت دی چې نبي ﷺ وفرمايل چې ورځ د عرفې حج اكبر ده او په دغه کي اشاره ده و شهرت ته د دغه معنا فکر په کنبي وکړه او ابن ابي شيبة او يو جماعت دا حديث د حضرت عمر رضی الله عنه څخه روايت کړی دی چې ده وويل د حج اكبر ورځ د عرفې ورځ ده او د دغه حديث استخراج ابن المنذر وغيره علماؤ د ابن عباس رضی الله عنه څخه کړی دی چې دی مبارک وايي چې د حج اكبر ورځ هغه ده چې ملا يکي په کنبي د اسمانو او د مځکو وي او الله تعالی په دوی کي فخر کوي چې ورته وايي راغلي دي خيرن او بير سرونه ما ته او ايمان پر ما لري او زه يې ليدلی هم نه يم نو زما دې قسم وي په خپل عزت چې زه مغفرت ورته کوم او ابن جرير استخراج د حديث کړی دی د ابن الزبير رضی الله عنه څخه چې په تحقيق سره ورځ د عرفې د حج اكبر ده او دغسي حديث د حضرت علي رضی الله عنه څخه هم سوی دی چې د حج اكبر ورځ د عرفې ده.

يو جماعت د علماؤ وايي چې د حج اكبر ورځ د عرفې ورځ ده او د يحيی بن الجزار څخه روايت دی چې علي رضی الله عنه د اختر په ورځ راووتی پر سپينه غاتره سپور اراده يې دنبت ته د تللو وه يو سړی ورته راغلی او د ده د غاتري تناؤ يې ونيوی او پوښتنه يې د ورځي د حج اكبر ورڅخه وکړه نو ده ورته وويل چې نن ورځ د حج اكبر ده هغه سړي د غاتري تناؤ ايله کړ همدغسي روايت ترميذي د علي رضی الله عنه څخه کړی دی او ابو داود بيا د ابو هريرة رضی الله عنه څخه کړی دی او بل روايت د عبدالله بن اوفی او مغيرة بن شعبة څخه چې قول د الشعبي او النخعي او سعيد بن جبير او سدی هم دی نو ملا علي القاري رحمه الله وايي چې شايد حج اكبر د اختر ورځي ته په دې اعتبار سوی وي چې اكثره افعال د حج په دغه ورځ کي ادا کيږي لکه ويشتل د جمراتو او ذبحه د قرباني او سر خريل وغيره افعال او د دغه قول تقويه هغه قول کوي چې يو لوی جماعت د عبدالله بن ابي اوفی څخه کړی دی چې وايي د حج اكبر ورځ د اختر ده چې ويښتان په کنبي خريل کيږي اوويني د قربانيو په کنبي توئيږي او احرام په کنبي خلاصيږي او ابن حاتم بيا د سعيد بن المسيب څخه روايت کړی دی چې د حج اكبر ورځ د اختر دويمه ورځ ده ځکه امام به په کنبي خطبه وايي او تاتار خاني د محيط څخه نقل کړي دي چې د حج اكبر ورځ چې په آيت کي ذکر ده دا د طواف زيارت ورځ ده ځکه چې په دغه طواف سره حج پوره کيږي او دا د حج اخيري فرض او رکن دی نو جمعه کول د دغه اقوالو داسي دی لکه ملا علي القاري رحمه الله وايي چې مراد د ورځي څخه د عرفې ورځ

نه ده بلکې د لغت په اعتبار سره مطلق زمانه ورڅخه مراد ده هغه زمانه چې اعمال د حج په کښې ادا. کیږي د شریعت د نګاه څخه او د دغه قول تقویه هغه روایت کوي کوم چې ابن جریر د مجاهد څخه کړی دی چې د حج اکبر ورځې د منا ورځې ګرځولې دي سفیان ثوري به ویل د منا ټولي ورځي د حج اکبر دي لکه د صفین او د یوم البعاث ورځ وه نو مراد ورڅخه مطلق وخت سو ځکه ظاهره ده چې جنګ خو یې په ډېرو ورځو کي لکه د صفین جنګ چې د علي رضي الله عنه او معاویة رضي الله عنه تر مابین واقع سو زمانه یې ډېره واخیستل حاصل دا را ووتی چې د یوم څخه ورځ مراد ده علاوه دا ده چې په معنا د مطلق وخت ده پر بعضي اطلاقاتو باندي لهذا نو مناسب دا ده چې د عرفې ورځ په کښې داخل سي بلکې غوره خو دا ده چې په طریق اولی د عرفې پر ورځي د حج اکبر نوم یاد سي ځکه چې د حج یو غټ رکن په کښې ادا کیږي او بل چې څوک پر عرفات ودریږي حج یې پوره دی بیا یې تصور نه کیږي د قضا کېدو د حج همدا وجه ده چې نبي عليه السلام فرمایلي چې حج عرفه ده رواه احمد و اصحاب السنن الاربعة وغیرهم.

او عبدالله بن الحارث بن نوفل وایي چې د حج اکبر ورځ هغه ده چې نبي عليه السلام حج په کښې کړی دی او دا خبره ظاهره ده ځکه اسلام غالبه او کفر مغلوبه سو او دا قول د ابن سیرین رحمه الله هم دی ده دلیل داسي ویلی دی چې په دغه ورځ مسلمانان په حج کي جمعه سول او د یهودو او نصاراؤ او مشرکانو اختر هم وو او داسي جمعواري نه مخکي او نه بعد سوې ده ملا علي القاري رحمه الله وایي چې ظاهره ده مخکي داسي جمعواري نه ده سوې او کوم چې د بعد خبره ده دا په اعتبار سره د وجود د نبي عليه السلام په دغه موقف وه خاص نو اوس هیڅ شک نه پیدا کیږي ځکه که د دغه څخه نظر قطع کړو بیا د مسلمانانو اختر د یهودو او نصاراؤ سره جمعه کېدای سي چې د مسلمانانو اختر دي د شنبې په ورځ سي چې د یهودو د اختر ورځ هم دغه ده او یک شنبې ورځ د نصاراؤ ده نو د مسلمانانو د اختر یو څه حصه هم په دغه ورځ کي ده او د مشرکانو د اختر ورځ په اعتبار د وجود ده د الله تعالی حمدونه او ثناوي دي وي چې حق راغلئ او باطل برباد سو.

لهذا ملا علي القاري وایي اوس وضاحت د دغه حدیث وسو په دغه فوق بحث باندي چې د یوم څخه مراد مطلق وخت مراد دی خصوصاً بیا د هغې ورځي څخه چې د جمعې ورځ د مسلمانانو د اختر ورځ ده او بیا چې اختر هم په دغه ورځ سي او په شنبه د یهودو او په یک شنبه د نصاراؤ او په دو شنبه د مشرکانو اخترونه دي لکه په آیت کي اشاره هم ورته راغلې ده:

فاذا قضیتم مناسککم فاذکروا الله کذکرکم اباءکم او اشد ذکرا. البقره ۲۰۰

معنا هرکله چي د حج د افعالو څخه فارغه سولاست نو د خدای جل جلاله ذکر داسي کوئ لکه تاسي چي د خپلو پلرو ذکر کوی بلکې تر دغه هم ډېر ذکر کوئ.
د آیت مبارک نزول هم په شان د دغه وسو چي د جاهلیت په زمانه کي چي به عرب د حج د افعالو څخه فارغه سول نو په دریمه ورځ په منا کي دوی مشاعرې کولې هر چا به د خپل پلار یا نیکه کارنامې په فخر سره ویلې نو رب العالمین ورته وفرمایل مسلمانانو ته چي اوس په بدل د هغه کي تاسي د خدای جل جلاله ذکر کوئ.
حاصل د مطلب: نو د تېر بیان څخه دا خبره ثابت سوه چي د حج اکبر په ورځ کي څلور قوله دي:

۱: د عرفې ورځ.
۲: د لوی اختر ورځ.
۳: طواف زیارت.
۴: د حج ټولي ورځي.

او په حقیقت کي هیڅ تعارض او مخالفت د دغه څلورو اقوالو تر مابین نسته دلیل دا دی چي د اکبر او اصغر حج تر مابین دوه نسبته موجود دي لکه د جمعې حج تر نورو غټ او اکبر دی او حج قِران تر حج افراد اکبر دی او مطلق حج تر عمرې اکبر دی او په دغو کي هر یوه ته حج اکبر ویل سوي دي او فرق یې په انوارو کي دی همدا رنګه د عرفې ورځ د حج اکبر ده چي مطلق ورځ ده او د حج اداء په کښي وسوه او د اختر ورځ تمام د حج اکبر په کښي وسو د یوه شي څخه او بیا طواف زیارت دی چي په کښي ادا سو او پر سرې اوس راغلی نو دا ټولي ورځي د حج اکبر سوې په دې معنا سره چي د حج ارکان او واجبات ټول په کښي ادا سول والله اعلم.

اوس تحقیق دا دی چي مراد په قول سره د الله تعالی:
و اذان من الله و رسوله الی الناس یوم الحج الاکبر. التوبة ۳۰
ژباړه: اعلان د خدای جل جلاله او د رسول ﷺ و خلقو ته په ورځ د حج اکبر کي.
اوس دغه اعلان خو حضرت ابوبکر ﷛ په نهم کال د هجرت کي وکړئ چي دی مبارک و حج ته راغلی او دی د حاجیانو امیر وو او د سورت البرائت اولین آیتونه حضرت علي ﷛ راوړل چي په دغه ورځو کي یې کفارو ته بیان کړي چي دا مشاعر عظام به مشرکان او کافران خالي کوي په کوم وخت کي چي د اهل توحید رئیس حج ادا کوي لکه په حدیث کي چي نبي ﷺ ورته وفرمایل چي اعلان وکړه چي خبردار بیا به تر دغه کال ماسوا بل مشرک او کافر به حج نه کوي او د دغه تائید د طبراني استخراج کوي چي ابن

مردوية د سمره ﷺ هغه د نبي ﷺ څخه روايت کړى دى چي د حج اکبر ورځ هغه وه چي حضرت ابوبکر ﷺ په خلقو حج ادا کوى ملا علي القاري ﷫ وايي چي په دغه کي غټه اشاره د ابوبکر الصديق ﷺ خلافت ته وه چي نبي ﷺ په هر هغه عبادت کي چي نيابت قبلوي ابوبکر ﷺ يې د ځان د طرفه څخه خليفه جوړ کړى دى او خصوصي بيا د حج په عبادت کي چي مشتمل پر بدني او مالي عبادتو دى او دا وجه ده چي ويل سوي دي چي د دغه کال حج د ابوبکر ﷺ نفلي حج وو او حجة الاسلام ده مبارک د سيدالانام ﷺ سره وکړى چي فرض حج يې پر طريقه د کمال ادا سي او دغه بيان زموږ د احنافو د علماؤ دپاره لوى مأخذ دى چي نفلي حج جواز لري مخکي د هغه چا دپاره چي حج پر واجب وي خلاف کوي شافعي ﷫ ليکن دلته يو سوال دا دى چي معلومه نه ده چي د ابوبکر ﷺ حج فرضي اول وو او که دويم او کوم چي علي ﷺ وريسې استول سوى دى دا ده د تائيد دپاره ځکه د علي ﷺ څخه پوښتنه وسوه چي ته امير يې او که مأمور ده مبارک ورته وويل زه مأمور يم علاوه دا ده چي د عهد ماتول د عرب په دستور کي اول د خپل قومه څخه کيږي في الجمله خبره دا ده چي سيدنا علي ﷺ به د ابوبکر صديق ﷺ په متابعت کي د حج اعمال ترسره کول او بل تر دغه قول دليل د ابوبکر صديق ﷺ د خلافت دا دى چي د خلافت عظمیٰ مستحق دى وو چي د نبي ﷺ د مرض په وخت کي د لمانځه دپاره دى خليفه وو همدا وجه وه چي د صحابه کرامو اختلاف راغلى د ده په خلافت کي باره يې دا دليل صحابه کرامو وړاندي کړى چي دى زموږ دپاره خليفه وو د دين په کارو کي نو د دنيا په کارو کي به ولي خليفه نه وي.

او کوم اطلاق چي د عرفې د ورځي او جمعې د ورځي په جمع کېدو د حج اکبر راغلى دى او مشهوره د خلقو پر ژبه همدغه ده دا جلا خبره ده او عرفي اصطلاح ده په اثر کي او په روايت کي هم راغلي دي چي مسلمانانو بنه وګڼل نو هغه د خداى په نزد هم بنه وي او زموږ مقصود په دغه رساله کي هم د دغه خبري تحقيق دى او سوالونه او جوابونه دي نو موږ د خداى جل جلاله په توفيق سره بيان په کتبي شروع کوؤ امام زيلعي په شرحه د کنز کي ذکر کړي دي چي دى هم د جملې څخه د امامانو د احنافو دى او د غټو محدثينو څخه دى ده د طلحة بن عبيدالله ﷺ يو د عشره مبشرو څخه دى روايت کړى دى چي نبي ﷺ فرمايلي دي چي فضيلت منده ورځ د عرفې ده په ورځو کي چي د جمعې د ورځي سره برابره سي په حج کي نو دا حج تر اويا حجو بهترين ثواب لري کوم چي برابري د جمعې د ورځي سره نه لري رواه رزين ابن معاوية في تجريد الصحاح.

او کوم کسان چي د دغه حديث ضعف بيانوي نو ضعيفه حديث هم دليل کېداى

په فضایلو کي په نزد د ټوله علماؤ او کوم کسان چي د موضوعي نسبت ورته کوي
هغه جاهلان دي څکه امام رزین بن معاویة العبدري د غټو محدثینو څخه دی او د ده نقل
په سند کي معتمد دی په نزد د محدثینو او محققینو علماؤ الخ علاوه دا ده چي چي د
جمعې د ورځي عبادت خو بې له دغه هم یو په اویا بلکې یو په سله ضعفونه راغلي دي په
روایت کي لکه تفصیل به درته راسي او امام نووي ذکر کړي دي په خپل مناسک کي چي
ویل سوي دي چي د عرفې ورځ د جمعې د ورځي سره موافق راسي دا ټوله دعرفات ولاړو
خلقو ته الله تعالی مغفرت کوي.

او ابو طالب المکي په قوت القلوب د پخواني علماؤ څخه نقل کړي دي او قواعد
شرعیه هم داسي دي چي طریقې سره مختلفي سي حدیث ډېر قوت په پیدا کوي اوس دلته
پر حدیث دا رد کیږي چي الله تعالی د عرفې په ورځ د عرفات خلقو ته مغفرت کوي مطلقاً
نو د جمعې د ورځي د تخصیص څه وجه ده جواب دا دی چي د جمعې په ورځ د عرفات او
غیر د عرفات څخه ټولو ته مغفرت کوي کوم چي عرفات ته حاضر سوي دي خاص او کوم
چي نه دي ورته راغلي هغو ته عام او بل سوال دا دی چي په حدیث کي راغلي دي ابن جوزي
وغیره د ابن عمر ﷺ څخه روایت کړی دی چي نبي ﷺ وفرمایل چي هیڅوک نه
پاتیږي چي د عرفې په ورځ الله تعالی مغفرت ورته و نه کړي چي د یوې ذرې ایمان بې په
زړه کي موجود وي یو کس پوښتنه ورڅخه وکړه چي دا خاص د دغه عرفې خلقو ته نبي
ﷺ ورته وویل دا ټوله خلقو ته عموماً او ظاهر د حدیث خو عام دی عرفې او غیر د
عرفې څخه او اعتبار هم عموم د لفظ لره دی نه خاص سبب لره او امکان د دفعې د سوال
سته په هغه روایت سره چي روایت بې الطبراني کړی دی چي د خدای جل جلاله رحمت
نازلیږي پر اطرافو د عرفات نو عام سو او مغفرت د ګنهونو ورته کیږي نو د دغه ځایه څخه
په ټوله مځکه کي تقسیمیږي.

که څوک سوال وکړي چي په حدیث کي راغلي دي چي الله رب العالمین د عرفات
درېدونکو ته په ورځ د جمعې مغفرت کوي نو څنګه دا قول څوک کوي چي حاجي او غیر
حاجي ته الله مغفرت کوي جواب دا دی چي مراد د حاجي څخه هغه مراد دي چي په افعالو
کي د حج مشغول وي او د غیر د حاجي څخه مراد هغه دي چي په افعالو د حج مشغوله نه
وي معنا احرام بې نه وي تړلی او یو چا ویلي دي چي د اهل موقف څخه د عرفات مراد هغه
کسان دي چي پر عرفات ولاړ وي او که د اطرافو مسلمانان وي ټوله داخل دي چي اهل د
دغه ځای د درېدلو وي.

ملا علي القاري رحمه الله وایي شاید چي د حاجي څخه هغه کامل مراد وي په حج کي

چي رعايت د ټوله شرطو داسي کوي چي مستحق د دې وي چي ورته ويل کېداى سي چي حج يې مقبول دى او مراد د غير حاجي څخه هغه دى چي پخپل حج کي يې تقصير کړى وي لکه صحت د نيت چي ډېر کسان د فخر او نامه دپاره حج کوي يا د رياء يا ځان د بزرګى ښکاره کولو دپاره يا د تجارت دپاره يا د بل فاسد غرض دپاره ولاړ سي او يا د حج شرطونه او ارکان يا واجبات د جهل يا سهوي په وجه ورڅخه خراب سي يا يې روپۍ حرامي وي وغيره چي مستحق د دې وي چي نه دي وي لبيک او سعديک ستا بلکې مردود دي وي پر تا او بل امکان د جواب سته چي مراد د غير الحاج څخه هغه شخص دى چي حج ورڅخه فوت سي او قادر وي قصد يې کلک کړى وي او ورڅخه پاته سي لکه په حديث کي راغلي دي چي نيت د مؤمن غوره دى تر عمل د ده او په روايت کي راغلي دي چي نبي ﷺ غزا ته روان وو اصحاب کرامو ته يې وويل تاسي چي هر لوړه او شوه پرېکوى د خداى په لاره کي ستاسي سره يو جماعت د مديني شريک دى څکه دوى هم غزا ته تلل ليکن دوى عذر منع کړي دي او يا مراد د غير الحاج څخه هغه کسان دي چي پر لاره وفات سي او يا د عرفات د درېدولو څخه يا حج څخه منع سي او دا هم امکان لري چي ټول ورڅخه مراد سي څکه د خداى جل جلاله فضل لوى او وسيع دى او د اصلي سوال څخه جواب ابن جماعة کړى دى چي احتمال لري چي الله سبحانه وعالى مغفرت وکړي ټولو ته د جمعې په ورځ يې له واسطې او تائيد د دې خبري دا روايت کوي چي په مطلق د عرفې په ورځ کي الله تعالى مغفرت کوي نيکو کاره او بد کاره ته.

اوس سوال وارديږي چي په موقف د عرفات کي خو داسي کسان هم سته چي الله تعالى يې حج نه قبلوي نو څنګه مغفرت ورته کيږي جواب د قيل دا دى چي احتمال لري چي الله تعالى ده ته مغفرت وکړي او حج يې قبول نه کړي مغفرت خو د قبول د حج سره نه دى تړلى او په روايت کي راغلي هم دي چي غير مقبول حج تر دنيا او هغه سامانو بهترين دى چي په دنيا کي دي ملا علي القاري رحمه الله وايي چي احتمال لري چي د جمعې په ورځ خاص درېدل پر عرفات باندي قبول راولي پر طريقه د شمول او د وصول د مغفرت پر طريقه د عموم د رحمت.

دلته بل سوال پيدا سو چي پر هر تقدير مغفرت حاصليږي نو بيا فايده د مغفور څه سوه چي پر ده راګرځي جواب دا دى چي کفايت کوي دا قرب پخپله تقاضا سره چي واسطې ته حاجت نسته په مستقل رحمت او په کمال مغفرت سره ورته اساني الله راولي وضاحت د کلام دا دى چي عوام خلق په دغه ورځ په خواصو کي داخل سي او خاص خلق په خاص الخواص کي داخليږي داسي څه تر سره پوري او دا نه سي کېداى بې له زيات والي د اجر او

ثواب لکه مشرفه مکانو ته چي زياتوب حاصل دی همدا رنګه شرافت اعمالو ته هم حاصل دی په تاثير کي د افعالو او هيڅ شک نسته چي ورځ د جمعې افضل او بهتر د ورځو ده په هفته کي او ورځ د عرفې بهترين د ورځو ده په کال کي نو چي دواړي سره جمعه سي نو دا نور علی نور دی نو دې نور ته د هدايت لاره الله هغه چا ته ښيي چي د الله خوښ سي او چا ته چي الله د هدايت نور نه ورکوي نو بيا څوک سته چي نور ورنصيب کړي او بل د مزاياؤ څخه د دغه دوو ورځو يوه دا هم ده چي د جمعې په ورځ کي يو ساعت سته چي الله رب العالمين د سړي دعا په کښي قبلوي په خلاف د نورو ورځو لهذا نو د جمعې ورځي لره ډېر کامل تاثير او مرتبه سته او جمهور علماء وايي دا ساعت د خطبې په وخت کي دی او په صحت رسېدلې دا مسئله ده د يو جماعت څخه چي د مازيګر څخه بيا تر لمر لوېدو پوري دی دا ساعت او د مقام سره ډېر مناسب هم دا قول دی او عموم ته نژدې هم دا قول دی او بل د جمعې ورځي ته په جنت کي د زياتوب ورځ وايي ځکه د خدای جل جلاله زيارت او ديدار هم په دغه ورځ کي کيږي او د خدای جل جلاله خبري هم په دغه ورځ کي اورېدل کيږي او بل په قرآن کي چي الله رب العالمين قسم يې اخيستی دی چي د شاهد او مشهود ورځي دي نو ابن جرير ﷺ د حضرت علي بن ابي طالب څخه تفسير د آيت کريمه وغوښت:

وشاهد و مشهود. البروج ۳

نو حضرت علي ﷺ وويل چي د شاهد څخه د جمعې ورځ او د مشهود څخه د عرفې ورځ مراد ده او استخراج حميد بن رنجويه په فضايل الاعمال کي کړی دی د ابو هريرة ﷺ څخه چي نبي ﷺ د يوم الموعود څخه د قيامت ورځ مراد ده او د المشهود څخه مراد د عرفې ورځ ده او د شاهد څخه د جمعې ورځ مراد ده لمر نه دی راختلی او نه لوېدلی پر يو ورځ چي هغه دې بهتري لري تر ورځي د جمعې نو دا دليل ظاهره دی په دې کي چي ورځي د جمعې لره يوازې دونه فضيلت حاصل دی چي تر عرفې يې شان لوړ دی نو ثابت سوه چي ورځ د جمعې د ورځو سرداره ده لکه د خلقو په خولو کي چي مشهوره ده او بل دليل دا دی چي ورځ د جمعې د مغفرت ورځ ده لکه د عرفې ورځ چي ده.

ابن عدي او طبراني په اوسط کي په سند جيد سره د انس ﷺ څخه هغه د نبي ﷺ څخه روايت کوي چي الله تبارک و تعالی نه پرېږدي د مسلمانانو څخه يو څوک چي په ورځ د جمعې ورته مغفرت و نه کړي.

او بل دليل دا دی چي ورځ د عتق داسي ده لکه د عرفې ورځ امام بخاري په خپل تاريخ کي او ابو يعلي د انس ﷺ وايي چي نبي ﷺ وفرمايل چي په ورځ او شپه کي د جمعې چي څلورويشت ساعته ده داسي ساعت نسته په کښي چي الله تعالي شپږ سوه

کسان د اوره څخه نه په کښي ازادوي او ټول هم داسي کسان چي مستوجب د دوږخ د اور وي.

او بل ابن عدي او البيهقي په شعب الايمان کي فرمايلي دي چي الله تعالى د جمعې په ورځ په هره جمعه کي شپږ سوه کسان د اوره څخه ازادوي او په بل روايت کي زياته سوې ده چي ټوله هم مستحق د اور دي ملا علي القاري رحمه الله وايي دا روايت مناسب د مقام سره دی او موافق دی د علماء کرامو د قوله سره چي د عرفات موقف شپږم لکه کسان وي که کم سوه بيا يې پوره الله تعالى په ملايکو کوي او بل دليل دا دی چي د عرفې ورځ د فخر ورځ ده ابن سعد په طبقات د حسن بن علي رضي الله عنه څخه روايت کړی دی چي د نبي عليه السلام څخه ما اورېدل چي الله تعالى پر ملايکو فخر کوي پخپلو بندګانو په عرفې کي ملايکو ته الله وفرمايي چي وګورئ چي ببر سرونه او خيرن کالي راغلي دي زما رحمت غواړي نو زه شاهدي وايم چي ما مغفرت و نيکو کاره ته وکړی او د بد کاره په عوض کي ما شفاعت قبول کړی او چي ورځ د جمعې سي همدغسي يې له فرقه مسئله ده چي تېره سوه نو دا دلايل واضح دي پر دې خبره چي جمعه او عرفه دواړه سره جمعه سي ظاهره ده چي موجب د ډېر مغفرت ګرځي او څوک چي ورڅخه منکر سي هغه جاهل دی پر منقولي او عقلي دلايلو علم نه لري.

او بل دليل دا دی چي نيکي د جمعې په ورځ نيکي يې څو چنده ده په الطبراني او اوسط کي په حديث کي د ابو هريرة رضي الله عنه مرفوع راغلي دي چي په نيکيو کي تضاعف راځي په ورځ کي د جمعې ملا علي القاري رحمه الله وايي په حديث کي راغلي دي چي تر اويا درجو پوري يې زياتوب کيږي او دا مناسب دی زموږ د بيان سره او حميد بن زنجويه په فضايل الاعمال کي د المسيب بن رافع وايي چي څوک د جمعې په ورځ يو عمل د خير وکړي ترلس ضعفه پوري يې ثواب ډېرېږي نسبت و نورو ورځو ته ملا علي القاري رحمه الله وايي چي تر اوياوو پوري ډېرېږي او سلو ته ځان رسوي او دا قول د نبي عليه السلام د قول سره برابر دی چي فرمايلي يې دي چي ورځ د عرفې د جمعې د ورځي سره برابره راسي نو دا حج تر اويا حجو بهترين ثواب لري او ظاهره ده چي د اوياوو څخه ډېر والي مراد دی نه دا تعين عدد.

او بل دليل دا دی چي په اخيري حج کي نبي عليه السلام د جمعې په ورځ پر عرفات ودرېدی ظاهره ده الله تعالى خپل رسول ته هغه کامل فضيلت ور نصيب کوی تحقيق دا دی چي نبي عليه السلام حج وځنډوی او حال همدا دی چي په قرآن کي الله تعالى ورته فرمايلي وه: وسارعوا الى مغفرة من ربكم. آل عمران ۱۳۳

تاسي چابکي وکړئ مغفرت ته د خپل رب الخ.

په سبب د څنګه کي علماؤ مختلف توجهات کړي دي اصلي مسئله دا ده چي په نهم کال يې ابوبکر ﷺ او علي ﷺ ولېږی چي اعلان وکړي چي مشرک او لغړ سړی به بيا بيت الله ته نه راځي لهذا دغه کال نبي ﷺ حج ونه کړ ځکه چي مشرکان او مسلمانان سره خلط دي الخ لکه په قرآن کي الله تعالی فرمايلي دي:

يايها الذين امنوا انما المشركون نجس فلا يقربوا المسجد الحرام بعد عامهم هذا. التوبه ۲۸

اې مومينانو بې شکه مشرکان نجسه دي نو تاسي يې مسجد حرم ته مه پرېږدئ پس له دغه کال څخه چي دغه کال دی دا کال نهم کال د هجرت وو ملا علي القاري وايي ليري نه ده چي د نبي ﷺ د حج د ځنډولو يو سبب دا وي چي واقع سي دا حج په سيد الايام کي د ورځو چي جمعه ده او واقع سي په سيد الاعوام کي لکه څنګه چي د ده مبارک د جناب سره لايق وو چي د مبارک حج په اويا حجو بدل سي لو دا به د ده د باقي عمر جي ده مبارک حجونه نه وه په کښي کړي د هغه دپاره به جبيره کوم چي نبي ﷺ د مکې څخه مدينې ته هجرت وکړی.

که څوک دا سوال وکړي چي د نبي ﷺ مبارک د فعل څخه چي حج يې وځنډوی دا حکم ثابت سو چي د حج ځنډول جواز لري تر واجب کېدو بعد جواب دا دی چي نبي ﷺ ته په وحي سره معلوم وه چي د ده مبارک ژوند به باقي وي تر هغه وخته پوري ترڅو چي حج کوي او په حج سره د دين ارکان پوره کيږي او يا بعضي شرطونه نه وه پوره سوي د وجوب يا د اداء نو بيا خو د وجود سره دا احتمال نه سو پيدا لهذا د سوال ځای نه سو پيدا.

او بل دليل دا دی چي د لسو عدد لره په هره مرتبه د مراتبو کي کمال ستة لکه په قرآن کي ورته اشاره راغلې ده:

تلک عشرة کاملة. البقره ۱۹۶

و اتممنا ها بعشر. الاعراف ۱۴۲

وليال عشر. الفجر ۲

او د دغه باب څخه هغه لس کسان هم دي چي نبي ﷺ پر يوه ځای د جنت زيری ورکړئ وغيره او بل دليل دا دی چي دا آيت مبارک چي د دين کامل کېدو ته په کښي اشاره ده دا هم حضرت علي ﷺ فرمايي چي پر نبي ﷺ نازليدی نو مبارک ﷺ پر عرفات ولاړ وُ:

اليوم اكملت لكم دينكم. المايده ۳

دا تہر حديث په ډيرو متعددو طريقو سره وارد سوي دی چي الحافظ السيوطي په در المنثور کي د ابن عباس رضي الله عنه او قتادة رضي الله عنه څخه د سعيد بن جبير او الشعبي څخه روايت نقل کړی دی او محي السنت په تفسير معالم التنزيل کي ليکلي دي چي دا آيت د حج الوداع په موسم کي پر عرفات تر مازيګر وروسته نبي عليه السلام پر عضباء اوښه سپور وو چي نزول وسو نو د ډېر دروندوالي په وجه اوښه چوکه سوه او بيا يې اسناد د دغه حديث بخاري ته کړی دی طارق بن شهاب د عمر رضي الله عنه څخه روايت کوي چي يو يهودي د ده څخه پوښتنه وکړه چي دا آيت زموږ په کتاب کي نازل سوی وای موږ دا ورځ د اختر ګرځولی حضرت عمر رضي الله عنه ورته وويل چي کوم آيت يادوې نو يهودي دا تہر سوی آيت ورته تلاوت کړی نو حضرت سمر رضي الله عنه ورته وويل چي د دغه آيت د نزول ځای پر عرفات د جمعې په ورځ کي سوی دی او په دغه ورځ زموږ دوه اختره وي.

او دا حديث حميدي او احمد و عبيد بن حميد او البخاري او مسلم او ترميذي او ابن جرير او ابن المنذري و ابن حبان په خپل سنن کي د طارق بن شهاب څخه نقل کړي دي الخ الطبراني او البيهقي په دلايلو کي د ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت کړی دی چي ده مبارک دا آيت تلاوت کړی:

اليوم اكملت لكم دينكم. المائده ۳

نو يهودي ورته وويل که دا آيت زموږ په کتاب کي نازل سوی وای موږ به د اختر ورځ ګرځولې وای نو ابن عباس رضي الله عنه ورته وويل دا آيت په ورځ کي د دوو اخترو نازل سوی دی يوه د جمعې او بله د عرفې ورځ وه او په بل روايت کي ابن عباس رضي الله عنه فرمايي په دغه ورځ کي پنځه اخترونه وه جمعه، عرفه، اختر د يهودو، اختر د نصاراؤ او اختر د مجوسيانو او تر دغه مخکي او نه بعد داسي اخترونه يو ځای سوي دي نو ملا علي القاري رحمه الله وايي چي د ورځي څخه مطلق وخت مراد دی په حديث کي چي د اختر اطلاق ورباندي صحيح سي د ابن عباس رضي الله عنه په روايت کي ورځي د جمعې ته د مسکينانو حج ويل سوي دي او په بل روايت کي د قضاعي او ابن عساکر د ابن عباس رضي الله عنه وايي چي د جمعې ورځ د فقراؤ د حج ورځ ده او د دنياداره حج په عرفات کي دی او هر کله چي د مسکينانو حج د مالداره خلقو سره جمعه سي نو واجب دا ده چي دا حج اکبر سي والله اعلم سبحانه و تعالی.

اې مسلمانه وروره دا به ستا عقيده وي چي نبي عليه السلام په هر کال د خپل امت سره په حج کي وي لکه د صحيح مسلم په روايت کي راغلي دي چي نبي عليه السلام حضرت موسی عليه السلام او حضرت يونس عليه السلام په حرم د مکې او حرم د مدينې کي وليدل چي احرام بنده

وه په ډېر عاجزي سره وه خپل مولی ته نو اې مسلمانه ستا څنګه ګمان دی چې د دونه لوی منصب او ولايت سره نبي ﷺ پاتېږي؟

اللهم صل علی محمد صلاة تکون لک رضا ولحقه اداء. و اجزه عنا ببرکته افضل ما جزيت نبيا عن امته و صل علی جميع اخوانه من الانبياء. والمرسلين و الحمدلله رب العالمين.

ملا علي القاري رحمه الله دا رساله چې تمام ته ورسول مخامخ و کعبې شريفې ته ناست وو په يو زر اووم ۱۰۰۷ هـ ق کال کې د هجرت نبويه علی صاحبها الوف التحية حامدالله علی الطائفه الحنفية والجليلة تمت.

## دويمه رساله د علي القاري رحمه الله حج کبائر ګنهونه رژوي او که نه؟

تر حمد او صلاة او سلام او بسم الله الرحمن الرحيم بعد ملا علي القاري معنا علي بن سلطان محمد القاري وايي چې ما د دوو کسانو چې ډېر غټ امامان وه چې يو ډېر اعلم د شوافعو وو او دويم د فضلاؤ څخه د احنافو وو هر يو پخپل عصر او زمانه کې الشيخ ابن حجر المکي د شوافعو څخه اولمير بادشاه البخاري رحمه الله د احنافو څخه د دوی دواړو اقوال سره متعارض وه څکه عالم شافعي ميلان کړی وو دې ته چې حج کبيره ګنهونه رژوي او حنفي عالم تګ دې خبرې ته کړی وو چې نه يې رژوي نو يو خلق واقع کړې وه په امن او التباس کې او هغه بل په نا امېدی کې واقع کړې وه او شک نسته چې په يوه کې زياتوب تر حق دی او په بل کې کمبود تر حق دی او د دواړو د کلامو څخه يو قسمه خلط ملط پر خلقو راحي وجه دا ده چې دلايل او اثار ډېر په کتبې وارد سوي دي او صغيره ګنهونه خو په اتفاق سره په حج کولو رژېږي.

نو ملا علي القاري وايي چې ما وليدل نو زما زړه وغوښتل چې يو څه تفصيل په کتبې وليکم نو زه اوس شروع په کوم چې پته دې نه وي پر پوهانو خلقو چې د دغه جملې څخه يو څه حقوق د الله تعالی دي لکه لمونځ نه کول روژه نه نيول پر دې خو د ټوله علماؤ اتفاق دی چې ترڅو پوري د دغه لمونځو او روژو قضا را نه وړي چاره نه لري اګرچې تر توبې کښلو بعد وي او غټ رکن د کفارې توبه هم ده او بل د دغه جملې څخه د غټو او کبيره ګنهو بعضي حقوق د خلقو دي لکه قتل د يو شخص يا په ظلم سره مال اخيستل نو ظاهره ده چې داسي قسم کبيره ګنهونه حج نه رژوي بغير د دې څخه چې خپل ځان وارثانو ته د مقتول و نه سپاري او د ده مال ور تسليم نه کړي او يا اجازه ورڅخه وا نه خلي کوم کسان يا وارثان چې بې ژوندي وي او که داسي حقوق د الله تعالی وي چې قضا نه لري لکه شراب

خوړل یا غیره گناه او یا په حقوق العباد کي داسي یو حق پایماله سوی وي چي هیڅ قسمه یې نه وي او نه د حقدار وارثان پیدا کولای سي او نه هم قدرت ولري بیا هم امید د دې سته چي الله تعالی په خپل فضل سره دا کبیره گناه درته معاف کړي که ستا حج مقبول وو او د مقبوالي علم هم د الله تعالی سره دی لیکن یو څو اقوال اوس نقل کوم چي علماوُ د حج مقبول علامې بیان کړي دي:

۱: امام نووي رحمه الله وایي چي د مقبول حج علامه دا ده چي تر حج بعد بیا گناه ورڅخه و نه سي او دا قول د فقهي د قواعدو سره ډېر نژدې دی لیکن اوس لاهم ابهام په کښي سته ځکه انسان خو خالي نه دی د گناه څخه.

۲: دویم قول دا دی چي ریا او نوم او د شهوت پرستي او فسق علامې بې په حج کي نه سي پیدا.

۳: دریم قول دا دی چي تر حج بعد د هر قسمه گناه څخه پرهېز وکړي.

۴: حسن بصري رحمه الله وایي چي مقبول حج دا دی چي سړی د دنیا څخه بې رغبته سي او مینه یې آخرت ته پیدا سي امام القرطبي رحمه الله وایي چي ټوله اقوال سره نژدې دي په معنا او مطلب کي.

۵: پنځم قرطبي وایي دا دی چي د حج ټوله احکام پر خپل اصلي طریقه ادا کړي دا یې هم علامه ده ملا علي القاري رحمه الله وایي چي هر څوک په حرام مال سره حج کوي او یا گنهونه ورسره کوي نو هرکله چي حاجي ووایي لبیک و سعدیک معنا زه اې خدایه په خدمت او کومک او یاري دلته ولاړ یم نو ده ته ویل کېږي داسي چي نه تا لره لبیک او سعدیک سته بلکې ستا حج مردود سوی دی او په حدیث کي نبي علیه السلام فرمایلي دي چي هر چا په حرام مال سره حج وکړئ او تلبیه کي یې لبیک اللهم لبیک ووایه نو الله تعالی ورته ووایي چي ستا لبیک مونږ ته اعتبار نه لري ترڅو چي دغه حرامي روپۍ اصلي مالک ته و نه رسوې او په بل روایت کي راغلي دي چي ستا حج بیرته پر تا مردود دی.

په بل روایت کي راغلي چي الله تعالی ورته ووایي چي ستا کسب حرام دی کالي دي حرام دي توښه دي حرامه ده نو ولاړ سه خپل کور ته په گناه بار نه د ثوابه سره او و تا ته د گنهو زیری دی او یو شاعر د دغه حدیث مضمون په خپل شعر کي هم ویلی دی:

اذا حججت بمال اصله سحت

فما حججت ولكن حجت العير

لا يقبل الله الاكل طيبة

ما كل من حج بيت الله مبرور

ژباړه: چي ته په حرام مال حج وکړې دا حج نه دی بلکې دا يو قسم ديدار وسو د قافلو سره او الله تعالی هغه پاک شی قبلوي او هر حج هم مقبول نه دی چي ته زيارت د بيت الله وکړې په حرامو سره.

## دري حکايتونه د اولياوو

۱: امام زين العابدين چي د حج احرام وتړی او پر خپله دابه سپور او برابر سو رنګ يې ژړ سو او بدن يې په لرزه سو او طاقت يې نه درلودی چي تلبيه ووايي نو يو چا ورته وويل څه وجه ده چي تلبيه نه وايې ده ورته وويل زه بېرېږم چي زه ووايم لبيک او سعديک او راته وويل سي چي نسته ستا لبيک او سعديک بيرته راجع سو تا ته اليک نو هرکله چي ده تلبيه شروع کړه بېسده سو د دابې څخه راشوه سو پر اوښه سپور وو او مخ يې زخمي سو.

۲: يو عالم وايي چي زه په ذي الحليفة کي وم چي يو ځوان د حج احرام وتړی نو به ده ويل اې ربه زه خو اراده لرم چي تلبيه ووايمه او بېرېږمه چي ستا د جانب څخه را ته و نه ويل سي چي ستا لبيک او سعديک نسته دا بيرته پر تا در غورځول کيږي نه قبليږي نو دغه ځوان يو څو واره دا خبري مکرري کړې د ځانه سره بيا چي ده وويل لبيک اللهم لبيک نو يې آواز لوړ سو او د دغه آواز سره د ده څخه روح پرواز وکړی خداي دي پر ده او موږ رحم وکړي.

۳: يو بل بزرګ وايي چي ما په ذو الحليفة کي يو ځوان وليدی چي احرام يې اغوستی وو خلقو به تلبيه ويله ده هيڅ نه ويل وايي ما ورته وويل چي اې ځوانه ده وويل لبيک معنا په خدمت درته ولاړ يمه باره مي ورته وويل چي ولي تلبيه نه وايې نو ده راته وويل چي اې شيخه بېرېږمه چي زه لبيک ووايم او راته وويل سي چي ستا لبيک او سعديک نه اورو او نه درته ګورو نو ما ورته وويل چي الله خو مهربان دی چي په قهر سي هم راضي کيږي او که راضي سو بيا نه په قهر کيږي او چي وعده وکړي نه پښېمانه کيږي او که چا ته د عذاب وفرمايي بيا هم عفوه ورته کوي نو ده راته وويل اې شيخه ته وما ته مشوره راکوې چي زه تلبيه ووايم وايي ما ورته وويل چي هو زما درته اجازه ده نو دی اول پر مځکه پرېوتی يو خو مخ يې پر مځکه کښېښود پر هغه بل طرف يې ډېره کښېښوده او د ده اوښکي را ايله سوې نو يې تلبيه شروع کړه او په ډېره کراره يې تلبيه وويله باره ولاړ سو او ولاړی.

ملا علي القاري رحمه الله وايي چي هرکله بنده د اميد او د خوف تر ماېين واقع وي په حصول کي د خپل مراد نو نبي عليه السلام فرمايلي دي چي څوک حج وکړي او فساد په کښي و نه کړي نو د حج څخه داسي د ګناه څخه پاک راسي لکه دی چي اول د موره څخه پيدا سوی وو دا حديث امام بخاري او امام احمد په مسند کي او نسائي او ابن ماجه په خپلو سننو کي را اخيستی دی او په دغه حديث کي دا نسته چي کبيره ګنهونه د سري بخښل کيږي نه

صراحةً نه دلالةً لکه علماء چي په پوهيږي لهذا د دغه حديث په تقرير کي هيڅوک دا نه سي ويلای چي د ده گنهونه غټ او کوچني وبخښل سوه علاوه دا ده چي ډېر داسي حديث د ترغيب او ترهيب دپاره بيان سوي دي د دې قسمه حديث ډېر په کتابو کي راغلي دي:

۱: نبي ﷺ فرمايي څوک چي قرباني حلاله کړي او تلبيه ويونکي وي او لمر ولوېږي نو د ده څخه هم گنهونه شوه سي نو داسي وگرځي لکه د موره څخه چي اوله ورځ پيدا سوی ؤ. روايت کړی دی احمد پخپل مسند کي او ابو داود پخپلو سننو کي د جابر ؓ څخه نو دا حديث پر دې دلالت نه کوي چي د ده کبيره گنهونه معافيږي او که داسي نه وي نو د علماؤ اجماع پر دغه راغلې ده چي څوک قرباني حلاله کړي او تلبيه ويونکی وي نو دا د ده کبيره گنهونه نه رژوي مگر که الله تعالى فضل پر وکړي دا جلا خبره ده.

۲: دويم حديث دا دی چي اخراج یې ابن ابي ليلی د عقبه بن عامر څخه کړی دی چي نبي ﷺ وفرمايل چي لمر راوخيژي يوه نېزه يا دوې نېزې قدري او سړی ولاړ سي بنه کامل اودس وکړي او بيا دوه رکعته لمونځ وکړي نو د ده ټوله گنهونه بخښل کيږي داسي لکه دی چي د موره څخه په اوله ورځ پيدا سوی وو.

۳: قول د نبي ﷺ دی چي هر څوک د حج مناسک پوره کړي او خپله ژبه او لاسونه یې سالم ساتلي وي نو څونه گنهونه چي ورڅخه سوي وي ټوله الله تعالى ورته بخښي. على ما رواه عبد بن حميد نو دا حديث خو صريح دی زموږ په دعوا کي چي کبيره گنهونه وربخښل کيږي ځکه په دغه حديث کي په عربي کي کلمية د لفظ د ما راغلې ده او دا دپاره د عموم ده چي صغيره او کبيره دواړه تر لاندي کيږي.

۴: قول د نبي ﷺ دی چي حاجيان او عمره کونکي د خدای جل جلاله لښکر دي الله تعالى هغه دوی ته ورکوي چي دوی یې سوال او غوښتنه کړ وي او د دوی هره دعا قبلوي او د هري روپۍ په بدل کي لس لکه روپۍ ورکوي (۱۰۰۰۰۰۰). رواه البيهقي في شعب الايمان نو په دغه حديث کي بيا هيڅ دلالت زموږ پر دعوا را نه غلی.

۵: قول د نبي ﷺ دی چي سړی د کوره څخه ووتی او قصد یې د بيت الله درلود نو هر گام چي د ده دابه اخلي الله تعالى ده ته يوه نيکي ليکي او يوه گناه ورڅخه رژوي او کوم چي پر عرفات د ده درېدل دي الله تعالى د دنيا آسمان ته راکښته سي نو پر ملايکو فخر کوي ورته وايي دا زما بندگان خيرن بېر سرونه راغلي دي زما رحمت غواړي او زما د عذاب څخه بېرېږي او زه یې نه يم ليدلی نو که ما ووينې بيا به څنگه حال وي نو د دوی گنهونه چي د ريگو د غونډۍ په شان وي او يا په مثل د دنيا د ورځو او شپو وي او يا په مثل سره د باران د څاڅکو وي الله تعالى یې ورته بخښي او ورڅخه پرېولي یې او د

شیطانانو د څلو د ویشتلو ثوابونه ورته ذخیره کیږي او د سر څخه چي یې هر ویښته په خریلو کي را شوه کوي د هر ویښته په بدل کي یوه نیکي ورکول کیږي چي پر بیت الله طواف وکړي د ګناه څخه داسي پاک سي لکه د موره چي اوله ورځ پیدا سوی وُ. علی ما رواه الطبراني في الکبیر دا حدیث هم د کبائرو پر رژولو دلالت نه کوي علاوه لا دا ده چي مظالم به وربخښل کیږي ډېره لیري ده.

٦: شپږم حدیث قول د نبي ﷺ چي حج روژي هغه ګنهونه چي د ده څخه د دوو حجو تر مابین سوي وي، علی ما رواه ابو الشیخ عن ابي دا حدیثونه اګرچي دلالت خو کوي پر عموم ګناهو باندي چي شامل و کبائرو ته هم دی لیکن علماؤ دا خاص کړي دي په صغیره ګناهو پوري لکه د اوداسه د لمانځه او روژې په شان کي همداسي حدیث راغلی دی خصوصاً بیا په هغه اقوالو کي چي داسي ټکي هم راغلي دي چي ورته بخښل کیږي ګناهونه ترڅو چي د کبیره ګناهو څخه ځان ساتنه وکړي لکه په قرآن کي الله تعالی فرمایلي دي:

ان تجتنبوا کبائر ما تنهون عنه نکفر عنکم سیئاتکم. النساء ۳۱

ژباړه: که تاسي د کبیره ګناهو څخه ځان ساتنه وکړئ کوم چي ورڅخه منع سوي واست نو زه ستاسي ګناهونه معافوم او درڅخه رژوم یې.

شاید چي مأخذ د عیاض او نووي وغیره علماؤ هم دغه آیت دلیل ګرځولی دی چي رژول د ګناهو په عباداتو سره خاص صغیره ګناهونه دي نه کبیره.

٧: او کوم قول چي د نبي ﷺ دی چي څوک پر بیت الله اووه شوطه طوافونه وکړي اووه رکعته لمونځ د مقام ابراهیم سره وکړي او د زمزم اوبه وچښي نو د ده هر څونه ګناهونه چي دي تېوله الله وربخښي، علی ما رواه الدیلمي و ابن النجار اول خو علماؤ د دغه په صحت کي قول کړی دی چي باطل دی او که باطل هم نه سي دا دعوا نه په ثابتیږي چي کبیره ګناهونه بخښل کیږي علاوه لا دا چي علماء په داسي حدیث دلیل ووایي دا خو د فقهاؤ د شان څخه ډېره لیري ده.

٨: او بل قول د نبي ﷺ چي تاسي حج او عمره پرله پسې کوئ ځکه دا فقر او ګناهونه داسي ورکوي لکه د اوسپني زنګ چي د آهنګر بټۍ ورکوي همدا رنګه د سرو او سپینو زرو څخه او د مقبول حج بدل جنت دی، علی ما رواه احمد و الترمیذي و النسائي عن ابن مسعود ﷺ د دې حدیث څخه هم په اتفاق سره د علماؤ صغیره ګنهونه مراد دي او که یې صغیره نه درلودل په کبیره ګناهو کي یې یو څه سپکوالی راځي او که یې دواړه قسمه ګناهونه نه درلودل نو درجات یې پورته کیږي لکه د انبیاؤ او اولیاؤ او ته پوه سوې چي د

مقبول حج بدل جنت دی دا اشاره ده ډېر ثواب ته چي کامل والی يې بل شی نه سي کولای بې له جنته څخه او بل په کښي اشاره ده حسن خاتمي ته او په دغه حديث کي هم هيڅ دلالت نسته پر دې خبره چي غټ ګنهونه ورته بخښل کيږي.

۹: او دا قول د نبي ﷺ چي د ميت پر ځای څوک حج وکړي نو ميت ته د پوره حج ثواب ورکول کيږي او کونکی د حج ته الله براءت د اور څخه ورکوي، علی ما رواه الديلمي نو دا حديث د باب څخه د ترغيب دی او يا کبيره ګناه والا هم د ابد دوزخ څخه براءت ورکوي او يا دی د خدای جل جلاله تر مشيت لاندي دی.

۱۰: او دا قول د نبي ﷺ چي ملايکي د حاجيانو سره مصافحې کوي چي سپاره وي او د پياده وو سره بيا غاړه په غاړه روغبړ کوي، علی ما رواه ابن ماجه نو دلته هم دلالت پر مغفرت نسته.

۱۱: او قول د نبي ﷺ چي عمره کونکی د بيت الله اهل د الله تعالی دی، علی رواه عبد بن حميد و ابويعلی في مسنده و الطبرانې في الاوسط و البيهقي في السنن عن انس او د دې نظير دا قول دی چي اهل د قران اهل الله دي نو پر دغه کسانو هيڅ نه دي ويلي چي دوی د غټو ګناهو څخه هم مغفرون دي.

۱۲: او د نبي ﷺ قول دی چي د حاجي سره ملاقات کوئ سلام ورته کوه مصافحه ورسره کوه او امر ورته کوه چي د مغفرت دعا راته وکړه ترڅو چي کور ته نه وي داخل سوی ځکه دی مغفور دی، علی ما رواه احمد في مسنده نو معنا يې دا سوه چي في الجمله ورته بخښنه سوي ده او که داسي معنا ورڅخه وانه خلي نو تر حج بعد خو هم ګناهونه ورڅخه کيږي نو حديث پر اطلاق مراد نه دی نور زياتي بيان درته را روان دی او د اهل السنت و الجماعة مذهب هم دا دی چي تر شرک لاندي ټول د الله تعالی تر مشيت لاندي دي بلکې زموږ کلام په يقين کي دی په مغفرت سره د کبيره ګناهو او دغه زموږ د شرعي قوانينو څخه برخلاف دی علاوه دا ده چي دلالت ظاهره داسي دی چي غالبه اميد د عموم مغفرت دی او ابن الهمام چي کوم قول په شرحه د هِدايې کي کړی دی چي نبي ﷺ په عرفات کي د خپل امت د مغفرت دپاره ډېر کوشش وکړی چي د قتل او ظلم په باره کي د امت دپاره د ده دعا قبوله نه سوه.

۱۳: ابن ماجه په خپل سنن کي د عبدالله بن کنانه د عباس بن مرداس څخه روايت کړی دي چي د ده پلار د خپل پلار څخه بيان وکړی چي نبي ﷺ د عرفات په ورځ د خپل امت دپاره دعا وکړه نو په جواب کي ورته وويل سوه چي ما مغفرت ورته کړی دی ماسوا د مظالمو څخه نو د مظالمو په شان کي دلته دعا قبوله نه سوه چي د مزدلفې په سهار وختي

کي بيا هغه دعا وکړه نو الله تعالی ورته وويل ما ستا دا دعا هم قبوله کړه نو نبي ﷺ خندل حضرت ابوبکر صديق ﷺ ورته وويل زما مور او پلار دي تر تا قربان وي تا خو داسې وخت خندا نه کوله نو ته کوم شي وخندولې نبي ﷺ ورته وويل چې د خدای دښمن شيطان چې خبر سو چې زما دعا د امت د مظالمو په باره کي الله قبوله کړه او مغفرت يې ورته وکړي نو ده پر سر خاوري بادولې او د ځان دپاره يې د هلاکت ښيراوي کولې نو زه د ده پر فرياد وخندولم، رواه ابن عدي واعله بکنانة و رواه البيهقي او د دغه حديث نور ډېر شواهد هم سته هغه مو په شعب کتاب کي ذکر کړي دي او که د شواهدو سره صحت پيدا کړي خو دغه زمونږ دپاره حجت او دليل دی او که صحت پيدا نه کړي په قرآن کي الله تعالی فرمايلي دي چې تر شرک را لاندي زه وربخښمه:

و يغفر ما دون ذلک لمن يشاء. النساء ۴۸

او د بندګانو ظلم خو هم د شرک را لاندي دی په درجه کي ملا علي القاري رحمه الله وايي چې امام بخاري په دغه حديث کي دوه راويان ضعيف ګرځولي دي او ابن الجوزي وايي چې د دليل دپاره صحت نه لري ځکه دا يوازي عبدالعزيز يوازي والی په کښې کړی دی او ابن حبان وايي دې به حديث بيانول ليکن پروا يې نه ساتله نو د ده حديث قابل د حجت نه دی او په ظاهره حديث عام دی قيد د حاجي وغيره په کښې نسته نو پر تقدير د صحت هم حمل کيږي د بعضي امت پر ګناهو ځکه هغه حديثونه نژدې په تواتر سره رسېدلي دي چې بعضي ګناهګاران به د دغه امت څخه په عذاب د جهنم معذب کيږي يو څه مده بيا به راوځي په شفاعت سره د اوره څخه اوس په دغه تقدير سره دفعه سو د هغه مناقضه په روايت د الحافظ المنذري د ابن المبارک څخه هغه د سفيان الثوري هغه د الزهري بن عدي هغه د انس بن مالک ﷺ چې دی وايي نبي ﷺ پر عرفات ودرېدی او لمر هم قريب وو لوېدو ته نو يې بلال ﷺ ته وويل چې ناري کړه چې خلق آرام سي او ساکت سي بلال ﷺ ساکت کړه نو نبي ﷺ ورته وويل اې ټولې د مسلمانانو و ما ته جبرائيل ﷺ اوس راغلی او زما د رب سلام يې راته راوړل او دا يې راته وويل چې الله عزوجل و اهل د عرفات او اهل ته د مشعر مغفرت وکړی او د تبعات ضمانت يې الله واخيستل نو عمر بن الخطاب ﷺ ودرېدی ويل يارسول الله ﷺ دا زمونږ دپاره خاص دی نو نبي ﷺ ورته وويل چې دا حکم ستاسي دپاره او د هغه کسانو دپاره دی چې تر قيامته پوري پر دغه ځايو درېږي نو عمر ﷺ وويل ډېر دی خېر د رب زمونږ او ډېر خوشحاله سو.

ملا علي القاري وايي دا حديث په ظاهره عموم فايده کوي چې غټ او کوچني ټوله ګناهونه تر لاندي دي ليکن دا هم حمل کيږي في الجملة د يو خاصو کسانو دپاره چې د

ټوله دلايلو ترمابين جمعواري راسي او علاوه دا ده چي په دغه حديث كي هم داسي دلالت نسته چي هر يو د دغه موقف ورڅخه مراد دى خصوصي بيا هغه كسان چي حقوق الله او حقوق العباد ور باندي پاته وي نو دا هم تصريح نه سوه نو مناسب دا ده چي په تېر حديث كي تبعيات لفظ ذكر سو د هغه څخه صغير گناهونه مراد دي نو اوس ټوله روايات سره موافق راغله او الشيخ التورپشتي زموږ د احنافو امامانو څخه په شرح المصابيح كي ويلي دي چي اسلام ټوله پخواني گناهونه رژوي ظلم وي او كه كبيره او يا صغيره گناه وي او هجرت او حج مظالم نه رژوي او په دغه دواړو سره يقين دا هم نسته چي كبيره گناهونه چي د بنده او د ده د مولٰى تر مابين دي هغه ورته معاف سي او هجرت مخكي گناهونه رژوي او حج مخكي گناهونه رژوي مراد ورڅخه صغيره دي او احتمال لري چي كبيره گناهونه هم په معاف سي خو شرط د توبې ورسره سته او زموږ د علماؤ څخه بل شارح بيا ويلي دي چي اسلام د سړي څخه كفر او عصيان رژوي او هغه شيان چي پر كفر مرتب كيږي چي عذابونه دي د حقوق الله په اعتبار سره او حقوق العباد نه په اسلام او نه په هجرت سره او نه په حج سره معافيږي او اجماع سره د علماؤ او د قاضي عياض څخه هم د صغيره گناهو معافېدل منقول دي او كبيره بې له توبې يا د خداى د رحمت څخه ماسوا بل شى يې نه سي معافولاى او ابن حجر المكي همدغسي ذكر كړي دي او ابن عبدالبر هم خاص صغيره ياد كړي دي لو هغه ځوك يې غلط سوى بللى دى چي كبيره هم تر لاندي كوي علامه سيوطي په حاشيه د بخاري كي هم دغسي فرمايلي دي او كوم اختلاف چي پيدا وو د دې څخه يوه نوعه د كبيره گناهو مراد ده نه عام لكه تفصيلي بيان چي يې درته تېر سو.

تمت الرسالة و من الله التوفيق اللهم تب علينا اللهم اغفرلنا او اللهم ارحمنا اللهم لا تواخذنا اللهم ربنا لاتحمل نا ما لا طاقة لنا به.

## فصل د حرم المحترم حدود

حدود الحرم زاده الله شرفا و امنا و تعظيما حده من طريق المدينه دون التنعيم على ثلاثة اميال من مكة و من طريق الجعرانه على سبعة اميال و من طريق جدة على عشره اميال و من طريق الطائف على سبعة اميال و من طريق العراق على سبعة اميال.

متن و بعده ترجمه و شرح ملا علي القاري

د حرم محترم په حدود كي ډېر اختلافونه راغلي دي الهندواني وايي چي مقدار د حرم د مشرق لمرخاته دخوا څخه شپږ ميله دى ميل د ميتر په حساب دوه زره گزه كيږي معنا دوه كيلوميتره او دويم جانب څخه پنځه زره ميتره ليري دى او د دريم طرف څخه نهه زره ميتره ليري دى او د ځلورم طرف څخه اووه زره ميتره ليري دى او دا بيان داسي يو شى دى

چي په عقل نه بلکې په نقل سره پېژندل کيږي لهذا الصدر الشهيد وايي چې د حرم دويم طرف ته مسجد تنعيم دی او هغه تر دريو زره گزه حرم ته نژدې دی همدغسې په فتاوای ظهريه کي راغلي دي او په سراجيه کي راغلي دي چې دويم طرف ته چي درې ميله ذکر سو دا صحت لري ملا علي القاري وايي چې تنعيم چا ليدلی وي هيڅ شک نه کوي چې درې ميله ليري دی او کوم چي هندواني ياد کړي دي د هغه مراد د ثاني جانب څخه د لمر لوېدو خوا مراد ده هغه خو د حديبې طرف دی چې لس ميله معنا شل کيلوميتره مسافه ده بې له خلافه څخه ماتن وايي چې د مدينې د طرفه څخه د تنعيم پر لاره درې ميله چې شپږ کيلوميتره کيږي ليري دی او جعرانې پر طرف د حرم اندازه څوارلس کيلوميتره ليري والی دی چې اووه ميله کيږي او د جدې د طرف څخه شل کيلوميتره کيږي چې لس ميله په شريعت کي ورته ويل کيږي او د طايف پر لاره څوارلس کيلوميتره چې اووه ميله کيږي اندازه ده او د عراق دخوا څخه ياهم څوارلس کيلوميتره چي اووه ميله کيږي ليري والی لري چي امام الازرقي او النووي وغيره علماؤ دا حدود د حرم ښوولي دی ليکن ازرقي صرف دا خبره يوازې کړې ده چې د طايف دخوا څخه دوويشت کيلوميتره فاصله لري چې ۱۱ يولس ميله کيږي او د دواړو اقوالو جمع والی کېدای سي چې د ازرقي مراد د غره لاره وي او د جمهورو علماؤ بله لاره مراد وي.

## فصل حرم ته چي جنايت گر داخل سي

من جنى في غير الحرم بان قتل او ارتد او زنى او شرب خمرا او فعل غير ذلک مما يوجب الحد ثم لا ذ اليه لا يتعرض له مادام في الحرم و لکن لا يبايع و لا يواکل ولا يجالس ولا يؤوى الى ان يخرج منه فيقتص منه و ان فعل شيئا من ذلک في الحرم يقام عليه الحد فيه و من دخل الحرم مکابرا مقاتلا قتل فيه و لا بأس بدخول اهل الذمة المسجد الحرام.

متن و بعده شرح علي القاري

هرڅوک چې د حرم څخه خارج او دباندي يو جنايت وکړي لکه مثلاً قتل وکړي يا مرتد سي يا زنا وکړي يا شراب وڅښي او يا بل داسي کار وکړي چې حد پر جاري کيږي او دی پناه راوړي حرم محترم ته او په يو کونج کي د حرم داخل سي نو هيڅوک ده ته تعرض نه سي کولای په وهلو يا قتل کولو يا بندي کولو سره ترڅو چې په حرم کي وي ليکن هيڅ څوک به بيعه او شرا نه ورسره کوي نه به خوراک او نه به ناسته ورسره کوي او نه به ځای ورکوي چې مجبوره سي په خپله ووزي او د حرم څخه دباندې حد پر جاري سي او دا مذهب د امام اعظم او ابو يوسف او محمد او زفر رحمهم الله دی صرف محمد رحمه الله وايي چې د عامو اوبو څخه دي نه منع کيږي او که يې د يو چا لاس ور پرې کړی وو نو امام اعظم رحمه الله وايي

داسي حد هم په حرم کي نه سي چلېداى او ياران وايي پر و دې چلوي.

او که يو سړى داخل په حرم کي داسي اعمال وکړه لکه بيان چي يې تېر سو بيا نو په حرم کي دننه دا حدود جاري کېداى سي مثلاً چي مرتد سي نو به اسلام ورباندي عرض کړي که يې انکار وکړئ مړ دي کړي ځکه دا هم يو قسم جنايت دى او د امام اعظم رحمه الله مذهب نه قتل کيږي په بدائع کي راغلي دي چي کافر حربي پناه حرم ته راوړي لا دي تعرض نه ورته کوي قتل يې جواز نه لري زموږ پر مذهب باندي ليکن د خوراک وغيره سامان دي نه ورکوي لکه چي درته تېر سوه او که يو شوک د سلاح په زور او غرور سره حرم ته داخل سو کافر وي که فاجر قتل دي سي پروا نه لري او حرم ته د مسجد که اهل ذمة معنا باشنده د مکې کافر ورسي هم پروا نه لري والله اعلم.

## فصل د حرم د خاوري ايستل خارج ته

ولا باس باخراج تراب الحرم و احجاره و اشجاره اليابسة والاذخر مطلقا و يكره اجارة بيوت مكة فى الموسم و يكره بيع اراضى مكة لا بناؤها و قيل يجوز بيعها وعليه الفتوى و تكره الصلاة بمكة فى الاوقات المكروهة كغيرها و لقطة الحرم كلقطة الحل و لا يحرم صيد وادى.

متن و بعده شرح علي القاري

هيڅ پروا نه لري چي د حرم محترم خاوري يا ډبري يا درختي وچي سوي يا سورګني مطلق د ځان سره خارج د حرم ته يوسي او امام شافعي رحمه الله جواز نه ورکوي همدا رنګه جواز لري چي د تبرک دپاره يې يوسي علاوه لا دا ده چي مستحب کار دى په اجماع سره د علماؤ د زم زم د اوبو وړل خپل وطن ته لکه په الکبير کي راغلي دي همدا رنګه د بيت الله دننه خاوره وړل يو عالم وايي چي دا خاوره وړل د حرم څخه په لږ اندازه سره جواز لري چي خرابي نه وي په کېنبي او که کندي يې جوړولې بيا جواز نه لري.

او بحر زاخر په عدم الجواز حکم کړى دى مطلقا او د زمزم د اوبو وړل په اتفاق سره جواز لري او د حرم داخل ته به د خارج څخه خاوره نه راوړي او نه به هم ډبري لکه داسي مطلق عبارت چي الکبير ذکر کړى دى او که ضرورت ورته وو لکه د اسکندري څخه يې ستني د حرم دپاره راوړې بيا جواز لري مکروه دي اجاره ورکول د مکې د کورو او اخيستل په اجاره باندي د حج په موسم کي نه بل وخت دا د امام اعظم رحمه الله مذهب دى لکه ده مبارک به حاجيانو ته ويل تاسي ته که يې دغسي ځايونه درکول ورځئ او که په مزدوري وه بيا مه ورځئ او مکروه ده خرڅول د مکې د ځمکي همدا رنګه په اجاره ورکول او د بناؤ او کوټو خرڅول يې جواز لري او قيل وايي چي د مکې د ځمکي خرڅول جواز لري او فتوا هم پر دغه

قول ده چي په عربي ورته وعليه الفتوى ويل سوې ده د مکې په مځکه کي د حرم تول ماحول داخل دی حتی منا لا په کښې داخله ده ليکن د امام اعظم رحمه الله او ابويوسف او محمد رحمه الله په ظاهره روايت کي يې خرڅ جواز نه لري ځکه دا خو وقفي مځکه ده د هيچا ملک نه دی تائيد يې دا قول:

والمسجد الحرام الذی جعلنا للناس سوای العاکف فيه و الباد. الحج۲۵

مسجد حرم هغه ځای دی الله (ج) وايي موږ د خلګو دپاره ګرځولی دی که په کښې اوسيږي او که د صحرا څخه ورته راسي.

معنا مقيم او مسافر او د يارانو پر مذهب د مکې د مځکي خرڅول روا دی او دا روايت الحسن رحمه الله د امام اعظم رحمه الله څخه کړی دی او الصدر الشهيد وايي فتوا هم پر دغه قول ده شايد چي مراعات دلته د عامي بلوا په خاطر سره سوې ده صاحب د لباب د محمد رحمه الله قول يو وار د امام اعظم رحمه الله سره يو ځای کړی دی په نه جواز کي د خرڅ او نورو علماؤ بيا د ابو يوسف رحمه الله سره ګډ کړی دی په جواز کي نو مناسب دا ده چي د لباب قول داسي نقل سي چي فتوا د امام اعظم رحمه الله او محمد رحمه الله پر قول ده والله اعلم او د مکې بناوي چي خرڅوي يې په دې کي هيڅ نقصان نسته بلکې په اجماع سره د علماؤ جواز لري ځکه ځوک چي د وقفي مځکي څخه خاوره واخلي يو شی ورڅخه جوړ کړي دا د ده ملک ګرځي لکه په روپو چي يې رانيولې وي همداسي علماؤ ليکلي دي ليکن خرڅول يې جواز نه لري سائل دا سوال کړی مګر جواب به دا ورکړي چي وغير ته پر طريقه د تجارت به جواز نه وي په مکروه وختو کي په مکه کي هم لمونځ جواز نه لري او په حرم کي چي ځوک شی پيدا کړي داسي به يې يو کال تعريف کوي لکه د حل د مځکي شی.

## فصل د زمزم اوبه ډيري څښل مستحب دی

ويستحب الاکثار من شرب ماء زمزم والنظر فی زمزم عبادة ويجوز الاغتسال والتوضؤ بماء زمزم علی وجه التبرک ولا يستعمل الا علی شئ طاهر و يکره الاستنجاء به و يستحب حمله الی البلاد.

متن و بعده ترجمه و شرح علي القاري

د زمزم د اوبو ډېر څښل مستحب عمل دی او ډيري اوبه څښل يې د ايمان علامه ده او دا اوبه په زړه کي خوشحالي راولي د زړه خفګان ليري کوي او کتل ورته عبادت دی که په نيت ورته کتل يې د عبادت وو نه پر طريقه د عادت لکه کعبې ته کتل چي عبادت دی قيل وايي چي يو ساعت ورته کتل داسي ثواب لري لکه د يو کال عبادت په اندازه نيکۍ سره، او د زمزم په اوبو غسل او اودس دواړه جواز لري هيڅ کراهت زموږ د احنافي ثلاثه وو

نه لري علاوه دا ده چي داسي قسم استعمال به د تبرک په نیت سره وي خو استعمال به يې پر پاک شي باندي وي لهذا جنب لره غسل يا مرداري په پاکول يا استنجاء په وهل جواز نه لري بلکې په نجاست کي يې استعمال حرام علماؤ بللی دی ویل سوي دي چي څوک استنجاء په ووهي د باسور په مرض به اخته سي.

او د ځانه سره وړل يې خپل وطن ته د تبرک دپاره نورو خلقو ته مستحب عمل دی امام ترميذي د حضرت بي بي عايشه رضي الله تعالى عنها څخه روايت کړی دی دي به اوبه د زمزم وړلې او ويل به يې چي نبي ﷺ د ځانه سره وړي دي او غير د ترميذي په بل روايت کي راغلي دي چي دې مباركي به وړلې او پر مريضانو به يې تويولې او په چنبلې به يې او د حسن ﷜ او حسين ﷜ په خوله کي به يې منبولې.

ارشاد الساري په حاشيه کي ليکلي دي ۱: ابن عباس ﷜ روايت کوي چي نبي ﷺ وويل چي د مځکي پر سر د زمزم تر اوبو غوره اوبه نسته دا اوبه د خوراک شی هم دي د اوبېدو شی هم دي او د مرض شفاء هم ده د تبي دوا هم ده او شر د اوبو د حضر موت د شيلې اوبه دي په برهوت کي دي الخ، رواه الطبراني في الکبير او ټوله راويان د حديث ثقه علماء دي و رواه حبان ايضاً.

۲: ابو ذر ﷜ روايت کوي چي نبي ﷺ وويل د زمزم اوبه د خوراک سامان دی او شفاء د تبي جن دپاره ده، رواه البزار باسناد صحيح.

۳: د ابن عباس ﷜ څخه روايت دی چي دی وايي موږ به د زمزم اوبو ته د مړي دوشي وايه او دا به ډېر لوی معاون وو زموږ د اولادو د موړوالي دپاره، رواه الطبراني في الكبير و اسناد صحيح.

۴: د ابن عباس ﷜ څخه روايت دی چي نبي ﷺ وويل چي د زمزم اوبه د هر هغه شي دپاره تاثير کوي چي د کوم شي نيت يې کړی وي که يې د يو مرض د شفا دپاره وڅښي شفا ورکوي الله تعالى او که يې د موړوالي دپاره وچښلې الله تعالى هغه شخص موړ کړي او که يې د تندي د ماتوالي په نيت وچښلي بيا يې اوبوي الخ، رواه الدر قطني الخ.

۵: ابن عباس ﷜ چي به د زمزم اوبه چښلې نو دا دعا به يې کوله اې خدايه زه علم نافع غواړم رزق پراخه غواړم او شفا د هر درد څخه غواړم ابن هشام وايي دا حديث په صحيح سند رسيدلی دی.

حکايت: ابوبکر الدينوري په ځلورم مجلس کي روايت کړی دی چي وما ته محمد بن عبدالرحمن هغه د الحميدي څخه هغه د سفيان به عينيه څخه بيان کوي چي د زمزم د

اوبو په شان کي چي نبي ﷺ فرمایلي دي هغه حدیث صحیح دی چي د زمزم اوبه د هر نیت په اعتبار سره تاثیر کوي ځکه یوه سړي د زمزم د اوبو ځخه یوه سوال وغه اوبه وڅښلې په دي نیت سره چي وما ته سل حدیثونه بیان کړي نو سفیان رحمه الله ورته وویل کښېنه نو ده سل حدیثونه هم ورته بیان کړه نو ټول حدیثونه چي ذکر سوه صحت لري هیڅ شک نسته په کښي.

٦: جابر رضي الله عنه وايي ما د نبي ﷺ ځخه اورېدلي دي چي مبارک ﷺ وویل د زمزم اوبه د هغه څه دپاره دي چي ده یې نیت کړی وي دا لفظ ابن ماجه هم نقل کړی دی او د احمد هم دغه روایت دی حافظ المنذري وايي دا حدیث حسن دی الخ.

د یو لوی جماعت ځخه د علماوو داسي نقلونه راغلي دي چي دوی به د هر مقصد دپاره څښلي هغه مقصد به الله ورته پوره کړی لکه یو حکایت د ابن عیینه تېر سو او امام شافعي رحمه الله د زمزم اوبه په دې نیت سره څښلي وې چي دی ځلي ښه وولي نو په لسو کي به یوه دانه خطا کېده او الحاکم الحسن څښلي وې په دې نیت سره چي د ده ځخه تصنیفات نقل سي نو دی په خپل عصر بې مثله عالم وو ارشاد الساري وايي زموږ شیخ قاضي القضاة شهاب الدین العسقلاني الشافعي وايي چي زه شمار نه سم کولای چي ډېرو اماماتو د جلا جلا نیتو دپاره څښلي دي او هغه پوره سوي دي او پخپله ما دا دعا وکړه چي د الذهبي د حدیثو حافظ په شان ما هم حافظ کړه اې خدایه نو بیا شل کاله پس ولاړم حج ته نو ما خپل ځان تر ده په حفظ کي لوړ وبلی نو بیا مي دعا د زیاتوب وکړه نو امید سته چي دا مقام ته هم وصل سم الخ والله سبحانه وتعالی قادر مقتدر.

## باچا د کعبي په پوښ کي تصرف کولای سي

امر کسوة الكعبة زادها الله شرفا و كرما الى السلطان ان شاء باعها و صرف ثمنها فی مصالح البيت وان شاء ملكها لاحد وان شاء فرقها علی الفقراء ولا بأس بالشراء منهم ولايجوز اخذ شئ من طيب الكعبة ولو تتبرك وعليه رده اليها وان اراد التبرك اتی بطيب من عنده فمسحه بها ثم اخذه.

متن و بعده شرح علي القاري

دا فصل ثابت دی په دغه بیان کي چي د بیت الله شریف احرام او پوښ زوړ سي د وخت باچا کولای سي چي تصرف په کښي وکړي که یې خرڅ کړ نو به دا روپۍ د بیت الله شریف، الله تعالی دي د دې تکریم او تعظیم ډېر کړي په کښي ولګوي لکه فتاوای سراجي چي داسي اقتصار کړی دی او که یې دا د احرام قیمت و مسکینانو ته په ملکیت ورکوی هم جواز لري او که یې یوه مسکین ته په ملکیت ورکوی هم جواز لري برابره خبره ده چي د حرم

مسکینان یا خادمان وي او که د خارج څخه وي جواز لري هرکله چي مسکینانو قبض او قبول کړي بیرته رانیول ورڅخه جواز لري کما في النخبة لیکن بحر الزاخر لیکلي دي چي د بیت الله شریف د احرام څخه پرېکول جواز نه لري او نقل او بیعه یې هم جواز نه لري او رانیول یا یې توکړ په قرآن کي ایښودل هم جواز نه لري او که یو چا د حرم څخه وایستی بیرته به یې حرم ته ور وړي دې ته اعتبار نسته چي موږ دا د بني شیبه وو څخه رانیولی دی انتهي.

علي القاري رحمه الله وایي دا عبارت حمل پر هغه دی چي یا خو احرام د کعبې زوړ سوی نه وي او یا یې خلق غنیان وي او یا د باچا ملکیت تصرف نه لري په کنبي او یا په اصل کي د اوقافو څخه وي نو بیا خو د وقف په شرط سره عمل ورباندي کیږي چي دا نه باچا او نه بل څوک کولای سي او په خزانة الاکمل کي راغلي دي چي د کعبې د استارو څخه به هیڅوک شی نه اخلي او که پخپله ورڅخه یو شی ولوېدی هغه به د فقیرانو خلقو دپاره وي بیا نو دوی کولای سي چي خرڅ یې کړي او یا یې بل څوک ورڅخه رانیسي په قنیة الفتاوا کي د محمد رحمه الله روایت دی که د کعبې د پردو څخه یو شی مفت درکړي پروا نه لري او په روپو یې اخیستل بیا دي یې نه اخلي او په نخبة کي بل ځای داسي راغلي دي که یو شخص د کعبې د پردو رانیول وکړه د بیت الله د خادمانو څخه دا جواز نه لري او که یې خپل وطن ته یوړي نو فقیرانو ته به یې ورکوي خو دا حکم د هغه چا دپاره دی چي باچا نه وي او که باچا خادمانو ته یا بل سړي ته د مسلمانانو څخه ورکړه بیا جواز لري لیکن بیان چي یې تېر سو.

ارشاد الساري لیکلي دي چي العلامة قطب الدین الحنفي لیکلي چي و ما ته معلومه ده هغه دا ده که د کعبې احرام د بیت المال څخه ورکول کېده نو یې د کار گذارۍ طریقه د باچا تر لاس لاندي ده او که د اوقافو دخوا څخه کېده بیا یې کار گذاري د اوقافو په قبضه کي ده او اوس خو د باچاهانو د اوقافو څخه کیږي او شرط یې هم نه دی معلوم صرف عادت داسي راغلی دی چي بني شیبه نوی پوښ ور اغوندي زوړ ورڅخه اخلي نو داسي د دوی عادت پاته سوی دی والله اعلم اهـ.

او ردمحتار وایي چي زه وایم چي زموږ په زمانه کي د احرام کارگذاري د خزانې څخه د جلالت ماب الملک المعظم عبدالعزیز ال سعود د حفظه الله تعالی کېدی او ده امر ورکړی وو چي بني شیبه وو ته ده سپارنه کړې ده نو اوس هیڅ شک پاته نه سو چي رانیول یې جواز لري د بني شیبه وو څخه والله اعلم.

جواز نه لري د کعبې د خوشبویي شیان اگر کي د تبرک دپاره اخلي هم برابره خبره ده که د وقف څخه وي او که یو چا خیرات کړي وي ورته حتی الامکان به یې بیرته کعبې ته

رسوي يا خادمانو ته د کعبې که دوی هم د حرم د علاقې باشندګان وو او که يو کس د ځانه سره خوشبويي يوړه يو څه يې پر کعبې شريفې ولګول باقي د ځان د تبرک دپاره پرېښول نو لايقه خبره دا ده چې داسې کار هم نه دی په کار چې تا د کعبې په نيت وړي وي او بيرته يو څه ورڅخه راوړې او خادم د حرم هم څوک نه سي منع کولای چې څوک خوشبويي ورته راوړي الخ.

## فصل بيت الله ته د ننه ورتګ

يستحب دخول البيت اذا روعى ادا به و الصلاة فيه والدعاء. و يدخله خاضعا خاشعا معظما مستحيا لا يرفع راسه الى السقف و يقصد مصلى النبى ﷺ و كان ابن عمر رضي الله عنه اذا دخلها مشى قبل وجهه و جعل الباب قبل ظهره حتى يكون بينه و بين الجدار الذى قبل وجهه قريب من ثلاثة اذرع ثم يصلى يقصد مصلى النبى ﷺ و اذا صلى وضع خده على الجدار وحمد الله. و استغفره ثم ياتى الاركان فيحمد و يستغفر و يسبح و يهلل و يكبر و يصلى على النبى ﷺ ويدعو بما شاء و من اهم الادعية طلب الجنة بلا حساب و يجتنب البدع و الايذاء فان ادى دخوله الى الايذاء لم يدخل.

متن و بعده ترجمه و شرح علي القاري

دا فصل ثابت دی په بيان کې و کعبې ته د ننه ورتلل مستحب کار دی چې د ادب پر طريقه وسي لکه چې ور داخليږي راسته پښه د مخه کوي چې راوزي چپه پښه د مخه راباسي او داخل به منقولې دعاګانې کوي او لمونځ به نفلي کوي اګر که دوه رکعته وي او دعا به پخپلو شرائطو سره کوي زه محمد جمعه مترجم د حروفو دا وايم چې د دعا په آدابو کې ما يو کتاب جوړ کړی دی په نامه د اثيرة العلميه هغه هم وګورئ نو کعبې ته به په ډېر تعظيم او تکريم او ډېر عاجزۍ سره ور داخليږي لڅې پښې په ډېر احترام او توبه کښونکې مغفرت غوښتونکې د بام طرف ته به ګوري نه چې دی يې نقشه ګوري يا يې ګروپان شماري او کوشش به کوي چې د نبي ﷺ د لمانځه پر ځای لمونځ ادا کړي حضرت ابن عمر رضي الله عنه چې به ور داخل سو نو مخ طرف ته تلی دروازه به د ده و شا ته کېدله حتی چې يو نيم ميتره به د ديواله څخه آزاد درېدی نو به ده لمونځ وکړی دا به ده د نبي ﷺ د لمانځه ځای بلی.

هرکله چې يې لمونځ وکړی نو به مخامخ ديوال ته ودرېږي او خپل بارخو به پر ديواله کښېږدي دلته به حمدونه او استغفارونه ووايي هغه دعاګانې به وکړي چې ضرورت ورته لري بيا به څلور سره کونجانو ته ورسي حمدونه او استغفارونه تسبيحات کلمه لا اله الا الله الله اکبر درود شريف پر نبي ﷺ او دعاګانې به وکړي د ځان مور او پلار او ټوله مؤمنانو دپاره او مهمه دعاء د جنت ده بې له عذابه څخه چې حسن خاتمه هم دغه ترجمه ده

او د بدعت او ضرر څخه به ځان ساتنه کوي او که ضرر يو چا ته رسېدی نه به ور داخلېږي
څکه ور داخليدل مستحب کار دی او آزار رسول مسلمان ته حرام کار دی پوه سه چي د بيت
الله په ور داخلولو کي چي څوک مزدوري اخلي هيڅ جواز نه لري او که يو څوک د ځانه
خيرات کوي پروا نه لري او هغه دعاګاني چي داخل بې په کعبې کي کوي دا مي په اخير کي
د اسانۍ دپاره وګرځولې اول به عربي را نقل کړم بيا به يې ترجمه وليکم ومن الله توفيق.
۱: اللهم كما ادخلتنى بيتك فادخلنى جنتك اللهم يارب البيت العتيق اعتق رقابنا و
رقاب ابائنا و امهاتنا من النار يا عزيز يا جبار اللهم يا خفى الالطاف امنا مما نخاف اللهم انى
اسئلك من خير ما سألك منه نبيك محمد و اعوذبك من شر ما استعاذك منه نبيك محمد
ربنا تقبل منا انك انت السميع العليم و تب علينا انك انت التواب الرحيم.
ژباړه: ياالله لکه څنګه چي تا زه بيت الله ته داخل کړم و جنت ته مي هم دغسي داخل
کړې يا الله ته رب د پخوانۍ بيت الله يې چي دا د جبائرو څخه ازاده وه نو زما ګردن هم د
اوره څخه ازاد کړه او زما د مور او پلار او اناګانو او نيکه ګانو غاړي هم د اوره ازادي کړه اې
غالبه او مقتدر ذاته يا الله يا هغه ذاته چي په هره باره کي د پټو خبردار يې موږ ته امن راکړه
په هغه شيانو کي چي بېره وي په کښې ستا څخه ياالله هغه غوره شيان درڅخه غواړم چي
خير الابرار غوښتي دي درڅخه او پناه غواړم د هغه شرارتو څخه چي سيدالانام محمد
رسول الله ورڅخه پناه غوښتې ده اې ربه ته زموږ دعا قبوله کړې ته اورېدونکی او عالم ذات
يې او زموږ توبې قبولې کړه ته توبه قبلونکی يې.

## فصل د دعا د قبول ځايونه

اما كن الاجابة الطواف والملتزم و تحت الميزاب و فى البيت و عند زمزم و خلف
المقام و على الصفا و المروة و فى السعى و عرفة و مزدلفة و الجمرات و رؤيته البيت و
الحجر و الحجر الاسود و الركن اليماني.
متن و بعد ترجمه و ملا علي القاري
د دعا د قبول ځايونه ۱: طواف ګاه ده. ۲: ملتزم شريف دی چي جمهور علماء وايي
ملتزم د حجر اسود او د دروازې تر مابين دی او عمر بن عبدالعزيز وايي چي د رکن يماني او
هغې دروازې تر مابين دی چي اوس تړلې ده د لمر لوېدو طرف ته ده چي د ده په زمانه کي
دغه ځای ته مستجار ويل کېده، ۳: لاندي تر ناوې د مېزاب چي دا د ابرارو د لمانځه ځايونه
دي، ۴: داخل په بيت الله کي، ۵: د زمزم د څاه سره، ٦: د مقام ابراهيم شا ته، ۷: پر صفا،
۸: پر مروا، ۹: په مابين کي چي تېز تګ کوي، ۱۰: پر عرفات، ۱۱: پر مزدلفة خصوص بيا
پر مشعر الحرام غره، ۱۲: په منا کي، ۱۳: د ځلو د ويشتلو په وخت کي، ۱۴: د بيت الله

شريف د ليدلو په وخت کي، ۱۵: حطيم شريف او حجر اسود او رکن يماني نو دا ځايونه د دعاد قبول ځايونه دي والله سبحانه و تعالى اعلم.

## فصل د رسول ﷺ د لمانځه ځايونه په حرم کي

المواضع التى صلى فيها رسول ﷺ فی المسجد الحرم خلف المقام و تلقاء الحجر الاسود على حاشية المطاف وقرب الركن العراقى و عند باب الكعبة و الحفرة و الحجر و داخل البيت و بين الركنين اليمانين و عند الركن الشامى بحيث يكون باب العمرة خلف ظهره و مصلى ادم على نبينا و عليه الصلاة و السلام وهو جانب الركن اليمانى.

متن و بعده شرح ملا علي القاري

هغه ځايونه چي نبي ﷺ په کښي لمونځونه کړي دي يو په کښي مقام ابراهيم دی چي علماء وايي د نبي ﷺ په زمانه کي بيت الله ته ډېر نژدې وو بلکې ورسره يو ځای وو راجح هم دغه قول دی چي د وخت په تقاضا ليري سوی دی او هر ځای چي وي لمونځ په هلته کوي ځکه په قرآن کي الله تعالى فرمايلي دي:

واتخذوا من مقام ابراهيم مصلى. البقره ۱۲۵

تاسي په مقام ابراهيم کي د لمانځه ځای ونيسئ.

او بل ځای حجراسود ته نژدې پر يو طرف باندي چي فارغه سي د عمرې څخه يا د عراقي کونجه سره نژدې پر يو طرف باندي په الكبير کي رکن شامي هم راغلی دی او د بيت الله په حضور کي چي کوم ځای جبرائيل ﷺ امامت د لمانځه کړی دی چي حفرة ورته وايي چي دلته پنځه لمونځونه نبي ﷺ ته جبرائيل ﷺ ورکړي دي يوځل د وختو په اول کي بيا بل وار يې په اخير کي د وختو لمونځونه پنځه وخته بل يې پنځه وخته ورکړي دي په روايت کي راغلي دي چي نبي ﷺ کعبې ته داخل سو چي راووتی د دروازې سره يې لمونځ وکړی احتمال لري چي د جبرائيل ﷺ د لمانځه ځای به هم دغه وو او بل ځای د لمانځه مخامخ و بيت الله ته دی او کعبې ته مخامخ د لمانځه شان الله تعالى په قرآن کي معلوم کړی دی:

ولكل وجهة هو موليها فاستبقوا الخيرات. البقره ۱۴۸

معنا هر يوه لره طرف د لمانځه سته ليکن تاسي تلوار کوئ د نيکۍ ځای ته چي بيت الله ده.

بيا د لمانځه ځای لاندي تر ناوې د ميزاب دی او په تهولو کي غوره ځای دننه په بيت الله کي دی او بل ځای د يماني رکن او حجر اسود تر مابين دی او بل ځای د رکن شامي سره دی چي باب العمره شا ته د سړي کيږي او د آدم ﷺ د لمانځه ځای رکن يماني دی هرڅوک چي لمونځ کوي بايد داسي آثار او علامي ځان ته معلومي کړي.

## فصل د خديجة الكبرىٰ رض زيارت كول مستحب دي

و يستحب زيارة بيت خديجة ﷺ و قيل هو افضل موضع بمكة بعد المسجد و مولد النبى ﷺ و دار ابوبكر ﷺ و مولد على ﷺ و دار الارقم و غار جبل ثور و غار جبل حراء و مسجد الراية و مسجد الجن و مسجد الشجرة مقابله و مسجد الغنم و مسجد باجياد و مسجد على جبل ابى قيس و مسجد بذى طوى و مسجد العقبه بقرب منى و مسجد الجعرانة و مسجد عائشةرض بالتنعيم و مسجد الكبش بمنى و مسجد عن يمين الموقف بعرفات و مسجد الخيف و غار المرسلات.

متن و بعده ترجمه و شرح علي القاري

د حضرت ام المؤمنين سيده خديجة الكبرىٰ رضي الله تعالى عنها د كور زيارت مستحب دى كوم چي بي بي فاطمه رضي الله تعالى عنها په كښي پيدا سوې ده او دا د نبي ﷺ د سكونت ځای وو تر هغه وخته پوري يې دلته گزاره كوله ترڅو چي يې هجرت كوى د حرم بعد بهترين د مځكو ځخه دغه ځای دى لكه طبراني چي ويلي دي او قيل وايي چي بهترين د مځكو تر مسجد الحرم بعد دغه ځای دی او بل د نبي ﷺ د ولادت باسعادت د ځای زيارت دی چي اوس هم معروف ځای دی د صفا او مروا تر مابين اوس كتابخانه ده پر هغه ځای او بل زيارت د حضرت ابوبكر صديق ﷺ سرای دی چي مشهوره په دكان د ابوبكر ﷺ دی په كوڅو كي چي دلته دوې ډېري وې يوې ته يې تكيه كول او بله په المتكلم سره مشهوره ده او بل زيارت د حضرت علىّ ﷺ د زېږېدلو ځای د چي بعضي وايي دی داخل په بيت الله كي پيدا سوی دی او اوس مشهور معلوم ځای هم لري دباندي او بل زيارت د دار الارقم دی چي د صفا سره دا يو مسجد دی او په دغه مسجد كي حضرت عمر ﷺ اسلام راوړی دی او څلويښت شپې يې په كښي كړي دي او د ده په وجه سره اسلام غالبه سو او الله تعالى آيت نازل كړ:

يايها النبى حسبك الله و من اتبعك من المؤمنين. الانفال ۶۴

اې نبي ﷺ ستا دپاره اوس بس دی الله او هغه مؤمنان چي ستا سره دي.

او بل د زيارت ځای جبل ثور دی دا هغه ځای دی چي په قرآن كي الله تعالى ياد كړی دی:

ثانى اثنين اذهما فى الغار. التوبه ۴

الله تعالى ملگری د هغه دوو كسانو دی چي دواړه په غار كي د غره ناست وه يو نبي ﷺ او هغه بل ابوبكر صديق ﷺ وو او بل زيارت د غار حرا دی چي نبي ﷺ به دلته عبادت كوی تر رسالت دمخه او د وحي شروع همدغه ځايه څخه سوې ده:

اقراء باسم ربک الذی خلق. العلق ۱

معنا ووایه نوم د خپل هغه رب چې پیدا کېدل کوي او په یو روایت کې راغلي دي چې د نبي ﷺ مبارک زړه هم جبرائیل ؑ څیرې کړی او هغه وینه یې د زمزم په اوبو ورڅخه پرېوله بیرته یې سره جمع کړی او بل په زیارتو کې د مسجد الرایة زیارت دی چې دا د مکې لوړې خوا ته دی چې ویل سوي دي چې نبي ﷺ دلته لمونځ کړی دی او بل زیارت د مسجد الجن دی دا هغه ځای دی چې ابن مسعود ﷺ فرمایي پر ما نبي ﷺ خط راوګرځوی چې هر قسمه شی به راغلی تر خط نه سو را اوبنتلای او نبي ﷺ راڅخه ولاړی و پېرانانو ته یې نصیحت کوی او ما ته یې وویل چې ته تر خط و نه وزې او بل د زیارت ځای هغه مسجد دی چې د مسجد الجن سره مخامخ دی او بل مسجد الغنم دی چې د دغه مسجد چارپېره د پسو سوداوي کېدلې او بل مسجد الجیاد دی چې دا ځای د تبع اسان ودرېدل او په قرآن کې الله فرمایلي دي:

اذا عرض علیه بالعشي الصافنات الجیاد. ص ۳۱

او بل مسجد پر غره د ابي قیس دی چې دا غر په غرو کې اصلي غر دی او تر ټولو اول هم دی او بل د زیارت ځای ذي طوی دی چې نبي ﷺ دلته کښېنسته سوی دی د عمرې او حج دپاره هم او بل مسجد القباء دی چې منا ته نژدې مقام دی او بل مسجد د جعراني دی چې د حرم د راتلو دپاره نبي ﷺ ورڅخه عمره راوړه کوم چې نبي ﷺ د طایف د غزا څخه راغلی او په دغه وخت کې یې تقسیم د غنیمتو هم وکړی او بل د زیارت ځای مسجد د عائشة رض دی چې اوس ورته مسجد تنعیم وایي او بل مسجد الکبش دی په منا کې او بل مسجد د عرفات پر راسته طرف دی دا غیر د مسجد نمرې څخه دی چې امام د حج دلته د عرفې د ورځې لمونځ ورکوي او بل مسجد الخیف دی چې دا مشهور دی او بل غار المرسلات دی چې وحي پر نبي ﷺ په کښې راغلې ده.

## فصل د اهل المعلی زیارت کول مستحب دی

یستحب زیارت اهل المعلی و ینوی فی زیارته من دفن به من الصحابة و التابعین و الاولیاء والصالحین و لا یعرف بمکة قبر صحابی الا انه رای بعض الصالحین فی المنام قبر خدیجة الکبری رض کبناء قبة هناک ولا ینبغی تعینه علی الامر المجهول والقبر المنسوب لابن عمر ﷺ غیر صحیح و ممن مات بها من التابعین عطاء و سفیان بن عینیة و فضیل رح.

متن و شرح علي القاري بعده

د معلی مقبرې زیارت کول مستحب کار دی او دغه مقبره تر البقیع چې په مدینه کې ده پس دا فضیلت مند مقبره د مسلمانانو ده چې په فضیلت کې یې ډېر حدیثونه

راغلي دي د دواړو چي څوک ورخي د صحابه کرامو او تابعينو او اولياؤ او صالحينو د زيارتو نيت به کوي څکه تعين د قبر نسته په کنبي په دغه مقبره کي ليکن که يو صالح سړي په خوب کي ليدلي وي لکه د خديجة الکبرىٰ رض زيارت چي باره يې گنبده پر جوړه کړه او چا ته چي معلوم نه وي تعين يې په کار نه دى او د کوم قبر نسبت چي ابن عمر رضي الله عنه ته کيږي دا قول صحت نه لري همدا رنگه د عبدالله بن زبير رضي الله عنه قبر او کوم کسان چي د تابعينو څخه دلته دفن سوي دي هغه عطاء او سفيان زوى د عينية رضي الله عنه او فضيل رح او مشهوره دا ده چي دوى هم د خديجة الکبرىٰ رض په بغل کي دي علاوه دا ده چي دلته ډېر اکابر کسان لکه امام يافعي وغيره دلته دفن سوي دي نو مناسب دا ده چي زيارت ته ورسي دپاره د تبرک او سلام ورته وکړي او د قرآن تلاوت ورته وکړي چاپېره او ډيري دعاگاني او استغفار او ذکرونه دلته وکړي د دوى او ټوله مسلمانانو دپاره او هغه څه به کوي چي د قبرو په آدابو کي راغلي دي د محرر اثيرة العليمه وگوره او څوک چي مړ سي په يو د حرمينو کي نو د لوى فضل او ثواب اميد ورلره سته اوس بعضي اداب د زيارت دا دي چي علماء ويلي سړى به د پښنو دخوا څخه ورته راځي نه د سر دخوا څخه څکه دا ميت ته تکليف وي چي د سرخوا ته تا ته گوري او د پښنو طرف بيا ميت يې ليدل اسانه وي خو ورته مخامخ وي خو ياد لره دا حکم هلته دى که يې امکان وو او په سند رسېدلې ده چي نبي عليه السلام د ميت د سر طرف ته د سورة البقرى اول آيتونه ويلي دي او د پښنو طرف ته يې هم ويلي دي او بل ادب دا دى چي سلام به ورته کوي په حديث کي راغلي داسي دي السلام عليکم دارقوم المؤمنين و انا انشاءالله بکم لاحقون و نساء الله لنا و لکم العافية مسلم باب الطهارت ۳۹ و الجنائز ص۱۰۲ و ابو داود في السنن وغيره.

او په ولاړه به دعا ورته کوي که ازاد کښېنستی هم جواز لري يا نژدې مثال يې د حيات دى چي په ژوند کي په څونه اندازه ورته نژدې کښېنستی په هغونه اندازه به قبر ته هم کښېنې او د قرآن تلاوت به کوي الحمدلله سورت يا د بقرې اول تر مفلحون پوري يا آيت الکرسي يا امن الرسول يا سورت ياسين يا تبارک الذى يا الهٰکم التکاثر يا قل هو الله احد دولس واره يا يولس واره يا اووه واره يا درې واره بيا ووايي چي خدايه د دغه تلاوت ثواب و ارواحو ته د دغه مقبرې ورسوې او مستحب علماؤ دا بللې ده چي په مقبره کي لږ څه پښې خي او قبرونه به تر پښنو نه لاندي کوي.

## باب زيارت سيد المرسلين عليه السلام

اعلم ان زيارة سيد المرسلين عليه السلام باجماع المسلمين من اعظم القربات و افضل الطاعات و النجح المساعى لنيل الدرجات قريبة من درجة الواجبات لمن له سعة و ترکها

غفلة عظيمة و جفوة كبيرة و صرح بعض المالكية بان المشى الى المدينة افضل من الكعبة و بيت المقدس و اذا عزم على الزيارة فعليه ان يخلص نيته و يجرد عزمه فيبدأ بالحج ثم بالزيارة ان لم يمر بالمدينة فى طريقه و ان مربها يبدا بالزيارة لا محالة و ان كان الحج نفلا فهو بالخيار بين البداءة باالمختار بالاصال و الابكار و بين ان لحج اولا ليطهر من الاوزار فيزور الطاهر طاهرا.

متن و بعده ترجمه و شرح علي القاري

پوه سه طالبه چي زيارت د سيد المرسلين و خاتم النبين و عليهم اجمعين مستحب دى په اجماع سره د ټوله علماؤ بې له عبرته د هغه مخالفينو د بکواسو څخه او دا زيارت د عبادتو څخه دى کوم چي اعظم د عبادتو دى او لويه وسيله او سبب دى دپاره د ګټلو د لوى لوى درجو د درجاتو واجبه وو څخه لکه داسي بيان په الدرة المضيه في الزيارة المصطفويه کي راغلى دى څوک چي يې طاقت ولري او پرېښول يې غفلت عظيمه دى او غټه جفاء ده او په دغه بيان کي اشاره راغلې هغه حديث ته چي نبي ﷺ فرمايي څوک چي حج وکړي او زما زيارت و نه کړي نو ده زما سره جفاء وکړه. رواه ابن عدي بسند حسن.

او دا حديث دليل د وجوب دى د زيارت د نبي ﷺ او بعضي مالكية وايي چي مدينې ته تلل بهتر دى د کعبې او بيت المقدس تر تګ د دوى مذهب دا دى چي مدينه غوره ده تر مکې په سبب د هم جواري د نبي ﷺ او دا د حج تر کولو بعد به وي بل رنګه د کلام جوړ نه راځي او کوم چي زيارت د بيت المقدس دى اګرچي مستحب خو دى ليکن کم دى په رتبه کي د زيارت د سيدنا محمد رسول الله ﷺ تر زيارت بې له خلافه څخه اوس دلته د غوره خبره دا ده چي آيا د نرانو دپاره او که د ښځو دپاره هم مستحب دى نو جواب دا دى چي دا زيارت د نر او ښځي دواړو دپاره بې له کراهته مستحب دى او د احنافو صحيح او اصح مذهب همدغه دى چي پر شرطو برابر وي.

او چا چي قصد د مدينې د زيارت وکړى نو به خپل نيت خالص د خداى د رضا دپاره کړي د فخر او ځان غټولو او ريا و سمعي څخه به ځان ساتي اوس که د ده حج فرضي وو نو به اول حج وکړي بيا به زيارت د نبي ﷺ وکړي او شروع به هم د مقصود څخه و بل مقصود ته راسي ځکه حج د الله دى او دا مقدم دى تر حق د نبي ﷺ لکه په کلمه کي اشهد ان لا اله الا الله محمد رسول الله ليکن دا هلته چي پر لاره د مدينې نه يې تللى او که پر مدينې منورې تېرېدى بيا به خامخا د نبي ﷺ زيارت کوي ځکه په داسي وخت کي نه کول د زيارت توروالى د زړه راولي او د بدبختى سره سرى مخامخ کيږي او دلته يې دمخه زيارت کول ذريعه د قرب ګرځي و اعلا ته چي الله رب العلمين دى په قرآن کي الله

تعالی فرمایي:

یایها الذین امنوا اتقوا الله وابتغوا الیه الوسیلة. مائده ۳۵

اې مؤمنانو تاسي د خدای جل جلاله څخه وبېرېږئ او لار د وسیلې ورته پیدا کړئ.

او هیڅ شک نسته چي څوک اول محمد رسول الله ووايي او بیا لا اله الا الله ووایي دا مسلمان دی ځکه جمعیت دواړه غواړي او ترتیب لازم نه دی او حسن د امام اعظم رحمه الله څخه روایت کړی دی چي حج فرض وي نو ښه طریقه دا ده چي اول حج وکړي بیا زیارت ته د رسول الله ولاړ سي او دا مسئله فتاوی عالمگیري د فتح القدیر څخه نقل کړې ده او که شروع د زیارت څخه د رسول الله ﷺ وکړي جواز لري ځکه چي وخت ډېر وي سړی نفل تر فرضو دمخه کولای سي او که بې حج نفلي وو بیا د ده اختیار دی که اول حج وکړي د گناه څخه پاک سي نو پاک د پاک سره یو ځای سي الخ.

## د رسول الله ﷺ د زیارت اداب او طریقه

و لو توجه الی الزیارة اکثر فی المسیر من الصلاة و التسلیم مدة الطریق بل یستغرق اوقات فراغه و یتتبع ما فی الطریقه من المساجد المنسوبة الیه ﷺ و کلما ازداد دنوا ازداد غرما او حنوا و ازدادنا من حرم المدینة المشرفة فلیردد خشوعا و خضوعا و شوقا و توقا و ان کان علی دابه حرکها او بعیرا وضعه و یجتهد حینئذ فی مزید الصلاة و السلام واقع بصره علی طیبة المطیبة و اشجارها المعطرة دعا بخیر الدارین و صلی وسلم علی النبی ﷺ و الاحسن ان ینزل عن راحلته بقربها و یمشی باکیا حافیا ان اطاق تواضعا لله و رسوله ﷺ و کلما کان ادخل فی الادب و الاجلال کان حسنا لو مشی هناک علی احداقه و بذل المجهود تذلله و تواضعه کان بعض الواجب بل لم یف بمعشار عشره و اذا وصل الی المدینة اغتسل بظاهرها قبل الدخول و اذا لم یتیسر فبعده و الا توضأ و الغسل افضل ثم لبس اتطف ثیابه و الجدید افضل و اتطیب و اذا وقع نظره علی القبة المقدسة و الحجرة المشرفة فلیسحضر عظمها و تفضیلها و شرفها فانها حوت افضل البقاع بالاجماع و سید القبور بلا نزاع و اکرام الخلق علی الخلق بالاطلاق فاذا دخل باب البلد قال بسم الله ماشاء الله لا قوة الا بالله رب ادخلنی مدخل صدق و اخرجنی مخرج صدق اللهم افتح لی ابواب رحمتک و ارزقنی من زیارة رسولک ﷺ ما رزقت اولیاءک و اهل طاعتک و انقذنی من النار واغفرلی و ارحمنی یاخیر مسؤول و لیکن متواضعا متخشعا معظما لحرمتها ممتلئا من هیبة الحال بها متشعرا لعظمته ﷺ کانه یراه خزینا متاسفا علی فراقه و فواته رویة النبی ﷺ فی الدنیا و انه من ذلک فی الاخرة علی عظیم الخطر شاکرا العظیم ما من به علیه من الحضور بین یدیه و المؤل و جلا من الرد مع رجاء القبول

مکثرا من الصلاۃ و التسلیم علی ھذا الرسول متوسلا بہ لوصولہ المامول و اذا دخل البلد المعظم بداء بالمسجد المکرم ولا یعرج علی من سواہ الا لضرورۃ کخوف علی محرم و اما النساء فیدخلہ مقدما رجلہ الیمنی مع غایۃ الخضوع و الافتقار و نھایۃ الخشوع و الانکسار تائبا مما اقترفہ من الاوزار قائلا اللھم صل علی محمد و علی ال محمد و صحبہ و سلم اللھم اغفرلی ذنوب و افتح لی ابواب رحمتک و یدخل من باب جبرائل او غیرہ و الاول افضل فاذا دخلہ قصد الروضۃ المقدسۃ فان دخل من باب جبریل قصدھا من خلف الحجرۃ الشریفۃ مع ملازمۃ الھیبۃ و الخضوع و الذلۃ علی وجہ یلیق بالمقام غیر مشتغل بالنظر الی ما ھناک ثم یبدا تحیۃ المسجد رکعتین و الافضل ان تکون بمصلاہ و ھو بطرف المحراب مما یلی المنبر یقرا فی الاولی الکافرون و فی الثانیۃ الاخلاص و اذا سلم منھما شکر اللہ تعالی و حمدہ و اثنی علیہ علی ھذہ النعمۃ العظیمۃ و المنۃ الجسیمۃ و یسألہ اتمامھا و القبول و ان یمن علیہ فی الدارین بنھایۃ المسؤول و ان لم یتیر لہ فما قرب منہ و من المنبر و الا فحیث تیسر و ان اقیمت المکتوبۃ او خیف فوتھا بدابھا و حصلت التحیۃ بھا فاذا فرغ من ذلک قصد التوجہ الی القبر المقدس و فرغ القلب من کل شئ من امور الدنیا واقبل بکلیۃ لما ھو بصدرہ لیصلح قلبہ للاستمدار منہ و حرام علی قلب شغل بقاذورات الدنیا من الشھوات و الارادات ان یصل الیہ من ذلک شئ بل ربما یخشی علیہ من نوع مقت و اعراض والعیاذ باللہ تعالی فلیجتھد فی ذلک التفریغ ما امکنہ و لیلاحظ مع ذلک الاستمداد من سعۃ عفوہ و عطفہ و رأفتہ ان یسامحہ فیما عجز عن ازالتہ من قلبہ ثم توجہ مع رعایۃ غایۃ الادب فقام تجاہ الوجہ الشریف متواضعا خاضعا خاشعا مع الذلۃ و الانکسار و الخشیۃ و الوقار والھیبۃ والافتقار غاض الطرف مکفوف الجوارح فارغ القلب و اضعا یمینہ علی شمالہ مستقبلا للوجہ الکریم مستدبر اللقبلۃ تجاہ مسمار الفضۃ علی نحو اربعۃ اذرع لا الاقل من الساریۃ التی عند راسہ الکریم ناظر الی الارض او الی اسفل ما ستقبلہ من الحجرۃ الشریفۃ محترزا عن اشغال النظر بما ھناک من الزینۃ متمثلا صورتہ الکریمہ فی خیالک مستشعرا بانہ علیہ الصلاۃ و السلام عالم بحضورک و قیامک و سلامک مستحضرا عظمتہ و جلالتہ و شرفہ و قدرہ علیہ السلام ثم قال مسلما مقتصد من غیر رفع صوت ولا اخفاء بحضور و حیاء السلام علیک ایھا النبی و رحمۃ اللہ و برکاتہ السلام علیک یارسول اللہ السلام علیک یا حبیب اللہ السلام علیک یا خلیل اللہ السلام علیک یا خیر خلق اللہ السلام علیک یا صفوۃ اللہ السلام علیک یا خیرۃ اللہ السلام علیک یا سید المرسلین السلام علیک یا امام المتقین السلام علیک یا من ارسلہ اللہ رحمۃ للعالمین السلام علیک یا شفیع المذنبین السلام علیک یا مبشر المحسنین السلام علیک یا خاتم النبین السلام علیک

و علی جمیع الانبیاء و المرسلین و الملائکة المقربین السلام علیک و علی الک و اهل بیتک و اصحابک اجمعین و سائر عباد الله الصالحین جزاک الله عنا افضل واکمل ما جزی به رسولا عن امته و نبیا عن قومه و صلی الله و سلم علیک ازکی و اعلی وانمی صلاة صلاها علی احد من خلقه و اشهد ان لا اله الا الله وحده لا شریک له واشهد انک عبده و رسوله و خیرته من خلقه و اشهد انک بلغت الرسالة و ادیت الامانة و نصحت الامة و اقمت الحجت و جاهدت فی الله حق جهاده و عبدت ربک حتی اتاک الیقین و صلاة الله و ملائکته و جمیع خلقه من اهل سمواته و ارضه علیک یا رسول الله اللهم اته الوسیلة والفضیلة والدرجة العالیة الرفیعة و ابعثه مقاما محمودا الذی وعدته واعطه المنزل المقعد المقرب عندک و نهایة ما ینبغی ان یساله السائلون ربنا امنا بما انزلت واتبعنا الرسول فاکتبنا مع الشاهدین امنت بالله و ملائکته و کتبه و رسله و الیوم الاخر و بالقدر خیره و شره اللهم فثبتنا علی ذلک و لا تردنا علی اعقابنا ربنا لا تزغ قلوبنا بعد اذ هدیتنا وهب لنا من لدنک رحمة انک انت الوهاب وهئ لنا من امرنا رشدا ربنا اغفرلنا و لا بائنا و لا مهتنا و ذریاتنا ولاخواننا الذین سبقونا بالایمان و لاتجعل فی قلوبنا غلا للذین امنوا ربنا انک روف رحیم ذو الفضل العظیم ثم یطلب الشفاعة فیقول یارسول الله اسالک الشفاعة ثلاثا ثم یتاخر الی صوب یمینه قدر ذراع فیسلم علی خلیفة رسول الله ﷺ ابی بکر الصدیق رضی الله عنه فیقول السلام علیک یا خلیفة رسول الله السلام علیک یا صفی رسول الله السلام علیک یا صاحب رسول الله السلام علیک یا وزیر رسول الله السلام علیک یا ثانی رسول الله فی الغار و رفیقه فی الاسفار و امینه علی الاسرار السلام علیک یا علم المهاجرین والانصار السلام علیک یامن اعتقه الله من النار السلام علیک و رحمة الله و برکاته جزاک الله عن رسوله و عن الاسلام و اهله خیر الجزاء و رضی الله عنک احسن الرضا ثم یتاخر الی یمینه قدر ذراع فیسلم علی خلیفة رسول الله عمر ابن الخطاب رضی الله عنه فیقول السلام علیک یا امیر المؤمنین عمرا الفاروق السلام علیک یا من کمل به الاربعین السلام علیک یامن استجاب الله فیه دعوة خاتم النبیین السلام علیک یا من اظهر الله به الدین السلام علیک یامن اعزالله به الدین السلام علیک یا من نطق بالصواب و وافق محکم الکتاب السلام علیک یا من عاش حمید او خرج من الدنیا شهید جزاک الله عن نبیه و خلیفته و امته خیر الجزاء السلام علیک و رحمة الله و برکاته قیل ثم یرجع قدر نصف ذراع فیقف الصدیق والفاروق و یقول السلام علیکما یا صاحبی رسول الله السلام علیکما یا خلیفتی رسول الله السلام علیکما یا ضجیعی رسول الله السلام علیکما یا معینی رسول الله فی الدین و القائمین بسنة فی امته حتی اتاکما الیقین فجزا کما الله عن ذلک مرافقته فی جنته و ایانا معکما برحمته انه ارحم الراحمین و جزاکما الله عن الاسلام و

اهله خیر الجزاء جئنا یا صاحبی رسول الله ﷺ زائرین لنبینا و صدیقنا و فاروقنا و نحن نتوسل بکما الی رسول الله ﷺ لیشفع لنا الی ربنا و ان یتقبل سعینا و ان یحیینا علی ملته و یمیتنا علیها و یحشرنا فی زمرته برحمته و کرمه انه کریم رؤف رحیم امین ثم یرجع الی حیال وجه النبی ﷺ و یقف عند القبر الاقدس علی قدر رمح او اقل فیحمد الله تعالی و یثنی علیه و یمجده و یصلی علی النبی ﷺ و یستشفع به الی ربه و یدعو رافعا یدیه لنفسه ولوالدیه ولمن شاء من اقاربه و اشیاخه و اخوانه ولمن اوصاه و سائر المسلمین و من اراد الاکمال فلیقل السلام علیک یا خاتم النبیین السلام علیک یا شفیع المذنبین السلام علیک یا امام المتقین السلام علیک یا قائد الغر المحجلین السلام علیک یا رسول رب العالمین السلام علیک یا منة الله سبحانه و تعالی علی المؤمنین السلام علیک یا طٰہٰ السلام علیک یا یٰسٓ السلام علیک و علی اهل بیتک الطیبین السلام علیک و علی ازواجک الطاهرات المبرات امهات المؤمنین السلام علیک و علی اصحابک اجمعین اللهم انه نهایة ما ینبغی ان یساله السائلون و غایة ما ینبغی ان یؤصله الامنون و حسن ان یقول اللهم انک قلت و انت اصدق القائلین ولو انهم اذ ظلموا انفسهم جاؤک فاستغفروا الله و استغفر لهم الرسول لوجدوا الله توابا رحیما جئناک ظالمین لانفسنا مستغفرین من ذنوبنا فاشفع لنا و اساله ان یمن علینا بسائر طلباتنا و یحشرنا فی زمرة عباده الصالحین اللهم ان حبیبک حبیبک و انا عبدک و الشیطان عدوک فان غفرت لی سر حبیبک و فاز عبدک و غضب عدوک و ان لم تغفرلی غضب حبیبک و رضی عدوک و هلک عبدک و انت اکرم من ان تغضب حبیبک و ترضی عدوک و تهلک عبدک اللهم ان العرب الکرام اذا مات فیهم سید اعتقوا علی قبره و ان هذا سید العالمین اعتقنی علی قبره و یقول اللهم انی اشهدک و اشهد رسولک و ابابکر و عمر و اشهد الملائکة النازلین علی هذه الروضة الکریمة العاکفین علیها انی اشهد ان لا اله الا انت وحدک لا شریک لک و ان محمدا عبدک و رسولک و اشهد ان کل ما جاء به من امر و نهی و خیر عما کان و یکون فهو حق لا کذب فیه و لا افتراء و انی مقرلک بجنایتی و معصیتی فاغفرلی و امنن علی بالذی مننت به علی اولیائک فانک المنان الغفور الرحیم ربنا اتنا فی الدنیا حسنة و فی الاخرة حسنة وقنا عذاب النار سبحان ربک رب العزت عما یصفون وسلام علی المرسلین والحمدلله رب العالمین و من ضاق وقته عما ذکرنا او عجز عن حفظه اقتصر عن ما تیسر واقله السلام علیک یارسول الله و ان اوصاه بتبلیغ سلامه فلیقل السلام علیک یارسول الله فلان بن فلان او فلان یسلم علیک یارسول الله و اذا فرغ من الزیارة یاتی المنبر و یاتی الروضة فیکثر فیها من الصلاة والدعاء و عند الاساطین الفاضله.

متن و بعده ترجمه و شرح علي القاري بشتو

د حضرت سیدنا و سندنا و شفیعنا و مولانا محمد ن المصطفٰی مبارک مزا او روضې ته چي د زیارت دپاره روانیږي نو په ډېر احترام او پاکي د ظاهر او باطن او په ډېر درناوي او درود او سلام ویونکی او حمدونه او ثناوي او مدحه ویونکی او قصیدې او اشعار ویونکی او نعت ویونکی پر لاره اوږده ور روان سئ علاوه دا ده چي د فرائضو او واجباتو او ضروریاتو څخه ماسوا به خپل وخت په دغه تېر سوي شیانو کي صرفوي چي مناسب د مقام سره درود ویل دي پر مقدار د مرام او توجه او تلاش به کوي د هغه مسجدو چي نسبت یې رسول الله ﷺ ته کیږي او هغه مشاهدو ته به ځان رسوي کوم چي په روایاتو کي راغلي دي چي ډېر مهم په کښي د حضرت بي بي میمونه رضي الله تعالی عنها قبر دی چي عام او خاص په خبر دي چي د دې سره عقد او واده او د دې په وفات په سرف مقام کي دی چي دا د مسجد تنعیم او شلي تر مابین دی چي د مکې څخه مدینې ته ځي او د دې د قبر پر شاوخوا مسجد دی خرابه ځان به د تبرک دپاره ورسوي څومره چي مدینې ته ور نژدې کیږي شوق او حرص به دي ډېریږي نبي ﷺ چي به مدینه ولیدل نو به ده مبارک خپله دابه چابکه کړه دا به یې ویل ځئ وړاندي سو مفردون الحدیث، کنزالعمال نمبر ۳۹۳۳، اتحاف السادة المتقین ج۷ ص۲۵۳ ص۲۵۴.

همدغه معنا ماتن ذکر کړې ده چي مدینه خو داسي حرم نه لري لکه مکه مکرمه خو په ډېره ښېره چي په زړه او پر ظاهره بدن او په دواړو سره به یې وي او په ډېر شوق سره او په تېزي سره ور روان سي نو دلته به ډېر درودونه او سلامونه وایي چي حرم ته ورسېدی داسي دعاء به کوي:

اللهم هذا حرم رسولک ﷺ الذی عظمته و ذاک ان تجعل فیه الخیر و البرکته مثل ما هو فی حرم البیت فحرمنی علی النار وامنی من عذابک یوم تبعث عبادک وارزقنی فیه حسن الادب و فعل الخیرات و ترک المنکرات.

ژباړه: یاالله دا ستا د رسول ﷺ حرم دی کوم چي تا لویي ورکړې ده او دا هغه حرم دی چي خیر او برکت تا په کښي وضع کړی دی په دونه پېمانه سره چي د بیت الله په حرم کي دی نو زما وجود هم پر دوږخ حرام کړې او د اوره څخه امان راکړې په هغه ورځ چي ته تول مخلوق را ژوندی کوې نو په دغه حرم کي وما ته د ښه ادب توفیق راکړه او د نیکو کارو توفیق راکړه د منکر او ناروا څخه پرهیز راکړې.

هرکله چي د ده سترګي د مدینې پر درختو او باغو ولګېدې نو به د ځان دپاره د خیر د دارینو دعا وکړي او درود او سلام به ډېر په نبي ﷺ وایي ډېره ښه طریقه دا ده چي د

خپل وسایل څخه راکښته او پیاده سي ډیاره د ادب او احترام پیاده به روان وي لڅي پښې ژړېدونکی د عاجزي ډپاره او د حرم د عزت او احترام ډپاره او هر څومره چي کیږي هغونه ادب او احترام به کوي علاوه دا ده که پر بارخوګانو سرې ورسي لا به په سلو کي یو احترام لاهم پر ځای نه کړي لکه شاعر چي وایي:

لو جئتکم قاصدا اسعی علی بصری

لم اقض حقا او الحق ادیت

که ته قصداً پر سترګو ولاړ سي نو لا نه ادا کیږي حق یې چي ادا سي. هرکله چي مدینې ته ورسېدی غسل به وکړي تر داخلېدو دمخه او که مخکي اساني نه وه بیا چي ور داخل سو غسل دي وکړي او که یې اودس وکړی هم جواز لري خو غسل یې غوره کار دی باره به نوي کالي چي فضیلت لري یا پاک کالي واغوندي لکه په اخترو کي چي یې خلق اغوندي چي هرکله یې سترګي پر مقدسه روضه ولګېدلې نو به په زړه کي د دې مبارکي عظمت او لوی شان ونیسي ځکه دا فضیلت منده ځکه ده په اجماع سره او سید د ټوله قبرو دی بې له نزاع او عزتمنده د خلقو دی په دنیا کي الخ.

ابي عقیل الحنبلي وایي چي دا ځکه تر عرش لا بهترینه ده او زموږ د مذهب محمد البکري همدغسي حکم کړی دی او قاضي عیاض وایي چي تر کعبې هم بهترینه ځکه ده چي د ښار دروازې ته ور داخل سو نو به بسم الله ووایي ماشاء الله به ووایي لاحول و لا قوة الا بالله به ووایي او دا دعا به وکړي چي اې ربه ما داخل کړې و ځای د صدق ته او وه مي باسې د ځای د صدق څخه معنا دا چي په خیریت سره او د قبول سره زما ورتګ او وتل دواړه وکړې چي ته راڅخه راضي یې او ته زما بس یې او زما توکل پر تا دی د ګناه څخه راګرځېدل او د عبادت کول بې له ستا طاقته نه کیږي او راته خلاصي کړې دروازې د رحمت او هر قسمه نعمتونه راباندي نازل کړې او په رزق سره ستا د حبیب زیارت راکړې په داسي شان سره چي تا خپلو اولیاؤ او اهل طاعتو ته ورکړی دی او د اوره څخه د دوږخ نجات راکړه بخښنه راته وکړه رحم راباندي وکړه اې د سوال کونکو سوال قبلونکې خصوصي د نبي ﷺ په وسیله زما دعا قبوله کړه دلته به ډېر عاجز او زړه به یې د خدای پاک د هیبت څخه ډېر ډک وي او داسي به ځان جوړوي چي د الله تعالی د ذات او صفاتو او د نبي ﷺ داسي عظمت او قدر او صفت به ځان ته حاضروي لکه دی چي نبي ﷺ ویني په مقام د مراقبې او مشاهدې کي او ډېر غمګین او غم ښکاره کونکی به وي پر فراق د نبي ﷺ څخه په تېر سوي عمر کي او پر نه لیدلو په دنیا کي او ډېر غم به د دې کوي چي خدایه په آخرت کي خو د ده سره ملاقات را نصیب کړې او د ده عظمت او لویې به په آخرت کي چي الله رب

العالمين يې ده ته ورکوي په زړه کې نيسي او خپل پر عادت به ډېر فکر کوي او غم به دا کوي چې خدايه ته به دا زما تېر سوي عبادتونه قبول کړې او که به يې نه کړې قبول هرکله چې ښار مقدس ته د مدينې منورې ور داخل کېده نو به اولين شروع د مسجد مکرم څخه کوي لکه نبي ﷺ چې به د سفر څخه راغلی اولين شروع به ده مبارک د مسجد څخه کوله او بل ځای ته به نه ځي که ضرورت نه وو مثلاً پر سامان يا خپل پر مال يې بېره نه وه باره به ځي زيارتو ته او د ښځو دپاره زيارتونه د شپې کول په کار دی ځکه شپه د ښځي دپاره په ستر کي وي مسجد ته چې ور داخلېږي اول به راسته پښه دمخه کړې په ډېر عاجزي او بيري سره او په نهايت خوف او د زړه په بېره کې او کوم ګناهونه چې ورڅخه سوي دي د هغو څخه به توبه کاږي او درود ويونکی به وي:

اللهم صل على محمد و على ال محمد و صحبه وسلم الله اغفرلي ذنوبي و افتح لي ابواب رحمتک.

اې خدايه رحمت نازل کړه پر محمد ﷺ او پر آل ده محمد ﷺ او پر اصحابو د رسول ﷺ او سلام پر نازل کړې يا الله وما ته بخښنه وکړې زما د ګناهو او راخلاصي کړې پر ما دروازې د رحمت خپل.

او مسجد ته به د باب جبرايل څخه ور داخلېږي او پر بله دروازه لکه باب سلام او اول پر غوره ده او که پر باب سلام ور داخل سو نو به قصد د روضة المقدسه کوي چې د نبي ﷺ منبر او قبرمبارک تر مابين مځکه ده او که پر باب جبرايل ورسي هم به قصد د روضة المقدسه کوي خو د حجرې مباركي تر شا به تېرېږي خو په ډېر حضور او بېره او خوف کې به وي د مقام سره مناسب نو به اول دوه رکعته لمونځ د مسجد د تحيې او تحفې کوي نو افضله دا ده چې د محراب سره نژدې ممبر ته دا لمونځ وکړې په اول رکعت کې قل ياېها الکافرون او په دويم کې به قل هو الله احد ووايي چې سلام يې وګرځوی د خدی جل جلاله شکرونه او حمدونه او ثناوي به ووايي پر دغه لوی عظمي نعمت سره او پر لوی احسان د الله رب العالمين باندې او تمام او مقبول خواستونه به کوي او د احسان کولو دعاوي به کوي پر دواړه دارينو کې او که د محراب سره اساني نه وه بيا ورته نژدې دي وګزاري او که دا هم نه سوه کېدای نو کوم ځای چې ورته اسانه وي هلته دې دا لمونځونه وکړي لو خصوصي به د نبي ﷺ د هغه وخت ځايونه ګوري چې په هغو ځايو کې به لمونځونه کوي نو هرکله چې فارغه سي نو قبرمقدس ته په ډېر الفت او محبت سره ورسي او خپل زړه به د دنيا د امور څخه فارغه کړې چې دا د نبي ﷺ په حضور کې ډېره بې ادبي ده او زړه به د نبي ﷺ د امداد دپاره جوړ کړې او حرام دی شغل د زړه د مرداری بې

څخه د مرداري دنیا فارغه کوي او هغه بیکاره ارادې به د فکره څخه غورځوي بلکې په داسې ځای کې د دنیا تصور یا بیکاره تصور موجب د عذاب ګرځي او د نبي ﷺ څخه اعراض راځي العیاذ بالله تعالی.
ډېر کوشش به کوي چې داسې پېښه ورڅخه و نه سي او دونه قدري فکر وکړه چې ټوله عمر یې په ناروا کې تېر کړی دی او یو ګړی او یو ساعت په حضور او بهره کې نه سي تېرولای باره به ځان ښه موړ کړي چې عبادت ته ځان فارغه کړي او د خدای د رحمت څخه به نا امیده کېږي او سره د دغه کومکه او امداده چې الله رب العالمین څخه یې غواړي په وسیله او ذریعه سره او خصوصي یې د نبي ﷺ څخه غواړي په ډېره نرمي او ډېره عاجزي سره او عرضونه به دا کوي چې د ده د زړه څخه داسي مرداري وغورځوي لکه شاعر چې په خپل شعر کې ویلي دي:

عصیت فقالو کیف تلقی محمدا
و وجهل باثواب المعاصی مبرقع
عسی الله من اجل الحبیب و قربه
یدارکنی بالعفو و العفو اوسع

شاعر وايي ما خو نافرماني وکړه دوی راته وویل تا څنګه ملاقات د نبي ﷺ وکړی او مخ ستا خو په کالو کې د ګنهو ابلک دی نو قریبه ده چې د الله د حبیب د وجهي څخه ما په خپل عفوه کې راګیر کړي او د ده عفوه ډېره پراخه ده.
بیا به توجه د زړه او د خپل غالب په لویه پیمانه د ادب او احترام سره و مخ مبارک ته د نبي ﷺ ور واړوي ډېر ذلیله او عاجزه او په ماتو اندامو او په ډېر درناوي او ارام سره او په ډېره بېره او هیبت او احتیاج سره او خپل اندامونه به د حرکت څخه واچوي زړه به د هر څه څخه فارغه کړي راسته لاس به پر چپه لاس سربېره کړي مخامخ به د جناب اقدس مخ ته د نبي ﷺ ودرېږي او د قبلې طرف ته که یې شا سوه هیڅ پروا نه لري ځکه دلته دا مقام تقاضا د دغه کوي او بل دا چې قبله تا ته چا ښولې ده چې دا قبله ده مخامخ به د سپینو زرو میخ چې تګ وهلی دی پر ګنبده مبارکه دوه ګزه فاصله لیري دی نه کم تر دغه او دا به ډېره بې ادبي نه وي چې د نبي ﷺ د مبارک سر سره یو ستن ولاړه ده چې تر هغې تېرېږي او دې بلې خوا ته ګوري او یا یې زړه په بل شي کې مشغوله کړی وي ورځې دپاره د څه فکر کوه که خبري غوچي دي دا نیکان او بزرګان په پوهیږي نو به د نبي ﷺ مبارک وجود په خپل خیال کې راولي چې ستا حال او د ده په زړه کې به دا وي چې نبي ﷺ د ده په ولاړه او حضور او سلام سره خبر دی او په هر څه احوالو یې خبر لري نو به د جناب نبي ﷺ

شرافت او مرتبه په زړه کي په ډكه پیمانه سره راولي نو به سلام په میانه او کښته آواز سره وکړي ځکه په قرآن کي الله تعالی فرمایلي دي چي نیک بندګان هغه دي چي د رسول الله ﷺ په حضور کي یې آواز کښته کړی او په نرمي یې خبري ورسره کولې:

ان الذين يغضون اصواتهم عند رسول الله. الحجرات ۳

او نه به داسي کښته آواز کوي چي هیڅ وا نه وریدل سي اګرچي نبي ﷺ په دغه قدري آواز هم پوهیږي خو اوریدل د سلام سنت عمل دی نو به په ډېر حضور سره دا سلامونه ووایي خو درود ویل هم ډېر فضیلت لري او په حدیثو کي هم د درود په شان کي زیات فضیلتونه ذکر دي مګر دا سلامونه هم انوار ډېروي ویونکي ته نو به دا سلامونه اول د نبي ﷺ په عربي کي ولیکمه ځکه وینا همدغسي غواړي په شماره کي ورته ګوره او وایه دا سلامونه د مبارک ﷺ د قبر سره:

۱: السلام علیک ایها النبی و رحمة الله و برکاته.

۲: السلام علیک یا رسول الله.

۳: السلام علیک یا حبیب الله.

۴: السلام علیک یا خلیل الله.

۵: السلام علیک یا خیر خلق الله.

٦: السلام علیک یا صفوة الله.

۷: السلام علیک یا خیرة الله.

۸: السلام علیک یا سید المرسلین.

۹: السلام علیک یا امام المتقین.

۱۰: السلام علیک یا من ارسله الله و رحمة للعالمین.

۱۱: السلام علیک یا شفیع المذنبین.

۱۲: السلام علیک یا مبشر المحسنین.

۱۳: السلام علیک یا خاتم النبیین.

۱۴: السلام علیک وعلی جمیع الانبیاء و المرسلین و الملائکة المقربین.

۱۵: السلام علیک وعلی آلک و اهل بیتک و اصحابک اجمعین و سائر عبادالله الصالحین جزاک الله عنا افضل و اکمل ما جزا به رسولا عن امته و نبیا عن قومه و صلی الله و سلم علیک ازکی و اعلی و انمی صلاة صلاها علی احد من خلقه و اشهد ان لا اله الا الله وحده لا شریک له و اشهد انک عبده و رسوله و خیرته من خلقه و اشهد انک بلغت الرسالة و ادیت الا مانة و نصحت الامة واقمت الحجة و جاهدت فی الله حق جهاده و عبدت ربک حتی

اتاک الیقین و صلاة الله و ملائکته و جمیع خلقه من اهل سمواته و ارضه علیک یارسول الله اللهم اته الوسیلة و الفضیلة و الدرجة العالیة الرفیعة و ابعثه مقاما محمودا الذی وعدته و اعطه المنزل المقعد المقرب عندک و نهایة ما ینبغی ان یساله السائلون ربنا امنا بما انزلت واتبعنا الرسول فاکتبنا مع الشاهدین امنت بالله و ملائکته و کتبه و رسوله و الیوم الاخر وبالقدر خیره و شره اللهم فثبتنا علی ذلک ولا تردنا علی اعقابنا ربنا لا تزغ قلوبنا بعد اذ هدیتنا وهب لنا من لد نک رحمة انک انت الوهاب وهیئ لنا من امرنا رشدا ربنا اغفرلنا ولا بائنا و لا مهاتنا و ذریاتنا و لاخواننا الذین سبقونا بالایمان ولا تجعل فی قلوبنا غلا للذین امنوا ربنا انک روف رحیم ذو الفضل العظیم.

محترم حاجي صاحب دا دعاوي او سلامونه به په څونه عاجزي سره وايي ترجمه يې ما نه ولیکله ځکه چي ترجمه په ظاهر که سړی دا دعاوي او سلامونه وايي هم په پوهيږي او که نه سي پوه بيا دي نوري دعاوي چي يې زده وي وايي دي ليکن دا سلامونه او دعاوي ټولي يا د حديثو او يا د آيتو څخه را اخيستل سوي دي چي څوک دي خطا نه کړي او درته ووايي چي دا مه وايه.

فايده: هرکله چي يې دا دعا خلاصه کړه نو به دري واره په مکرره توګه سره د نبي ﷺ څخه د شفاعت غوښتنه وکړي په دنيا کي د معاصي او ګناهو څخه او د الله د اطاعت او عبادت د توفيق او په آخرت کي د بخښني د ګناهو نو به ووايي:

يارسول الله اسالک الشفاعة.

دري واره هغه کمه مرتبه ده د زاريو په دعا کي او ليري دي هم نه وي چي دا دري مقاماتو ته هم اشاره ده د دنيا، د قبر، د آخرت، او د انسان دپاره هم مرتبې دري دي د شريعت، طريقت او حقيقت چي د نبي ﷺ مبارک د سلامو او هغه دعاګانو څخه فارغه سو نو به لږ په مقدار د نيم ميتر ښي طرف ته سي بيا به سلام پر خليفه اول د نبي ﷺ وکړي حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه هغه سلامونه به ووايي چي په عربي عبارت کي د نبي ﷺ تر سلامو چي اوس تېر سوه بعد به دغه سلامونه د حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه حضور ته ووايي چي هرکله دا هم ده پوره کړه بيا به نيم ميتر قدري ورځخه تر ښا سي پر حضرت عمرفاروق رضی الله عنه به سلام وکړي او هغه سلامونه چي په عربي عبارت کي تېر سوه و به يې وايي بيا چي د ده سلامونه هم خلاص سوه نيم ميتر به بيرته مخ ته رجوع وکړي چي د دوارو خليفه ګانو تر مابين سو بيا دوارو ته سلامونه ووايي دا هم په عربي عبارت کي تېر سوي دي هرکله چي د دوارو د سلامو څخه فارغه سو نو به بيرته د نبي ﷺ مبارک حضور ته ور نژدې سي او د قبر اقدس سره به ودريږي د يوې نېزې په مقدار سره يا کم تر

دغه نو به اول حمد او ثنا ووايي او درود به پر نبي ﷺ ووايي او خپل رب ته به يې شفيع کړي او لاسونه به پورته کړي د ځان او والدينو او اقرباؤ او استاذانو او پيرانو او مؤمنانو ته به دعاوي وکړي او هغه چا ته چي وصيت يې ورته کړی وي او که غواړي چي ځان کمال ته ورسوي او نور زيات سلامونه ووايي او دعاګاني وکړي نو د ابوبکر صديق رضي الله عنه او عمرفاروق رضي الله عنه تر سلامو بعد په عربي عبارت کي ټوله ستنه دلته به د کتونکي دپاره ډېره ستړيا سي چي يو وار عربي ګوري بيا پښتو ورته مکرره سي ليکن هغه مهمي دعاګاني به دلته وليکم چي پاته نه سي ډېر مؤثري دعاګاني دي و من الله التوفيق:

اللهم انک قلت و انت اصدق القائلين ولو انهم اذ ظلموا انفسهم جاؤک فاستغفروا الله و استغفرلهم الرسول لوجدوا الله توابا رحيما جئناک ظالمين لانفسنا مستغفرين من ذنوبنا فاشفع لنا واساله ان يمن علينا بسائر طلباتنا و يحشرنا في زمرة عباده الصالحين اللهم ان حبيبک حبيبک و انا عبدک والشيطان عدوک فان غفرت لي سر حبيبک و فاز عبدک و غضب عدوک و ان لم تغفرلي غضب حبيبک و رضي عدوک وهلک عبدک و انت اکرم من ان تغضب حبيبک و ترضی عدوک و تهلک عبدک اللهم ان العرب الکرام اذا مات فيهم سيد اعتقوا علی قبره و ان هذا سيد العالمين اعتقني علی قبره.

ژباړه: ياالله بېشکه تا ويلي دي او ته ډېر صادق يې په ويلو کي که چيري دا کسان چي پر خپلو ځانو يې ظلم کړی دی و تا ته راغلي وای او مغفرت يې غوښتی وای د خدايه څخه او نبي ﷺ د دوی دپاره مغفرت غوښتی وای نو به الله د دوی توبې قبولي کړي وای الله ډېر توبه قبلونکی او مهربان دی اوس موږ تا ته راغلي يو په ډېر ظلم کي ګير يو او مغفرت د خپلو ګناهو دپاره غواړو اې د مديني جانانه زموږ دپاره شفاعت وکړه او د خدايه څخه زموږ دپاره پر نور شيانو احسان وغواړه چي راباندي وې کړي او موږ د صالحينو او نيکانو په ډله کي راپورته کړي ياالله دا حبيب خو ستا دوست دی او زه ستا بنده يم او شيطان ستا دښمن دی نو که ته مغفرت راته وکړې نو ستا دوست به خوشحاله سي او زه به کامياب سم او ته ډېر احسان کونکی ذات يې چي خپل دوست نه خفه کوې چي ستا دښمن په خوشحاله سي او زه په هلاکت کي واقع سم ياالله عرب کرام قانون لري چي د دوی يو مشر سردار وفات سي نو دوی يې پر قبر باندي مريان آزادوي او دا قبر خو د سردار د ټول عالم دی نو زما ګردن خو پر دغه مبارک قبر د اوره څخه آزاد کړه نو به کلمه شهادت ووايي او ګواهي به ورکړي چي پر دغه روضه مقدسه اوس هم ملايکي را نازليږي او دلته په دغه عظيمه روضه کي اوسيږي او شاهدي به ووايي چي الله يو دی شريک نه لري نبي ﷺ يې بنده او رسول دی او شاهدي به ووايي چي نبي ﷺ ټوله هغه شيان چي موږ ته يې راوړي

دي هغه امر دی يا منع دی د منکراتو څخه يا امر دی پر نيکو کارو او هر څه چي تېر سوي يا را روان يې راته بيان کړي دي تېوله حق دي هيڅ خلاف ورزي او درواغ پکښي نسته او زه پخپله ګناه اقرار لرم او ګناهګاره د غټو او کوچني ګناهو يم نو وما ته بخښنه وکړې او داسي احسان راباندي وکړې کوم چي ته يې پر خپلو اولياؤ کوې په توفيق ورکولو د نيکو کارو او د راګرځولو څخه د بدو کارو ته ډېر احسان کونکي او بخښونکي او مهربان ذات يې اې ربه موږ ته راکه د دنيا حسنة معنا متابعت د نبي ﷺ او په اخرت کي حسنة راکه چي جنتونه دي او د اور څخه مو وساته په خپل حجاب او پرده کي تا ته پاکي ده د هغه صفاتو څخه چي ملحدان او کجروان يې درته ثابتوي او سلام دي پر ټوله رسولانو وي او حمدونه او ثناوي دي رب العالمين ته وي اول او اخير تر ورځي د يوم القيامې پوري.

فايده: که وخت تنګ وي يا عاجز سي د دنيا څخه او يا يې ياد نه وي دا تېري سوي دعاګاني او سلامونه نو دونه قدري درودونه او دعاګاني دي وکړي چي ده ته څونه اسانه وي هغه کمه مرتبه يې دا ده چي داسي ووايي:

السلام عليک يا رسول الله.

سلام دي وي پر تا يارسول الله.

او دغه به څو واره مکرره ووايي، تنبيه که يو چا سلامونه په لاس ورکړي وه نو به ووايي سلام دي وي پر تا د فلاني چي زوی د فلاني سړي دی او يا د فلاني سړي سلام دي وي پر تا يارسول الله او کوم خلق چي عادت داسي لري چي د حجرې پر شا راګرځي چي دغه ځای ته حجرت النوراء وايي او بعضي علماء وايي چي دلته د حضرت بي بي فاطمة الزهرا رضي الله تعالى عنها قبر دی هيڅ پروا نه لري اصلي او مختاره او د خلافه څخه وتلي مذهب د امام اعظم رحمه الله دا دی چي زيارت ته د نبي ﷺ راغلی مخامخ به زيارت ته دريږي نه مخامخ قبلې ته اګرچي د امام اعظم رحمه الله څخه نور روايات د قبلې د مخ کولو هم راغلي دي ليکن د امام اعظم رحمه الله استقرار پر دغه قول راغلی ابن المبارک وايي چي امام اعظم رحمه الله قصه کوله چي مدينې ته ابو ايوب السختياني راغلی زه په مدينه کي وم نو ما کتل چي دا فقيهه به څنګه دريږي نو هغه شا قبلې ته کړه او د نبي ﷺ حضور ته مخامخ ودرېدی او ژړل يې انتهى.

نو چي هرکله د زيارت څخه فارغه سو ممبر ته به نژدې راسي باره به دعا وکړي نبي ﷺ فرمايي زما د قبر او منبر تر مابين يو باغ چي د باغچو څخه د جنت دی، مسند احمد ج۳ ص۶۴، سنن کبرى ج۵ ص۲۴۶، بغوی ج۳ ص۱۴۹، مجمع الزوائد ج۴ ص۶، درالمنثور ج۱ ص۲۳۷، کنزالعمال ص۳۴۹۴۷ وغيره کتابو بېشماره او دلته په روضه

کي به ډېر لمونځونه وکړي رنګارنګ درودونه به ووايي او ډېري دعاګاني به وکړي چي حمد او ثنا ورسره وي.

## فصل په مدينه کي د شپو تېرول غڼ غنيمت دی

وليغتنم ايام مقامه بالمدينة المشرفة فيحرص على ملازمة المسجد والاعتكاف والختم ولو مرة منه و احياء ليله و ادامة النظر الى الحجرة الشريفة و القبة المنيفة مع المهابة و الخضوع فانه عبادة كالنظر الى الكعبة الشريفة وليكثر من الزيارة عند الائمة الثلاثة خلافا لمالک لان الاكثار من الخير خير ولايمس عند الزيارة الجدار ولا يلتطق به ولا يطوف ولا ينحنى ولا يقبل الارض فانه بدعة ولا يستدبر القبر المقدس ولا يصلى اليه ولا يمر به حتى يقف و يسلم و لو من خارج و يكثر من الصلاة و السلام على النبى ﷺ و الصيام و الصدقة عند الاساطين الفاضلة وغيرها مع تحرى المسجد الاول وحده من المشرق و الاسطوانة الملاصقة بجدار الحجرة المقدسة من جهة الرأس الشريف و من القبلة من وراء المنبر نحو ذراع و من المغرب الاسطوانة من المنبر و من الشام حيث ينتهى مائة ذراع من محرابه ﷺ وهو معلوم لاهل المدينة بالعلامة الموضوعية و اما حد الروضة الشريفة فهى مابين القبر المقدس والمنبر طولا و اما عرضا فقيل الى اسطوانة على رضي الله عنه وقيل الى صف السطوانه الوقود و اما لا ساطين الفاضلة فمنها اسطوان هى علم المصلى الشريف و كان الجذع امامها و اسطوان عائشة رض و هى الثالثة من المنبر الى المشرق فى الصف الذى خلف امام المصلى روى صلاته عليه السلام اليها و انه يستجاب عندها الدعاء و اسطوان التوبة وهى بين اسطوان عائشة والاسطوان اللاصقة بشباک الحجرة روى صلاته عليه السلام الى و استناده عليها مما يلى القبلة و اعتكافه عندها واسطوان السرير هذه هى اللاصقة بالشباک شرقى اسطوان التوبة روى اعتكافه عليه السلام عندها وهى خلف اسطوانة التوبة من جهته الشمال وكان على رضي الله عنه يصلى و يجلس عندها مما يلى القبر و اسطوان الوفود وهى خلف اسطوان على رضي الله عنه من الشمال بينها و بين اسطوان التوبة اسطوان على رضي الله عنه وكان و سراة الصحابة يجلسون عندها و جميع سوارى المسجد يستحب زيارة اهل البقيع كل يوم و اتيان المساجد و المشاهد واحد والابار المنسوبة اليه.

متن و بعده شرح علي القاري

هر حاجي صاحب چي مديني منوري ته ولاړ سي نو دا شپې چي دی تېروي دا به د غنيمت شپې وي نسبت د ده د پخوا کلونو ته او ډېر کوشش به دا کوي چي د مسجد څخه نه وزي خصوصاً يا په پنځه وخته لمانځه کي اعتكاف به په کښې وکړي يا شرعي چي لس شپې دی يا عرفي چي يو شوارورز او يا زيات شوارورزونه کيږي او د قرآن کريم ختم به

پکښې کوي اگر که يو پلا يې ختم کړي ځکه دلته ختم د قرآن په کار دی دا ځای د وحي د نزول دی او شپې به په عبادت کي او ورځي به په زيارتو کي تېروي په ډېر عاجزئ او ببره سره به مبارکي حجرې ته او گنبدي ته د نبي ﷺ گوري او دا کتل داسي عبادت دی لکه کعبې شريفي ته چي ده کتل عبادت وو د حضرت بي بي عائشه رض څخه مرفوع حديث روايت سوی دی چي کعبې ته کتل عبادت دی. اتحاف السادة المتقين ج۴ ص۲۸۳. کنزالعمال ۳۴۶۴۷. کشف الخفاء ج۲ ص۴۵۴. مستدرک ج۳ ص۱۴۱. المعجم الکبير ج۱۰ ص۹۳ ج۱۸ ص۱۱۰. مجمع الزوائد ج۹ ص۱۱۹. حلية الاولياء ج۲ ص۱۸۳. البداية و النهاية ج۷ ص۳۵۸.

چي دغه يو څه تېر سوي حوالې د دغه حديث دي زما څخه غلطي وسوه د کشف الخفاء د حوالې څخه بعد د دغه حديث حوالې دي چي په روايت کي راغلي دي چي حضرت علي رضی الله عنه ته کتل عبادت دی نو قيل وايي چي علي رضی الله عنه به راښکاره سو نو خلقو به ويل لا اله الا الله څنگه راښکاره سو دا ځوان لا اله الا الله څونه ښه عالم دی دا ځوان لا اله الا الله څونه عزتمنده دی دا ځوان لا اله الا الله څونه دلاوره دی دا ځوان نو د علي رضی الله عنه ديدار به خلق باعثه کړه پر کلمې د توحيد کذا في النهاية.

حاصل دا دی چي هر هغه شی چي سړی پر حق باعث کوي او وسيله گرځي دا عبادت دی لکه په روايت کي راغلي دي چي اولياء د خدای هغه کسان دي چي وې ويني سړی نو د ده خدای جل جلاله ياد سي او ذکر شروع کړي د امام اعظم رحمة الله عليه او شافعي او احمد رحمة الله عليه پر مذهب ډېروالی د زيارتو معتبر دی وجه يې دا ده چي ډېر خېر هم په خپله خېر دی ځکه چي دا به سړي ته ياد وي چي صحابه کرام د نبي ﷺ څخه يو گړی نه جلا کېدل د ادابو خلاف کار به نه کوي لکه بعضي جاهلان چي د بزرگانو په کالو کي ورڅخه کيږي هغه دا چي ځان به په ديوالو پوري نه مږي او نه به پر روضې مبارکي طواف کوي ځکه طواف خاص دی په کعبې شريفي پوري او نه به انحنا معنا سر کښته کول کوي ځکه دا ناروا کار دی او بدعت نو هيڅ شک نسته چي حرام دی.

او قبر ته د نبي ﷺ به شا نه گرځوي په لمانځه وغيره کارو کي او د قبر سره به لمونځ نه کوي دلته لمونځ حرام بلکې خطره د کفر سته که تر مابين ستره نه وه او د ده قصد تعظيم وو بيا کافر کيږي او دا اداب هم مبارک ﷺ درته بيان کړي دي نو د ده د قول څخه مخالفت ضرور بې ادبي ده لکه امام شافعي رحمة الله عليه د امام اعظم رحمة الله عليه زيارت ته ورغلی د خپل مذهب سنت يې پرېښول دپاره د احترام د امام اعظم رحمة الله عليه ځکه ده د امام اعظم رحمة الله عليه څخه حيا کوله چي د ده په حضور کي مخالفت ورڅخه وکړي او د مبارک ﷺ د قبر پر

هر جانب به هم نه ورځي چي دريږي او سلام ورته كوي اگر كه د مسجد څخه خارج هم وي او په مسجد كي د خرما مندكي حرام كار دى ځان ساتل ورڅخه واجب دى او كه بل څوك وويني ورته وايي به چي دا كار مه كوه دلته به ډېر درودونه او سلامونه پر نبي ﷺ وايي او روږي به نيسي او خيراتونه به كوي خصوصاً پر مسكينانو د مدينې منورې ځكه د مدينې د باشنده ګانو محبت واجب دى پر مقدار د مقام د هر سړي اول به د هغه مسجد د اندازې خيال ساتي چي د نبي ﷺ مبارک په زمانه كي جوړ سوى وو چي په قرآن كي د هغه مسجد داسي صفت الله تعالى كړى دى:

لمسجد أسس على التقوى من أول يوم أحق أن تقوم فيه. التوبه ۱۰۸

اول مسجد چي تاداؤ يې پر تقوا سوى دى په اوله ورځ حق داره دى د دې چي سړى مقيم سي د عبادت دپاره پكښي اگرچي دلته اختلاف سته چي دغه مسجد ورڅخه مراد دى او كه مسجد قبا او د دواړو مرادېدل هم امكان لري او بل خصوصي حديثونه د نبي ﷺ مبارک په مسجد كي وارد سوي دي لهذا اوس چي پوه سوې نو هغه اندازه د مسجد به ځان ته معلومه كړې.

نو اندازه يې دا ده د لمر خاته دخوا څخه چي يو ستن د ديواله سره د حجرې مباركي ولاړه ده چي د نبي ﷺ مبارک سر دى او د قبلې طرف ته د ممبر لا يو لاس څخه زيات هاخوا ته دى هغه زياتي خو د ديوال ورڅخه ايسته سوى دى د لمر لوېدو دخوا څخه بيا د ممبر څخه د پنځمي ستني څخه شروع كيږي د شام طرف ته د محرابه څخه شروع پنځوس ميتره اوږد دى دا پر هغه روايت چي اول مسجد سل گزه معنا پنځوس ميتره وو بيا نبي ﷺ دويم وار چي غټ كړى نو يې پنځوس ميرته اوږد او پنځوس ميتره بر سو او د نبي ﷺ مسجد درې دروازې درلودلې چي سړى به پر لمانځه ودرېدى يوه دروازه يې راسته او بله يې چپه طرف ته كېدل يوه به شا ته كېدل.

د نبي ﷺ د مباركي روضي اندازه په داسي ډول سره ده چي په اوږدو د ممبر څخه بيا تر قبره پوري ده او بر يې د شام د طرفه څخه د علي ﷺ تر ستني پوري ده او قيل وايي تر ستني د وفود پوري ده او بنه دغه خبره ده وغيره اقوال هم سته چي ټوله مسجد روضه ده هغه اول بعضي وايي ور زيات سوى هم پكښي داخل دى او قيل وايي چي د حجرې څخه شروع د اختر د عيدگاه تر ځايه پوري دا ټوله روضه ده او څوک وايي چي محراب روضه ده شايد هلته دونه فاصلې تر مابين نه وې او اوس ټولې سره گډې سوي دي.

او هغه ستني د فضيلت څه ذكي يوه اسطوان ده چي دا د لمانځه ځاى وو د نبي ﷺ هم دا وجه ده چي سلمة بن الاكوع به دا ځاى په نظر كي نيولى وو د لمانځه دپاره چي

د دغه اسطوانې ومخ ته هغه د خرما تنه وه چې نبي ﷺ به خطبه پر ويله بله اسطوانه معنا ستن د حضرت عائشه رض ده چې د ممبر څخه د لمرخاته طرف ته دريمه دانه ده چې د لمونځ کونکي شا ته کيږي د محراب د صف والاؤ په روايت کې راغلي دي چې د دغه ستنې سره نبي ﷺ تر لسو ورځو زيات لمونځونه کړي دي د قبلې تر اوښتلو بعد باره لحيلې د لمانځه ځای ته نقل سو او نبي ﷺ به دغه ستنې ته تکيه هم کوله په اوسط کتاب کې د طبراني داسې روايت راغلی دی چې نبي ﷺ به ويل که خلق خبر سي پر هغه ځای چې ما لمونځ پکښې کوی نو به دوی ايسکه کولای د دغه ځای د لمانځه دپاره حضرت بي بي عائشه صديقه رض وايي چې اشاره باره وما ته وکړه چې دغه ځای دی او په بل روايت کې راغلي دي چې دلته دعا هم قبليږي.

او بله د توبې اسطوانه معنا ستن ده چې د حضرت عائشه رض د ستنې او حجرې تر مابين ده په روايت کې راغلي دي چې دلته هم نبي ﷺ لمونځونه کړي دي او تکيه بې ورته کړې ده او قبلې ته نژدې هم ده او نبي ﷺ دلته اعتکاف هم کړی دی او دغه ستنې ته د توبې ستن ځکه وايي چې بعضي کسانو چې د غزا څخه د تبوک پاته سوي وه بې له عذره څخه دلته ځانونه تر هغه وخته تړلي وه چې توبه بې قبليده هيڅ خوراک او څښاک به بې نه کوی او بل ستن د کټ ده چې د شباک سره يوځای ده چې د لمرخاته خوا ته بې د توبې ستن ده په روايت کې راغلي دي چې نبي ﷺ دلته اعتکاف کړی دی او د ده مبارک عادت دا وو چې اعتکاف به بې کوی کټ به بې ودروی د قبلې طرف ته.

بله ستن د علي ﷛ ده چې د توبې د ستن شا ته ده د شمال طرف ته حضرت علي کرم الله وجهه ﷛ به دلته لمونځونه کول دلته به ناست وو هغه طرف ته چې د نبي ﷺ مبارک قبر دی او برابر د حجرې دريچې ته هم دی چې نبي ﷺ به ګای ګای سر مبارک تر را ايستی او بله د وفود ستن ده چې د بل ځايه څخه به خلق راتله په اسلام کې به داخليدل دلته به ناست وه چې دا بيا د علي ﷛ تر ستن شا ته ده د شمال طرف ته چې نبي ﷺ او غټ غټ صحابه کرام دلته سره جمع کېدل او بل د تهجدو ستن ده او دا د بي بي فاطمه رض د کور شا ته ده چې سړی ورته مخامخ سي نو محراب بې مخ ته کيږي چې چپه طرف بې د دروازې سره د جبرايل ﷺ دی الخ دا هغه اسطوانې دي چې تاريخ پوهانو بيان کړي دي ليکن مصنف رحمه الله وايي چې د مسجد د هرې ستنې سره بايد لمونځونه سړی وکړي او دا مستحب کار دی ځکه د نبي ﷺ په سترګو مبارکو کې خو ټولې راغلي دي د پوهي خبره دا ده چې ته ووايه اوس خو هغه ستنې نسته جواب دا دی چې ځايونه بې سته چې صحابه کرامو به دلته لمونځونه کول او د بقيع د مقبرې زيارت هره ورځ کول مستحب کار

دی اګرچي د هغه ځای باشنده ګان د جمعې په ورځ ورځي او بل مستحب عمل ورتګ دی ځلورو مسجدو ته چي په سر کي يې مسجد قبا. دی چي د شنبې په ورځ ورتګ ډېر تاثير لري بيان يې درته راځي همدا رنګه به د غزاځايو ته لکه احد او يا هغه ځاهانو ته چي نسبت يې نبي ﷺ ته کيږي.

## فصل د بقيع مقبرې زيارت کول

يستحب ان يخرج کل يوم الى البقيع بعد زيارة النبى ﷺ و صاحبيه رضی الله عنهما فيزور القبور التى به خصوصا يوم الجمعة وقد قيل انه مات بالمدينة من الصحابة نحو عشرة الاف غير ان غالبهم لا يعرف و ممن يعرف عينا او جهة بالبقيع مشهد عثمان عفان رضی الله عنه و مشهد سيدنا ابراهيم ابن النبى عليه السلام وفيه رقية ابنته عليه السلام و عثمان بن مظعون و عبدالرحمن بن عوف بن ابى وقاص و عبدالله بن مسعود رضی الله عنه و خنيس ابن حذافة و اسعد بن زرارة فينبغى ان يسلم هناک على هولاء. کلهم رضی الله عنهم و مشهد عباس بن عبدالمطلب وهو عم النبى عليه السلام و فيه حسن بن على رضی الله عنه عند رجلى العباس رضی الله عنه قيل و فاطمة الزهرا رضی الله عنها و قيل مسجدها بالبقيع قيل وراس الحسين وقيل و على ايضا نقل اليهم رضی الله عنهم ولا بأس بالسلام على هولاء. کلهم و فيه ايضا زين العابدين و ابنه محمد الباقر و ابن محمد جعفر الصادق رضی الله عنه و مشهد ازواج النبى عليه السلام و على اله و ازواجه ماعدا خديجة و ميمونة و قيل لا يعرف تحقيق منه فيه منهن و مشهد عقيل ابن ابى طالب و فيه سفيان بن الحارث و عبدالله بن جعفر الطيار و قيل عقيل فى داره و مشهد قرب مشهد امهات المومنين قيل و فيه ثلاثة من اولاد النبى عليه السلام و مشهد قيل فيه فاطمة رض بنت اسد رض ام على رضی الله عنه و قيل الظاهر انه مشهد سعد بن معاذ رضی الله عنه و مشهد صفية عمة النبى و مشهد الامام مالک رحمه الله و مشهد ان به نافعا مولى ابن عمر رضی الله عنه و مشهد اسماعيل بن جعفر الصادق رضی الله عنه داخل السور و بقى ثلاثة مشاهد ليست بالبقيع احدهما مشهد مالک بن سنان رضی الله عنه و ثانيهما مشهد النفس الزکية محمد بن عبدالله بن الحسن بن الحسين بن على رضی الله عنهم شامى المدينة و ثالثها مشهد سيد الشهداء. حمزة رضی الله عنه ياتى ذکره فى فضله.

متن و بعده شرح علي القاري

هره ورځ د بقيع د مقبرې زيارت کول مستحب دی وروسته تر زيارت د نبي ﷺ او د ده مبارک د ملګرو حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه او حضرت عمرفاروق رضی الله عنه همدا رنګه د حضرت بي بي فاطمې رضی الله عنها زيارت نو به د قبرو زيارت وکړي د صحابه کرامو هغه کسان چي په البقيع مقام کي او خصوصي به د جمعې په ورځ هره جمعه ورځي چي په عرف او عادت کي دا ورځ ورته خاص ګرځېدلې ده او که داسي نه وي نو به اووه ورځو کي معنا په

هفته کي يوه ورځ زيارت مستحب کار دی ليکن د فضيلت ورځ يې د جمعې ده بيا شنبه بيا دوشنبه بيا پنجشنبه او محمد بن واسع وايي د جمعې او يوه ورځ مخکي چي د پنجشنبې ورځ او وروسته د شنبې په ورځ مړی خپل زيارت کونکی ويني نو معلومه سوه چي فضيلت د جمعې ورځ لري او دا کامله ورځ ده ويل سوي دي چي په مدينه منوره کي د صحابه کرامو څخه لس زره کسان دفن دي ليکن غالبه په کښې معلوم نه دي پېژندل کيږي نه په خصوصي ډول سره نو به تولو ته داسي سلام کوي:

السلام عليکم دارقوم مومنين و انا ان شاء الله بکم لاحقون. مسنداحمد ج۲ ص۴۰۸، ج۶ ص ۷۱ – ص۷۶.

معنا سلام دي وي پر سرايو ستاسي د قوم اې مومنانو موږ هم انشاءالله تعالی په تاسي پسې يو بيا به دعا وکړي:

اللهم اغفر لاهل البقيع بقيع الغرقد اللهم اغفرلنا ولهم.

اې خدايه بخښنه وکړې اهل ته د بقيع غرقد مقبرې والاؤ ته موږ ته هم بخښنه وکړې هم دوی لره.

او که يې ډېر زياتوب کوی په دعا کي نو به ووايي سلام دي وي پر تاسي مومنانو او مومنانو ښځو او مسلمانانو او مسلمانانو ښځو او الله دي رحم پر متقدمينو او وروستني خلقو وکړي او الله رب العالمين دي ستاسي وحشت او تنهايي په انس او الفت سره او الله رب العالمين دي ستاسي حسنات په څو چندو بدل کړي او ستاسي ګناهونه دي ورڅوي اې ربه زموږ او زموږ مور او پلار وبخښې او هغه کسان وبخښې چي حق يې پر موږ دی او يا يې وصيت راته د دعا کړی وي او ټوله مومنان او مومناني ښځي وبخښې ژوندي او مړه ټوله الخ د دغه ترجمې عربي عبارت به اوس درته وليکم:

ربنا اغفرلنا ولوالدينا و لاستاذينا ولاخواننا و لاخواتنا و لا ولادنا و لا حفادنا و لا قربائنا ولا صحابنا و لمن له حق علينا و لمن اوصانا و استوصانا و للمومنين و المومنات و المسلمين و المسلمات الاحياء منهم الاموات ربنا اغفرلنا ولاخواننا الذين سبقونا بالايمان ولاتجعل فی قلوبنا غلا للذين امنوا ربنا انک روف رحيم اللهم صل علی روح محمد فی الارواح وصل علی جسد محمد فی الاجساد وصل علی قبر محمد فی القبور ربنا توفنا مسلمين والحقنا بالصالحين وادخلنا الجنة امين برحمتک يا ارحم الراحمين امين وصل علی جميع الانبياء و المرسلين و علی ملائکتک المقربين و علی عبادک الصالحين و علی اهل طاعتک اجمعين و ارحمنا معهم بفضلک و ارزقنا شفاعتهم و احشرنا معهم والحمدلله رب العالمين.

تر دعا بعد به ولاړ سي هغه لوی لوی صحابه کرامو ته به دعاګاني او سلامونه وکړي خصوصا بیا هغه کسان چي قبرونه يې معلوم وي یا عين یا طرف په بقیع مقبره کي شرقي طرف ته مشهد د عثمان بن عفان ﷺ دی چي فضیلت منده د صحابه کرامو دی اولین به ده ته سلام کوي ځکه دی خلفاء راشدینو څخه دی نو به اول جمله تولو ته سلام وکړي او توجه به ده مبارک ته وکړي نو دا سلامونه دي ووایي:

السلام علیک یا امیر المؤمنین السلام علیک یا امام المسلمین السلام علیک یا ثالث الخلفاء الراشدین السلام علیک یا ذالنورین النیرین السلام علیک یا مجهز جیش العسرة بالنقد و العین السلام علیک یا صاحب الهجرتین السلام علیک یا من جمع القران بین دفتین السلام علیک یا صبورا علی الاکدار السلام علیک یا شهید الدار السلام علیک یا من بشره النبی المختار بدخوله الجنة مع الابرار السلام علیک و رحمة الله و برکاته.

دا سلامونه چي يې ووېل بیا به مشهد ته د نبي ﷺ د دوو بچیانو راسي یو حضرت ابراهیم ﷺ او بله رقیة رض او بل د نبي ﷺ رضاعي ورور عثمان بن مضعون دی بل عبدالرحمن بن عوف بن ابی وقاص ﷺ دی چي دا واړه د هغه لسو کسانو څخه دي چي نبي ﷺ د جنت زېری پر کړی دی او بل د یو لوی فقهاؤ صحابه کرامو څخه چي څلور کسان وه پکښي عبدالله بن مسعود ﷺ دی او بل قبر د خنیس بن حذافة ﷺ او بل قبر د سعد بن زرارة دی نو مناسب اول دا ده چي تولو ته سلامونه وکړي د ابراهیم ﷺ چي د نبي ﷺ زوی دی د ده مبارک د قبر سره به ودریږي.

بیا به د حضرت عباس بن عبدالمطلب چي د نبي ﷺ اکا دی او دلته د حسن بن علی ﷺ بن ابی طالب چي دوی بیا د عباس ﷺ د پښو سره دی قیل وایي دلته د فاطمي الزهرا رض مسجد دی په البقیع کي د دار الاحزان سره او قیل واي د مبارک حسین ﷺ سر مبارک دی او قیل وایي چي علي ﷺ دلته را نقل سوی دی او زین العابدین هم دلته دی او د ده زوی محمد الباقر او د جعفر الصادق ﷺ زوی محمد هم دلته دی او د نبي ﷺ د ازواج مطهراتو زیارتونه دي ماسوا د حضرت بي بي خدیجة الزهرا رض او حضرت بي بي میمونة رض څخه د حضرت بي بي خدیجي رض زیارت په مکه او د حضرت بي بي میمونة رض زیارت دی په سرف مقام کي چي مکې ته نژدې دی قیل وایي چي اصلي تحقیقي معلومات چا ته نسته چي څونه صحابه دلته دفن دي د حضرت بي بي عائشه صدیقه رض د قبر څخه او د عقیل بن ابي طالب چي د حضرت علي ﷺ ورور دی او سفیان بن الحارث بن عبدالمطلب بن عم النبي ﷺ او بل د عبدالله بن جعفر الطیار بن ابي طالب ﷺ او قیل وایي چي د عقیل قبر په مکه کي په خپل سرای کي دی او یا په مدینه کي دی یا په شام کي

او د مومنانو د مندو د زیارتو سره قیل وایي درې زیارته د اولادې څخه د نبي ﷺ او بل د فاطمې بنت اسد رض چې د حضرت علي ﷺ مور ده ځوک وایي د عقیل سره د عباس ﷺ سره څوک وایي د ابراهیم ﷺ د زیارت سره دی قیل وایي دلته د سعد بن معاذ ﷺ زیارت هم دی او د نبي ﷺ عمه صفیة رض هم دلته ده او د امام مالک رحمه الله زیارت هم دلته دی چې یو امام دی په څلورو امامانو کې او بل دلته وایي چې د نافع زیارت هم سته چې د ابن عمر ﷺ مریی وو ده مبارک آزاد کړی او لوی قاري وو د قاریانو څخه د قرآن او لوی تابعي تېر سوی دی او بل زیارت د اسماعیل بن جعفر صادق ﷺ دی دا هم د مدینې په احاطه کې د مقبرې راغلی دی اوس درې مشاهد پاته سول چې دا په البقیع مقبره کې نسته او په مدینه کې دي یو د مالک بن سنان ﷺ چې ابوسعید الخدري ﷺ پلار دی د احد د شهداؤ څخه دی د مدینې شریفې د لمر لوېدو طرف ته په احاطه کې داخل دی او دویم د نفس زکیه محمد بن عبدالله بن الحسن بن الحسین بن علي ﷺ د جعفر المنصور په وخت کې شهید سو د مدینې د شام طرف دی دریم مشهد د سید الشهداء دی بعد تر انبیاؤ او د احد په جنګ کې شهید سو او دی فضیلت منده د شهداؤ دی او د نبي ﷺ اکا دی چې تنها بیان یې درته راځي حضرت حمزه ﷺ اوس دلته د علماؤ اختلاف دی چې شروع به د کوم ځایه څخه کوي نو بعضي علماء وایي چې د حضرت عثمان ﷺ د قبر څخه به شروع کوي ځکه دی فضیلت منده د دغه مقبرې دی او بعضي علماء وایي چې د ابراهیم ﷺ د قبر څخه دې شروع په وکړي چې یو خو د نبي ﷺ جز دی او بل د ده په شان کې روایت راغلی دی چې که ژوندی پاته سوی وای نو به دی پیغمبر وای لهذا د ده څخه د زیارتو شروع کول په کار دی او بعضي علماء وایي چې اول شروع یې د حضرت عباس ﷺ د قبر څخه او ختم یې پر زیارت د حضرت بي بي صفیه رض په کار دی.

## فصل د نبي ﷺ په نامه جوړ مسجدونه

المساجد المنسوبة الیه ﷺ منها مسجد قباء هو افضل المساجد بعد المساجد الثلاثة یستحب زیارته یوم السبت وصح عنه ﷺ ان صلاة رکعتین فیه کعمرة و اما موضع صلاته ﷺ منه قبل تحویل القبله فالمحراب الذی عند الاسطوانة التی فی الرحبة محاذیا محراب المسجد و بعد التحویل هو المحراب الذی عند جدار القبلة و اما الحفیرة التی فی صحن المسجد فقیل انها مبرک ناقته ﷺ و مما یتبربه بقبا دار سعد فی قبلة المسجد و فی قبلة رکن المسجد الغربی موضع لعله مسجد دار سعد و فی قبلة المسجد ایضا دار ام کلثوم نزل بها النبی ﷺ واهله و اهل ابی بکر و یزور بئرار لیس التی یاتی ذکرها مسجد الجمعة شامی قبا مسجد الفضیخ شرقیة و یعرف بمسجد

الشمس ولاوجه له مسجد بنی قریظة مسجد ام ابراهیم ابنه ﷺ بالعالیة مسجد بنی ظفر شرقی البقیع و یعرف بمسجد البغلة وهناک اثار حضر بغلة و مرفق و اصابع ینسبونه الیه ﷺ ومسجد الاجابة شامی البقیع مسجد الفتح علی قطعة من جبل سلع وعنده مساجد یعرف الاول بمسجد سلمان الفارسی رضی الله عنه و الثانی بمسجد علی رضی الله عنه و الثالث بابی بکر صدیق رضی الله عنه مسجد بنی حرام ومسجد القبلتین الارجح ان تحویل القبلة کان به ومسجد السقیا ومسجد ذباب و یعرف بمسجد الرایة شامی المدینة علی قطعة جبل ومسجد صغیر بطریق السافلة الی احد یقال انه مسجد ابی ذر رضی الله عنه ومسجد البیع عن یمین الخارج من درب البقیع قیل الظاهر انه مسجد ابی ابن کعب رضی الله عنه ومسجد فاطمة الزهرا رض بالبقیع ومسجد مصلی العید معروف مسجد شمالی ومسجد المصلی جائحا الی الغرب یعرف بمسجد ابی بکر رضی الله عنه لعله صلی فیه ایام خلافته او قبلها مسجد شامی المصلی یعرف بمسجد علی رضی الله عنه قیل انه ﷺ صلی العید بهذین المسجدین او لا ثم فی المصلی المعروف.

متن و شرح علي القاري

هغه مسجدونه چې نبي ﷺ ته يې نسبت کيږي په مدينه منوره کې هغه دا دي:

۱: مسجد قبا دی چې په رواياتو کې دا ډېر فضيلت منده مسجد دی تر مساجد ثلاثه وو بعد لکه د مسجد حرم د مکې او بل د مسجد نبوي ﷺ او بل د مسجد اقصیٰ تر مسجد بعد مقام د مسجد قبا دی ځکه نبي ﷺ به لمونځ پکښې کوی او حضرت عمر رضی الله عنه به هم ورته راتلې او حال همدا دی چې د مسجد نبوي ﷺ لمونځ په اجماع سره تر غوره دی او زيارت يې په هر وخت کې مستحب دی اګرچې د شنبې ورځ او د دوشنبې ورځ بهترې لري او لسمه د روژې د ورځې حضرت عمر رضی الله عنه به د دوشنبې په ورځ او د پنجشنبې په ورځ ورته راتلې او د نبي ﷺ ورتګ به د دوشنبې په ورځ کې وو.

په صحيح حديث ثابت ده چې دوه رکعته لمونځ په مسجد قبا کې په هره ورځ کې چې وي د يوې عمرې ثواب لري او په بل روايت کې څلور رکعته لمونځ راغلی دی دواړه صحت لري ځکه که څلور وکړي دوه به د مسجد د احترام دپاره سي دوه به د عمرې د ثواب د ګټلو دپاره سي او په اول روايت کې چې دوه راغلي دي نو د مسجد د احترام لمونځ هم پکښې دننه سو په الکبير کې وايي چې په صحت رسېدلی حديث داسي دی چې په مسجد قبا کې لمونځ د عمرې برابر دی ترمذي وغيره بيان کړی دی دا حديث او په صحيح حديث ثابت ده چې نبي ﷺ به د شنبې په ورځ سپور ګای پياده ورتلی دا روايت بخاري او مسلم ذکر کړی دی او د نبي ﷺ د لمانځه ځايونه پکښې دا دي چې قبله نه وه اوښتې نو ده

مبارک د لمانځه ځای محراب وو دغه اول چي د ستن سره دی چي د دا بل محراب سره برابر دی او چي کله د لمانځه د اوښتلو کعبې ته حکم راغلی قبله بله سوه اول خو بې بیت المقدس ته لمونځ کوی نو بیا د ده مبارک د لمانځه ځای دویم محراب سو چي د قبلې د طرف د دیوال سره پیوست دی او کوم ځای چي دننه په مسجد کي کند دده دا په اول کي چي نبي ﷺ دلته راغلی تر مسجد دمخه اوښه دلته چوکه سوه د هجرت په کال کي بل د تبرک ځای د سعد رضي الله عنه سرای دی چي د مسجد قبا د قبلې طرف ته دی په روایت کي راغلي دي چي نبي ﷺ په دغه سرای کي تکیه کړې ده د مسجد قبا د لمر لوېدو په طرف کي د دیواله سره د مسجد متصل یو ځای دی خو په نامه د مسجد د علي رضي الله عنه دی ممکن ده چي دغه اول د سعد رضي الله عنه کور وو بیا ده مسجد کړی دی او د مسجد قبا د قبلې طرف ته د ام کلثوم کور دی چي نبي ﷺ د خپل ټول خاندان سره او د ابوبکر صدیق رضي الله عنه د خاندان سره ورته راغلی دی او د څاه چي په نامه د بیراریس دی مسجد قبا ته نژدې دی د دغه زیارت یې کوی.

۲: دویم مسجد الفضیخ دی چي د قبا د لمرخاته طرف ته دی چي په نامه د مسجد الشمس شهرت لري شاید چي د لمرخاته طرف ته دی وي نو یې دا نوم ورته وضع کړی دی.

۳: دریم مسجد بني قریظة دی چي دلته پخوا مناره وه په روایت کي راغلي دي چي نبي ﷺ دلته لمونځ کړی دی.

۴: څلورم مسجد ام ابراهیم دی چي په عالیه کي دی چي د مدینې په لوړ طرف کي دی چي ابراهیم د نبي ﷺ زوی دی چي د حضرت بي بي ماریه رضي الله عنها څخه قبطیه مینځه وه ابراهیم رضي الله عنه ورڅخه همدلته پیدا سوی دی او په روایت کي راغلي دي چي نبي ﷺ دلته لمونځ کړی دی.

۵: پنځم مسجد بني ظفر دی چي ظفر یو قوم دی د انصارو څخه د مدینې مشهوره په نامه د مسجد البغلة دی او د بقیع د مقبرې د لمرخاته خوا ته دی نبي ﷺ لمونځ کړی دی او پر هغه ډېره کښېنستلی هم دی مگر د مسجد د نوي کېدو په وخت کي دغه ډېره ورکه سوه او د دغه مسجد سره د مبارک ﷺ د غاتري د څنگنو او ښنگرو علامې هم ستهٔ لو خلق تبرک په حاصلوي.

۶: شپږم مسجد الاجابة دی چي د بقیع د شام طرف ته دی په روایت کي راغلي دي چي نبي ﷺ دلته دوه رکعته لمونځ هم کړی دی او دلته یې دعا ډېره اوږده هم په ولاړه کړې ده.

۷: اووم مسجد الفتح دی د سلع غره پر څنډه باندې چي د مدینې څخه وتلی ځای

دی چي د چارشنبې په ورځ نبي ﷺ دوه رکعته لمونځ دلته کړی دی او په مابين کي يې دعا هم کړې ده: مسجد فتح سره درې مسجدونه نور دي چي نبي ﷺ لمونځونه پکښې کړي دي اول مسجد د سلمان الفارسي ﷛ دی دويم د علي ﷛ دريم د ابوبکر صديق ﷛.

۸: اتم مسجد بنی حرام دی چي په نامه د کهف بنی حرام دی نبي ﷺ دلته کښېنستلی دی او وحي پر نازلي سوي دي او دلته ده مبارک شپې کړي دي د جنګ خندق په شپو کي چي تولو کفار پر مدينه منوره راګرځېدلي وه دا مسجد چي د قبلې پر طرف مسجد فتح ته روان سې پر راسته لاس باندي دی.

۹: نهم مسجد القبلتين دی چي دوه محرابه لري يو د کعبې شريفي خوا ته بل د بيت المقدس خوا ته دی ځکه چي نبي ﷺ دمازيګر لمونځ دوه رکعته بيت المقدس ته کړي وه چي وحي راغلې د بيت الله شريف ته د مخ کولو په لمانځه کي نو نبي ﷺ باقي دوه رکعته لمونځ کعبې ته وکړی نو دغه وجه ده چي مسجد د دوو قبلو ورته ويل کېږي نبي ﷺ چي مدينې ته هجرت وکړ شپاړس يا اوولس مياشتي بيت المقدس ته لمونځ کړی وو چي وحي ورته راغلې چي کعبې ته مخ کړه په لمانځه کي.

۱۰: لسم مسجد السقيا دی چي د نبي ﷺ لمونځ او دعا پکښې ثابته ده.

۱۱: يولسم مسجد ذباب دی ذباب د غره نوم دی په دغه غره کي دغه مسجد جوړ دی او مشهور په مسجد الراية سره دی چي بهرغ به پر ځړېدی د شام طرف ته د مدينې منورې د غره پر څنډه دی چي د نبي ﷺ لمونځ پکښې کول ثابت دی.

۱۲: مسجد صغير دی چي د حضرت حمزه ﷛ د مشهد او زيارت پر لمرخاته لاره پر راسته طرف لاندي دی د احد د غره سره چي څلور ميتره دی ويل کېږي چي دا د ابوذر الغفاري ﷛ مسجد دی په روايت کي راغلي دي چي نبي ﷺ دوه رکعته لمونځ پکښې وکړی سجده يې اوږده وکړه وحي ورته را نازلې سوې.

۱۳: ديارلسم مسجد البيع دی چي د عقيل د زيارت څخه د لمر لوېدو پر طرف روان سې د بقيع د مقبرې څخه پر راسته لاس باندي دی قيل وايي چي دا مسجد د ابي بن کعب ﷛ دی په روايت کي راغلي دي چي نبي ﷺ د ابي ﷛ په مسجد کي ډېر وارونه لمونځونه کړي دي.

۱۴: څوارلسم مسجد د حضرت بي بي فاطمة الزهرا رض دی په البقيع مقبره کي چي اوس په بيت الاحزان سره شهرت لري قيل وايي د حضرت بي بي فاطمې رض زيارت همدلته دی.

۱۵: پنځلسم مسجد مصلی العید دی چي دا مشهور مسجد دی چي نبي ﷺ تر وفاته پوري دلته د اختر لمونځونه کول او کله چي به د سفر څخه راغلی هم به ورغلی مخامخ به قبلې ته ودرېدی دعا به یې وکړه.

۱۶: شپاړسم مسجد شمالي دی چي د مسجد مصلی شمال طرف ته جوړ دی مایل د لمر لوېدو خوا ته چي د حضرت ابوبکر ؓ په مسجد شهرت لري شاید ده د خپل خلافت په دوران یا مخکي دلته لمونځونه کړي وي.

۱۷: اوولسم مسجد شامي دی چي د مسجد مصلی د شام طرف ته دی چي د حضرت علي ؓ په مسجد سره شهرت لري شاید چي حضرت عثمان ؓ محاصره وو حضرت علي ؓ دلته د اختر لمونځ ادا کړی وو قیل وایي چي نبي ﷺ په اول کي دلته دوه د اختر لمونځونه کړي دي او په مسجد مصلی مشهور سو.

## فصل د احد او د اهل د ده زیارت کول

یستحب ان یزور شهداء جبل احد و مساجده والجبل نفسه والافضل ان یکون ذلک یوم الخمیس متطهر مبکرا لئلا یفوته الظهر بالمسجد النبوی و یبدا بمسجد حمزة سید الشهدای عم سید الانبیاء ؓ فیسلم علیه بخشوع و خضوع مع مراعاة غایة الادب و الاجلال التام و ینبغی ان یسلم بمشهده علی عبدالله بن جحش و مصعب ابن عمیر لانه قیل انهما دفنا معه و من الشهداء سهل بن قیس ؓ قیل قبره دبر قبر حمزة شامیا بینه و بین الجبل و منهم عبدالله و عمرو و عبدالله بن الحسحاس و ابوایمن و خلاد و خارجة و سعد و النعمان ؓ و قبورهم مما یلی المغرب من قبر حمزه نحو خمسمائة ذراع قال السید فی تاریخه تاملته فوجدت ذلک التی عربی المسید الذی هناک فیسلم علی هؤلاء الثمانیة هناک و اما بقیة الشهداء من شهدا احد فلا یعرف قبورهم والذی یظهر انها یقرب الموضع المذکور فی الربوة شامیها و المشهور ان الذین اکرموا بالشهادة یوم احد سبعون رجلا و اما القبر الذی عند رجلی سیدنا حمزة ؓ فقبر متولی العمارة و القبر الذی بصحن المشهد قبر و بعض امراء المدینة من الاشراف و القبور التی بالحضارة بین المشهد و بین الجبل قبور اعراب فلا یظن انها من قبور الشهداء و اما مساجد احد فمنها مسجد الفسح ملاصق باحد علی یمینک و انت ذاهب الی الشعب للمهراس سمی به لانه قیل نزل به فی ایة الفسح و یقال انه ﷺ صلی فیه الظهر و العصر بعد القتال مسجد رکن جبل عینین الشرقی وهذا الجبل فی قبلة مشهد حمزة و یقال انه هو الموضع الذی طعن فیه حمزة ؓ و انه صلی فیه النبی ﷺ مسجد الوادی علی شفیرة شامی المسجد المذکور قریبا منه یقال انه رضی الله عنه مشی من الموضع الاول الی هذا فصرع به و قیل انه لما قتل اقام فی موضعه ثم امر

به النبی فحمل الی هذا الموضع.

متن و بعده ترجمه و شرح علي القاري

د جبل احد د غره د شهداؤ زيارت كول مستحب كار دى ابن ابي شيبة ﷺ روايت كوي چي نبي ﷺ به د هر كال په شروع كي ورته راتلى ويل به يې السلام عليكم بما صبرتم فنعم عقبى الدار، تفسير قرطبي ج۹ ص۳۱۲، بداية والنهاية ج۴ ص۴۵، دلائل النبوة ج٦ ص۳۰٦.

د احد د غره مسجدونه او پخپله د ده زيارت هم مستحب كار دى په بخاري وغيره كي چي نبي ﷺ وفرمايل احد داسي غر دى چي دى زموږ سره محبت كوي او موږ د ده سره محبت كوؤ الطيالسي وايي چي حضرت انس ﷺ به فرمايل چي تاسي د احد غره ته ورسئ نو د درختو څخه يې خوراک كوئ اگر كه څوزان وي دپاره د تبرک حاصلولو او په بل حديث كي راغلي دي چي د احد غر يو ركن دى معنا يو حصه د جنت ده په بل روايت كي راغلي دي چي احد يو غر دى چي زموږ سره محبت كوي او موږ د ده سره محبت كوو پر دروازي د دروازو څخه د جنت الخ.

فضيلت منده دا ده چي د پنجشنبې په ورځ په پاكۍ سره او الله اكبر ويونكي به سهار كي زيارت وكړي چي د ماپښين لمونځ ورڅخه قضا نه سي د مسجد نبوي ﷺ چي د دې فضايل بې شمېره دي او لمونځ هم د نيكانو سره دى چي ور ورسېدى اولين شروع به د مسجد څخه د حضرت حمزه ﷺ چي سردار د شهداؤ دى وكړي الحاكم روايت كوي چي حضرت بي بي فاطمي^رض^ به د خپل اكا حضرت حمزه ﷺ زيارت هره جمعه كوى او دوه ركعته لمونځ به يې وكړى او د ده د زيارت سره به يې ژړل او په روايت د يحيى كي راغلي دي چي په دوو يا درو ورځو كي به زيارتو ته تلله او شروع به يې د سيدالشهداء حضرت حمزه ﷺ څخه كوله چي د نبي ﷺ اكا دى په حديث كي راغلي دي حضرت نبي (ص) وويل چي دا غوره اكا دى زما په اكا خيلو كي، رواه الحافظ الدمشقي.

او ابن سيرين روايت كړى دى په مرفوع حديث سره چي نبي ﷺ چي سيد الشهداء په ورځ د قيامت كي حمزه زوى د عبدالمطلب دى، جامع مسانيد ج۲ ص۲۸۱.

په معجم البغوي كي راغلي دي چي نبي ﷺ وفرمايل قسم دى زما په هغه ذات چي زما روح د ده په قبضه كي دى چي د خدايه سره ليكلي دي په اووم آسمان كي چي حمزة ﷺ د الله زمرى دى او د رسول الله^ص^ زمرى دى. المعجم الكبير ج۳ ص۱٦۳، مجمع الزوائد ج۹ ص۲٦۸، كنزالعمال ۳۳۲۷۱، المستدرک ج۳ ص۱۹۸.

په ډېر عاجزۍ سره به او په ډېره ډېره او نهايت ادب سره او په لوى درناوي سره په

تواضع او عزت سره به سلام ورته کوي د حضرت ابن مسعود ﷺ څخه روايت دی چي موږ هيڅکله نبي ﷺ ژړېدونکی نه دی ليدلی په زياته اندازه تر قبر د حمزه بن عبدالمطلب چي د قبلې طرف ته يې کښېښودی او بيا يې جنازې ته ودرېدی او بيا تر شا سو او وې ژړل قريب وو چي پر نبي ﷺ بې سدي راسي او داسي به يې ويل چي اې حمزه اې د رسول الله اکا او زمری د رسول الله يا حمزه يا فاعل د خير د کارو يا حمزه اې کشف کونکې د سختو کارو يا حمزه اې شړونکی د دښمن د رسول الله څخه مناسب دا ده چي د ده د مشهد او زيارت سره پر عبدالله بن جحش د ام المؤمنين حضرت بي بي زينبي (رض) ورور دی او د نبي ﷺ د عمه زوی دی او د حمزه ﷺ د خور زوی دی سلام ورته وکړي او مصعب بن عمير ﷺ ته چي د غټو صحابه وو څخه دی او بل د شهداؤ څخه سهل بن قيس ﷺ دی چي د حضرت حمزه ﷺ د قبر د شام طرف ته دی او په احد کي شهيد سوی دی د غره طرف ته يې قبر دی او بعضي د احد د شهداؤ څخه عبدالله او عمرو او عبدالله بن الحسحاس او ابو ايمن او خلاد او خارجة او سعد والنعمان رضي الله تعالى عنهم دي او د دوی مبارکانو قبرونه د لمر لوېدو طرف ته دوه نيم سوه ۲۵۰ ميتره د حمزه ﷺ د قبر څخه ليري دي السيد السمهودي په خپل تاريخ کي ليکلي دي د مدينې چي ما په ډېر فکر سره دا ځايونه پيدا کړه کوم ځای چي د شيلې اوبه بهيږي د لمر لوېدو طرف ته نو پر دغه اتو ۸ کسانو به هم سلام وکړې او باقي د احد د شهداؤ څخه قبرونه هيڅ نه پېژندل کيږي ظاهره دا ده چي دلته به وي پر دغه يوه ميدان باندي او مشهوره دا ده چي د احد شهيدان اويا ۷۰ کسان وه چي په قرآن کي الله تعالى فرمايلي دي د دوی په شان کي:

ولا تحسبن الذين قتلوا في سبيل الله امواتا بل احياء عند ربهم يرزقون. آل عمران ۱۶۹

ژباړه: تاسي گمان مه کوئ په شان د هغه کسانو کي چي د خدای په لاره کي د جهاد شهيدان سوي دي چي دا نو مړه دي بلکې ژوندي دي په نزد د رب د دوی رزق ورکوي.

او هغه قبر چي د حمزه ﷺ د پښو سره دی دا د دغه مقبرې د متولي دی د العمارة ﷺ او هغه قبر چي په ميدان د دغه مشهد کي دی دا د مدينې منورې د اميرانو دی چي شريف خلق وه ليکن د شهيدانو قبرونه نه دي او د هغه ډبرو او غره تر مابين چي کوم قبرونه دي دا هم د شهداؤ نه دي بلکې د اعرابو دي او کوم مسجدونه چي په احد کي دي ۱ اول مسجد الفسح دی چي سرې هغه خمې ته د غره ورخيژې پر راسته طرف دی د احد په غره پسې منښتي دي نه د فسحي مسجد ځکه وايي چي د فسحي آيت په کښې نازل سوی دی:

یایها الذین امنوا اذا قیل لکم تفسحوا فی المجالس فافسحوا یفسح الله لکم. المجادلة ۱۱

ژباړه: اې مومنانو چي تاسي ته وويل سي چي په مجلس کي فراخي راولئ نو تاسي پراخي راولئ الله به هر څه تاسي ته پراخه کړي.

په روايت کي راغلي دي چي نبي ﷺ دلته لمونځ کړی دی د ماپښين او مازيګر د احد د جنګ څخه وروسته.

۲: دويم مسجد رکن دئ چي د غره د لمرخاته خوا ته دی او د احد غر د حضرت حمزه ﷺ د قبلې طرف ته دی چي نبي ﷺ د حضرت حمزه ﷺ جنازه دلته کړې ده کوم ځای چي حمزه ﷺ په توره ووهل سو باره يې د دغه ځايه څخه نقل کړی د ده زيارت ته او پر دغه مسجد ليکلي دي يو بسم الله بل آيت بل داسي ليکلي دي چي دا د حمزه ﷺ د غوځارېدو ځای دی او د نبي ﷺ د لمانځه ځای دی.

## فصل ځاهان چي په نامه د نبي ﷺ دي

الابار المنسوبة الیه ﷺ وهی کثیرة قیل انه سبع عشرة بئرا ولا یعرف الا یسیرة فمن المعروف بئراریس بقرب مسجد قبا و هی التی جلس علیها النبی ﷺ و ابوبکر و عمر ﷺ و فیها سقط خاتمة ﷺ فی زمن عثمان ﷺ و بالغ فی طلبه فلم یخرج و ینبغی ان یتوضا بمائها و یشرب منه قیل انه لما شرب له ماء زمزم بئر غرس من جهة قبا وضوؤه و شربه ﷺ منها و بزقه وصب بقیة وضوئه و اهراق الغسل فیها وصح انه ﷺ اوصی ان یغسل منها بسبع قرب فغسل منها بئرا العهن بالعالیة قیل هی بئر البصة قریبة من البقیع علی طریق قبا بین نخیل وهناک بئر ان قیل انها الکبری منهما و قیل الصغری التی لها درج و رجع الاول روی انه ﷺ غسل راسه وصب غسالة راسه و مراقة شعرة فی البصة ای صبهما فی هذه البئر ففیها خیر ولو منهما شئ یسیر بئر بضاعة روی انه ﷺ توضا منها و بصق فیها و دعالها وکانوا یغسلون المرضی فی زمنه ﷺ من مائها فیعا فون بیرحاء قریبة من سور المدینة و بضاعة روی شربه ﷺ منها بئر اهاب قیل هی التی تعرف الیوم بزمزم وهی بالحرة الغربیة روی انه ﷺ بصق فیها قیل و کان یحمل ماؤها الی الاقطار کما. زمزم بئر ابی عنبة لعلها المعروفة الیوم ببئر و دی روی انه ﷺ ضرب عسکره علیها فی غزوة بدر بئر انس بن مالک الراجح انها المعروفة الیوم بالزناطیة روی شربه منها و بزقه فیها بئر رومة روی عنه ﷺ من حفر رومة فله الجنة فحفرها عثمان ﷺ و عنه ﷺ نعم الصدقة صدقة عثمان نعم الحفیرة حفیرة المربی بئر السقیا علی یسار السالک الی بئر علی روی شربه ﷺ منها والتی اشتهرت الیوم من الابار لسبعة

نظمها بعضهم اذا رمت ابار لنبی بطيبة فعدتها سبع مقالا بلاوهن اريس و غرس رومة و بضاعة کذا بصة قل بيرحاء مع العهن.

ترجمه و شرح علي القاري

هغه څاهان چي نبي ﷺ ته یې نسبت سوی دی دا ډېر زیات دي قیل ویلي دي چي اوولس ۱۷ دانې دي لیکن لږ یکنبي اوس معلوم دي او مشهوره څاهان یې دا دي:

۱: څاه داریس چي مسجد قباء ته نژدې دی د دغه څاه پر غاړه نبي ﷺ او ابوبکر صدیق ﷺ او عمرفاروق ﷺ کښېنستلي دي او د نبي ﷺ ګوتمۍ هم د حضرت عثمان ﷺ په زمانه کي ورشوه سوه چي هر څونه تلاش یې وکړی پیدا نه سوه سړي ته مناسب دا دی چي اودس ورڅخه وکړي او یو څخه ورڅخه وچښي قیل وایي چي د دغه څاه د اوبو خاصیت همداسي دی لکه د زمزم د اوبو چي د هر مراد دپاره دي وچښلې هغه مراد ستا پوره کېږي.

۲: دویم څاه بیر غرس دی دا د قبا سره دی چي نبي ﷺ اوبه ورڅخه وچښلې او اودس یې ورڅخه کړی دی او نبي ﷺ ناړي پکښي توکړي دي په صحت رسېدلې ده چي نبي ﷺ وصیت وکړی چي د دغه څاه په اووه ژیه اوبو سره وما ته غسل راکړئ په بل حدیث کي راغلي دي چي دا یوه چینه ده د جنت د چینو څخه.

۳: دریم څاه بیر العهن دی چي د مدینې په عوالي وو کي په غره کي جوړ دی قیل وایي چي دا څاه په نامه د بیر البسیرة په روایت کي راغلي دي چي نبي ﷺ به اودس هم ورڅخه کوی او ناړي یې پکښي توکړي دي او د برکت دعا یې ورته کړې ده.

۴: څلورم څاه بیر البصة دی چي مقبرې ته د البقیع نژدې پر لاره د قبا دی په ماینن کي د خرماؤ دلته دوه څاهان دي یو قیل وایي لوی او بل قیل وایي کوچنی ورڅخه مراد دی چي لاندي ور شوه کېدو ته تاخچې هم لري پروا خو نه لري چي دواړه مراد سي لکه راجح دا ده چي لوی څاه ورڅخه مراد سي په روایت کي راغلي دي چي نبي ﷺ خپل مبارک سر په دغه اوبو پرېولی دی او یو څه اوبه یې ورتویه کړي د سر د اوبو څخه و دغه څاه ته او د سر مبارک څخه ختلي ویښتان هم ورسره شوه سول نو په دغه اوبو کي ډېر لوی خېر دی.

۵: پنځم څاه بیر بضاعة دی او د دغه څخه هم اودس نبي ﷺ کړی دی او ناړي یې هم پکښي توکړي دي او دعا د برکت یې هم ورته کړې ده نو صحابه کرامو به د نبي ﷺ په زمانه کي خپل مریضان د دغه څاه په اوبو غسل ورکوی چي جوړ سي او جوړ به هم سوه چي برکت یې د نبي ﷺ څخه څاه اخیستی وو.

٦: شپږم څاه د بیرحاء دی چي دا هم بضاعة ته نژدې او د مدینې په احاطه کي دی

چي نبي ﷺ اوبه ورڅخه څښلي دي.

۷: اووم بير اهاب دی قيل وايي چي نن سبا د زمزم څاه ورته وايي د مديني د لمر لوېدو طرف ته په يو ځاى كي دى چي نبي ﷺ ناړي پكښي توكړي دي د دغه څاه اوبه هم خلقو به داسي وړلې لكه د زمزم اوبه چي د دنيا اطرافو ته نقل كيږي.

۸: اتم څاه بير ابي عنبة دى شايد دغه څا وي چي اوس ورته (بئر ودى) وايي چي شايد دا يو لنډه تنه والا سړي جوړ كړي وي نو د نامه نسبت يې هغه ته سوى دى په روايت كي راغلي دي چي نبي ﷺ د بدر په غزا كي دلته د صحابه كرامو دپاره خيمه درولې وه.

۹: نهم د انس بن مالك ﷺ څاه دى چي اوس يې نوم بالزناطية ورته وايي وجه د نامه يې دا ده چي دلته د خلقو آوازونه پر پورته سوه په روايت كي راغلي دي چي د دغه څاه اوبه نبي ﷺ څښلي دي او ناړي يې هم پكښي توكړي دي دا څاه د دار النخل سره دى چي د شامي باغچې سره دى.

۱۰: لسم څاه بير رومه دى په روايت كي راغلي دي چي چا بير رومه څاه وكندى په بدل كي جنت دى نو حضرت عثمان ﷺ وكندى جوړ يې كړى نو نبي ﷺ ورته وفرمايل ډېر ښه صدقه او خيرات د عثمان ﷺ دى په بل روايت كي راغلي دي چي ډېره ښه كنده د اوبو كنده د رومه ده د تربيه كونكي شخص.

۱۱: يولسم څاه د السقيا دى چي د سړي پر چپه طرف كيږي چي د علي ﷺ څاه ته ورځي په روايت كي راغلي دي چي نبي ﷺ اوبه ورڅخه څښلي دي او هغه څاهان چي اوس شهرت لري شاعر په خپل نظم كي اووه دانې شمېرلي دي لكه چي وايي څوك چي د مديني د څاهانو قصد لري د نبي ﷺ د څاهانو د نومونو نو شمېر يې اووه دى بې له شكه ۱: اريس، ۲: غرس، ۳: رومة، ۴: بضاعة، ۵: بصة، ٦: بيرحاء، ۷ العهن.

## فصل د مكي او مديني د لاري مسجدونه د نبي ﷺ

المساجد التى تعزى اليه ﷺ فى طريق مكة و هى كثيرة الا انا لم نذكر هنا الاما اشتهر منها و يكون بالطريق التى يسلكها الحاج فى زماننا فمنها مسجد ذى الحليفة روى صلاته ﷺ و نزوله و احرامه فيه مسجد المعرس ايضا بها قريب من الاول مسجد شرف الروحاء و هناک مسجد ان صغير و كبير روى انه ﷺ صلى بالصغير الذى على حافة الطريق اليمنى و انت ذاهب الى مكة و بينهما رمية حجر او نحوه و عنده قبور تعرف بقبور الشهداء مسجد عرق الظبية مسجد الغزالة اخر وادى الروحاء عند طرف الجبل على يسار السالک الى مكة روى صلاته و نزوله فيه مسجد الصفراء والناس يتبركون به و قد مات ابو عبيدة بن الحرث بالصفراء من جراحته ببدر و مات بالصفراء و دفن بها مسجد بدر كان

العريش الذي بنى له ﷺ عنده و هو حروف عند النخيل و بقربه عين و بقربه مسجد اخر لايعرف اصله و ينبغى ان يسلم ببدر على من بها من شهداء الصحابة ﷺ و الشق الذى فى جبل بعد بدر يصعده الناس لا اصل له مساجد بالجحفة الاول في اولها الثاني فى اخرها عند العلمين و الثالث على ثلاثة اميال منها يسرة عن الطريق مسجد بمر الظهران و يسمى مسجد الفتح و مسجد بسرف وبه قبر ميمونة رض ومن ازواج النبى ﷺ و به بنى عليها رسول الله و به توفيت و دفنت مسجد بالتنعيم يقال له مسجد عائشة رض بعد قبر ميمونة رض بثلاثة اميال واعلم انه يستحب زيارت المساجد والابار و الاثار المنسوبة اليه سواء علمت عينها او جهتها صرح به جماعة منا و من الشافعية و بعض المالكية وغيرهم و قد كان ابن عمر ﷺ يتحرى الصلاة و النزول والمرور قال فى الشفاء و من اعظامه و اكرامه اعظام جميع اشيائه و لو منفصلة من اعضائه و اكرام جميع مشاهده و امكنته و معاهده وما لمسه ﷺ بيده او عرف به.

متن و بعده ترجمه و شرح علي القاري

هغه مسجدونه چي نسبت يې نبي ﷺ ته کيږي پر لاره د مکې مکرمې څخه مدينې ته دي او دا مسجدونه پر لاره بيخي ډېر دي ليکن مشهوره مسجدونه پر هغه لاره چي حاجيان ورباندي ځي په نن زمانه کي ۱: اول مسجد ذوالحليفة دى چي د مدينې ميقات هم د دغه ځايه څخه دى په حديث سره ثابت ده چي نبي ﷺ دلته کښته سوى دى او لمونځ يې دلته کړى دى د حج وغيره احرامونه يې د دغه ځايه څخه تړلي دي.

۲: دويم مسجد المعرس دى چي داهم اول مسجد ته نژدې دى په ذوالحليفة کي چي احرامونه د مدينې خلق ورڅخه تړي او دا مسجد هم د مأثورة وو څخه دى چي نبي ﷺ به د يو طرف څخه را روان وو دلته به د شپې په اخير کي کښته کېدى.

۳: دريم مسجد شرف الروحاء دى چي دا مسجد د حرمينو تر مابين دى چي ديرش يا ځلوېښت ميله چي شپېته يا اتيا کيلوميتره لاره مسافه د مدينې څخه ليري دى دلته دوه مسجدونه دي يو غټ بل کوچنى او د نبي ﷺ لمونځ په هغه کوچني کي ثابت دى او دا مسجد د سړي پر راسته طرف دى چي مکې ته روان وي او د دواړو تر مابين د سړي ډېره د يوه څخه هغه بل ته رسيږي چي وې غورځوي او دلته د شهيدانو قبرونه هم سته.

۴: څلورم مسجد عرق الظبية دى دوه ميله معنا څلور کيلوميتره د مسجد الروحاء څخه ليري دى په ترمذي کي روايت دى چي نبي ﷺ لمونځ په شپله د روحاء کي کړى دى په دغه ځاى کي لو يا انبياؤ عليهم السلام لمونځونه کړي دي، المعجم الکبير ج۱٦ ص۱٦.

۵: پنځم مسجد الغزالة دى د روحاء د شيلې په اخيري طرف کي د غره چي مکې ته

خې پر چپه طرف کېږي او که مدينې ته ځې بيا پر راسته لاس کېږي په يوه روايت کې د نبي ﷺ لمونځ او کښېنسته کېدل ثابت دی د دغه مسجد نوم چې ورته مسجد الغزالة وايي غزالة بچي ته د هوسۍ ويل کېږي شايد چې د نامه وجه يې دا وي په روايت کې راغلي دي چې نبي ﷺ يو وخت په يو بيابان او صحرا کې روان وو چې غيبي او هاتفي آواز وسو درې ولړه يارسول الله رحمة للعالمين چې وکتل يوه هوسۍ تړلې وه او يو کس لمر ته په خپل پټو کې بيده دی نبي ﷺ هوسۍ ته وويل څه ضرورت لرې؟ هوسۍ ورته وويل چې دغه اعرابي زه په ښکار کې نيولې يمه او زما دوه دانې بچي دي په دغه غره کې ما ايله کړه زه به يو وار خپلو بچيانو ته تی ورکړم بيرته به راسم نبي ﷺ ورته وويل چې وعده ده دغسې کوې دې ورته وويل الله دې عذاب راکړي که را نغلمه نو نبي ﷺ ايله کړه ولاړه بيرته تر شېدو ورکولو بعد راغله نبي ﷺ وتړله چې هغه ښکاري اعرابي راويښ سو ويل يارسول الله ستا څه حاجت سته نو نبي ﷺ ورته وويل چې دا هوسۍ ايله کړه نو هغه هم ايله کړه نو دا هوسۍ ولاړه په خفستا سوه له ډيري خوشحالۍ په وجه به يې پښې پر مځکه وهلې او داسې به يې ويل:

اشهد ان لا اله الا الله و انک محمد رسول الله. اتحاف السادة المتقين ج۷ ص۱۹۵. الشفا ج۱ ص۶۰۳.

۶: شپږم مسجد الصفراء دی ځکه ورته صفراء وايي چې دلته ډيري درختي ولاړې وې او خلقو به په دغه مسجد سره برکت حاصلوی او دلته ابو عبيدة بن الحارث د صحابه کرامو څخه دفن سوی دی کوم چې په بدر کې زخمي سو باره دلته د ډېر ويني تلو په وجه وفات سو او دفن سو نو د دغه د زيارت د تبرک دپاره خلق ورځي.

۷: اووم مسجد بدر دی دلته يو ځاه وو چې بدر بن قريش جوړ کړی دی لو دا ځای د حرمينو تر مابين ځای دی د بام سر يې د خرما پټی وی دا د نبي ﷺ دپاره جوړ سوی دی نژدې ورته د اوبو چينه ده او نژدې بل مسجد هم ورته سته چې اصل يې معلوم نه دی د بدر د غره په يو کناره کې دی چې خلق ورخيژي چې گمان کوي چې دلته نبي ﷺ لمونځ کړی دی.

۸: اتم مسجد په الجحفة کې دی چې د شام د خلقو ميقات هم دی دلته يو قريه وه چې د مکې څخه دوديرش ميله معنا څلور شپېته کيلوميتره ليري ده بل نوم يې مهيعة دی دلته بنو عبيل چې د عام ورور وو او دوی عمالقه د دغه ځايه څخه وايستل بيا په مرور د زمان سيلونه راغله دا ځای يې سره گډوډ کړی او ډېري يې پر وغورځولې نو ځکه ورته جحفة وايي دلته درې مسجدونه دي اول د مدينې څخه وتلی دی دويم د ميقاتو د دوو علامو سره دی دريم درې ميله د مدينې څخه ليری دی پر چپه لاس دی چې مکې ته سرې ځي.

۹: نهم مسجد مر الظهران دی چي د مکې څخه د يوه مزله مسافه ليرې والی لري چي سرې مکې ته ځي پر چپه طرف د لارې دی بل نوم يې مسجد الفتح دی.
۱۰: مسجد بسرف دی چي دلته حضرت بي بي ميمونة رض ام المؤمنين زيارت هم دی چي دلته د دې عقد واده او وفات سوی دی چي تاريخ دانان وايي دا د عجائباتو څخه ده چي د دې مبارکې مرض او د وصال ځای او د فراق ځای يو دی او دا د نبي ﷺ په خوښه بنځه هم وه.
۱۱: يولسم مسجد په تنعيم کې دی چي د حضرت بي بي عائشه رض مسجد هم ورته وايي ځکه دې مبارکې د نبي ﷺ په امر سره د دغه ځايه څخه عمره راوړه په کال د حجة الوداع کې چي د قبره څخه د بي بي ميمونة رض درې ميله معنا شپږ کيلوميتره ليرې دی د مدينې طرف يې د بي بي ميمونة رض قبر دی او مسجد تنعيم هغه افضل د عمره کونکو دپاره دی زموږ پر مذهب او نږدې هم دی تر جعرانې.
فايده: پوه سه حاجي صاحب محترمه د دغه مسجدو او ځاهانو او اثارو زيارتونه او مشاهد د شهداؤ او صحابه کرامو او هغه ځايونه چي نسبت يې نبي ﷺ ته سوی دی مستحب کار دی برابره خبره ده تعين يې د ځای وي او که يې يو جهت او طرف ته ورسي خو د يو چا په لاربنوونه سره نه د ځانه څخه او دا فيصله د مستحب والی دې پر لوی جماعت کړې ده زموږ د احنافو څخه همدا رنګه شوافعو او مالکيه وو او حنابله وو او محدثينو علماؤ حضرت ابن عمر رضي الله عنه به پخپل فکر سره ځای معلوموی او هلته به کښته کېدی او پر هغه لاره به ورتلی او بيا يې پر هغه ځای لمونځ کوی قاضي عياض په خپل کتاب شفاء کې په صفاتو د نبي ﷺ ليکلي دي چي د عظمت او اکرام او احترام څخه د نبي ﷺ دا هم دی چي د ده مبارک اسبابو ته يا د ده په نامه يا يې ده ته نسبت کيږي او ته يې احترام وساتې چي تر دغه نو تولو مشاهد او د ده مبارک د لمانځه ځايونه د ناستې ځايونه او يا ده مبارک مسحه کړې وي په لاس يا پښه او ارخ سره ته هم هغسې وکړ اګرچي دا خو د مبارک د وجود څخه تنها او ليرې شيان دي والله اعلم وعلمه اتم.

## فصل د علماؤ اجماع پر دغه سوې ده چي افضل په دنيا کې مکه او مدينه ده

اجمعوا علی ان افضل البلاد مکة و المدينة زادهما الله شرفا و تعظيما ثم اختلفوا فيما بينهما و قيل المدينة افضل من مکة و قيل بالتسوية بينهما و الخلاف فيما عدا موضع القبر المقدس فما ضم اعضاوه الشريفة فهو افضل بقاع الارض بالاجماع و من العرش علی ما صرح به بعضهم و اما المجاورة بهما فقيل علی الخلاف المتقدم و قيل

تکره بهما الامن يثق من نفسه و قيل تکره بمکة ولا تکره بالمدينة و قيل يشترط التوثيق بالمدينة افضل من المجاورة بمکة و ان قلنا بمزيد المضاعفة بمکة و ذلک لوجوه الاول انعقد الاجماع علی ان المجاورة بالمدينة فی عصره ﷺ افضل من غيرها فلا يترک هذا الاجماع مالم يثبت اخرا لثانی لاختياره ﷺ ذلک ولم يکن يختاره الا الافضل الثالث وهو الذی لامر وله حثه ﷺ علی السکنی والموت بها فی احاديث کثيرة و لم يرد ذلک فی مکة بل کرهه جماعة من السلف والجواب عن مزيد مضاعفة الاعمال بمکة انه يقابله يتضعف الحسنات لا السيأت.

متن و بعده ترجمه و شرح علي القاري

د ټوله علماؤ اجماع سوې ده پر دې حکم باندي چي په دنيا کي مکه او مدينه فضيلت منده د ځايونو دي ليکن د دوی تر مابين چي کوم فضيلت دی په دغه کي اختلاف سته چي مکه فضيلت منده پر مدينې ده او که مدينه پر مکې فضيلت منده ده د درې امامانو مذهب چي د بعضي صحابه وو څخه يې روايت سوی دی مکه فضيلت منده ده پر مدينې او بل قيل د متن وايي چي مدينه پر مکې فضيلت منده ده دا قول د بعضي مالکيه وو دی او يو څه شوافع يې هم طرف داره دي قيل وايي دا مذهب هم د بعضي صحابه کرامو څخه روايت سوی دی.

ملا علي القاري وايي چي شايد دا روايت د نبي ﷺ په ژوند کي روايت سوی وي او يا د مهاجرينو په شرافت دا روايت سوی وي بل قيل وايي چي مکه او مدينه په فضيلت کي سره برابر دي لکه ملا علي القاري رحمه الله وايي دا قول مجهول دی خو پوهنه دومره په کار ده چي دا اختلاف د علماؤ د قبر مقدس څخه د نبي ﷺ ماسوا دی علاوه دا ده کوم ځای چي د جناب اقدس وجود لګېدلی دی دا خاوره افضله او بهترينه ده په اجماع سره د ټوله جمهورو علماؤ حتی چي تر کعبې او تر عرش لا بهترينه ده لکه بعضي علماؤ تصريح په کړې ده لکه قاضي عياض اجماع د علماؤ نقل کړې ده پر دغه قول چي تر کعبې لاهم بهترين دی قبر مقدس عقيل الحنبلي وايي دا تر عرش لا بهترينه ده او تاج الفاکهي وايي د مځکي فضيلت پر ټوله آسمانو په دغه وجه دی چي نبي ﷺ په آسمانو کي تګ کړی دی او بعضو د مځکي د فضيلت دليل د انبياؤ عليهم السلام دفن کېدل په مځکه کي ويلی دی.

اوس چي څوک غواړي چي استوګنه په دې مبارکو ځايو کي وکړي څه حکم لري جواب دا دی چي دا اختلاف د احنافو او مالکيه وو تر مابين مخکي بيان سوی دي يو قيل وايي چي استوګنه په دواړو کي مکروه ده هغه چا ته چي په ځان باور نه لري د حقوقو او ادابو د حفاظت او ساتني او که د طمعي دپاره يا د اغنياؤ د ديدار دپاره يا دريا او سمعي د

اظهار دپاره دلته ګير وو بيا نو دلته استوګنه حرامه ده او بل قيل وايي چي په مکه کي استوګنه حرامه ده او په مدينه کي پروا نه لري او بل قيل وايي چي شرط د ځان باور دی په هر يوه کي د حرمينو شريفينو او صيحح قول همدغه دی او د ټولو اقوالو جمعواري هم پر دغه قول باندي راځي چي ځوک پخپل ځان هم باور ولري بيا يو قيل وايي چي د مدينې استوګنه فضيلت لري پر مکې باندي مطلقاً اګرچي زموږ قول همدا دی چي د مکې مکرمې په حرم کي ثوابونه زيات دي تر حرم د مدينې ليکن د مدينې د فضيلت دپاره دا ځو دلايل وړاندي کوم:

۱: اول دليل دا دی چي اجماع منعقد سوې ده پر دغه چي د مدينې استوګنه د نبي ﷺ په زمانه کي او د ده مبارک په حيات کي تر بل هر ځای غوره او فضيلت منده وه لهذا دا اجماع غټ دليل دی ترڅو چي بل داسي دليل ثابت نه سي چي دا دليل ضعيفه کړي خو هغه دليل به هم اجماع وي د دغه اجماع په مثل يا علاوه تر دې.

۲: دويم د مدينې د فضيلت دليل دا دی چي نبي ﷺ دا ځای غوره کړی دی او د ده مبارک عادت دا وو چي ده به هغه شی مختاره کوی چي غوره والی بې درلودلای.

۳: دريم دليل دا دی چي نبي ﷺ به د مدينې د استوګني باعث توب کوی په ډيرو حديثو کي دا خبره واقع ده او داسي باعث توب د مکې په شان کي نه دی راغلی بلکې لوی جماعت بې منع فرمايلې ده د مکې د استوګني ځخه او کوم چي په مکه مکرمه کي نيکۍ ډېرېږي نو په مقابل کي بې بدۍ هم دونه ډېرېږي او د مدينې په شان کي د نيکيو د څو چندو حکم سته نه ګناهونو د څو چندو ليکن ملا علي القاري رحمه الله دغه قيل ته د درې سره دلايلو جوابونه ورکړي دي د دويم دليل جواب دا دی چي د نبي ﷺ مختاره کېدل د مدينې پر مکې باندي د ده مبارک د اختيار مسئله نه وه بلکې دی مبارک خو مجبوره سو د مکې د ځخه مدينې ته ولاړی همدا وجه ده چي نبي ﷺ حج وکړی او مدينې ته را روانېدی داسي بې وويل اې مکې زه عالم يم په دې حکم چي خدای ته خوښ ښار ستا دی ليکن زه چي ځمه په دې وجه چي دغه قوم زه د دغه ځايه ځخه ايستلی يم که دا وجه نه وای زه ستا ځخه نه تلم. کشاف ص۱۲۵.

او بل دار و مدار خو پر اجر او ثواب دی ظاهره ده چي د مکې د حرم عبادت د مدينې تر حرم دوچنده دی لهذا فضيلت د مکې د حرم دا زيات دی اوس به دا اول دليل جواب وليکم دا زما د قلم سهوه ومنئ د نبي ﷺ په زمانه کي چي مدينې پر مکې فضلت درلودی دا د مبارک ﷺ د وجود په سبب سره لکه د مثال په ډول يو غټ عالم او شيخ پير طريقت چي مثل بې اوس په دواړو حرمينو کي نه وو بالفرض او دغه شيخ په افغانستان کي وي نو د

دغه شيخ او عالم په وجه ستا دپاره غوره دا ده چي د دغه شيخ سره گزاره وكړې تر حرمينو كه بل په دنيا كي نه وو علاوه دا ده چي قيل هم پخپل دليل كي د نبي ﷺ د زمانې او عصر قيد لگولى دى لهذا چي د عصر قيد اوس نسته نو به حكم بالعكس سي ځكه چي په هغه زمانه كي وو دا حكم.

او د دريم دليل جواب دا دى چي هغه حديثونه چي د مدينې د استوگني فضيلتونه په كښي راغلي دي چي مدينه غوره ده صحابه كرامو ته كه دوى پو هېدلاى دا نسبت يمن او عراق او عجمو ته نه و مكې ته به وو لكه دا بيان چي يې په خپل ځاى كي راغلى دى چي يو حديث دا دى چي نبي ﷺ وفرمايل تر فتحي د مكې بيا هجرت نسته، معجم الكبير ج۳ ص۳۰۹، مجمع الزوائد ج۵ ص۲۵۰، تغليق التعليق ج۴٦ ص۱۱۷۴، التمهيد ج۲ ص۲۱۸، تلخيص الحبير ج۴ ص۸۷، الدر المنثور ج۷ ص۲۲٦، زاد المسير ج۷ ص۴۱۹، كنزالعمال ۱۵۰۵۴ -۴٦۲۵۰، فتح الباري ج۱ ص۱۳٦، تاريخ الكبير ج۷ ص۱۰۹، طبقات الكبرى ج۲ ص۱۰۳، البداية والنهاية ج۴ ص۳۲۱ -ج۵ ص۴۰.

او بل قيل وايي چي په مكه كي نيكي په چندو او بدى يې همدغسي ده نه د مدينې دا هم ضعيف دليل دى ځكه په قرآن كي الله تعالى فرمايلي دي:

ومن جاء بالسيئة فلا يجزى الا مثلها. الانعام ۱٦۰

ځو ك چي په گناه سره راتگ وكړي د دغه گناه برابر جزا وركول كيږي.

لهذا دلته مكه نه ده ورځخه وتلې علاوه دا ده كه د مدينې خارج علاقه ياده كړي په هغه كي زموږ كلام نسته او كه حرمين شريفين ياد كړي بيا خو يې فرق په احترام كي نسته.

## فصل مستحب روژې په حرمينو كي

و يستحب ان يصوم ما امكنه ايام مقامه بالحرمين و ان يتصدق على اهلهما و يستكثر من اعمال الخير كلها و ينبغى ان ينظر الى اهلها بعين التعظيم ولا يبحث عن بواطنهم و يكل سرائرهم الى الله تعالى و يحبهم لجوارهم كيف ماكانوا اذ عظم الاسائة لا تسلب حرمة الجوار و يستحب ختم القران بالمساجد الثلاثة والاكثار من الاعتماد و الطواف بمكة المشرفة و النظ الى البيت الشريف عبادة و يستحب الاكثار من الصلاة على النبى ﷺ فى المدينة المعظمة و ملازمة المسجد النبوى والعكوف فيه و الصلاة مع الجماعة و احياء ولو ليلة فيه مع مراعاة غاية الادب والا جلال.

متن و بعده ترجمه و شرح علي القاري

چونكې په حرمينو شريفينو كي د هري نيكي جزا په څو چنده ده لهذا مستحب دا ده چي په هر قسم عبادت كي سرى برخه واخلي لكه په دواړو حرمينو شريفينو كي روژې

نیول او خیرات ورکول مسکینانو ته او هره نیکي په زیاته پیمانه کول لکه روژه خیرات نفلي لمونځونه تلاوتونه ذکر همیش کول دائمي فکر کول خدای حضور کول او ځان خدای ته حاضرول په فکر کې او ډېره مناسبه دا ده چې د دواړو حرمینو شریفینو باشندګانو ته په ډېر احترام او درناوي کتل او د دوی عزت کول او د دوی د ظاهري لو باطني عوارضو ځخه ځان ساتل لکه په قرآن کې الله فرمایلي دي:

ولا تجسسوا. الحجرات ۱۲

تاسي د بل عیبونه مه لټوئ چې ځان په خبروئ.

نو د دوی مبارکانو حال او ظاهر الله ته وسپارئ ځکه تر شرک لاندي ټول ګناهونه د خدای جل جلاله تر مشیت لاندي دي چا ته عذاب چا ته چې ثواب ورکوي پر حقیقت يې د انسان علم نسته لهذا نو به محبت زیات ورسره ساتي دوی چې هرڅه کوي که غټه یا کوچنۍ ګناه کوي ځکه ګناه چې هر څونه وي دونه نسي کېدلای چې د همجوارۍ د حرمینو مقابله وکړي لکه شاعر چې ویلي دي:

واحبها واحب منزلها الذی نزلت به احب اهل المنزل

ژباړه: و ما ته ډېر خوښ دي اهل او ځان د استوګني ځکه دلته نازل سوی محبوب جانان زما.

او د قرآن ختم په حرمینو کې ځکه مستحب دی چې دا ځای د قرآن د نزول دی او د وحي د نزول دی او بیت المقدس خو په قرآن ثابته ده چې ماحول يې لا د برکت دی لهذا په دغه درې مسجدو کې ختم د قرآن مستحب کار دی په مکه کې طواف او ډېر کتل بیت الله ته عبادت دی لکه په مخکې بیانو کې درته تېره سوې ده چې یو ساعت کتل بیت الله ته تر یوه کال عبادت زیات ثواب لري په مدینه منوره کې بیا درود ویل ډېر ثواب لري او د مسجد نبوي ﷺ سره ملازمت او اعتکاف په مسجد کې روژې نیول پکښې او لمونځونه يې په جماعت سره کول او شپه پکښې تر سهاره عبادت کول اګر که یوه شپه وي خو نهایت ادب او احترام حتمي دی په لویه پیمانه سره.

## فصل د کونینو د سردار د زیارت ځخه د روانېدو آداب

اذا فرغ من زیارت سید الانام علیه الصلاة والسلام و من زیارت المساجد و المشاهد العظام و عزم علی الرجوع الی الاوطاق و یستحب ان یودع مسجد النبی بصلاة و دعاء بما احب والاولی ان یکون بمصلاه ﷺ ثم بما قرب منه و ان یاتی القبر المقدس فیزوره کمامر ثم یدعو بما احب من دین او دنیا و یسأل الله تعالی القبول والوصول الی

الاهل سالما من بليات الدارين ثم يقول اللهم لاتجعل هذا اخر العهد بينك و مسجده و حرمه و يسرلى العود اليه والعكوف لديه وارزقنى العفو و العافيه فى الدنيا والاخرة و ردنا الى اهلنا سالمين غانمين امنين برحمتك يا ارحم الراحمين و يجتهد فى اخراج الدمع فانه من علامات القبول ثم ينصرف متباكيا متحسرا على مفارقة الحضرة الشريفة والاثار المنيفة و ينبغى ان يتصدق بما تيسرله و ياتى فى رجوع بالاذكار الواردة فاذا قرب من بلده قال آيبون تائبون لربنا حامدون و يرسل امامه من يخبر اهله به والاولى ان يدخل نهارا و اذا دخل البلد بداء بالمسجد وصلى فيه ركعتين ان لم يكن وقت كراهة و اذا دخل على اهله قال توبا توبا لربنا او با لا يغادر علينا حوبا ثم يدخل بيته و يصلى فيه ركعتين ايضا و يشكره على ما اولاه من اتمام العبادة و الرجوع بالسلامة و ينبغى ان يجتهد فى محاسنه فى باقى عمره و ان يزداد خيره بعد العود فعلامة الحج المبرور و قبول زيارة خير مزور ان يعود خيرا مما كان فى جميع الامور فان رأى فى نفسه نزوعا عن الا باطل و تجا فيا عن دار الغرور و انابة الى دار الخلود فليحترز ان يدنس ذلک بطلب الفضول و يستبشر بحصول خلعة القبول وهو غاية المطلوب و المسؤول و نهاية المقصود و المامول و به يتم لباب المرام و الحمد لله على اتمام و ﷺ على سيد الانام محمد و اله و صحبه العز الكرام.

متن و بعده ترجمه و شرح ملا علي القاري

چي د سيد الانام محمد رسول اللهؐ د زيارت څخه فارغه سو نو د زيارتو څخه د مديني منورې د مسجد او د هغه مبارکو ځاهانو او مشاهدو د شهداؤ او قصد يې د تلو د وطن وکړي نو دا اديبات به په نظر کي نيسي اول خو ورته مستحب دا ده چي د مسجد نبوي ﷺ څخه رخصت په دوه رکعته لمانځه سره را واخلي لکه د مکي د حرم څخه چي يې په طواف د رخصت اخلي او داسي دعاوي به دلته کوي چي کومي خوند ورکوي غوره دا ده چي درود او دِعا پر هغه ځای د لمانځه چي محراب وو د نبي ﷺ هلته يې وکړي که اساني نه وه څونه ورته نژدې کېدای سي ممبر ته او يا زيارت ته د نبي ﷺ او قبر مقدس ته به ورسي زيارت به وکړي باره به دعا وکړي د خپلي خوښي د دين لو د دنيا معنا د دين د ترقۍ او زياتوب لو د دنيا دا چي د اخرت په لاره کي ورڅخه مصرف سي او سوال به د دغه عبادت د قبول او د رسولو وکړي خپل وطن ته سالم د بلياتو او افاتو څخه د دارينو او دا دعا به وکړي چي اې پروردګاره دا زما اخيري زيارت مه ګرځوې بيا مي ورته په بار بار راولې او زما دعا د دغه نبي ﷺ په وسيله او د مسجد نبوي په وسيله او د حرم په وسيله قبوله کړې او بيا راتګ راته اسانه کړې او بيا مي په دغه درشل کي ودروې او په رزق سره عفوه د ګناهو راته وکړې او پاکي مي د عيبو څخه وکړې په دنيا او آخرت کي په ټوله امورو کي او موږ خپل اهل ته سالم او ګټور ورسوې په امن کي رحمت

راباندي نازل کړې اې ډېر رحم کونکې ذاته یا الله

چي راوځي ډېر کوشش به وکړي چي اوښکي وړځخه تویه سي ځکه دا علامه د حج د قبول ده او د جلا کېدو په دوران کي به ډېر افسوز کونکي او غم کونکي وي پر جلاوالی د حضور شريف د جناب نبي ﷺ او د مسجد د باقي آثارو ډېر مناسب دا ده چي په دغه دوران کي د خپل وس او قدرت برابر خيرات وکړي ځکه دا حلق د سلامتيا ذی د هر آفت ځخه او د سفر په دوران کي به ډېر ذکرونه هغه کوي چي کوم په حديثو کي راغلي ذي هر وخت چي خپل وطن ته نژدې سو نو به داسي وايي:

آيبون تائبون لربنا حامدون.

اې خدايه د غفلت ځخه زما رجوع راولې او د ګناه ځخه مي رجوع راولې چي بيا راځخه و نسي همدا وجه ده چي د انبياؤ په شان کي لدب معنا ډېر رجوع کونکي الله ته راغلي دي او موږ د خپل رب حمد ويونکي يو او شکر ګزاره يو ځکه دا ټوله هرڅه د ده د طرفه ځخه پر موږ لوی فضل دی او د ده احسان دی او بل به حاجي دمخه خپل خندان ته يو کس د خبر دپاره لېږي د زيري دپاره چي هر وخت خپل وطن ته ورسېدی لولين به شروع د مسجد ځخه کوي معنا دوه رکعته لمونځ به پکښي وکړي لکه د نبي ﷺ دا طريقه وه که چيري د کراهت وخت نه وو او غوره دا ده چي وطن ته د ورځي راسي هرکله چي کور ته ور داخلېږي داسي دعا به کوي:

توبا توبا لربنا اوبا لا يغادر علينا حوبا.

معنا اې پروردګاره زما توبه ده خپل رب ته يم راجع او مه راباندي نازلوې ګناه بلکه ټولي راته وبخښې لکه شاعر چي وايي:

ان تغفر اللهم فاغفرجما وای عبد لک ما الما

معنا بخښنه راته وکړه د ټولو ګناهو کوم بنده سته ستا چي ګناهونه به نه يې ورځخه سوي ياالله.

باره به کور ته ورداخل سي نو به دوه رکعته لمونځ وکړي چي خاتمه يې هم پر عبادت سي او دا د کور تحيه هم ده او شکر به وکاږي پر تماملو د عبادت په سلامتيا سره او بل مستحب دا ده چي هرڅوک ورته ډېر محبوب وي اولين به د هغه سره ملاقات کوي د خپل اهل ځخه لکه نبي ﷺ به تر ټولو دمخه ملاقات د حضرت بي بي فاطمة الزهراؓ سره کوی باقي به د خپلو اخلاقو او او عاداتو ډېر کوشش دا کوي چي پر شريعت برابر سي او تر حج بعد به د خير په کارو کي ډېر کوشش کوي او دا علامه هم د حج د قبول ده لکه په عربي کي چي درته تېره سوه:

وقبول زیارت خیر مزور، ان یعود خیرا مما کان فی جمیع الامور.
د نبي ﷺ د زيارت د قبول علامه دا ده چي راوګرځي د خير كارو ته مخ وګرځوي په ټوله وختو كي څكه د خير څخه يې شروع كړې ده چي ختم يې هم پر نيكيو وسي اوس دلته دا اختلاف سته چي د حج د قبول علامه څه ده علامه نووي رحمه الله وايي چي علامه يې دا ده چي بيا ګناه و نه كړي او د حج سره يې خلط نه كړي څوک وايي چي تر حج بعد ګناه و نه كړي حسن بصري رحمه الله وايي چي د مقبول حج علامه دا ده چي د دنيا څخه يې شوق مات سي آخرت ته راجع سي كه چيري يې په خپل نفس كي غرور راوستی چي باره اوس نو زه د دنيا د باطلو كارو څخه په امان سوم ډېر احتياط احتياط به كوي چي پكښې واقع نه سي او ډېر به خوشحاله وي چي د دنيا څخه يې ځان بې رغبته كړی دی او دا هغه اخيري مطلوب او سوال او مقصود د انسان دی دلته درې كتابونه خلاص سوه يو د علامه سندي متن او بل د علامه ملا علي القاري او بل ارشاد الساري د متن خاتمه خو په عربي عبارت كي تېره سوه د ملا علي القاري خاتمه به اوس وليكم چي درود دی:
وصلی الله علی سیدنا و مولانا محمد واله و صحبه اجمعین امین و سلام علی المرسلین و الحمدلله رب العالمین، آمین.
اوس به د ارشاد الساري خاتمه وليكم:
و لنختم هذا التالیف فی ظهر یوم الاحد المبارک الواقع فی ستة و عشرین من رمضان سنة (۱۳۵۴ ق ه) بماورد من دعاء النبي ﷺ الماثور الشریف اللهم رب السموات السبع وما اظللن و رب الارضیین و ما اقللن و رب الشیاطین و ما اظللن کذلک جارا من شر خلقک کلهم ان یفرط علی احدمنهم او ان یبغی علی عز جارک و جل ثناؤک ولا اله غیرک و حسبنا الله و نعم الوکیل ولاحول ولا قوة الا بالله العلي العظیم و الحمدلله رب العالمین وصلی الله علی سیدنا محمد و علی اله و صحبه اجمعین آمین.
اوس خو د درې سره كتابو خاتمې پوره سوې په توفيق د الله نو زه مترجم خادم التفسير والحديث محمد جمعه مظهري نقشبندي قادري هم خپله خاتمه درته وړاندي كوم چي د خالق لايزال او كومک د ذوالجلال او په رحمت د رحمٰن او مهربان او په بركت د حديثو د بيان او په ملګري د بزرګانو طالبانو ترجمه د دغه كتابو په مباركه ورځ د جمعې د ماپښين دوې بجې ۲۵ دقيقې بالا د مباركي صفري د مياشتي پر اتلسمه ورځ او كال قمري سنه ۱۴۲۷ چي د هجري شمسي د حوت ۲۶ سنه ۱۳۸۴ كي ختم سوه.
والحمدلله رب العالمین وصلی الله علی اشرف الانبیاء و المرسلین و اله و صحبه اجمعین امین یا رب العالمین ومنی الجهد وعلیک التکلان و التوفیق والاحسان.

# كتاب ادعية الحج والعمرة

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمدلله وكفى و سلام على عباده الذين اصطفى اما بعد الخ.
تر حمد او ثنا او درود د نبي ﷺ بعد داسي وايم چي الله تعالى نعمتونه د انسان د شمار تر احاطې وتلي دي او دايره د پيراخي يې دونه ده چي تر شمار لاندې نه ده او هغه اعظم او كامل په نعمتو كي زيارت د حرمينو شريفينو دى نو مصنف علامه سندي رحمه الله وايي چي زه هم خداى جل جلاله په دغه زيارتو مشرف كړم نو ما يو كتاب د حج په مناسكو كي وليكى كوم چي ضرورت ورته ډېر زيات وو بيا تر دغه بعد داسي كسانو زما څخه غوښتنه وكړه چي د دوى څخه ما هيڅ روګرداني نه سوه كولاى او نه مي د دوى خبره پر ځمكه غورځولاى سواى د دوى غوښتنه دا وه چي د حج او د عمرې د دعاګانو په شان كي هم ته يوه مستقله او جامع او نافع رساله وليكه نو ما د دوى سوال قبول كړى نو مي په دغه ورقو كي راجمع كړه هغه څه چي په حج او يا عمره كي په كار كيږي د حاجي او هغه ماثوره او منقولي دعاګاني مي سره راجمع كړې چي ما په مناسكو كي د حج ليدلي وې او يا په نورو كتابو كي ډيري داسي دعاګاني ما رانقل كړي دي چي ډيري مجربه او ازموده سوي هم دي او بعضي ځايونه مي د علماؤ د مذاهبو لنډ خيال هم ساتلى دى اميد كوم چي د مسافرو حاجيانو دپاره نفع منده سي او ثواب د الله كريم څخه غوارم په هغه ورځ چي هيڅ نفع نه مال او نه اولاد سړي ته رسولاى سي بغير د زړه سالم څخه نو پر الله زما توكل دى مرسته ورڅخه غوارم ځكه خداى سړي ته كار آسانه كوي او معاونت هم ورسره كوي.

## مقدمه په دعا كي د استخارې

الامام الحافظ ابي علي عبدالله بن اسماعيل البخاري رحمه الله روايت كړي دي په سند سره د جابر بن عبدالله رضي الله عنه چي نبي ﷺ به موږ ته د استخارې دعا په غټ اهتمام سره راښوول په هر كار كي، لكه د قرآن يو سورت چي به يې راښووى او دا به يې راته ويل چي په هر كار كي مشوش سئ نو دوه ركعته لمونځ وكړه بې له فرض لمانځه تر لمانځه بعد دا دعا وكړه ياالله زه طلب د خير كوم په سبب ستا د علم او طلب د كولو يې كوم په سبب د دې چي ته قدرت راكړې او سوال كوم د لوى فضل ستا څخه ته قادر يې زما هيڅ قدرت نسته او ته عالم يې زما پوه نسته او ته په غيبو خبر يې اې خدايه كه دا كار زما دپاره د خير

وي په دين او دنيا کي او معاش او اخير کار کي او يا به داسي ووايي چي په تلواري کار کي زما او په ځنډ منده کار کي زما نو ته قدرت راکړه او راته اسانه يې کړه او برکت پکښي واچوه او که ستا علم وي چي دغه کار زما دپاره شر دی په دين يا دنيا کي په معاش يا اخيري کار کي او يا اوس يا په را روان وخت کي نو ما ورڅخه واړوي او دا کار زما د ذهنه څخه وغورځوي قدرت د خير راکړي او زما څخه راضي سې او خپل هر حاجت چي لري د عاجل ټکي سره به يې ذکر کوي دا حديث بخاري په صحيح کي ج۲ ص۷۰ کي را اخيستي دي سنن ترمذي ۴۰۸، ابو داود ۱۵۳۸، نسائي ج٦ ص۸۰، ابن ماجه ۱۳۸۳، سنن الکبرٰی ج۳ ص۵۷ ج۵ ص۲۴۹، کنز العمال ۲۱۵۳۰، مشکاة المصابيح ۱۳۲۳، الادب المفرد بخاري ص۷۰۳، الدر المنثور ج۵ ص۱۳۵، ابن کثير ج۳ ص۲۲ وغيره اوس به په عربي دغه د استخارې دعا وليکم ترجمه خو يې تېره سوه:

اللهم انی استخيرک بعلمک واستقدرک بقدرتک و اسالک من فضلک العظيم فانک تقدر ولا اقدر و تعلم ولا اعلم و انت علام الغيوب اللهم ان کنت تعلم ان هذا الامر خيرلی فی دينی و دنيای و معاشی و عاقبة امری او قال فی عاجل امری واجله فاقدره لی و يسره لی ثم بارک لی فيه و ان کنت تعلم ان هذا الامر شرلی فی دينی و دنيای و معاشی و عاقبة امری او قال عاجل امری و اجله فاصرفه عنی و اصرفنی عنه واقدرلی الخير حيث کان و ارضنی به.

د هذا الامر پر ځای به خپل حاجت ذکر کړي ترجمه د دعا تېره سوې ده که د حج دپاره څوک استخاره کوي نو به يې د وخت دپاره کوي چي کله روان سم کله کار سم کړم او د حج د کولو دپاره دي استخاره نه کوي چي حج وکړم يا يې نه وکړم بلکې داسي به وايي چي آيا زما دپاره په دغه قافله يا موټر يا طياره يا دغه ورځ کي د روانېدو خير سته نو قدرت راکړه که خير په دغه ورځ يا قافله کي نه وي ورڅخه وا ميړوي.

(روينا) موږ د الحاکم څخه په صحيح اسناد سره روايت کړي دي چي نبي عليه السلام فرمايلي دي چي د انسان د نيک بختۍ علامه يې دا ده چي د الله تعالی څخه مشوره په استخاره کي وغواړي او بدبختۍ د بني آدم استخاره نه کول دي، مسند احمد ج۱ ص۱٦۸، المستدرک ج۱ ص۵۱۸، مجمع الزوائد ج۲ ص۲۷۹.

مناسب دا ده چي په اول رکعت کي تر الحمدلله بعد قل يايها الکافرون او په دويم کي رکعت کي قل هو الله احد وايي او دا لمونځ به په مکروه وخت کي نه کوي او مستحب دا ده چي په اول کي حمد او درود ووايي او درې يا اووه کرته درود په تکرار سره ووايي او تر هر لمانځه د استخارې به دغه د استخارې دعا هم درې واره مکرره وايي نو د قبول درجې ته

نژدې کيږي په اخير کې به داسې هم ووايي:
اللهم خرلی واخترلی.

دا به درې واره مکرره وايي علامه سندي رحمه الله وايي ماته ښوونه او وصيت به الشيخ العارف ولي الله تعالى مولانا علي المتقي افاض الله علينا من بركاته عام طور د استخارې وصيت راته کوی او ده د کتاب الاوراق څخه د الشيخ شهاب الدين السهرودي رحمه الله څخه نقل کړي دي چې هره ورځ د اشراق په وخت کې دوه رکعته لمونځ او درود او د استخارې دعا چې په اول او اخير کې يې درود وي وايه نو دعا خو د استخارې دېره سوه ليکن ده ما ته بله دعا هم ښوولې ده چې صرف عربي عبارت يې زه نقل کوم ومن الله التوفيق:

اللهم انی استخیرک بعلمک و استقدرک بقدرتک و اسالک من فضلک العظیم فانک تقدر ولا اقدر و تعلم ولا اعلم انت علام الغیوب اللهم انی لا املک لنفسی ضرا ولا نفعا ولا موتا ولا حیاة و لا نشورا ولا استطیع ان اخذ الا ما اعطتنی ولا ان اتقی الا ما وقیتنی اللهم وفقنی لما تحب و ترضی من القول و العمل فی یسر و عافیة اللهم خرلی و اخترلی ولا تکلنی الی اختیاری اللهم اجعل الخیرة فی کل قول وعمل اریده فی هذا الیوم و اللیلة و صلی الله علی سیدنا محمد و علی اله وصحبه وسلم.

علامه سندي رحمه الله وايي چې کله يې دغه دعا وما ته ښوولې ده بيا ما بې له خيره څخه بل شی نه دی ليدلی او هيڅکله مي بد نه دي ليدلي او الله رب العالمين لره دي حمد وي قاضي القضاة ابي البقاء بن الضياء رحمه الله د خپل شيخ صالح ابو الحسن علي بن يعقوب اليماني څخه روايت کوي چې ما منقولې دعاګانې د بعضې صالحينو څخه اورېدلې دي چې پر چا يو کار مشکل سي معنا د خير خوا نه ورته معلومېږي نو دي د جمعې شپه وګوري چې خوب يې راغلی ولاړ دې سي اودس دې وکړي او مخامخ قبلې ته دي ودرېږي دوه رکعته لمونځ دي وکړي په اول کې تر الحمدلله بعد قل يايها الکافرون او په دويم کې قل هو الله احد ووايي چې د لمانځه څخه فارغه سي نو به پر راسته اړخ بيده سي او لاسونه به اول وار پورته کړي دا دعا به وکړي:

اللهم یا کائنا قبل الکون انت کنت ولاکون نامت العیون و زهرت النجوم یاحی یاقیوم اللهم ان کان لی فی هذا الامر خیر فارنی فی لیلتی هذه بیاضا بخضرة و ان لم یکن فی هذا الامر خیر فارنی فی لیلتی سوادا بحمرة وما کان الله لیعجزه من شئ فی السموات ولا فی الارض انه کان علیما قدیرا.

علامه سندي رحمه الله وايي الله رب العالمين يو د دغه کار څخه ورښيي که يو د خير

دپاره متعين وو او که دواړه سره برابر وه بيا هيڅ شی نه ويني.

## فصل د اقرباوُ څخه رخصت اخيستل

هر کله چي اراده وکړي چي زه روانېږم د حج په سفر سره نو مستحب طريقه دا ده چي په کور کي دوه رکعته لمونځ وکړي تر الحمدلله بعد په اول رکعت کي قل ياايها الکافرون او په دويم کي قل هوالله احد ووايي طبراني د نبي ﷺ حديث نقل کړی دی چي مبارک ﷺ فرمايلي دي چي تر شا مسافر بل هيڅ غوره شی نه دی پرې ايښی ماسوا د دوه رکعته لمانځه څخه چي خپل په کور کي يې ادا کړي، اتحاف السادة المتقين ج۳ ص۴۶۵، الاذکار نووي ص۱۹۴.

امام نووي رحمه الله په ايضاح کي ويلي دي چي تر سلام بعد دي آيت الکرسي او لا يلاف قريش سورت ووايي او د خدايه څخه دي معاونت او توفيق وغواړي او دا دعا دي وکړي:

اللهم انت الصاحب في السفر و الخليفة في الاهل و المال اللهم انا نسالک ان تطوی لنا الارض و تهون علينا السفر وارزقنا في سفرنا هذا السلامة في العقل و الدين والمال والولد و تبلغنا حج بيتک الحرام و زيارت نبيک عليه افضل الصلاة و السلام اللهم اني لم اخرج الشرا ولا رياء و لا سمعة بل خرجت اتقاء سخطک و ابتغاء مرضاتک و قضاء لفرضک و اتباعا لسنة نبيک محمد ﷺ و شوقا الی لقائک اللهم فتقبل ذلک مني وصل علی اشرف عبادک سيدنا محمد واله وصحبه الطيبين الطاهرين اجمعين.

ياالله ته زما ملګری يې په سفر کي او زما د طرفه خليفه په اهل او مال زما کي سې اې خدايه زه سوال کوم چي د سفر مځکه راته لنډه که او سفر مي اسانه که او په رزق را کړې په دغه سفر کي سلامتيا په عقل او دين او مال او اولاد کي او موږ ورسوې حج ته د خپلي بيتي چي حرم دی او ستا د نبي ﷺ زيارت مو نصيب کړې اې الله زه نه وځم د شر او ريا دپاره او نه د چا د اورېدو دپاره زه ځم ستا د قهر د دفعي او ستا د رضا دپاره او ستا د فرضي د ادا دپاره ځم او د رسول الله ﷺ د اتباع دپاره ځم او شوق ستا د ملاقات لرم يا الله راڅخه قبول يې کړې او رحمت نازل کړه پر اشرف ترين د بندګانو ستا چي محمد ﷺ او آل او اصحاب دي پاک او پر ټولو دي وي سلامونه.

چي د سپارۍ شي ته ورخيژي بيا به داسي دعا کوي:

اللهم اليک توجهت وبک اعتصمت اللهم اکفني ما اهمني وما لا اهتم به اللهم زودني التقوی واغفرلي ذنبي.

ياالله و تا ته زموږ مخ دی او په تا پوري زموږ منګولي ښخي دي ياالله زموږ کفايت

د مهمو كارو وكړې او د هغه كارو چې مهم نه دي ياالله زما تقوا زياته كړې او زما گناهونه وبخښې.

ابن جماعة زياته كړي ده چې نبي ﷺ د سپرېدو په وخت دغه ويل:
اللهم بک انتشرت و اليک توجهت وبک اعتصمت انت ثقتی و رجائی.
ياالله په تا پورې تړلی زموږ وتل دی او تا ته مو مخ دی او په تا پورې مو منگولې ښخې كړې دي ته ساتونكی او د اميد خاوند يې چې درته كېږي.
د كوره څخه چې راووتی بيا به دا دعا كوي:
بسم الله امنت بالله توكلت على الله لاحول ولا قوة الا بالله التكلان على الله اللهم انی اعوذبک من ان اضل او اضل او ازل او ازل او اظلم او اظلم او اجهل او يجهل علی. اخرجه ابن السنی فی عمل اليوم و الليلة ص۸۲، الاذکار النووی ص۳۲. تاريخ بغداد ج۹ ص۱۴۶، التوصل ص۹۹.
ژباړه: شروع كوم په نوم د الله او پر الله زما توكل دی د گناه څخه گرځېدو نسته بې له الله او پر طاعت او نيكۍ باندې طاقت نسته بې له الله پر الله زموږ توكل دی ياالله زه پناه غواړم په تا سره د دې څخه چې زه گمراه نه سم چې گمراه نه سم چې رسوا نه سم او وه نه ښويږم او ظلم و نه كړم او ظلم و نه كړم او په جهل كې پاته نه سم او په جهل كې پاته نه سم.
او داسې دعا د هر مسافر دپاره مستحب ده چې د كوره څخه وځي او په دې كې ډېر حديثونه راجمع سوي دي د نبي ﷺ څخه.

## پر مستحب طريقه د كوره وتل

مستحب دا ده چې د خپل اهل څخه رخصت واخلي د اقرباؤ څخه د خپلو همجوارو څخه د خپلو اشنايانو اندېوالانو څخه او ځان حلال كړي او د دوی څخه دعا وغواړي د هر يوه څخه په تنها تنها وختو كې ځكه ثوک خبر دی چې په دوی كې به د چا دعا قبوله سي ځكه كوم كس چې گناه نه وي كړې او دعا وكړي الله تعالى يې قبلوي ورڅخه او چې رخصت اخلي دواړه به يو او بل ته دا دعا كوي:
استودع الله دينک و امانتک و خواتم عملک و غفر ذنبک و يسرلک الخير حيثما كنت زودک الله التقوی وجنبک الردی.
هركله چې دا دعا وكړي دواړه نو دوی لايق د دې دي چې حفاظت يې الله وكړي د امانت او سالم به خپل كور ته هم راسي په لوی احسان سره د الله تعالى باره به خيرات وكړي د وتلو پر مهال دننه او دباندې پر مسكينانو باندې كرماني وايي هغه كمه مرتبه د خيرات يې اووه روپۍ دي چې خيرات كوي يې ځكه خيرات سبب د سلامتيا دی او ما وليدل په

کتاب الات السفر و الغرابة للحافظ ابي اسماعيل بن علي المتني التميمي رحمه الله چي مناسب مسافر لره دا ده چي خپله سلامتیا د خدایه څخه را نیسي په دونه خیرات سره چي د ده په طاقت کي وي دا د خیرات روپۍ به په لاس کي ونیسي نو به دا دعا وکړي:

اللهم انی اشتریت سلامتی و سلامة من معی و یسمهم و سلامة ما معی و یعد ده شیئا منک یا مولای بهذه الصدقة فبعنیه و سلمنی.

ژباړه: یاالله ما خپل ځان او سلامتیا د ځان او د هغه سامان چي راسره دي ستا څخه رانیول په بدل کي د دغه خیرات نو ته یې راباندي خرڅ کړه اوسالم یې راته وسپاره په دغه وخت کي به نوم خپل یا د بل او شمار د هغه سامان چي ورسره وي نو مونه به یې هم په خوله سره یاد کړي باره به خیرات فقیر ته ورکړي هرڅوک چي اول په مخه ورغلی بیا به دا دعا وکړي:

خرجت بحول الله و قوته بغیر منی ولا قوة الا بالله اللهم انی اسالک ببرکة یومی هذا و برکة اهله.

زه ووتلم په طاقت ورکولو د خدای او بې له خدایه بل څوک طاقت نه سي ورکولای اې خدایه زه سوال کوم په برکت د دغه ورځي او اهله د دي سره.

## فصل د سپرتیا دعا

اول به کوشش کوي چي د ځان دپاره یو ښه قوي حیوان د سپرتیا پیدا کړي او د ده تر طاقت به یې زیات نه باروي او نه به یې وړی یا تږی کوي چي یو داسي ځای ته ورسیږي چي واښه یې مباح وي یو ګړی به یې هوسا کوي او مروي به یې تقوا داره خلق پر حیوان سر بېره خوب نه کوي ګای ګای ورڅخه کښته کیږي او په نن عصر کي خو موټران یا طیارې او جهازونه دي لهذا د سپرېدو په وخت کي به دا دعا کوي:

الحمدلله الذی هدانا للاسلام و من علینا بمحمد علیه افضل الصلاة والسلام سبحان الذی سخرلنا هذا و ما کنا له مقرنین و انا الی ربنا لمقلبون اللهم انا نعوذ بک من وعثاء السفر و کابة المنظر وسوء المنقلب فی الاهل و المال و الولد اللهم اطوی لنا الارض و سیرنا فیها بطاعتک اللهم انی اعوذبک من غلبة الدین و قهر الرجال الحمدلله الحمدلله الله اکبر الله اکبر سبحانک انی ظلمت نفسی فاغفرلی انه لایغفر الذنوب الا انت.

ژباړه: حمد او ثنا دي هغه ذات لره وي چي د اسلام هدایت یې راکړی دی او احسان یې راباندي کړی دی په محمد ﷺ سره پر موږ باندي او پاکي ده د هر قسمه عیبه څخه الله لره چي داسي شی یې موږ ته تابع ګرځولی دی او موږ دونه طاقت د تابع داری نه درلودی او زموږ د ټولو ورتګ الله لره دی یاالله موږ پناه غواړو ستا څخه د مشکلاتو او سختۍ څخه د

سفر او د بد منظر او د بده ځایه څخه د ګرځېدو او د بد ورتګ څخه د اهل او مال او اولاد خپل یاالله موږ ته مخکه لنډه کړه او زموږ تګ د عبادت کړه یاالله زه پناه غواړم د غلبې څخه د پور او د قهر څخه د خلقو الحمدلله الله اکبر به دوه او درې واره وایي او سبحانک الخ به وایي چې پاکي ده تا لره یاالله ما د ځانه سره ظلم کړی دی بخښنه راته وکړې ځکه بل څوک داسي ګناهونه نه سي بخښلای باره به سپور سي د خدای جل جلاله ذکر به کوي په هر کال کي یو ګړی به غفلت نه کوي د ده د ذکره څخه د الله ځکه الله هم مجلسه دی د هغه چا چي ذکر یې کوي چې لوړي ته خېژي الله اکبر به وایي او چې کښته کېږي سبحان الله به وایي.

## فصل د کښته کېدو دعاوي

حاجي چي کله د سپاري د وسایل څخه راکښته سو نو به دا دعا وکړي:

بسم الله توکلت علی الله اعوذ بکلمات الله التامات کلها من شرما خلق و ذرأ و برأ و سلام علی نوح فی العالمین اللهم اعطنا خیر هذا المنزل وخیر ما فیه و اکفنا شر ما فیه رب انزلني منزلا مبارکا و انت خیر المنزلین.

شروع کوم په نامه د الله تعالی او توکل کوم پر الله تعالی پناه غواړم په سبب د پوره کلمو ټولو سره د شره څخه د هغه چي الله پیدا کړی دی او ساتلي یې دی او سلام دې وي پر نوح عليه السلام په مخلوقاتو کي یاالله راکړه موږ ته خیر د دغه منزل او هغه خېر چې پکښې دی او بند کړه زموږ څخه شر د دغه منزل او هغه شر که پکښې وي لو موږ په برکت ناکه منزل کي کښته کړې او ته سړي ته د خیر منزل ورکوي.

## ښار ته یا کلي ته د ورتلو دعا

اللهم رب السموات السبع وما اظللن و رب الارین السبع وما اقللن و رب الشیاطین و ما اظللن و رب الاریاح و ما ذرین فانا نسالک خیر هذه القریة و خیر اهلها و خیر ما جمعت فیها و نعوذ بک من شرها و شر اهلها و شر ما جمعت فیها اللهم لرزقنا جناها و اعذنا و باها و حبنا الی اهلها و حبب صالحی اهلها الینا.

یا الله ته رب د اوو آسمانو او د هغه څه یې چې سوری کوي او رب د اوو مځکو یې او د هغه څه چي اقلیمونه یې جوړ سوي دي او رب د شیطانانو او هغه چا یې چې شیطانانو ګمراه کړي دي او رب د بادو یې او د هغه شیانو چي بادو پورته کړي دي موږ سوال کوؤ ستا څخه د خیر د دغه قریې او خیر د دغه قریې د اهل او خاوندانو څخه د دغه قریې او غواړو هغه خیر چي جمع سوی دی په دغه قریه کي او پناه غواړو د شره څخه د دغه قریې او خاوندانو د دغه قریې او د شر څخه د دغه قریې چي پکښې جمع سوی دی یاالله پټ اسرار یې را نصیب کړې او د وبا څخه مو وساتې او خاوندانو ته یې موږ محبوب وګرځوې او د

دغه قريې صالح کسان موږ ته محبوب وګرځوي.

## د شپې د تياري دعا

يا ارض ربي و ربک الله اعوذبالله من شرک و شرما فيک و شرما خلق فيک و شر ما دب عليک و اعوذبک من شر اسد و اسود و من الحية و العقرب و من ساکن البلد و من والد وما ولد.

اې زما د رب مځکې رب ستا الله دی پناه غواړم د شره څخه ستا او د شره څخه ستا د باطن او د شر څخه د هغه شيانو چې په تا کې پيدا سوي دي او پناه غواړم د هغه حيواناتو څخه چې پر تا روان دي او پناه غواړم د شر څخه د زمري او تورو شيانو او د مار او لړم څخه او د هغه څه څخه چې په دغه ښار کې ګزاره کوي که يې پلار وي او که يې زوی وي.

## د پېشلمي د وخت دعا

سم سامع بحمدالله و حسن بلاوه علينا ربنا صاحبنا وافضل علينا مائذا بالله من النار.

اوري اورېدونکي شروع کوم په حمد د الله تعالی او ښه امتحان دی چې په موږ يې کړی دی او رب زموږ ملګری دی او فضل يې پر موږ دی او ساتونکي زموږ دی د اوره څخه.

فايده: په اخير د شپې کي چي راکښېني دا دعا به درې واره په تکرار سره ووايي.

د سفر مستحب روانېدل د شپې دی

مستحب دا ده چي سفر کوي نو به د شپې په اخيره حصه کي روان سي ځکه د حضرت انس ﷺ بن مالک ﷺ په روايت کي نبي ﷺ فرمايلي دي چي لازم پر تاسي د شپې د اخير سفر دی ځکه شپه سري ته مځکه را لنډوي، مجمع الزوائد ج۳ ص۲۱۳، ورواه ابو داود و الحاکم و صححه.

البيهقي وايي چي په اول کي د شپې سفر مکروه دی ځکه په حديث کي د حضرت جابر ﷺ کي نبي ﷺ فرمايلي دي چي لمر ولوېدی تاسي خپل بوده ګان او کوچنيان مه ايله کوئ ترڅو چي د شپې تياره ختميږي، رواه مسلم السنن الکبرٰ ج۵ ص۲۵۶، شرح السنة ج۱۱ ص۱۹ ص۳۹۳، مشکاة المصابيح ۴۲۹۷.

هرکله چي اراده د روانېدو وکړي د کوره څخه نو به دوه رکعته لمونځ وکړي چي دغه کور بيا په ورځ د قيامت پر ده شاهدي وايي او په روايت د حضرت انس بن مالک ﷺ کي فرمايي چي نبي ﷺ به يو ځای هم داسي نه وو چي کښېنته به سو نو به د روانېدو په وخت کي ده مبارک دوه رکعته لمونځ کوی، رواه الحاکم و صححه اخرجه ابن خزيمة في

صحیحه ۲۵۶۸، تغلیق التعلیق عسقلاني ص۴۴۰، کنزالعمال ۱۸۱۵۸.

خو مناسب دا ده چي کښته سي هم دوه رکعته او که روانیږي هم دوه رکعته لمونځ وګزاري چي شروع او ختم یې دواړه پر عبادت سي.

## فصل د منقولي دعاګانو څخه په خاص وخت او حال کي دعاګاني

اللهم انی اسلمت نفسی الیک ووجهت وجهی الیک والجات ظهری الیک و بک یا رب اعتصمت وعلیک توکلت ثقة برحمتک لا بعملی یا ظهر اللاجئین و یا غیاث المستغیثین و یا رجاء المذنبین اصرف عنی بااللهی سوء من لا یخافک و اکفنی شره و غوایته و حیله و مکره و غائلته و خدیعته و سحره و لا تسلط احدا منهم یارب علی نفسی واهلی و مالی وولدی و اصرف عنی یاالهی و عن جمیع المسلمین باسهم و اجعل بینی و بینهم سدا و ردما و جبلا محیطا من حدید علیهم و درهم عنی بکما و عمیا و صما لا یصرون و لا یبطشون ولا ینطقون واجعلنی یارب فی حرزک و کنفک و حیاتک و قوتک یا ارحم الراحمین واحفظنی یارب من شر ابلیس و جنوده و شر الانس و الغول و من صاحب مکارموا رب و احفظنی یا رب من بین یدی و من خلفی و عن یمینی و عن شمالی و من فوقی و من تحتی حتی تردنی الی اهلی مغفورا و اجعل عملی مشکورا و سعیی متقبلا ولا تتوفنی حتی تبلغنی الی اهلی برحمتک یا ارحم الراحمین. بحر العمیق.

یا الله ما خپل نفس درته تسلیم کړی دی او مخ مي ستا پر لور دی او زما د ملا پناه و تا ته ده او په تا پوري زما منګولي ښخي دي او پر تا مي توکل دی مضبوطه په رحمت سره ستا نه زما په عمل باندي یا کومک ورکونکي ذاته و امید کونکو خلقو لره او فریاد رسونکي و فریاد کونکو ته او ځای د امید یې ګناه ګارانو ته راڅخه واړوې یاالله زما بدي د هغه چا چي ستا څخه بېره نه لري او د ده د شره څخه نجات راکړې د دغه شیانو د سرکښئ او چم او مکر څخه او د دوی د سحره څخه او پر موږ یې مه مسلطه کوې یو لا یا ربه زما ساتندویه سه د اهل او مال او اولاد زما او واړوې یاالله زما او د ټوله مسلمانانو څخه د دوی عذاب وګرځوې زما او د دوی تر مابین غر او پرده راګرځېدونکی د اوسپني او دوی راڅخه کانه او ړانده کړې چي نه یې لیدل او نه یې خبري کولای سي یاالله ما پخپل حفظ کي وساته او په خپله احاطه او قوت کي مي وساتې اې رحم کونکې ذاته ومي ساتې یا ربه د شره څخه د ابلیس او د ده د لښکر او د شره څخه د انسانانو او بیابانونو او د خاونده څخه د مکر کونکي او ما وساتې یا ربه مخ او شا راسته او چپه سربېره او لاندي ترڅو چي زه خپل اهل ته بخښل سوی رسېږم وګرځوه عمل زما د شکر قابل او کوشش مي راڅخه قبول کړې تر هغه

وخته ما مه وفات کوي ترڅو چي خپل اهل ته رسيدلی نه يم اي رحم کونکي ذاته.

فايده: مناسب دا ده چي د الشيخ ايوب السختياني دا دعا هر سهار او مابنام وايي بعضي علماؤ فرمايلي دي چي دا دعا مجربه ده دپاره د دفعي د غله او دپاره د حفاظت د ځان او د مال.

## د ظالم ځخه د بيري دعا

حضرت ابن عباس ﷺ فرمايي چي باچا سړي ته ورځي او په خوف کي وي چي ظلم راباندي و نه کړي نو به الله اکبر الله اکبر الله اکبر، الله تعالی غالبه دی تر هغه چا چي زه يي بيره ورځخه لرم او پناه د الله ځخه غواړم دعا دا ده:

اعوذ بالله الذی الا اله الا هو الممسک للسمٰوٰت السبع ان تقع علی الارض الا باذنه من شر عبدک ذلک و جنوده و اتباعه و اشياعه من الجن والانس اللهم کن لی جارا من شرهم جل ثناؤک و عزجارک و تبارک اسمک ولا اله غيرک.

ژباړه: پناه غواړم د هغه الله ځخه چي آسمانونه يي اووه سره ټينګ کړي دي د دي ځخه چي پر ځمکه واقع نه سي مګر د ده په اجازه سره د هر شره ځخه د بنده د ده او د لښکر د ده او د تابعدارانو د ده او پيرانانو او انسانانو ځخه د ده ياالله ته زما ساتونکی سي د هر شر ځخه د دوی لويه ثنا ده ستا او غالبه ده همجواره ستا او ستا نوم لوی دی او لايق د عبادت بل څوک ماسوا ستا ځخه نسته. مجمع الزوائد ج۱۰ ص۱۳۷.

دري واره به دا دعا مکرره کوي د يحيٰی بن سعيد ځخه روايت دی چي نبي العَلَیْہِ يو شپه روان وو چي سرکښه شيطانان يي وليدل چي د اور شغله يي طلب کول هر وار چي به نبي العَلَیْہِ ورته وکتل نو جبرايل العَلَیْہِ ورته وويل زه تا ته داسي کلمات وښيم چي ته يي ووايه د ده اور مړ کړي او دی هم مړ کړي نو نبي العَلَیْہِ ورته وويل ضرور يي راوښووه نو حضرت جبرايل العَلَیْہِ ورته وويل چي دغه کلمي ووايه:

اعوذ بوجه الله الکريم و بکلمات الله التامات التی لا يجاوز هن بر ولا فاجر من شر ما ينزل من السماء و شر ما يعرج فيها و شر ما ذراء فی الارض و شر ما يخرج منها و من فتن الليل و النهار و من طوارق الليل و النهار الا طارقا يطرق بخير يا رحمن، رواه الامام مالک فی الموطاء هکذا و رواه النسائی مرفوعا من حديث عبدالله بن مسعود ﷺ اخرجه البخاري في صحيحه ج٦ ص٧١ ج٩ ص١٢٥، احمدحنبل فی المسند ج٣ ص٣٠٩، مجمع الزوائد ج١٠ ص١٤٣، بغوی ج٢ ص١٤٣، طبری تفسير ج٧ ص١٤٣، ابن کثير تفسير ج٣ ص١٤٨ ص٢٦٤، فتح الباري ج١٣ ص٢٩٦، تهذيب تاريخ دمشق ج١ ص٤٠٤. الدر المنثور ج٣ ص١٧ ص٤١ ص١٠٧ وغيره کتابه.

## دعا د غم يا مهم کار يا د سختئ په وخت کي

د حضرت ابن عباس ﷺ روايت دی چي نبي ﷺ به د ډيري سختئ په وخت کي دا دعا کوله:

لا اله الا الله العظيم الحليم لا اله الا الله رب العرش العظيم لا اله الا الله رب السموات و الارض و رب العرش الکريم. رواه البخاري و مسلم اخرجه الخباري فی صحيحه ج۸ ص۹۳ ج۹ ص۱۵۴ ص۱۵۵. مسلم بن الحجاج فی صحيحه باب الذکر و الدعاء ب۲۱ رقم ۸۳، احمدبن حنبل فی المسند ج۱ ص۲۲۸ ص۲۵۹ ص۲۸۰ ص۲۸۴ ص۳۳۹.

لايق د عبادت بې له الله نشته چي عظيم او حليم ذات دی لايق د عبادت بې له الله نشته رب د عرش عظيم دی لايق د عبادت بې له الله بل نشته رب د آسمانو او مځکو دی او رب د عرش کريم دی.

که يو داسي کار واقع کېدی چي خطره د ډيري پکښې وه او يا يې انديښنه کېدله نو داسي دعا به کوي:

حسبناالله و نعم الوکيل علی الله توکلنا. رواه الترمذی اخرجه احمد بن حنبل فی المسند ج۱ ص۳۲٦، معجم الکبير ج۱۲ ص۱۲۸. الحميدی فی المسند ص۷۵۴. الدر المنثور ج۲ ص۱۰۱ ج۵ ص۳۳۸، دلائل النبوة ج۳ ص۳۱۷. البداية والنهاية ج۴ ص۵۰، زاد المسير ج۵ ص۳۳٦، تفسير ابن ج۵ ص۱۹٦ تفسير ج۴ ص۱۱۹. تاريخ بغداد ج۱۱ ص۷٦.

ژباړه: زموږ کافي الله دی او زموږ کار سازه دی پر الله تعالی زموږ توکل دی.

که يو کار پر سړي سخت سي تر شروع:

اللهم لا سهل الا ما جعلته سهلا و انت تجعل الحزن اذا شئت سهلا، رواه ابن حبان کشف الخفاء ج۱ ص۲۱٦، علل الحديث ۲۰۷۴، الاذکار النووية ص۱۱٦، کنزالعمال ۳۷۵۵، موارد الظمان ۲۴۲۷، جمع الجوامع ۹۷۰۰. تاريخ اصبهان ج۲ ص۳۰۵.

ژباړه: ياالله هيڅ اساني بې له تا بل څوک نه سي راوستلای که ته وغواړې غم لو حزن په اساني سره بدلولای سې.

که سړی و نړې نو داسي حمد به وايي

الحمدلله رب العالمين علی کل حال. فتح الباري ج۱۰ ص۶۰۰.

حمد او ثنا دي وي الله لره چي رب د ټوله مخلوقاتو دی پر هر حال روايت سوی دی چي نبي ﷺ وفرمايل چا چي الحمدلله وويل په وخت د هر وار نړلو کي نو د غابس درد لو

د غوږ درد به و نهويني، رواه ابن ابي شيبة كنز العمال ۴۶۰۱۱.
او كوم كس چې د ده نږل او الحمدلله واورېدل هغه به داسي ورته وايي:
يهديكم الله و يصلح بالكم. رواه البخاري.
ژباړه: خدای دې هدايت تاسې ته وکړي او اصلاح دې ستاسې د زړو وکړي.
او په بل روايت كې وايي چې داسې دې ووايي:
يرحمناالله و اياكم و يغفرلنا ولكم، رواه مالك في الموطا.

## د قرضداره دعا

كه څوک قرضداره وي پوررونه وربانديي وي دا دعا دې كوي:
اللهم اكفنى بحلالک عن حرامک و اغننى بفضلک عمن سواک اللهم فارج اللهم كاشف الغم مجيب دعوة المضرين رحمن الدنيا و الاخرة و رحيمهما انت ترحمنى فارحمنى رحمة تغننى بها عن رحمة من سواک، رواه الترمذی فی السنن ۳۵۶۳، المستدرک ج۱ ص۵۳۸، ترغيب و ترهيب ج۲ ص۶۱۳، مشكاة المصابيح ۲۴۴۹، اتحاف السادة المتقين ج۳ ص۲۷۱، الكلم الطيب ص۱۴۳، الاذكار النوويه ص۱۱۷، كنزالعمال ۵۵۱۸-۱۵۵۶۳.

ژباړه: يا الله وما ته كفايت د حلال رزق وكړې د حرامو څخه او ما مستغني كړې د بل چا څخه ياالله ته ليري كونكى د مشكلاتو يې او لځونكى د غمو يې قبلونكى د دعا يې د محتاجه كسانو رحمن د دنيا او د آخرت يې او خاص رحم هم ته كوې په دواړه جهانه كې كه پر ما رحم كوې نو رحم راباندې وكړه داسې رحمت چې د بل چا د رحمت څخه بې پروا سم.

## د كاميابۍ او فلاح دعا

هغه دعاګانې چې د نبي څخه په صحت رسېدلي را نقل سوي دي دا دعاګانې مطلق دي په يو وخت يا مكان پوري تخصيص نه لري الحافظ ابن الجزري رحمه الله په خپل كتاب عدة الحصن الحصين كې د كلامه څخه د سيدالمرسلين ﷺ داسې ذكر كړي دي نو زما ګرانه ورور كه طلب د نجات او د فلاح غواړې نو دغه دعاګانې همېشه كوه انشاءالله تعالى د كاميابۍ سره به مخامخ سې او هر مشكل چې لري هغه په دغه دعاګانو كې حل كيږي:
اللهم انى اعوذبک من الكسل و الهرم و المغرم و الماثم اللهم انى اعوذبک من عذاب النار و فتنة القبر و عذاب القبر و شرفتنة المسيح الدجال اللهم اغسل خطاياى بماء الثلج و البرد و نق قلبى من الخطايا كما ينقى الثوب الابيض من الدنس و باعد بينى و بين خطاياى كما باعدت بين المشرق و المغرب اللهم انى اعوذبک من العجز و الكسل و الجبن و الهرم و البخل واعوذبک من عذاب القبر و اعوذبک من العجز والكسل و الجبن والهرم و

البخل واعوذبک من فتنة المحیا و الممات و اعوذبک من القسوة والغفلة و العیلة و الذلة و المسکنة واعوذبک من الکفر و الفقر و الفسوق و الشقاق و السمعة والریاء و اعوذبک من الصمم والبکم و الجنون و الجذام وسیء الاخلاق اللهم آت نفسی تقواها و زکها انت خیر من زکاها و انت ولیها و مولاها اللهم انی اعوذبک من علم لا ینفع ومن قلب لا یخشع و من نفس لا تشبع ومن دعوة لا تستجاب اللهم انی اعوذبک من شر ما علمت و من شر ما لم اعلم اللهم انی اعوذبک من الهدم و التردی و اعوذبک من الغرق و الحرق و اعوذبک من ان یتخبطنی الشیطان عند الموت و اعوذبک من ان موت فی سبیلک مدبرا و اعوذبک من ان اموت زیغا اللهم انی اعوذبک من منکرات الاخلاق و الاعمال والاهواء و الا دواء اللهم انی اعوذبک من غلبة الدین و غلبة العدو و شماتة الاعداء اللهم اغفرلی ذنوبی و خطائ و عمدی اللهم انی اعوذبک من البرص و الجنون و سیئ الاسقام اللهم اغفرلی جدی و هزلی و خطای و عمدی و کل ذلک عندی اللهم اصلح لی دینی الذی هو عصمة امری واصلح لی دنیای التی فیها معاشی واصلح لی اخرتی التی الیها معادی واجعل الحیاة زیادة لی فی کل خیر واجعل الموت راحة لی من کل شر رب اعنی ولا تعن علی وانصرنی ولا تنصر علی وامکرلی ولا تمکر لی واهدینی و یسرلی الهدی وانصرنی علی من بغی علی رب اجعلنی لک ذکارا لک شکارا لک رهابا لک مطواعا لک مخبتا الیک و اها منیبا رب تقبل توبتی واغسل حوبتی واجب و ثبت حجتی وسدد لسانی واهد قلبی واسلل سخیمة صدری اللهم انی اسٗالک الثبات فی الامور و العزیمة علی الرشد و اسالک شکر نعمتک و حسن عبادتک و اسالک لسانا صادقا وقلبا سلیما و اعوذبک من شر ما تعلم و اسلک من خیر ما تعلم و استغفرک لما تعلم انک انت علام الغیوب.

اللهم الهمنی رشدی و اعذنی من شر نفسی اللهم انی اسالک فعل الخیرات و ترک المنکرات وحب المساکین و ان تغفرلی و ترحمنی و اذا اردت بقوم فتنة فتوفنی غیر مفتون و اسالک حبک و حب من یحبک و حب عمل یقربنی الی حبک اللهم متعنی بسمعی و بصری و اجعلهما الوارث منی و انصرنی علی من ظلمنی و خذ منه بثاری یا من لا تراه العیون ولا تخالطه الظنون و لا یصفه الواصفون ولا تغیره الحوادث ولا یخشی الدوائر و یعلم مثا قیل الجبال ومکاییل البحار و عدد قطر الامکار و عدد ورق الاشجار و عدد ما اظلم علیه اللیل و اشرق علیه النهار و لا یواری منه اسماء سماء ولا ارض ارضا و لا بحر ما فی قعره ولاجبل ما فی وعده اجعل خیر عمری اخره و خیر عملی خواتمه واجعل ایامی یوم القاک فیه اللهم انی اسالک عیشة نقیة و میتة سویة و مردا غیر مخزی ولا فاصح اللهم اجعلنی صبورا واجعلنی شکورا و اجعلنی فی عینی صغیر و فی اعین الناس کبیرا رب

اغفر و ارحم واهدنی فی السبیل الا قوم قم نورک فهدیت فلک الحمد عظم حلمک فعفوت فلک الحمد بسطت یدک فهدیت فلک الحمد ربنا وجهک اکرم الوجوه وجاهک اعظم الجاه و عطیتک اعظم العطیة واهناها تطاع ربنا فتشکر و تعصی فتغفر و تجیب المضطر و تکشف الضر و تشفی السقیم و تغفر الذنب و تقبل التوبة ولا یجزی بالاتک احد ولا یبلغ مدحتک قول قائل اللهم انی اسالک علما نافعا و اعوذبک من علم لا ینفع اللهم انی اسالک خیر کل المسالة و خیر الدعاء و خیر النجاة و خیر العمل و خیر الثواب و خیر الحیاة و خیر الممات ثبتنی و ثقل موازینی و حقق ایمانی و ارفع درجتی و تقبل صلاتی و اغفر خطیئتی و اسالک الدرجات العلا من الجنة امین اللهم انی اسالک ان ترفع ذکری و تضع وزری و تصلح امری و تطهر قلبی و تحصن فرجی و تنور قلبی و تغفر ذنبی و اسالک الدرجات من الجنة امین اللهم انی اسالک ان تبارک لی فی سمعی و بری و فی روحی و فی خلقی و فی اهلی و فی مماتی و محیایی و فی عملی و تقبل حسناتی و اسالک الدرجات العلی من الجنة امین یا من اظهر الجمیل و ستر القبیح یامن لا یواخذ بالجریرة ولا یهتک الستر یا حسن التجاوز یا واسع المغفرة یا باسط الیدین بالرحمة یا صاحب کل نجوی یا منتهی کل شکوی یا کریم الصفح یا عظیم المن یا مبتدئ النعم قبل استحقاقها یا ربنا و یا سیدنا و یا مولانا و یا غایة رغبتنا اسالک ان لا تشوی خلقی بالنار نعوذ بالله من عذاب النار نعوذ بالله من عذاب القبر نعوذ بالله من الفتن ما ظهر منها و ما بطن نعوذ بالله من فتنة المسیح الدجال اللهم انا نعوذبک من جهد البلاء و درک الشقاء وسوء القضاء و شماتة الاعداء اللهم مصرف القلوب صرف قلوبنا علی طاعتک اللهم اغفرلنا و ارحمنا و ارض عنا و تقبل منا و ادخلنا الجنة و نجنا من النار واصلح لنا شاننا کله اللهم زدنا و لا تنقصنا و اکرمنا و لاتهنا و ادخلنا الجنة و نجنا من النار و اعطنا و لاتحرمنا و اثرنا ولا تؤثر علینا و ارضنا و ارض عنا اللهم اعنا علی ذکرک و شکرک و حسن عبادتک اللهم احسن عاقبتنا فی الامور کلها و اجرنا من خزی الدنیا و عذاب الاخرة اللهم اقسم لنا من خشیتک ما تحول به بیننا و بین معاصیک و من طاعتک ما تبلغنا به جنتک و من الیقین ما تهون به علینا مصائب الدنیا و الاخرة و متعنا باسما عنا وابصارنا و قوتنا ما احییتنا و اجعله الوارث منا واجعل ثارنا علی من ظلمنا و انصرنا علی من عادانا و لا تجعل مصیبتنا فی دیننا ولاتجعل الدنیا اکبر همنا و لا مبلغ علمنا و لا تسلط علینا من لا یرحمنا اللهم انا نسالک عزائم مغفرتک و منجیات امرک و موجبات رحمتک و السلامة من کل اثم و الغنیمة من کل بر و الفوز بالجنة و النجاة من النار اللهم لاتدع لنا ذنبا الا غفرته ولا هما الا فرجته ولا دینا الا قضیته ولا حاجة من حوائج الدنیا والاخرة الا قضیتها یا ارحم الراحمین ربنا اتنا فی الدنیا حسنة و فی الاخرة

حسنة و قنا عذاب النار اللهم انا نسالک من خير ما سالک منه نبيک محمد عليه السلام و نعوذ بک من شر ما استعاذک منه نبيک محمد عليه السلام و نسالک فيما قضيت من امر ان تجعل عاقبته لی رشدا و انت المستعان و عليک التکلا و لاحول ولا قوة الا بالله العلی العظيم.

ژباړه: يا الله زه پناه غواړم د سستئ څخه د عبادت او د ډېروالي څخه د داسي عمر چي عبادت نه سم په کښي کولای او پناه غواړم د قرضداری او د ګناه څخه يا الله پناه غواړم د عذابه د اور او د فتنې څخه د قبر او د عذابه څخه د قبر او د شره څخه د فتنې د خر دجال يا الله زما خطاوي په اوبو د واوري پرېولې او د يخي په اوبو او پاک کړې زړه زما د ګناه څخه داسي لکه سپينه جامه چي د خيري څخه پاکيږي زما او د ګناه تر مابين دونه ليري والی راولې لکه د مشرق او د مغرب ترمنځ ياالله پناه غواړم د عجز او سستئ يې څخه او د بزدلی يې څخه او د زوروالي څخه او د بخله څخه او پناه غواړم د عذابه څخه د قبر او پناه غواړم د فتنې د ژوند او د مرګ او پناه غواړم د توروالي څخه د زړه او د غفلت څخه د زړه لو د ذلت څخه د زړه او د مسکنت څخه د زړه او پناه غواړم د کفر د فقر او فسق او مخالفت او ريا او خودبيني څخه ياالله ورکړې زما نفس ته تقوا او پاکي او متصرف يې ته يې او بادار زما يې ياالله پناه غواړم د داسي علمه څخه چي نفع منده نه وي او د داسي زړه څخه چي ېېره په کښي نه وي او د داسي نفس څخه چي مړيږي نه او د داسي دعا څخه چي قبليږي نه ياالله زه پناه غواړم د شره څخه د هغه چي زه په خبر يم او د شره څخه د هغه چي زه وربانديي خبر نه يم ياالله زه پناه غواړم د زواله څخه د نعمت او د اوښتو څخه د صحت او د ناڅاپه حملې څخه د عذاب او د ټوله قهره څخه ستا ياالله زه پناه غواړم د لاندي کېدو څخه د ديواله يا مثل د ده او د شوه کېدو څخه د پاڼ يا غره او پناه غواړم د غرقېدو څخه د اوبو او سوځولو څخه د اور او پناه غواړم د ګډوډئ څخه د عقل زما د شيطان په تصرف سره په وخت کي د ځکندن او پناه غواړم د داسي مرګه څخه چي په جهاد کي د شا د طرفه څخه ويشتل کيږم او پناه غواړم په تا بانديي د داسي مرګه څخه چي پر بده لار وي ياالله زه پناه غواړم د بدو اخلاقو او اعمالو او هواګانو او دواؤ څخه ياالله پناه غواړم د پور د غلبې څخه د دښمن د غلبې څخه او د دښمن د خوشحالئ څخه ياالله وما ته بخښنه وکړه زما د ګنهو که خطايي او که قصدي چي راڅخه سوي وي ياالله زه پناه غواړم د پس کېدو څخه د لېونتوب او د بدي تبي څخه ياالله و بخښې زما قصدي او بې له قصده خطايي ګناهونه او دا تصرف خاص ستا دی ياالله اصلاح کړې زما دين هغه چي زما ساتونکي د کار دی او اصلاح کړې دنيا زما چي زما پکښي معاش دی او اصلاح کړې آخرت زما هغه چي معاد دی زما او زما ژوند وګرځوې په ګټه کي د آخرت زما او زما مرګ راته راحت وګرځوې د هر شر څخه يا ربه او زما خدايه زما د

دښمن سره مه معاون کېږه پر ما او د ده کومک مه کوې زما کومکي سې او ما ته طريقه د حل راوښيه نه و دښمن زما ته او هدايت وکړي ما ته او هدايت راته اسانه وکړې او کومک مي پر هغه چا وکړې چي پر ما تجاوز کوي ياالله ما وګرځوې ډېر ذکر کونکی او ډېر شکر کونکی او ډېر يېره کونکی ستا څخه او ډېر تابعداره ستا او ډېر رجوع کونکی و تا ته اې ربه زما توبه قبوله کړه ګناه مي پرېوله دعا مي قبوله کړه او ټينګ که دليل زما او برابره کړې ژبه زما او هدايت وکړې زړه ته زما او خلاصه کړې غوټه د زړه زما ياالله ستا څخه ثبات په ټولو کارو کي او په اعظمي امورو کي ستا څخه غواړو پر لاره د هدايت او سوال کوو د شکر د نعمت ستا او د ښه عبادت ستا او سوال کوو د رښتيا ويونکي ژبي او د سالم زړه او پناه غواړم د شره څخه هغه چي ته په عالم يې او سوال کوم د خير هغه چي ته په عالم يې او مغفرت غواړم د هغه څخه چي ته په عالم يې او سوال کوم د خير هغه چي ته په عالم يې او مغفرت غواړم د هغه څخه چي ته په عالم يې ځکه تا ته د پټو او ښکاره کارو علم دی ياالله وما ته الهام د هدايت وکړې او ساتنه زما وکړې د شره څخه د نفس زما ياالله زه سوال کوم د نيکو کارو او د پاته کېدو د منکراتو او محبت د مسکينانو او د دې چي مغفرت راته وکړه او رحم راباندي وکړې او چي اراده لرې د يو قوم د فتني نو ما بې له فتنې وفات کړې او سوال کوم ستا د محبت او د هغه چا د محبت چي ستا سره محبت لري او د داسي عمل چي ما وتا ته نژدې کوي يا الله نفع واخلې زما د غوږو او سترګو څخه او دا دواړه زما وارثان وګرځوې او زما کومک د هغه ظالم په مقابل کي چي پر ما ظلم کول غولړي او زما انتقام ورڅخه واخلې اې هغه ذاته چي سترګي طاقت ستا د ليدو نه لري او ګمان درته رسېدلای نه سي او هرڅونه چي کېدای سي خو ستا صفتونه نه سي تمام ته رسولای او نه يې زمانه متغير کولای سي او نه د هلاکت ېږه پر باندي سته ستا علم د غرو پر دروندوالي سته او پر پيمانو د دريابو سته او د باران پر څاڅکو او پر شمار د درختو د بلګو سته او شمار درته معلوم دي کوم چي شپه ورباندي تياره کوي او يا لمر ورباندي راخيژي نه په آسمان او نه په ځمکه کي شی درڅخه ورکېدای سي نه په دريابو او نه په غرو کي درڅخه پټېدلای سي نو زما اخيري عمر پر کارو د خير کي او عمل او خاتمه د عمل زما پر خېر کړې او زما د خير ورځ هغه کړې چي ستا سره زما ملاقات کيږي پکښي ياالله سوال کوم د ښه ژوند او د ښه مرګ بې له رسوايې او د شرمه څخه ياالله ما ډېر صبر کونکی او شکر کونکی وګرځوې او پخپل سترګو کي زما ما کوچنی او د خلقو په سترګو کي مي غټ وګرځوې ربه مغفرت راته وکړه رحم راباندي وکړه لاره د هدايت راوښيه ستا نور پوره دی هدايت راته وکړه تا ته ثنا ده ستا حلم غټ دی نو عفوه راته وکړه تا لره حمد دی تا د جود او رحم لاس غوړولی دی نو موږ ته

هدایت وکړه تا ته حمد دی ربه ذات ستا کریم دی مقام ستا لوړ دی ورکړه دي ډېره ده ده لو خوندوره ده ستا اطاعت کیږي نو ستا شکر ویل کیږي که ستا نافرماني کیږي ته مغفرت ورته کوې او د محتاجه دعا قبلوې ضرر ورڅخه لیري کوې مریضانو ته شفا ورکوې د گناه بخښنه کوې توبه قبلوې ستا صفتونه ځوک پوره کولای نه سي او ستا مدحي ته رسیدای ځوک نه سي یاالله زه نافع علم غواړم او پناه غواړم د بې نفعي علم څخه یا الله زه په هره مسله کي خیر غواړم خیر د دعا او خیر د نجات او خیر د عمل او خیر د ثواب او خیر د ژوند او مرگ ما پر قول ثابت ولري او د نیکۍ پله مي درنه کړې او ایمان مي مضبوط کړې او درجې مي لوړي کړې او لمونځ مي قبول کړې گناهونه مي وبخښې او لوړي درجې د جنت غواړم آمین یا الله زه سوال کوم د بلنده درجې په ذکر کي او غوښتنه د گناه د سقوط کوم لو زما د امورو اصلاح وکړې او زړه مي پاک کړې فرج مي پاک کړې زړه مي منور کړې گناه مي معاف کړې او سوال کوم د لوړو درجو د جنت ستا څخه آمین یاالله ستا څخه سوال کوم چي زما په غوږ او سترگو او روح او بدن او اهل او ژوند او مرگ او په عمل کي برکت واچوې او زما حسنات قبول کړې او سوال کوم د لوړو درجو د جنت آمین اې هغه ذاته چي بنه دي ښکاره کړي دي او بد دي لاندي کړي دي اې هغه ذاته چي گرفت نه کوې د گناهگاره او نه پرده پورته کوې د گناهگاره څخه اې هغه ذاته چي تجاوز کوې سرې ته تر گناه او ستا مغفرت پراخ دی او رحمت دي ټول جهان ته غوړېدلی دی او ته په پټ راز خبر یې او د هر چا شکایت اورې اې کریمه او د لوی احسان خاونده اې پیدا کونکې د نعمتو او رسونکې و هر مستحق ته یاربه زموږ یا سرداره زموږ یا باداره زموږ یا زموږ د مقصد نتیجې موږ سوال کوؤ درڅخه چي په اور زموږ بشر مه کبابوه پناه غواړم د اوره څخه پناه غواړم د عذاب څخه د قبر او د فتنو څخه کومي چي ښکاره او پټي دي پناه غواړم د فتنې څخه د خرجدال اې خدایه زه پناه غواړم د سختي بلا څخه د نیولو څخه د بدبختۍ او د بدۍ څخه د قضا او د خوشحالۍ څخه د دښمن یاالله ته گرځونکی د زړه یې وگرځوه زموږ زړونه طاعت ته یاالله ما وبخښې او رحم وکړې پر ما او راضي سې زما څخه او قبول کړې زموږ طاعت او داخل مو کې و جنت ته او د اوره څخه مو وساتې او زموږ د شان اصلاح وکړې یاالله زموږ په طاعاتو کي زیاتوب راولې او زموږ طاعات مه کموې او موږ عزتمنده کړې او بې عزته کوې مو مه د خپل رحمت څخه یې راکړې محرومه کوې مو مه موږ غوره کړې پر موږ بل څوک مه غوره کوې زموږ څخه راضي سې او موږ هم راضي منده کړې یاالله زموږ غټ مقصد ستا ذکر او شکر دی او ښه عبادت یاالله ښه عاقبت مو نصیب کړې په ټوله کارو کي او په پناه کي مو واخلې د رسوایي څخه د دنیا او اخرت او د عذابه څخه مو وساتې یاالله په تقسیم

سره خپله بېره موږ ته راکړې داسې بېره چې زموږ او د ګناه تر مابين پرده واقع سي او د طاعت څخه دونه په رزق راکړې چې موږ خپل مقصود ته وصل کړې چې جنت دی او يقين زموږ دونه زيات کړې چې د دنيا او د اخرت مصيبتونه يې نه سي زايله کولای او زموږ اوربدل او ليدل او د ژوند قوت نفع مند تمام کړې او زموږ نيک عمل بنه وارث زموږ دپاره جوړ کړې او موږ غالبه پر دښمن ولرې او ته راسره پکښې نصرت وکړې او موږ مصيبت په دين کې مه ګرځوې او دنيا مو غټ مقصد مه ګرځوې او مه مسلطه کوې پر موږ داسې څوک چې رحم نه لري ياالله زموږ نصيب کړه غټ مغفرت او لويه کاميابي او واجبونکی د رحمت او سلامتيا د هري ګناه څخه او په غنيمت راکړه هره نيکي او کاميابي د جنت او نجات د اوره څخه ياالله زما ګناهونه وبخښې او غمونه مې ليري کړې او پورونه مې ادا کړې او د دنيا او اخرت حاجتونه مې پوره کړې يارحمن او رحيم ذاته اې ربه راکړې په دنيا کې توفيق د طاعت او راکړې خير د اخرت او و مې ساتې د عذابه څخه د اخرت ياالله موږ هغه سوال کوؤ ستا څخه چې کوم سوال خير البشر محمد رسول الله کړی دی ستا څخه او پناه غواړو د هغه شر څخه چې سيدالابرار پناه ورڅخه غوښتې ده او سوال کوم ستا څخه چې حکم او فيصله وکړې زما د اخيري کار پر هدايت او پوهنې او هوښيارۍ ته معاونت ورکونکې ذات يې پر تا زموږ توکل دی ولاحول ولاقوة الا بالله العلي العظيم.

## فصل دعاګاني چې د حديثو څخه را اخيستل سوې دي او لوی اثار پکښې دی

ملاعلي القاري رحمه الله وايي ما قصد وکړی چې زه تا ته بيان وکړم اې حاجي صاحبه د داسې ذکرو چې ثواب يې ډېر وي او دعاګاني درته بيان کړم او اذکار کوم چې ډېر په حديثو کې راغلي دي او انسان خو په خپل طبيعت کې ستړی وي او ځان ساته د داسې وچې ستړيا څخه واجب عمل دی چې په دعاګانو او ذکرو د الله تعالی ستړی کيږي او په حديث کې راغلي دي چې ستړيا الله رب العالمين پر چا نه راولي ترڅو چې هغه بنده پخپله ځان په ستړيا کې واقع نه کړي، اخرجه البخاري في صحيحه ج۱ ص۱۷، ومسلم في باب صلاة المسافرين ب۳۱ رقم ۳۲۱، سنن ابن ماجه ۴۲۳۸، مستدرک ج۱ ص۵۹، الدرالمنثور ج۲ ص۷۸، اتحاف السادة المتقين ج۶ ص۳۶۸.

نو پر انسان اوس تعين سوله دا خبره چې دی د خدای پاک لاره طلبوي نو به داسې دعاګاني او اذکار مختاره کوي چې دی يې هميشه او دائم کولای سي او حفاظت يې کولای سي او د ده د حاله سره موافق هم وي او د ده زړه هم نرموي او پر ژبه هم سپکې وي ځکه چې لږ سره د دوامه بهتري لري او تاثير لري په زړه کې تر ډېرو هغو دعاګانو چې ګاه وي ګاه نه

وي قطع سي بنه دي هغه دعاګاني چي اسانه او ډيري څلي وسي مثال د دائمي داسي دی لکه په يو لوی حوض کي چي د باران څاڅکي لړلړ تونيږي نو حوض ډک کړي اوس که د پاسه په يو ځل دونه اوبه پر را ايله کړي چي حوض ډکوي بيا به په حوض کي هيڅ اوبه هم پاته نه سي که وي هغه به ډيري لږ وي نو د ډېر اثر نه ښکاره کيږي چي ګای وي ګای نه وي لهذا ما و تا ته يو ورد جوړ کړی دی او هغه لس کلماتي دي لوی تاثير لري نو هره يوه که مختاره کړي کم از کم خو به سهار درې واره چي دا بې اقله مرتبه ده او اکثره بې اوياه ۷۰ واره ده او ميانه مرتبه يې لس واره ده نو ته پکښي خوبني وکړه او همېشه توب پر وکړه دا به ستا د دنيا او اخرت ګټه وي انشاءالله تعالى هغه لس کلمات دا دي:

۱: لا اله الا الله وحده لا شريک له له الملک وله الحمد يحی و يميت وهو حی لايموت بيده الخير وهو علی کل شی قدير.

لايق د عبادت نسته بې له الله واحد لا شريک ذات دی باچهي ده لره ده او حمدونه ده لره دي ژوندي کېدل او مړه کېدل دی کوي او الله حی لايموت ذات دی په قدرت کي د ده خير دی او پر هر څه قادر دی.

۲: سبحان الله والحمدلله ولا اله الا الله والله اکبر ولاحول ولا قوة الا بالله العلی العظيم.

پاکي ده الله لره او حمدونه دي وي الله لره او الله لوی ذات دی او ګردش د ګناه څخه نسته بې له الله او نه قوت سته پر طاعت باندي بې له الله تعالی.

۳: سبوح قدوس رب الملائکة و الروح.

ډېر تسبيحات او پاکي ده رب لره د ملايکو او د جبرايل العليه.

۴: سبحان الله و بحمده سبحان الله و بحمده.

پاکي ده الله لره او حمد دی الله لره پاکي و الله لره چي لوی ذات دی او حمد دی الله لره.

۵: استغفرالله العظيم الذی لا اله الاهو الحی القيوم واسالة التوبة و المغفرة و اساله العفو و العافية.

مغفرت غواړم د الله څخه چي لوی ذات دی او لايق د عبادت نسته بې له خدايه چي حی او قائم دی او سوال کوم د خدايه څخه د توبې او مغفرت او سوال کوم د عفوي او پاکي د هر مصيبت او تکليف څخه.

۶: اللهم لا مانع لما اعطيت ولا معطی لما منعت ولا راد لما قضيت ولا ينفع ذالجد منک الجد.

یاالله چي هر چا ته اعطا وکړې بل څوک مانع نسته او ورکونکی بیا څوک نسته چي تا منع ورڅخه وکړه او نه هم ردونکی سته چي تا فیصله پر وکړه او نه هم نفع رسوونکی سته نیکه په اخرت کي چي تا و عذاب ته څوک شوه کړی او نه هم نفع رسولای سي بیا کوشش.

۷: لا اله الا الله الملک الحق المبین.

لایق د عبادت بل څوک نسته ماسوا د خدایه څخه چي حق او ښکاره باچا دی.

۸: بسم الله الذی لم یضر مع اسمه شئ فی الارض ولا فی السماء وهو السمیع العلیم.

شروع کوم په نوم د الله او هغه ذات چي د ده د نومه سره هیڅ شی مخالف تاثیر نه سي کولای نه په مځکه نه په آسمان کي او الله اورېدونکی او عالم ذات دی.

۹: اللهم صل وسلم وبارک افضل صلاتک و سلامک و برکاتک علی سیدنا محمد و اله و صحبه اجمعین والانبیاء و المرسلین و الملائکة و المقربین و سائر عبادک الصالحین.

یاالله رحمت او سلامونه او برکات نازل کړه بهترین رحمت او سلام ستا پر سردار زموږ محمدﷺ او پر آل د ده او پر اصحابو د ده ټولو باندي او پر انبیاوُ او رسولانو او ملایکو مقربینو باندي او پر ټوله صالحو بندګانو باندي.

۱۰: اعوذ بالله السمیع العلیم من الشیطان الرجیم اعوذبک من همزات الشیاطین و اعوذبک رب ان یحضرون.

پناه غواړم په الله باندي چي اورېدونکی او عالم ذات دی د شیطانه څخه چي ترټل سوی د دربار څخه د رحمت او پناه غواړم د غولولو څخه د شیطانانو او پناه غواړم په خپل رب باندي د شیطانانو د حضور څخه.

## د تیرو لسو کلمو فضیلت

دا لس کلمې چي تیري سوې که هره یوه لس واره تکرار کړي نو د سلو کلمو ثواب لري او دا فضیلت لري تر دغه چي یوه کلمه سل واره مکرره وایې ځکه په دغه کلمو کي هره یوه ځان ته مستقل غټ فضیلت لري او د انسان زړه په هري یوې سره آګاه کیږي او خوند ورباندي اخلي خو یاد لره چي خوند نفس هلته پر اخلي چي په معنا او مطلب يې پوهیږي او د یوې کلمې څخه بلې ته نقل کیږي او په هر نقل کي تنها نوعه استراحت دی په ملاحظې سره د معنا ځکه معنا د روح او لفظ د جسد مثال لري نو لفظ بې له معنا داسي حیثیت لري لکه جسد بې له روحه نو هیڅ تاثیر بیا نه لري او بل شرط دا لري چي د ذکر په وخت کي به د بل هر فکره او شُغله څخه ځان ساتي ځکه دی د خپل رب په مناجات کي وي مثال يې داسي

